# فتاوی

# حقانیة

## پښتو

له افاداتو د

شیخ الحدیث حضرت مولانا عبدالحق صاحب رحمة الله علیه

څارنه او اهتمام

حضرت مولانا سمیع الحق صاحب مهتمم جامعه حقانیه

ترتیب، مفتی مختار الله حقانی

پښتو ژباړونکی

مولوی قاری محمد فاروق منګ مهتمم جامعه دارالعلوم ابوهریرة ارګون

ناشر،

جدید کتب خانه

جنوبی وزیرستان ایجنسی وانا بازار

وَلَوْ رَدُّوهُ إِلَى الرَّسُولِ وَإِلَىٰ أُولِي الْأَمْرِ مِنْهُمْ لَعَلِمَهُ الَّذِينَ يَسْتَنْبِطُونَهُ

دجامعه دارالعلوم حقانیه اکوړه خټک د بیمې پېړۍ د فتاوو مجموعه

# فتاوی حقانیه

## پښتو

له افاداتو د

شیخ الحدیث حضرت مولانا عبدالحق صاحب رحمه الله علیه

او د دارالعلوم حقانیه نور مفتیانِ کرام

څارنه او اهتمام

حضرت مولانا سمیع الحق صاحب مهتمم جامعه حقانیه

ترتیب

مفتی مختار الله حقانی

پښتو ژباړونکی

مولوی قاری محمد فاروق ملنګ مهتمم جامعه دارالعلوم ابوهریرة ارګون

خپروونکی

جدید کتب خانه

حاجی بخت عالم مارکیټ جنوبی وزیرستان الحنیفی وانا بازار

د کتاب نوم: فتاوی حقانیه (څلورم جلد)
له افاداتو دي: شیخ الحدیث حضرت مولانا عبد الحق صاحب رحمة الله علیه باني جامعه دار العلوم حقانیه او د دي جامعې نور مفتیان کرام
څارنه او اهتمام: شیخ الحدیث حضرت مولانا سمیع الحق صاحب د دي جامعې مهتمم
ترتیب: مولانا مفتي مختار الله حقاني د تخصص فی الفقه والافتاء د شعبې استاذ
پښتو ژباړه: حضرت مولانا قاري محمد فاروق ملنگ مهتمم جامعهٔ دار العلوم ابو هریرةؓ ارگون
کمپوز او د پښتو ژباړې ترتیب: قاري عبد القیوم لوګري
د چاپ کال: ۱۵ صفر المظفر ۱۴۳۱ هجري، په مطابق د ۳۱ دسمبر ۲۰۰۹ میلادي
د چاپ تعداد: ۱۱۰۰
خپرونکی: جدید کتب خانه حاجي بخت عالم مارکیټ جنوبي وزیرستان ایجنسي وانا
د لاس ته راوړلو ځایونه: مکتبهٔ رشیدیه سرکي روډ کوئټه
مکتبه الحرم، سردار پلازه نزد جامعه دار العلوم حقانیه اکوړه خټک
وحیدي کتب خانه قصه خواني بازار پېښور
جدید مدینه کتب خانه حاجي رشید مارکیټ ارگون بازار
مکتبهٔ فریدیه محله جنگي، قصه خواني بازار پېښور،
له مولوي امیر الله شیراني سره
ستاکسب:



بسم الله الرحمن الرحیم

# د مضامینو فهرست

## فتاوی حقانیه څلورم جلد

## کتاب الطلاق

## باب شرائط الطلاق

## باب طلاق الصريح و الكناية







## باب تعليق و تفويض الطلاق

## باب تفریق مفقود الخبر و نحوه



## باب الایلاء



## باب اللعان



## باب الظهار





## باب الخلع



## باب العنین



## باب العدة

## باب الحلالة







## باب ثبوت النسب

## کتاب الایمان و النذر







## کتاب الوقف

## باب المساجد

## کتاب الحدود و التعزیرات







## کتاب الاشربه

## کتاب القصاص و الدیة







## کتاب الجهاد

### باب شرائط الجهاد و آدابه

## باب الغنائم و قسمتها





## باب المستامن



## باب المعاملات مع الکفار

## د سي ټي بي ټي شرعي حیثیت



## كتاب الدعوٰی و القضاء

## باب التحکیم

## د اسلامي قوانینو جامعیت او اهمیت ۵۱۲



## په غیر اسلامي ملکونو کښې د قضاء طریقه ۵۲۲







## د اسلام د عدل او انصاف نظام ۵۲۹

# کـــــتاب الطـــــلاق

## باب شرائط الطـــلاق

## (د طلاق شرائط، احکام او مسئلې)

### له نکـــــاح څخه مخکښې ورکړ شوی طلاق کالعـــدم دی

**سوال:** يوه سړي له خطبې نه وروسته او له نکاح څخه مخکښې خپل خسر ته خط وليکه چه ستا لور له ما څخه آزاده ده او په ما باندې طلاقه ده آيا له دې څخه وروسته د دوی دواړو تر منځ نکاح کيږي او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** چونکه له نکاح څخه مخکښې طلاق کالعدم دی نو له دې وجهې په صورت مسئوله کښې نوموړي الفاظ لغو ګرځي او وروسته په نکاح کښې هيڅ حرج نه پاتې کيږي۔

قال العلامة الحصکفیؒ: فلغا قوله لاجنبية ان زرت زيداً فانت طالق فنکحها فزارت. و قال لعدم الملك و الاضافة اليه. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص۵۳۷، کتاب الطلاق، مطلب التعليق المراد به المجازاة دون الشرط)

و قال العلامة ابن نجيم المصریؒ: فلو قال لاجنبية ان زرت زيداً فانت طالق فنکحها فزارت لم تطلق لانه حين صدر لا يصح جعله ايقاعاً لعدم المحل. (البحر الرائق ج٤، ص۸، کتاب التعليق، تحت قوله فلو قال لاجنبية) و مثله فی فتح القدير ج۳، ص٤٤٦، کتاب الطلاق، باب الايمان فی الطلاق.

### په طلاق کښې اضافت ضروري ده

**سوال:** يوه سړي په طلاق باندې د مجبوره کولو لپاره ويرول شو چه له وجهې ئې د هغه سړي وار خطا شو او د طلاق د ورکولو په وخت کښې ئې د ښځې نوم وا نه خيست او د ښځې د پلار د نوم په ځای ئې د هغې د نيکه خوا ته نسبت وکړ۔ نو آيا د پلار په نامه کښې د غلطۍ په صورت کښې طلاق واقع کيږي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په طلاق باندې د تلفظ کولو په وخت کښې اکراه مؤثر نه دی نو له دې وجهې له جبر او اکراه سره سره طلاق واقع کيږي۔ خاوند په عمومي توګه خپلې ښځې ته طلاق ورکوي نو له دې وجهې په نوموړي صورت کښې د پلار طرف ته د نسبت د نشت والي باوجود يوائې د ښځې د نامه په اخيستلو سره هم طلاق واقع کيږي او همدارنګه د پلار په ځای باندې ئې د نيکه خوا ته په نسبت کولو سره هم کوم فرق نه راځي په ظاهره سره په دې صورت کښې د طلاق په واقع کيدو کښې کوم مانع امر نشته۔

قال العلامة ابن عابدينؒ: لو قال امرأة طالق او قال طلقت امرأة ثلاثا و قال لم اعن امرأتی يصدق و يفهم منه انه لو



لم يقل ذٰلك تطلق امرأته لان العادة ان من له امرأة انما يحلف بطلاقها لا بطلاق غيرها. و قال بخلاف ما لو ذکر اسمها او اسم ابيها او امها او لدها...... فقد صرحوا بانها تطلق و انه لو قال لم اعن امرأتی لا يصدق قضاءً اذا کانت امرأته کما وصف. (رد المحتار ج۲، ص٤٦٦، باب الصريح، کتاب الطلاق)

و قال العلامة ابن نجيم المصری رحمه الله: و کذا لو لم ينسبها الٰی ابيها و انما نسبا الٰی امها او ولدها تطلق. و قال: فقال ذٰلك و هو يعلم نسب امرأته او لا يعلم طلقت امرأته و لا يصدق قضاء و فيما بينه و بين الله تعالٰی لا يقع ان کان يعرف نسبها و ان کان لا يعرف يقع ديانة. (البحر الرائق ج۳، ص۲۵۳/۲۵٤ کتاب الطلاق) و مثله فی فتح القدير ج۳، ص۳۵۳، کتاب الطلاق، باب ايقاع الطلاق.

### د ښځې د ډارولو لپاره د طلاق د لفظ د استعمالولو حکم

**سوال:** يوه سړي د خپلې ښځې د ډارولو لپاره د طلاق لفظ استعمال کړ په داسې حال کښې چه نيت ئې د طلاق نه وو نو آيا په دې سره طلاق واقع کيږي او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د طلاق په صريح لفظ کښې د نيت او ارادې موجودوالی او نه موجودوالی برابر دي نو ځکه چه کله هم د طلاق صريح لفظ استعمال شي نو طلاق واقع کيږي۔

قال النبی عليه الصلٰوة و السلام: ثلاث جدهن جد و هزلهن جد النکاح و الطلاق و العتاق. (نصب الراية ج۳، ص۲۹۳، کتاب الايمان)

و قال العلامة الحصکفیؒ: او هازلا لا يقصد حقيقة کلامه. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص٤۵۹، کتاب الطلاق، مطلب فی المسائل التی تصح للاکراه) و مثله فی البحر الرائق ج۳، ص۲٤٤، کتاب الطلاق.

### د طـــلاق د وقوع لپاره د خاوند بالغ والی شـــرط دی

**سوال:** يوه سړي خپل نابالغ زوی ته يوه بالغه نجلۍ په نکاح کړه او اوس د دواړو کورني تعلقات دومره خراب شوي دي چه خبره تر طلاقه پورې ورسيده نو آيا په دې صورت کښې به دغه نابالغ هلك خپلې ښځې ته طلاق ورکوي او که د هغه د پلار له خوا څخه به طلاق ورکول کيږي او ښځه به خلاصوي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په دې صورت کښې نابالغ هلك پخپله طلاق نه شي ورکولی ځکه چه د طلاق د واقع کيدو لپاره د خاوند بالغ والی شرط دی او د طلاق لپاره د ځان له خوا څخه څوك وکيل جوړولی شي۔ پلار د خپل نابالغ زوی لپاره څوك په نکاح کولی شي ليکن د هغه له خوا څخه د طلاق ورکولو اهليت نه لري۔ په داسې حالت کښې به ښځه د خاوند د بالغ والي انتظار کوي۔ البته که چېرته د عصمت نفس او يا د نفقې خبره وي نو بيا به مجبوراً ښځه د وخت د حاکم په ذريعه نکاح فسخ کولی شي۔

قال العلامة الحصکفیؒ: و لا يقع الطلاق الصبیّ و لو مراهقاً. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص٤٦۲، کتاب الطلاق)

او د رسول الله ﷺ مبارکه وينا ده چه: الطلاق لمن اخذ الساق. (ابن ماجة ص١٤٧، ابواب الطلاق)

و فی الهندية: و لا يقع طلاق الصبی و ان كان يعقل. (الفتاوى الهندية ج۱، ص۳۵۳، كتاب الطلاق، فصل فيمن يقع طلاقه و فيمن لا يقع طلاقه) و مثله فی الهداية و فتح القدير ج۳، ص۳۴۳، كتاب الطلاق.

## نابالغې نجلۍ ته د ورکړ شوي طلاق حکم

**سوال:** یوه سړي د نابالغې نجلۍ سره نکاح وکړه او تر اوسه پورې نابالغه ده چه بیرته ئې طلاقه هم کړه نو آیا په نومورې نابالغې نجلۍ باندې طلاق واقع شوی دی او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د طلاق په واقع کیدو کښې منکوحې لره اعتبار نشته که منکوحه بالغه وي او که نابالغه نو طلاق واقع کیږي۔ نو له دې وجهې په نابالغې باندې د طلاق په واقع کیدو کښې هیڅ شبه نشته نجلۍ طلاقه شوې ده۔

قال العلامة ابن الهمامؒ: فی بيان شرائط الطلاق، و فی الزوجة ان تكون منكوحته. (فتح القدير شرح الهداية ج۳، ص۳۲۶، كتاب الطلاق (تحت شرطه)

قال العلامة التمرتاشيؒ: و محله (ای الطلاق) المنكوحة. (تنوير الابصار على هامش رد المحتار ج۳، ص۳۵۲، كتاب الطلاق، مطلب طلاق الدور) و مثله فی البحر الرائق شرح كنز الدقائق ج۳، ص۲۳۷، كتاب الطلاق.

## د مجنون د طلاق حکم

**سوال:** که چیرته یو سړی لیونی وي او د لیونتوب په حالت کښې خپلې ښځې ته طلاق ورکړي نو آیا طلاق واقع کیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د طلاق د وقوع لپاره د خاوند عاقل والی او بالغ والی شرط دی۔ چونکه مجنون د عقل له نعمت څخه محروم دی نو له دې وجهې مجنون که چیرته خپلې ښځې ته طلاق ورکړي نو طلاق ئې نه واقع کیږي۔

لما فی الهندية: و لا يقع طلاق الصبی و ان كان يعقل و المجنون. (الفتاوى الهندية ج۱، ص۳۵۳، كتاب الطلاق، فصل فيمن يقع طلاقه و فيمن لا يقع طلاقه)

قال العلامة صدر الشريعة: لا طلاق صبیٍّ و مجنون و نائم. (شرح الوقاية ج۲، ص۷۱، كتاب الطلاق، باب ايقاع الطلاق) و مثله فی فتح القدير ج۳، ص۳۵۰، كتاب الطلاق، باب ايقاع الطلاق.

## د بې وقوف سړي د طلاق حکم

**سوال:** په یوه سړي کښې له بلوغ نه وروسته څه بدلون راغی او یا له مخکښې نه همداسې ساده دی او والدینو ئې واده ورته وکړ۔ چه د دنیا په کوم کار باندې ئې اخته کړي نو ډیر په چستۍ سره هغه کار ترسره کوي لیکن د دنیا د هیڅ ډول رسم او رواج څخه خبر نه دی او په خوراک، څښاک او د کالیو په اغوستلو کښې د عامو خلکو غوندې دی۔ نو آیا د داسې سړي د طلاق په ورکولو سره طلاق واقع کیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** داسې سړی سفیه بلل کیږي او طلاق ئې واقع کیږي۔ د ده تصرفات شرعا



معتبر دي۔ البته کوم سړی چه فاسد التدبیر وي او د خپلې خبرې اندازه نه ورته لګیږي، عموما بې هوده او بې ربطه خبرې کوي نو بیا معتوه بلل کیږي کوم چه طلاق ئې نه واقع کیږي۔

لما فی الهندية: و لا يقع طلاق الصبیّ و ان كان يعقل و المجنون و كذٰلك المعتوه لا يقع طلاق ايضاً. (الفتاوى الهندية ج۱، ص۳۵۳، كتاب الطلاق، فصل فيمن يقع طلاقه و فيمن لا يقع طلاقه)

و قال العلامة ابن عابدينؒ: و احسن الاقوال فی الفرق بينهما ان المعتوه هو قليل الفهم المختلط الكلام، الفاسد التدبير لكن لا يضرب و لا يشتم بخلاف المجنون. (رد المحتار ج۲، ص۴۶۲، كتاب الطلاق) و مثله فی البحر الرائق شرح الكنز الدقائق ج۳، ص۲۴۹، كتاب الطلاق.

## د بې هوشۍ په حالت کښې د ورکړ شوي طلاق حکم

**سوال:** که چیرته کوم سړی بې هوشه شوی وي او د بې هوشۍ په حالت کښې خپلې ښځې ته طلاق ورکړي او دا معلومات نه ورته کیږي چه زه څه وایم آن تر دې پورې چه د شپې او ورځې فرق هم نه شي کولی نو آیا د داسې سړي طلاق واقع کیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د طلاق د ورکولو په وخت کښې د عقل او حواس وجود ضروري دی۔ که چیرته د کوم سړي حواس د بې هوشۍ له وجهې ختم شوي وي نو بیا په دې حالت کښې ئې طلاق ورکولو ته اعتبار نشته۔

قال العلامة الحصكفيؒ: لا يقع طلاق المولٰى على امرأة عبده و المجنون و المدهوش فتح. و فی القاموس: دهش الرجل تحير و دهش با لبناء للمفعول فهو مدهوش و ادهشه اللّٰه الخ. (الدر المختار على هامش رد المحتار ج۲، ص۴۶۳، كتاب الطلاق، مطلب طلاق المدهوش)

و فی الهندية: و لا يقع طلاق الصبیّ و ان كان يعقل و المجنون و النائم و المبرسم و المغمی عليه و المدهوش. (الفتاوى الهندية ج۱، ص۳۵۳، كتاب الطلاق، فصل فيمن يقع طلاقه و فيمن لا يقع طلاقه) و مثله فی البحر الرائق ج۳، ص۲۴۹، كتاب الطلاق.

## د معتوه د طلاق حکم

**سوال:** یوه سړي ته دا معلومات نه کیږي چه څه وایم او عموما بې ربطه خبرې کوي۔ که چیرته داسې سړی خپلې ښځې ته طلاق ورکړي نو آیا طلاق ئې واقع کیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د طلاق د ورکولو لپاره عقل او بلوغ ضروري دی۔ د صورت مسئوله مطابق داسې سړي ته د فقهاء کرامو په اصطلاح کښې معتوه وایي کوم چه طلاق ئې شرعا نه واقع کیږي۔

قال العلامة التمرتاشيؒ: و لا يقع طلاق الصبیّ و المعتوه. (تنوير الابصار على هامش رد المحتار ج۳، ص۴۶۲، كتاب الطلاق، تحت مطلب فی الحشيشه و الافيون....الخ)

و فی الهندية: و كذٰلك المعتوه لا يقع طلاقه. (الفتاوى الهندية ج۱، ص۳۵۳، كتاب الطلاق، فصل فيمن يقع طلاقه و فيمن لا يقع طلاقه) و مثله فی فتح القدير شرح الهداية ج۳، ص۳۴۳، فصل و لا يقع طلاق الصبی......الخ.

## د وسواسي سړي د طلاق حکم

**سوال:** يو سړی د وسوسې په مرض اخته دی او د يوه کار په کولو او نه کولو کښې ئې هميشه تردد وي او هميشه د کار په کولو او نه کولو پورې طلاق معلق کوي او بيا ورته په معلق کولو کښې وسوسه او شك پيدا کيږي کله د اګمان کوي چه ما طلاق ورکړی دی او کله د طلاق د نه ورکولو وسواس ورته پيدا کيږي په داسې حال کښې چه په يقيني توګه سره ورته معلومه نه ده چه ما طلاق ورکړی دی او که نه؟ نو د داسې سړي شرعا د طلاق حکم څه دی؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د طلاق د وقوع لپاره باقاعده يقين ضروري دی تر څو پورې چه د هغه دا يقين نه وي نو د شك او وسوسې په بناء باندې طلاق نه واقع کيږي۔

قال العلامة الحصكفىؒ: علم انه حلف و لم يدر بطلاق او غيره لغا كما لو شك اطلق ام لا. (الدر المختار على هامش رد المحتار ج۲، ص۴۹۲، باب طلاق غير مدخول بها)

قال العلامة ابن عابدينؒ: سئل فى الرجل اذا شك انه طلق امرأته ام لا فهل لا يقع عليه الطلاق الجواب نعم لا يقع الطلاق. (تنقيح الحامدية ج۱، ص۳۷، كتاب الطلاق)

## د نشې په حالت کښې د طلاق حکم

**سوال:** آيا د نشې په حالت کښې طلاق واقع کيږي او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د نشې په حالت کښې اګر که د انسان حواس ختميږي ليکن نشه پخپل ذات کښې چونکه يو ناروا عمل دی نو له دې وجهې د نشې په حالت کښې زجراً طلاق واقع کيږي۔

قال العلامة الحصكفىؒ: و يقع طلاق كل زوج بالغ عاقل...... و لو عبداً او مكروهاً او سكران. (الدر المختار على هامش رد المحتار ج۲، ص۴۵۶، كتاب الطلاق، مطلب فى الاكراه)

قال العلامة ابن الهمامؒ: و طلاق السكران واقع. (فتح القدير ج۳، ص۳۴۵، فصل او يقع طلاقه كل زوج اذا كان عاقلاً بالغاً و لا يقع طلاق الصبى و المجنون و النائم) و مثله فى البحر الرائق شرح كنز الدقائق ج۳، ص۲۴۷، كتاب الطلاق.

## د غصې په حـــالت کښې د طـــلاق حکم

**سوال:** آيا د غصې په حالت کښې طلاق واقع کيږي او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** طلاق عموما د غصې په حالت کښې ورکول کيږي نو ځکه غصه د طلاق په وقوع باندې اثر نه کوي يعنې طلاق واقع کيږي۔ بيا هم که چېرته د غصې کيفيت دې درجې ته رسيدلی وي چه پخپلو خبرو باندې د پوهيدو قدرت و نه لري نو بيا د مدهوش په حکم کښې راځي او طلاق ئې نه واقع کيږي۔

قال العلامة ابن عابدينؒ: و الذى يظهر لى ان كلا من المدهوش و الغضبان لا يلزم فيه ان يكون بحيث لا يعلم ما [يق]ول بل يكتفى فيه بغلبة الهذيان و اختلاط الجد با لهزل كما هو المفتى به فى السكران. (رد المحتار ج۲، ص۴۶۳،



تحت مطلب طلاق المدهوش، كتاب الطلاق)

قال العلامة ابن الهمامؒ: و لا يقع طلاق الصبى و المجنون و المبرسم و المغمى عليه و المدهوش كذلك. (فتح القدير ج۳، ص۳۴۳، كتاب الطلاق، فصل و يقع طلاق كل زوج..... الخ) و مثله فى البحر الرائق ج۳، ص۲۴۹، كتاب الطلاق.

## د غـــــافل د طلاق حکـــــم

**سوال:** که چېرته يوه سړي له کومې وجهې خپل پلار ته د نکاح کولو اجازه ورکړې وي ليکن وروسته ترې خپله اجازه هيره شوې وي په داسې حال کښې چه پلار هغه ته نکاح کړې وي نو نوموړي سړي د خپلې اجازې د هيريدو په صورت کښې د لاعلمۍ له وجهې داسې وويل چه زما ښځه دې طلاقه وي نو آيا دا طلاق واقع کيږي او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** دا سړی د غافل په حکم کښې دی نو له دې وجهې طلاق ئې نه دی واقع شوی۔

قال العلامة الحصكفىؒ: او مخطئا بان اراد التكلم بغير الطلاق فجرى على لسانه الطلاق او تلفظ به غير عالم بمعناه او غافلاً او ساهياً و بالفاظ مصحفة ايقع قضاءً فقط بخلاف الهازل و اللاعب فانه يقع قضاءً او ديانة. (الدر المختار على هامش رد المحتار ج۲، ص۴۶۱، كتاب الطلاق)

و قال العلامة ابن نجيم المصرىؒ: و افاد ان طلاق الهازل و اللاعب و المخطئ واقع كما قدمناه لكنه فى القضاء و اما فيما بينه و بين الله تعالىٰ فلا يقع على المخطئ. (البحر الرائق ج۳، ص۲۵۸، باب الطلاق اى الفاظه فى اول الصفحة) و مثله فى فتح القدير شرح الهداية ج۳، ص۳۵۲، كتاب الطلاق.

## د حيض په حالت کښې خپلې ښځې ته د طلاق د ورکولو حکم

**سوال:** عن عبد الله بن عمر رضى الله عنه انه طلق امرأته و هى حائض على عهد رسول اللهﷺ فسئل عمر ابن الخطاب رضى الله تعالىٰ عنه رسول الله عليه عن ذلك فقال رسول اللهﷺ مره فليراجعها ثم ليمسكها حتى تطهر ثم تحيض ثم تطهر ثم انشاء امسك بعد ذلك و ان شاء طلق قبل ان يمسها فتلك العدة التى امر الله ان تطلق لها النساء. (ابو داؤد ج۱، ص۳۰۳، كتاب الطلاق، باب الطلاق فى الحيض)

له پورته ذکر شوي حديث له حوالې څخه معلوميږي چه حضرت عبد الله بن عمر رضى الله عنه خپلې ښځې ته د حيض په حالت کښې طلاق ورکړی وو چه له دې وجهې رسول اللهﷺ حضرت عمر رضى الله عنه ته وفرمايل چه عبد اللهؓ ته ووايه چه بيرته دې خپلې ښځې ته رجوع وکړي۔ دې واقعې ته په نظر کولو سره پوښتنه دا ده چه آيا د حيض په حالت کښې طلاق واقع کيږي او که نه؟ او که چېرته يو څوك خپلې ښځې ته د حيض په حالت کښې طلاق ورکړي نو د هغه لپاره رجوع ضروري ده او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د طلاق د واقع کيدو لپاره حيض مانع نه دی نو له دې وجهې که

چېرته خاوند ښځې ته د حیض په حالت کښې طلاق ورکړي نو طلاق واقع کیږي۔ بیا هم د حیض په حالت کښې چونکه د خاوند او ښځې تر منځ عارضي لرې والی موجود وي نو ځکه د حیض په حالت کښې طلاق ورکول له کراهیت څخه خالي نه دی۔ د اسې مه کوی چه دا عارضی لرې والی د طلاق محرک درته جوړ شي او یوه کورنی ړنګه کړی۔ د حضرت ابن عمر رضی الله عنه په واقعه کښې د ممانعت وجه همدغه ده۔

عن عبد الله بن عمر رضی الله عنه انه طلق امرأته و هی حائض علی عهد رسول اللهﷺ فسئل عمر ابن الخطاب رضی الله تعالٰی عنه رسول الله علیه عن ذٰلك فقال رسول اللهﷺ مره فلیراجعها ثم لیمسکها حتی تطهر ثم تحیض ثم تطهر ثم انشأء امسك بعد ذٰلك و ان شاء طلق. (ابو داؤد ج۱، ص۳۰۳، کتاب الطلاق، باب الطلاق فی الحیض)

او که نه وي نو د حضرت ابن عمر رضی الله عنهما د رجوع د کولو له حکم څخه دا اندازه لګیږي چه طلاق خو واقع شوی وو لیکن رسول اللهﷺ د رجوع حکم ورکړی وو۔

و قال العلامة الحصکفی: و البدعی ثلاث متفرقة او ثنتان بمرة او مرتین فی طهر واحد لا رجعة فیه او واحدة فی طهر وطئت فیه او واحدة فی حیض...... الخ. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص۴۵۵، کتاب الطلاق و اقسامها ثلاثة...... الخ)

و فی الهندیة: و البدعی من حیث الوقف ان یطلق المدخول بها و هی من ذوات الاقراء فی حالة الحیض. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۳۴۹، کتاب الطلاق، و اما البدعی فنوعان) و مثله فی فتح القدیر شرح الهدایة ج۳، ص۳۲۹، کتاب الطلاق، باب طلاق السنة.

## د طــــلاق لپاره ګواه ته ضرورت نشته

**سوال:** که چېرته یو څوك خپلې ښځې ته له ګواهانو بغیر طلاق ورکړي نو آیا دا طلاق واقع کیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د طلاق دارو مدار د خاوند په تلفظ باندې دی۔ د طلاق وقوع د ګواهانو په وجود باندې موقوف نه دی او له ګواهانو پرته هم طلاق واقع کیږي۔

و قال العلامة الحصکفی: لان رکن الطلاق هو اللفظ او ما یقوم مقامه. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص۴۶۵، کتاب الطلاق، باب الصریح)

و قال الامام الکاسانی: فرکن الطلاق هو اللفظ الذی جعل دلالة علی معنی الطلاق لغة...... او ما یقوم مقام اللفظ. (بدائع الصنائع ج۳، ص۹۸، فصل و اما بیان رکن الطلاق) و مثله فی فتح القدیر ج۳، ص۳۲۵، کتاب الطلاق.

## حمل د طلاق د واقع کیدو مانع نه دی

**سوال:** که چېرته د طلاق په وخت کښې ښځه حامله وي نو آیا د حمل په حالت کښې طلاق واقع کیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د منکوحې حمل د طلاق د وقوع لپاره مانع نه دی لکه څرنګه چه په



غیر حامله باندې طلاق واقع کیږي همدارنګه په حامله باندې هم طلاق واقع کیږي۔ او د حاملې مطلقې عدت به وضع حمل وي۔

لقوله تعالٰی: وَاُولَاتُ الاَحْمَالِ اَجَلُهُنَّ اَنْ یَّضَعْنَ حَمْلَهُنَّ. (الطلاق، آیت ۴).

قال العلامة برهان الدین المرغینانی: و ان کانت حاملا فعدتها ان تضع حملها. (الهدایة ج۲، ص۴۳۳، باب العدّة) و مثله فی بدائع الصنائع ج۳، ص۱۹۲، فصل و امّا عدّة الحیض..... الخ.

## د نفاس په حالت کښې د طلاق حکم

**سوال:** آیا ښځې ته د نفاس په حالت کښې طلاق ورکول جائز دي او که نه؟ او که جائز وي نو د ښځې عدت به څه شی وي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د حیض غوندې د نفاس په حالت کښې هم طلاق ورکول اګر که صحیح نه دي لیکن طلاق واقع کیږي۔ بیا هم که چېرته د نفاس په حالت کښې ښځې ته طلاق ورکړی شي نو دا ورځې په عدت کښې نه ګڼل کیږي بلکه مستقل درې حیضونه به په عدت کښې تیروي۔

لما قلا العلامة الحصکفی: و النفاس کا لحیض. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۱، ص۴۲۰، کتاب الحیض)

و قال العلامة ابن نجیم: و لما کان المنع منه فیه لتطویل العدة علیها کان النفاس کا لحیض. (البحر الرائق ج۳، ص۲۴۳، کتاب الطلاق) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۳۴۸، کتاب الطلاق، مطلب تفسیر الطلاق و رکنه و شرطه.

## د دروغو د ګواهي په بنیاد باندې د طلاق د ثبوت حکم

**سوال:** که چېرته کومه ښځه د دروغو شاهدان پیدا کړي او د حاکم له عدالت څخه د طلاق سند حاصل کړي په داسې حال کښې چه خاوند ئې د طلاق له ورکولو نه بالکل خبر نه وي نو آیا د داسې دروغو د شهادت په بنیاد سره ښځه د آزادۍ په ګمان باندې عدت تیرولی شي او په بل ځای کښې نکاح کولی شي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د حال د حقیقت علم یوائې الله تعالٰی لره دی۔ قاضي به یوائې په ګواهانو باندې اعتماد کوي او فیصله به کوي نو له دې وجهې قاضي یا حاکم ته چه کله د ګواهانو د دروغو علم نه وي او د هغوی په ظاهر باندې د اعتماد په صورت کښې فیصله وکړي نو په دې سره طلاق ثابتیږي او ښځه مطلقه ګڼل کیږي۔ بیا هم قاضي ته د ګواهي د قبلولو په وخت کښې ډیر احتیاط په کار دی۔

لما فی الهندیة: و کذٰلك لو قضٰی با لطلاق بشهادة الزور مع علمها حل لها التزوج باخر بعد العدة..... الخ. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۲۸۳، الباب الثالث فی بیان المحرمات، القسم التاسع المحرمات با لطلقات)

قال العلامة الحصکفی: و لو قضی بطلاقها بشهادة الزور مع علمها بذٰلك نفذ و حل لها التزوج باخر بعد العدّة. و قال ابن عابدین قوله و بقولهما یفتی قال الکمال و قول الامام اوجه و استدل له بدلالة الاجماع. (رد المحتار

ج۲، ص۳۱۹، باب المحرمات، مطلب فیما لو زوج المولی امته..... الخ) و مثله فی فتح القدیر علی الهدایة ج۳، ص۱۵۵، فصل فی بیان المحرمات.

## په طلاق نامه باندې جبراً د لاسلیک کولو حکم

**سوال:** په یوه سړي باندې په زبردستۍ سره طلاق نامه ولیکل شوه او په ژبې سره د تلفظ د نه کولو سره سره ئې دستخط وکړ نو آیا په داسې حالت کښې طلاق واقع کیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په جبري طلاق باندې په تلفظ کولو سره جبر او اکراه مؤثر نه دی په داسې حالت کښې د مکره طلاق واقع کیږي۔ البته په تحریري طلاق کښې نیت لره اعتبار دی نو له دې وجهې په تحریري توګه د طلاق په لیکلو کښې کله چه جبر وي نو د نیت د نشتوالي په صورت کښې طلاق نه واقع کیږي۔

قال العلامة ابن عابدینؒ: و فی البحر ان المراد الاکراه علی التلفظ با لطلاق فلو اکراه علی ان یکتب طلاق امرأته فکتب لا تطلق. (رد المحتار ج۲، ص۴۲۱، کتاب الطلاق، مطلب فی الاکراه علی التوکیل با لطلاق و النکاح و العتاق)

قال العلامة قاضی خانؒ: و جل اکره با لضرب او الحبس علی ان یکتب طلاق امرأته فلانة بنت فلان بن فلان فکتب فلانة بنت فلان بن فلان طالق لا تطلق....... الخ. (الفتاوی الخانیة علی هامش الفتاوی الهندیة ج۱، ص۴۷۲، فصل فی الطلاق با لکتابة) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۳۷۹، الفصل السادس فی الطلاق با لکتابة.

## د جبـــــراً طلاق حکم

**سوال:** که چېرته په یوه سړي باندې په زور، جبر او اکراه باندې طلاق واخول شي نو آیا په دې سره طلاق واقع کیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په صورت مسئوله کښې د احنافوؒ په نزد د مکره (هغه څوک چه جبر او اکراه پرې وشي) طلاق واقع کیږي۔ له دې وجهې په دې صورت کښې ښځه طلاقه ده۔

قال العلامة الحصکفیؒ: و یقع طلاق کل زوج عاقل...... و لو عبداً او مکرها. (الدر المختار علی هامش ردّ المحتار ج۲، ص۲۳۵، کتاب الطلاق)

قال العلامة المرغینانی رحمه اللّٰه: و طلاق المکره واقع. (الهدایة علی صدر فتح القدیر ج۳، ص۳۴۴، باب الطلاق) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۳۵۳، فصل فیمن یقع طلاقه و فیمن لا یقع طلاقه.

## د استهزاء یا ټوکې په توګه د ورکړشوي طلاق حکم

**سوال:** که چېرته یو سړی خپلې ښځې ته له نیت پرته استهزاءً طلاق ورکړي او دا طلاق هغه بار بار تکرار کړي نو آیا په دې سره طلاق واقع کیږي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د طلاق په صریحو الفاظو کښې نیت لره اعتبار نشته۔ نفس په تلفظ سره طلاق واقع کیږي نو ځکه که چېرته یو سړی د استهزاء په توګه ښځې ته طلاق ورکړي نو بیا



هم طلاق واقع کیږي او که چېرته ئې ډېر ځله ووایي نو ډېر طلاقونه واقع کیږي۔

قال العلامة الحصکفیؒ: بخلاف الهازل و اللاعب فانه یقع قضاء و دیانة لان الشّارع جعل هزله به جداً. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص۶۲۵، کتاب الطلاق، مطلب فی الحشیشه و الافیون و البنج)

و فی الهندیة: و فی واقعات الناطفی رجل قال لامرأته انت طالق کذا تقع ثلاث کانه قال انت طالق احد عشر کذا فی التاتارخانیة. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۳۵۶، الفصل الاول فی الطلاق الصریح)

و فیه ایضا: و طلاق اللاعب و الهازل به واقع. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۳۵۳، فصل فیمن یقع طلاقه و فیمن لا یقع طلاقه) و مثله فی شرح الوقایة ج۲، ص۶۸، کتاب الطلاق.

## د ډبرو اچول اعتبار نه لري بلکه د طلاق الفاظ معتبر دي

**سوال:** یو سړی خپلې ښځې ته یو ځل د طلاق الفاظ استعمال کړی دی۔ البته په لاس کښې ئې درې تیږې نیولې وې او غورځولې ئې دي۔ نو آیا په داسې حالت کښې الفاظو ته اعتبار دی او که ډبرو ته؟ یعنې یو طلاق واقع کیږي او که د ډبرو په حساب سره درې طلاقه واقع کیږي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د طلاق په وقوع کښې بنیادي حیثیت د الفاظو دی۔ د ډبرې غورځول پخپل ذات طلاق نه دی نو له دې وجهې که چېرته څوک د خپلې ښځې خوا ته یو اځې ډبرې واچوي او په ژبې سره تلفظ و نه کړي نو په دې سره طلاق نه واقع کیږي۔ البته په ژبې باندې د تلفظ کولو په وخت کښې د ډبرې غورځولو څخه د ما فی الضمیر خوا ته اشاره کیدلی شي۔ نو ځکه که چېرته درې ډبرې وغورځوي او دا لفظ ووایي چه "ته طلاقه ئې" نو د دریو طلاقونو په نیت سره درې طلاقونه واقع کیږي او که نه وي نو یو طلاق واقع کیږي او منکوحه د رجوع قابله ده۔

قال العلامة ابن عابدینؒ: و کذا لو القی ثلاثة احجار الیها و لم یذکر لفظ الطلاق و نوی بها الطلاق الثلٰث لم یقع لعدم الرکن و هو اللفظ و النیّة انما تصح فی الملفوظ او ما یقوم مقامه. (رد المحتار ج۲، ص۴۶۵، کتاب الطلاق)

و فی الهندیة: و لو قالت لزوجها طلقتنی فاشار بثلاث اصابع و اراد بذٰلك ثلاث تطلیقات لا یقع ما لم یقل بلسانه. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۳۵۷، الفصل الاول فی الطلاق الصریح).

قال الحصکفیؒ: انت طالق هٰکذا مشیرا با لاصابع المنشورة وقع بعدده. و فیه و لو لم یقل هٰکذا یقع واحدة....... ای بان قال انت طالق و اشار بثلاث اصابع و نوی الثلاث و لم یذکر بلسانه فانها تطلق واحدة. (الدر المختار علی هامش ردّ المحتار ج۲، ص۴۴۷، کتاب الطلاق)

و مثل هٰذا فی الهدایة علی صدر فتح القدیر ج۳، ص۳۸۷، فصل فی تشبیه الطلاق و وصفه. و مثله ذٰلك فی التاتارخانیة ج۳، ص۶۹۸، کتاب الطلاق.

## په اشارې سره د طلاق د واقع کېدو حکم

**سوال:** که چېرته څوك خپلې ښځې ته په لاس سره اشاره وکړي او طلاق ورکړي نو طلاق واقع کېږي او که نه؟ په د اسې حال کښې چه په ژبې سره هيڅ هم و نه وايي؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په اشارې سره په هغه وخت کښې طلاق واقع کېږي چه کله انسان په خبرو باندې طاقت و نه لري۔ او که نه وي نو په خبرو باندې د طاقت باوجود يوائې په اشارې سره طلاق نه واقع کېږي۔

لما فی الهندية: و يقع طلاق الاخرس با لاشارة. (الفتاوى الهندية ج۱، ص ۳۵۴، كتاب الطلاق، الباب الثانى، فصل فيمن يقع طلاقه و فيمن لا يقع طلاقه)

قال العلامة الحصكفىؒ: و يقع طلاق الاخرس با لاشارة يريد به الذى ولد و هو اخرس او طرأ عليه ذٰلك و دام حتى صارت اشارته مفهومة و الا لم تعتبر. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج۳، ص۲۳۹، كتاب الطلاق، مطلب فى لحشيشه و الافيون و البنج) و مثله فى الخانية على هامش الهندية ج۱، ص ۴۷۲، كتاب الطلاق، فصل فى الطلاق با لكتابة.

## د هازل د طلاق حکم

**سوال:** که چېرته څوك خپل زوی ته په توکې باندې ووايي چه ستا مور طلاقه ده په د اسې حال کښې چه اراده ئې بالکل د طلاق نه وي نو آيا په دې سره طلاق واقع کېږي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د صريح طلاق په الفاظو کښې د نيت او ارادې شتون ضروري نه دی او د ارادې د نشتوالي په صورت کښې هم طلاق واقع کېږي اگر که په توکه کښې هم وي۔ نو له دې وجهې په صورت مسئوله کښې يو طلاق واقع کېږي ځکه چه په دې کښې د تعداد ذکر نشته۔ او که چېرته څوك په دې حالت کښې درې طلاقه ورکړي نو منکوحه مغلظه مطلقه گرځي۔

لما قال العلامة الحصكفىؒ: و يقع طلاق كل زوج عاقل...... و لو هازلا. (الدر المختار على هامش ردّ المحتار ج۲، ص۴۵۹، كتاب الطلاق، مطلب فى المسائل التى يقع مع الاكراه)

قال ابن نجيمؒ: و لم يشترط ان يكون جاراً فيقع طلاق الهازل به و اللاعب للحديث المعروف ثلاث جدهن جد و هزلهن جدّ....... الخ. (البحر الرائق ج۳، ص ۲۴۴، كتاب الطلاق، تحت قوله و يقع طلاق كل زوج عاقل بالغ) و مثله فى فتح القدير ج۳، ص ۳۴۴، كتاب الطلاق، فصل فى ايقاع الطلاق.

## په طلاق باندې د دروغو قسم کول

**سوال:** که چېرته يو سړی په طلاق باندې په دروغو سره د اسې قسم وخوري چه زه که چېرته د فلاني کار په باره کښې دروغ ووايم او رښتيا و نه وايم نو زما ښځه به په ما باندې طلاقه وي۔ بيا وروسته معلومه شوه چه دروغ ئې ويلي وو او هغه کار د ده له قسم څخه مخکښې متحقق شوی وو نو اوس به په نوموړي سړي باندې خپله ښځه طلاقه وي او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په نوموړي سړي باندې خپله ښځه طلاقه شوې ده۔ البته که چېرته د ا



الفاظ ده يو ځل ويلي وو نو يو طلاق واقع کېږي او که چېرته ئې درې ځله تکرار کړي وي نو بيا درې طلاقونه واقع کېږي۔

لما فی الهندية: و اما الحلف با لطلاق و العتاق و ما اشبه ذٰلك فما يكون على امر فى المستقبل فهو كا ليمين المعقودة و ما يكون على امر فى الماضى فلا يتحقق اللغو و الغموس و لكن اذا كان يعلم خلاف ذٰلك او لا يعلم فا لطلاق واقع. (الفتاوى الهندية ج۲، ص ۵۲، كتاب الايمان، فى الباب الاول)

قال العلامة التمرتاشىؒ: ان حلف على كاذب عمداً كو اللّٰه ما فعلت كذا عالماً بفعله....... و يأثم بها فتلزمه التوبة و ثانيها لغو. و قال العلامة الحصكفىؒ تحت هٰذا القول لا مؤاخذة فيها الا فى ثلاث طلاق و عتاق و نذر اشباه. (تنوير الابصار على هامش ردّ المحتار ج۳، ص۵۱، كتاب الايمان، مطلب فى حكم الحلف بغيره تعالىٰ) و مثله فى الفتاوى البزازية على هامش الهندية ج۴، ص۲۶۵، كتاب الايمان، فى الفصل الاوّل.

## د طلاق وقوع ثبوت ته محتاج نه دی

**سوال:** په يوه سړي باندې خواښې دعوه وکړه چه تا خپلې ښځې ته طلاق ورکړی دی او فارغه کړې دې ده ليکن خاوند ئې انکار ترې کوي نو آيا د خواښې په دې وينا سره په نکاح کښې فرق راځي او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته ئې خاوند د طلاق اقرار کاوه نو د بل چا د بيان د منلو نه پرته هم طلاق واقع کېږي او که چېرته خاوند له طلاق څخه منکر وي نو بيا يوائې د خواښې بيان کافي نه دی۔ په د اسې حالت کښې به طلاق په هغه وخت کښې ثابتيږي چه باقاعده دوه گواهان وړاندې کړي۔ بيا هم که چېرته د ښځې دا يقين وي چه خاوند ئې هغې ته طلاق ثلاثه (درې طلاقونه) ورکړي دي او فارغه کړې ئې ده ليکن له هغې سره د دې خبرې څه ثبوت نه وي او خاوند ئې هم انکاري وي نو ښځه چه په کومې ذريعې سره وي ځان خلاصولی شي۔

كما فى الهندية: سئل شيخ الاسلام ابو القاسم رحمه اللّٰه تعالىٰ عن امرأة سمعت من زوجها انه طلقها ثلاثاً و لا تقدر ان تمنع نفسها منه هل يسعها ان تقتله قال لها ان تقتله. (الفتاوى الهندية ج۱، ص۴۷۵، كتاب الطلاق، الباب السادس فى الرجعة و فيما تحل به المطلقة و ما يتصل به فى فصل فيما تحل به المطلقة)

قال العلامة الحصكفى رحمه اللّٰه: سمعت من زوجها انه طلقها و لا تقدر على منعة من نفسها الا بقتله لها قتله و قال العلامة ابن عابدينؒ قال فى المحيط و ينبغى لها ان تفتدى بمالها او تهرب منه و ان لم تقدر قتله. (الدر المختار على الرد المحتار ج۲، ص ۵۹۰، باب الرجعة، و فى مطلب الاقدام على النكاح اقرار بمعنى العدة) و مثله فى الفتاوى التاتارخانية ج۳، ص۶۰۹، كتاب الطلاق، وسائل المحلل و غيرها.

## د طلاق د ثبوت لپاره يو گواه کافي نه دی

**سوال:** که چېرته په خاوند باندې خپله او يا پردۍ ښځه دا دعویٰ وکړي چه تا ښځې ته طلاق ورکړی دی او يو سړی په دې باندې گواهي هم وکړي په د اسې حال کښې چه خاوند ئې ترې

## په اشارې سره د طلاق د واقع کیدو حکم

**سوال:** که چېرته څوك خپلې ښځې ته په لاس سره اشاره وکړي او طلاق ورکړي نو طلاق واقع کیږي او که نه؟ په د اسې حال کښې چه په ژبې سره هیڅ هم و نه وایي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په اشارې سره په هغه وخت کښې طلاق واقع کیږي چه کله انسان په خبرو باندې طاقت و نه لري۔ او که نه وي نو په خبرو باندې د طاقت باوجود یو ائحې په اشارې سره طلاق نه واقع کیږي۔

لما فی الهندیة: و یقع طلاق الاخرس با لاشارة. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۳۵۴، کتاب الطلاق، الباب الثانی، فصل فیمن یقع طلاقه و فیمن لا یقع طلاقه)

قال العلامة الحصکفیؒ: و یقع طلاق الاخرس با لاشارة یرید به الذی ولد و هو اخرس او طرأ علیه ذٰلك و دام حتی صارت اشارته مفهومة و الا لم تعتبر. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۳، ص۲۳۹، کتاب الطلاق، مطلب فی لحشیشه و الافیون و البنج) و مثله فی الخانیة علی هامش الهندیة ج۱، ص۴۷۲، کتاب الطلاق، فصل فی الطلاق با لکتابة.

## د هازل د طلاق حکم

**سوال:** که چېرته څوك خپل زوی ته په توکې باندې ووایي چه ستا مور طلاقه ده په د اسې حال کښې چه اراده ئې بالکل د طلاق نه وي نو آیا په دې سره طلاق واقع کیږي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د صریح طلاق په الفاظو کښې د نیت او ارادې شتون ضروري نه دی او د ارادې د نشتوالي په صورت کښې هم طلاق واقع کیږي اګر که په توکه کښې هم وي۔ نو له دې وجهې په صورت مسئوله کښې یو طلاق واقع کیږي ځکه چه په دې کښې د تعداد ذکر نشته۔ او که چېرته څوك په دې حالت کښې درې طلاقه ورکړي نو منکوحه مغلظه مطلقه ګرځي۔

لما قال العلامة الحصکفیؒ: و یقع طلاق کل زوج عاقل...... و لو هازلا. (الدر المختار علی هامش ردّ المحتار ج۲، ص۴۵۹، کتاب الطلاق، مطلب فی المسائل التی یقع مع الاکراه)

قال ابن نجیمؒ: و لم یشترط ان یکون جاراً فیقع طلاق الهازل به و اللاعب للحدیث المعروف ثلاث جدهن جد و هزلهن جدٌ....... الخ. (البحر الرائق ج۳، ص۲۴۴، کتاب الطلاق، تحت قوله و یقع طلاق کل زوج عاقل بالغ) و مثله فی فتح القدیر ج۳، ص۳۴۴، کتاب الطلاق، فصل فی ایقاع الطلاق.

## په طلاق باندې د دروغو قسم کول

**سوال:** که چېرته یو سړی په طلاق باندې په دروغو سره د اسې قسم وخوري چه زه که چېرته د فلاني کار په باره کښې دروغ ووایم او رښتیا و نه وایم نو زما ښځه به په ما باندې طلاقه وي۔ بیا وروسته معلومه شوه چه دروغ ئې ویلي وو او هغه کار د ده له قسم څخه مخکښې متحقق شوی وو نو اوس به په نوموړي سړي باندې خپله ښځه طلاقه وي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په نوموړي سړي باندې خپله ښځه طلاقه شوې ده۔ البته که چېرته دا



الفاظ ده یو ځل ویلي وو نو یو طلاق واقع کیږي او که چېرته ئې درې ځله تکرار کړي وي نو بیا درې طلاقونه واقع کیږي۔

لما فی الهندیة: و اما الحلف با لطلاق و العتاق و ما اشبه ذٰلك فما یکون علی امر فی المستقبل فهو کا لیمین المعقودة و ما یکون علی امر فی الماضی فلا یتحقق اللغو و الغموس و لٰکن اذا کان یعلم خلاف ذٰلك او لا یعلم فا لطلاق واقع. (الفتاوی الهندیة ج۲، ص۵۲، کتاب الایمان، فی الباب الاول)

قال العلامة التمرتاشیؒ: ان حلف علی کاذب عمداً کو اللّٰه ما فعلت کذا عالماً بفعله....... و یأثم بها فتلزمه التوبة و ثانیها لغو. و قال العلامة الحصکفیؒ تحت هٰذا القول لا مؤاخذة فیها الا فی ثلاث طلاق و عتاق و نذر اشباه. (تنویر الابصار علی هامش ردّ المحتار ج۳، ص۵۱، کتاب الایمان، مطلب فی حکم الحلف بغیره تعالٰی) و مثله فی الفتاوی البزازیة علی هامش الهندیة ج۴، ص۲۶۵، کتاب الایمان، فی الفصل الاوّل.

## د طلاق وقوع ثبوت ته محتاج نه دی

**سوال:** په یوه سړي باندې خوابنې دعوه وکړه چه تا خپلې ښځې ته طلاق ورکړی دی او فارغه کړې دې ده لیکن خاوند ئې انکار ترې کوي نو آیا د خوابنې په دې وینا سره په نکاح کښې فرق راځي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته ئې خاوند د طلاق اقرار کاوه نو د بل چا د بیان د منلو نه پرته هم طلاق واقع کیږي او که چېرته خاوند له طلاق څخه منکر وي نو بیا یوائحې د خوابنې بیان کافي نه دی۔ په د اسې حالت کښې به طلاق په هغه وخت کښې ثابتیږي چه باقاعده دوه ګواهان وړاندې کړي۔ بیا هم که چېرته د ښځې دا یقین وي چه خاوند ئې هغې ته طلاق ثلاثه (درې طلاقونه) ورکړي دي او فارغه کړې ئې ده لیکن له هغې سره د دې خبرې څه ثبوت نه وي او خاوند ئې هم انکاري وي نو ښځه چه په کومې ذریعې سره وي ځان خلاصولی شي۔

کما فی الهندیة: سئل شیخ الاسلام ابو القاسم رحمه اللّٰه تعالٰی عن امرأة سمعت من زوجها انه طلقها ثلاثاً و لا تقدر ان تمنع نفسها منه هل یسعها ان تقتله قال لها ان تقتله. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۴۷۵، کتاب الطلاق، الباب السادس فی الرجعة و فیما تحل به المطلقة و ما یتصل به فی فصل فیما تحل به المطلقة)

قال العلامة الحصکفی رحمه اللّٰه: سمعت من زوجها انه طلقها و لا تقدر علی منعة من نفسها الا بقتله لها قتله. و قال العلامة ابن عابدینؒ قال فی المحیط و ینبغی لها ان تفتدی بمالها او تهرب منه و ان لم تقدر قتله. (الدر المختار علی الرد المحتار ج۲، ص۵۹۰، باب الرجعة، و فی مطلب الاقدام علی النکاح اقرار بمعنی العدة) و مثله فی الفتاوی التاتارخانیة ج۳، ص۶۰۹، کتاب الطلاق، وسائل المحلل و غیرها.

## د طلاق د ثبوت لپاره یو ګواه کافي نه دی

**سوال:** که چېرته په خاوند باندې خپله او یا پردۍ ښځه دا دعوٰی وکړي چه تا ښځې ته طلاق ورکړی دی او یو سړی په دې باندې ګواهي هم وکړي په د اسې حال کښې چه خاوند ئې ترې

منکر وي نو آیا په نکاح کښې ئې کوم فرق راځي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په دې حالت کښې که چېرته د طلاق له مدعي سره دوه ګواهان موجود وي او هغوی ګواهي وکړي نو طلاق ثابتیږي او یواځې یو ګواه د طلاق د ثبوت لپاره کافي نه دی۔

قال العلامة الحصكفيؒ: و نصابها لغيرها فی الحقوق سواء كان مالا او غيره كنكاح و طلاق رجلان او رجل و امرأتان. (الدر المختار علی هامش رد المحتاز ج٤، ص٤١٣، كتاب الشهادات)

و فی الهندية: و شرط فيها شهادة رجلين او رجل و امرأتين سواء كان الحق مالا او غير مال كا لنكاح و الطلاق. (الفتاوى الهندية ج٣، ص٤٥١، كتاب الشهادات)

و فی الهندية: و شرط فيها شهادة رجلين او رجل و امرأتين سواء كان الحق مالا او غير مال كا لنكاح و الطلاق. (الفتاوى الهندية ج٣، ص٤٥١، كتاب الشهادات، فی الباب الاول) و مثله فی فتح القدير ج٣، ص١٥٥، كتاب النكاح.

## د خط په ذریعه د لیږل شوي طلاق حکم

**سوال:** که چېرته یو سړی بغیر له کوم ګواه ښځه ښځې ته د ډاك په ذریعه طلاق ولیږي نو آیا په دې سره طلاق واقع کیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د طلاق د واقع کیدو لپاره د ګواهانو شتون شرط نه دی۔ لکه څرنګه چه خاوند په ژبني توګه طلاق ورکولی شي همدارنګه په تحریري توګه باندې هم د طلاق د ورکولو لپاره کوم مانع نشته۔ له دې وجهې له ګواهانو پرته د ډاك په ذریعه په لیږل شوي طلاق باندې ښځه طلاقیږي۔

لما فی الهندية: رجل استكتب من رجل آخر الی امرأته كتابا بطلاقها و قرأه علی الزوج فاخذه و طواه و ختم و كتب فی عنوانه و بعث به الی امرأته فاتاها الكتاب و اقر الزوج انه كتابه فان الطلاق يقع عليها. (الفتاوى الهندية ج١، ص٣٧٩، كتاب الطلاق، الفصل السادس فی الطلاق با لكتابة)

قال العلامة ابن همامؒ: و لو كتب الصحيح الی امرأته بطلاقها ثم انكر الكتاب و قامت عليه البينة انه كتبه بيده فرق بينهما فی القضاء و اما فيما بينه و بين الله تعالی ان كان لم ينو به الطلاق فهی امرأته. (فتح القدير شرح الهداية ج٣، ص٤٠٤، كتاب الطلاق، فصل فی الطلاق قبل الدخول) و مثله فی رد المحتار ج٢، ص٣٧٩، كتاب الطلاق، و فی مطلب الطلاق.

## په طلاق نامه باندې د ناپوهي په حالت کښې د دستخط کولو حکم

**سوال:** که چېرته څوك د لاعلمي په حالت کښې په طلاق نامه باندې دستخط وکړي نو آیا طلاق واقع کیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په تحریري طلاق کښې نیت او اراده ضروري دی نو له دې وجهې په طلاق نامه باندې د ناپوهي په صورت کښې په دستخط کولو سره طلاق نه واقع کیږي۔



لما فی الهندية: كل كتاب لم يكتبه بخطه و لم يمله بنفسه لا يقع به الطلاق اذا لم يقر انه كتابه. (الفتاوى الهندية ج١، ص٣٧٩، كتاب الطلاق، الفصل السادس فی الطلاق با لكتابة)

قال العلامة ابن عابدينؒ: كل كتاب لم يكتبه بخطه و لم يعمله بنفسه لا يقع الطلاق ما لم يقر انه كتابه. (رد المحتار ج٢، ص٤٦٥، كتاب الطلاق، مطلب فی الطلاق با لكتابة) و مثله فی التاتارخانية ج٤، ص٤٨٠، كتاب الطلاق، ايقاع الطلاق با لكتاب.

## د سرسام په مرض کښې د ورکړ شوي طلاق حکم

**سوال:** جناب مفتي صاحب! سرسام یو داسې مرض دی چه څوك پرې اخته وي نو په هغه باندې کله کله داسې حالت راځي چه د لیونو غوندې حرکات ترسره کوي که چېرته په دې مرض کښې اخته سړی خپلې ښځې ته طلاق ورکړي نو طلاق واقع کیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د سرسام د مریض د افعالو او اعمالو حکم د مجنون او معتوه غوندې دی او طلاق ئې د علماوو په اتفاق سره نه واقع کیږي۔ که چېرته څوك په داسې حالت کښې ښځې ته طلاق ورکړي نو نه طلاقه کیږي۔

قال العلامة الكاسانيؒ: فمنها ان يكون عاقلاً حقيقة او تقديراً فلا يقع طلاق المجنون و الصبی الذی لا يعقل لان العقل شرط اهلية التصرف لان به يعرف كون التصرف مصلحة. (بدائع الصنائع ج٣، ص٩٩، فصل شرائط الركن)

قال العلامة ابن الهمامؒ: قوله لا يقع طلاق الصبی و ان كان يعقل و المجنون و النائم و المعتوه كا لمجنون..... لكن معلوم من كليات الشريعة التصرفات لا تنفذ الا ممن له اهلية التصرف و ادرناها با لعقل و البلوغ. (فتح القدير ج٣، س٣٤٣، فصل و يقع طلاق كل زوج. الخ) و مثله فی رد المحتار ج٢، ص٤٦٢، كتاب الطلاق، مطلب تعريف السكرات.

## د خوب په حالت کښې ورکړ شوی طلاق لغو دی

**سوال:** که چېرته څوك د خوب په حالت کښې د خپلې ښځې نوم واخلي چه هندې ته طلاق طلاق طلاق دی نو آیا په دې سره طلاق واقع کیږي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په خوب کښې د انسان حالت داسې وي چه په څه شي باندې نه پوهیږي بلکه هغه ته د خپلو خبرو علم هم نه وي۔ نو له دې وجهې داسړی شرعا معذور دی او ورکړ شوی طلاق ئې لغو دی کوم چه ښځه ئې پرې نه طلاقه کیږي۔

قال العلامة ابو بكر الكاسانيؒ: و منها ان لا يكون معتوهاً و لا مدهوشاً و لما مبرسماً و لا مغمی عليه و لا نائماً فلا يقع طلاق هؤلآء ما قلنا فی المجنون. (بدائع الصناء ج٣، ص١٠٠، فصل شرائط الركن)

قال العلامة الحصكفيؒ: لا يقع طلاق المولی علی امرأة عبده...... و الصبیّ و المعتوه من العتة و هو اختلال فی العقل و المبرسم من البرسام و المغمی عليه. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج٣، ص٤٦٢، كتاب الطلاق) و مثله فی فتح القدير ج٣، ص٣٤٣، فصل و يقع طلاق كل زوج الخ.

# بـــــاب طلاق الصریح و الکنـــــایة

## (د صریح او کنایي طلاق احکام او مسئلې)

### "ته طلاقه ئې" کښې د درې طلاقونو د نیت کولو حکم

**سوال:** که چېرته څوك خپلې ښځې ته دا ووایي چه "ته طلاقه ئې" او نیت ئې پکښې د دریو طلاقونو وي نو آیا درې طلاقه واقع کیږي او که یو؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د طلاق په صریحو الفاظو کښې نیت لره څه اعتبار نشته. نو له دې وجهې چه "ته طلاقه ئې" یو اځې یو طلاق واقع کیږي. د دریو طلاقونو نیت پکښې لغو دی.

لما فی الهندیة: کان طالق و ملطقة و طلقتك تقع واحدة رجعیة و ان نوی الاکثر او الاَ ابانة. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص ۳۵٤، کتاب الطلاق، الباب الثانی فی ایقاع الطلاق)

قال ابو الحسن علی المرغینانیؒ: الصریح هو کانت طالق و مطلقة و طلقتك فهٰذا یقع به الطلاق الرجعی و لا یقع به الا واحدة و ان نوی الاکثر ملخصاً. (الهدایة ج۲، ص ۳٦۰، کتاب الطلاق، باب ایقاع الطلاق) و مثله فی الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص ٤۲۹، کتاب الطلاق، باب الصریح.

### د فکر او اندیښنې په حالت کښې د طلاق د لفظ د ادا کولو حکم

**سوال:** یو سړی په سوچ او فکر کښې ډوب وو او کوشش ئې داوو چه په ژبې سره د طلاق لفظ ادا نه کړي لیکن ناڅاپه ئې له ژبې څخه راووت چه "څه ما تا ته طلاق درکړی دی" نو آیا په دې سره طلاق واقع کیږي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته سوچ او فکر دومره پرې غالب وي چه مجبور شي او له دې خبرې نه مراد خپلې ښځې ته طلاق ورکول وي نو د صریح طلاق د واقع کیدو لپاره د هغه نیت او اراده ضروري نه دی. بیا هم که چېرته دا تلفظ د کومې واقعې حکایت وي نو د حکایت په صورت کښې طلاق نه واقع کیږي.

لما فی الهندیة: رجل قال لامرأته انت طالق فقال له رجل ما قلت فقال طلقتها او قال قلت هی طالق فهی واحدة. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص ۳۵۵، کتاب الطلاق، الباب الثانی فی ایقاع الطلاق)

و قال العلامة ابن الهمامؒ: ثم قولنا لا یتوقف علی النیّة معناه اذا لم ینوی شیئاً اصلا یقع لا انه یقع و ان نوی شیئا آخر لما ذکر انه اذا نوی الطلاق عن وثاق صدق دیانة لا قضاءً و کذا عن العمل. (فتح القدیر شرح الهدایة ج۳، ص ۳۵۱، کتاب الطلاق، باب ایقاع الطلاق)

و قال العلامة ابن عابدینؒ: ان الصّریح لا یحتاج الی النیة و لکن لا بد فی وقوعه قضاءً و دیانة من قسد اضافة لفظ الطلاق الیها عالماً بمعناه و لم یصرفه الی ما یحتمله الخ. (رد المحتار ج۲، ص ٤۳۰، کتاب الطلاق، باب الصریح) و مثله فی البحر الرائق ج۳، ص ۲۵۹، کتاب الطلاق، باب الطلاق ای المغلظة.



### د ښځې پــــه غیاب کښې د خطاب په صیغې سره د طلاق ورکولو حکم

**سوال:** که چېرته څوك خپلې ښځې ته د هغې په غیاب کښې دا ووایي چه "څه ته طلاقه ئې" نو آیا په دې سره طلاق واقع کیږي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د یوه سړي خپلې ښځې ته د "ته طلاقه ئې" په ویلو سره د هغې موجودوالی او نه موجودوالی ضروري نه دی. ډیر څله خلك خپله ښځه حاضره فرض کوي او خطاب ورته کوي نو له دې وجهې د خاوند د دې جملې په ویلو سره چه "څه ته طلاقه ئې" طلاق واقع کیږي.

لما فی الهندیة: ان ارسل الطلاق بان کتب اما بعد فانت طالق فکلما کتب هٰذا یقع الطلاق. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۳۷۸، کتاب الطلاق، الفصل السادس فی الطلاق با لکتابة)

قال العلامة ابن الهمامؒ: فان کان علی رسم کتب الرسالة بان کتب اما بعد یا فلانة فانت طالق او انت حر او اذا وصل الیك کتابی فانت طالق فانهٗ یقع الطلاق الخ. (فتح القدیر ج۳، ص۴۰۳، کتاب الطلاق، باب ایقاع الطلاق، بحث الکنایات) و مثله فی قاضی خان علی هامش الهندیة ج۱، ص ٤۷۱، کتاب الطلاق، فصل فی الطلاق با لکتابة.

### د یو دوه درې په ویلو سره طلاق نه واقع کیږي

**سوال:** یوه سړي خپلې ښځې ته وویل چه یو، دوه، درې ته طلاقه ئې په داسې حالت کښې آیا طلاق واقع کیږي او که نه؟ او آیا په دې سره منکوحه مغلظه مطلقه ګرځي او که طلاق رجعي واقع کیږي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته د طلاق له دې اعدادو سره نسبت وي یعنې ښځې ته دا ووایي چه تا ته یو، دوه، درې طلاقه دي نو ښکاره خبره ده چه د اضافت په موجودوالي کښې پرې درې طلاقه واقع کیږي لیکن کله چه اضافت نه وي نو یو طلاق واقع کیږي یعنې یو اځې دا ووایي چه "یو، دوه، درې طلاقه ئې" یا "یو، دوه، درې ته طلاقه ئې" نو په داسې حالت کښې "ته طلاقه ئې" مستقله جمله ده یعنې مبتداء او خبر جوړیږي نو له دې وجهې عدد لغو کیږي او یو طلاق واقع کیږي. بیا هم که چېرته دا ووایي چه ته "یو، دوه، درې طلاقه ئې" یا "ته طلاقه ئې یو، دوه، درې" نو بیا په دې سره خامخا درې طلاقه واقع کیږي.

و الدلیل عل ما قلنا ما قاله العلامة الحصکفیؒ: و الطلاق یقع بعدد قرن به لا نفسه عند ذکر العدد و عند عدمه الوقوع با لصیغة الخ. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص٤۵٦، کتاب الطلاق، مطلب الطلاق یقع بعدد قرن به)

قال العلامة طاهر بن عبد الرشید الانصاریؒ: رجل قال لامرأته ترا یکی و ترا سه او قال تُرا یکی سه. قال ابو القاسم الصفارؒ لا یقع شیء. و قال صدر الشهید یقع اذا نوی و به یفتی. (خلاصة الفتاوىٰ ج۲، ص۹۸، کتاب الطلاق، الفصل الثانی فی الکنایات، جنس آخر) و مثله فی البزازیة علی هامش الهندیة ج٤، ص۱۷۹، کتاب الطلاق، مسائل الایقاع بلا قصد و اضافة.

## د خپلې ښځې په ځای د بلې ښځې نوم اخیستل او د طلاق ورکولو حکم

**سوال:** که چېرته څوك د کوم مصلحت په بناء سره د خپلې ښځې په ځای د بلې ښځې نوم واخلي او طلاق ورکړي نو آیا په دې سره طلاق واقع کیږي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته اشاره ئې د ښځې خوا ته نه وي نو د تعارف او تعین لپاره په نامه باندې اعتماد کیږي او دا په هغه وخت کښې کیږي چه نوم صحیح واخلي او هر کله چه د خپلې ښځې په ځای د بلې ښځې نوم واخلي نو ښځه نه طلاقیږي۔ بیا هم که چېرته ئې نیت د خپلې ښځې د طلاق وي نو بیا طلاق واقع کیږي۔

و فی الهندیة: و لو قال امرأته الحبشیه طالق و لا نیة له فی طلاق امرأته و امرأته لیست بحبشیه لا یقع علیها و علی هٰذا اذا سمی بغیر اسمها و لا نیة له فی طلاق امرأته. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۳۵۸، کتاب الطلاق، الباب الثانی فی ایقاع الطلاق)

قال العلامة ابن الهمامؒ: و لو قال امرأتی فلانة بنت فلان طالق و سماها بغیر اسمها لا تطلق امرأته الا با لنیّة. (فتح القدیر شرح الهدایة ج۳، ص۳۵۳، کتاب الطلاق، باب ایقاع الطلاق) و مثله فی الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص۴۶۰، کتاب الطلاق، مطلب فیما لو قال امرأته طالق الخ.

## د طلاق رجعي د عدت له تیریدلو نه وروسته طلاق ورکول مؤثر نه دي

**سوال:** یوه سړي خپلې ښځې ته په ژبې سره یو طلاق ورکړ او د عدت له تیریدو نه وروسته ئې بیا دوه طلاقونه تحریري ورکړه نو آیا په دې سره طلاق مغلظ ګرځي او که یواځې د نکاح تجدید کافي دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته خاوند د اول ژبني طلاق د عدت له تیریدو نه وروسته دوه طلاقونه په تحریري توګه ورکړي وي نو تجدید نکاح کافي ده ځکه چه د اول ژبني طلاق د عدت له تیریدو نه وروسته ښځه له خاوند څخه جلا شوه او محل د طلاق پاتې نه شو۔ نو ځکه د اول طلاق له عدت نه وروسته ورکړ شوي طلاقونه لغو ګڼل کیږي۔

قال العلامة ابن عابدینؒ: و الرجعی لا یزیل الملك الا بعد مضی العدة. (رد المحتار علی الدر المختار ج۲، ص۵۷۶، کتاب الطلاق)

و قال العلامة الکاسانیؒ: فلا یصح الطلاق الا فی الملك او فی علقة من علائق الملك و هی عدة الطلاق. (بدائع الصنائع ج۳، ص۱۲۶، کتاب الطلاق (فصل) و اما الذی یرجع الی المرأة الخ) و مثله فی فتح القدیر علی الهدایة ج۳، ص۳۲۶، کتاب الطلاق فی تفصیل اول کتاب الطلاقلا باب قبله.

## د طلاق د صریح لفظ نه وروسته د ورکړ شوي طلاق بائن حکم

**سوال:** یوه سړي خپلې ښځې ته دوه ځله وویل چه ته طلاقه ئې، ته طلاقه ئې او بیا ئې ورته وویل چه "زما له کور څخه لاړه شه" نو په دې سره کوم طلاق واقع کیږي؟



**الجواب باسم ملهم الصواب:** "ته طلاقه ئې" دوه وارې ځله ویل طلاق رجعي دی لیکن له هغه وروسته دا ویل چه "زما له کور څخه لاړه شه" طلاق بائن دی۔ په طلاق رجعي کښې خو ده حق درلود چه رجوع وکړي لیکن له طلاق رجعي نه وروسته چه کله طلاق بائن "زما له کور څخه لاړه شه" واقع شو نو د ده دا حق له منځه ځي او منکوحه مطلقه بائنه ګرځي ځکه چه د رجعي طلاق نه وروسته بائن طلاق ورکول کیږي۔

قال الله تعالٰی: اَلطَّلَاقُ مَرَّتٰنِ فَاِمْسَاكٌ بِمَعْرُوْفٍ اَوْ تَسْرِیْحٌ بِاِحْسَانٍ. الآیة (البقرة)

قال العلامة الحصکفی: و البائن یلحق الصریح. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص۵۰۹م کتاب الطلاق، باب الکنایات)

و فی الهندیة: و الطلاق البائن یلحق الطلاق الصریح بان قال انت طالق ثم قال لها انت بائن طلقة اخرٰی و لا یلحق البائن البائن. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۳۷۷، کتاب الطلاق، الفصل الخامس فی الکنایات) و مثله فی تبیین الحقائق ج۲، ص۲۱۹، باب الکنایات قوله و الصریح یلحق الصریح و البائن)

## د دوه ځلې طلاق ورکـــــــــولو نه وروسته رجوع کیدلی شي

**سوال:** ښځې ته له دوو طلاقونو نه وروسته خاوند رجوع کولی شي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** صریح طلاق که چېرته درې ځله استعمال نه شي نو په یو یا دوه ځلې د طلاق د صریح لفظ د استعمالولو په صورت کښې خاوند ښځې ته رجوع کولی شي په دې حالت کښې یواځې رجوع هم کافي دی۔

لما فی الهندیة: و لو قال انت طالق الطلاق و قال عنیت بقولی طالق واحدة و بقولی الطلاق اخرٰی یصدق فتقع رجیعتان ان کانت مدخولا بها. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۳۵۵، کتاب الطلاق، باب الثانی فی ایقاع الطلاق، الفصل الاوّل فی الطلاق الصریح)

قال العلامة الزیلعیؒ: کقوله انت طالق فیقع رجیعتان اذا کانت مدخولاً بها. (تبیین الحقائق شرح کنز الدقائق ج۲، ص۱۹۹، کتاب الطلاق) و مثله فی الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص۴۶۸، کتاب الطلاق، باب الصریح، مطلب فی قول البحر ان الصریح یحتاج الخ.

## د دوو طلاقونو نه وروسته رجـــــــوع کول او بیا د طلاق ورکولو حکم

**سوال:** یوه سړي خپلې ښځې ته دوه طلاقونه ورکړل او بیا ئې رجوع وکړه لیکن د څه وخت له تیریدو وروسته د خاوند او ښځې تر منځ بیا اختلافات پیدا شو نو خاوند ئې شپږ طلاقونه ورکړه نو آیا خاوند ئې اوس رجوع کولی شي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** له دوو طلاقونو نه وروسته رجوع مفید دی او په دې سره د ښځې او خاوند په حیثیت کښې هیڅ حرج نه وي لیکن له دوو طلاقونو نه وروسته د خاوند له خوا څخه یواځې د یوه طلاق حق باقي پاتې کیږي چه کله هم وي په یواځې توګه ئې استعمالولی شي۔ په

نوموړي صورت کښې د خاوند له رجوع نه وروسته د شپږو طلاقونو په ورکولو کښې د یوه طلاق د محل د موجودګي له وجهې همدا یو طلاق واقع کیږي او ښځه مغلظه مطلقه ګرځي او د خپل خاوند لپاره له حلالې پرته جائزه نه ده او پاتې پنځه طلاقونه د محل د نشت والي له وجهې لغو ګڼل کیږي۔

قال العلامة الحصکفیؒ: و لا ینکح مطلقة من نکاح صحیح نافذ بها ای با لثٰلث حتّٰی یطأها غیره. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص۵۸۳، کتاب الطلاق، باب الرجعة، مطلب فی العقد علی المبانة)

و فی الهندیة: و اذا کان الطلاق بائنا دون الثلاث فله ان یتزوجها فی العدة و بعد انقضائها و ان کان الطلاق ثلاث فی الحرة و ثنتین فی الامة لم تحل لهٗ حتّٰی تنکح زوجها غیره نکاحاً صحیحاً. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۴۷۳، الباب السادس فی الراجعة و فیما تحل به المطلقة الخ، فصل فیما تحل به المطلقة و ما یتصل به)

## د طـــــلاق بائن اثرات

**سوال:** یوه سړي خپلې ښځې ته اوه اته میاشتې مخکښې طلاق بائن ورکړی دی او اوس غواړي چه بیرته رجوع وکړي او د خاوند او ښځې غوندې ژوند سره غوره کړي نو آیا رجوع کولی شي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په طلاق بائن کښې د نکاح تجدید ضروري دی که په عدت کښې وي او که نه۔ په طلاق بائن کښې یواځې رجوع کافي نه ده۔ په صورت مسئوله کښې دا ښځه او خاوند به دباره نکاح کوي او بیا به خپل ازدواجي ژوند سره تیروي۔

لما فی الهندیة: و اذا کان الطلاق بائنا دون الثلاث فلهٗ ان یتزوجها فی العدة و بعد انقضائها. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۴۷۲، کتاب الطلاق، باب السادس فی الرجعة و فیما تحل به المطلقة و ما یتصل به فصل فیما تحل به المطلقة..... الخ)

قال العلامة المرغینانیؒ: و اذا کان بائنا دون الثلاث فله ان یتزوجها فی العدة و بعد انقضائها لان حل المحلیة باق. (الهدایة ج۲، ص۳۷۸، کتاب الطلاق، باب الرجعة) و مثله فی الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص۵۸۲، کتاب الطلاق، باب الرجعة، مطلب فیما قیل...... الخ.

## د "هو" په لفظ سره طلاق نه واقع کیږي

**سوال:** د خاوند او ښځې تر منځ په یوې خبرې باندې جنجال پیدا شو۔ ښځې خاوند ته وویل چه بې غیرته ما ته طلاق راکړه۔ خاوند ئې له څمکې څخه ډېره پورته کړه او د ښځې خوا ته ئې وغورځوله او وئې ویل چه "هو" نو آیا په دې سره طلاق واقع کیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د خاوند دا لفظ چه "هو" او یا د ښځې خوا ته ډېرې اچول نه صریح طلاق دی او نه کنایي طلاق دی۔ په دې لفظ سره په نکاح کښې کوم فرق نه راځي۔

لما فی الهندیة: و لو قالت انا طالق فقال نعم طلقت و لو قاله فی جواب طلقنی لا تطلق و ان نوی. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۳۵۶، مطلب کرر الطلاق با لواو او بغیرها و ونی با لثانی الاوّل)



و قال العلامة ابن البزاز الکردریؒ: و لو قالت طلقنی فقال نعم لا و ان نوی. (الفتاوی البزازیة علی هامش الهندیة ج۴، ص۱۷۶، کتاب الطلاق، تسعة فصول، الاوّل فی صریح الطلاق، نوع آخر فی الفاظه)

## د طلاق د حکایت د بیانولو حکم

**سوال:** که چېرته څوك خپلې ښځې ته یو طلاق ورکړي او بیا ئې د طلاق حکایت په کوم مجلس کښې د اسې بیان کړ چه ما خپلې ښځې ته طلاق ورکړی دی نو آیا په دې سره دوهم طلاق واقع کیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د اول طلاق په حکایت سره دوهم طلاق نه واقع کیږي بلکه هم هغه یو طلاق به واقع وي۔

لما فی الهندیة: رجل قال لامرأته انت طالق فقال له رجل ما قلت فقال طلقتها او قال قلت هی طالق فهی واحدة فی القضاء کذا فی البدائع. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۳۵۵، مطلب اذا کرر الطلاق علی المرأة المدخول بها و نوی الاخبار)

قال العلامة الکاسانی رحمه اللّٰه: و لو قال لامرأته انت طالق فقال له رجل ما قلت فقال طلقتها الخ لان کلامه انصرف الی الاخبار الخ. (بدائع الصنائع ج۳، ص۱۰۲، فصل و منها النیة فی احد نوعی الطلاق)

## د طلاق قسم خـــــوړل

**سوال:** یوه سړي قسم وکړ او وئې ویل چه که چېرته ما سګرېټ وڅکاوه نو ښځه به مې را باندې طلاقه وي او له دې قسم څخه وروسته ئې سګرېټ وڅکاوه نو آیا په دې سره طلاق واقع کیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د ذکر شوي قسم د کولو په صورت کښې په حانث کیدو باندې یو طلاق واقع کیږي نو د سګرېټ له څکولو نه وروسته رجوع بالقول او یا بالفعل کافي ده۔

قال العلامة المرغینانی رحمه اللّٰه: قوله انت طالق و مطلق و طلقتك فهٰذا یقع به الطلاق الرجعی. (الهدایة ج۲، ص۳۳۸، کتاب الطلاق، باب ایقاع الطلاق)

و فی الهندیة: هو کانت طالق و مطلقة و طلقتك و تقع واحدة رجعیة. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۳۵۴، الباب الثانی فی ایقاع الطلاق، و فیه سبعة فصول) و مثله فی الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص۴۳۹، کتاب الطلاق، باب الصریح.

## د "ما باندې دې ښځه ناجائزه طلاقه وي" په ویلو سره د طلاق حکم

**سوال:** که چېرته څوك دا ووایي چه که چېرته ما دا کار وکړ نو په ما باندې دې ښځه د اسې طلاقه وي چه ناجائزه وي نو آیا په دې سره کوم طلاق واقع کیږي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د حانث کیدو په صورت کښې طلاق رجعي واقع کیږي کوم چه پکښې د رجوع بالقول او یا بالفعل ګنجائش موجود دی۔

قال العلامة سراج الدینؒ: و لو قال انت طالق ما لا یجوز علیك من الطلاق طلقت واحدة. (الفتاوی السراجیة

ص ۴۳، کتاب الطلاق، باب علٰی الطلاق)

و فی الهندیة: و لو قال لامرأته انت طالق ما لا یجوز علیك من الطلاق او ما لا یقع لو علی انی با لخیار ثلاثة ایام تقع واحدة. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۳۷۲، الفصل الثالث فی تشبیه الطلاق و وصفه) و مثله فی فتح القدیر ج۳، ص ۳۹۰، کتاب الطلاق.

## په دوو ښځو کښې یوې ته د مبهم طلاق ورکولو حکم

**سوال:** یو سړي دوه ښځې لري او دواړو ته ئې وویل چه په تاسو کښې یوه طلاقه یی نو په دې سره به کومه ښځه طلاقه ګڼل کیږي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د طلاق وقوع یقیني ده او د تعین اختیار ئې خاوند ته حاصل دی چه کومه یوه وغواړي په دواړو کښې طلاقولی ئې شي۔

قال العلامة الحصکفیؒ: و لو قال امرأتی طالق و له امرأتان او ثلاث تطلق واحدة منهن و له خیار التعیین. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص۴۹۷، باب طلاق غیر المدخول بها، مطلب فیما لو قال امرأته طالق و له امرأتان او اکثر تطلق واحدة)

و فی الهندیة: و لو قال امرأته طالق و له امرأتان کلتاهما معروفتان کان له ان یصرف الطلاق الی ایتهما شاء. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۳۵۸، کتاب الطلاق، الباب الثانی فی ایقاع الطلاق، فصل الاول فی الطلاق الصریح) و مثله فی خلاصة الفتاوی ج۲، ص۷۹، کتاب الطلاق، فصل اوّل جنس آخر.

## د معاهـــــدې په خلاف ورزي باندې د مشروط طلاق حکم

**سوال:** که چېرته څو کسانو په یوې معاهدې باندې د پابندۍ لپاره یو تحریر ولیکه چه په هغه کښې دا خبره هم وه چه په مونږ تاسو کښې چه کوم یو هم د دې معاهده خلاف ورزي وکړي نو ښځه دې پرې په دریو طلاقونو طلاقه وي۔ وروسته له دې نه د ځینو خلکو په مشورې سره له معاهدې څخه د طلاق لفظ لرې کړ او د دستخط په وخت کښې د طلاق شرط په معاهدې کښې شامل نه وو نو آیا د معاهدې د خلاف ورزي په صورت کښې به طلاق واقع کیږي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په یوې معاهدې باندې د پابندي لپاره د کوم تحریر لیکل په حقیقت کښې د یوې مشورې حیثیت لري نو له دې وجهې په صورت مسئوله کښې طلاق په هغه وخت کښې نافذ العمل وي چه د دستخط په وخت کښې په کاغذ کښې دا شرط ثبت وي او په دې صورت کښې کله چه په اصل معاهدې کښې د طلاق ذکر نشته نو د خلاف ورزي په صورت کښې به طلاق نه واقع کیږي۔

قال ابن عابدینؒ: و ان لم یقر انه کتابه و لم تقم بینه لکنه و صف الامر علی وجهه لا تطلق قضاء و لا دیانة و کذا کل کتاب لم یکتبه بخطه و لم یملّه بنفسه لا یقع الطلاق ما لم یقر انه کتابه. (رد المحتار ج۲، ص۴۶۵، کتاب الطلاق، مطلب باعتبار عدد الطلاق بالنساء فی الطلاق با لکتابة)



و فی الهندیة: و کذٰلك کل کتاب لم یکتبه بخطبة و لم یملہ بنفسه لا یقع به الطلاق. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۳۷۹، کتاب الطلاق، باب الثانی، الفصل السادس فی الطلاق با لکتابة)

## غیر مدخول بها ته د طلاق ورکولو حکم

**سوال:** که چېرته یو سړی خپلې ښځې ته له نکاح نه وروسته او له دخول څخه مخکښې طلاق ورکړي او له طلاق نه وروسته ئې بیا د نکاح کولو خواهش وي نو په داسې صورت کښې هغه ته څه کول په کار دي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د طلاق د واقع کیدو لپاره د نکاح مِلك ضروري دی نو له دې وجهې له دخول څخه مخکښې هم د طلاق د وقوع لپاره کومه مانع نشته لیکن که چېرته ئې درې طلاقونه متفرق ورکړي وي او یا ئې یواځې یو طلاق ورکړی وي نو په دغو دوو صورتونو کښې منکوحه جدا ګرځي او بیا د ښځې توب او خاوند توب د ژوند لپاره یواځې د نکاح تجدید کافي دی او که چېرته ئې په یو ځل درې طلاقونه ورکړي وي نو منکوحه مطلقه مغلظه ګرځي۔

قال العلامة الحصکفیؒ: قال لزوجته غیر المدخول بها انت طالق ثلاثاً الخ وقعن و الا فرق بانت با لاولی و لم تقع الثانیة بخلاف المؤطة. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص۴۹۲، کتاب الطلاق، باب طلاق غیر مدخول بها)

و فی الهندیة: اذا طلق الرجل امرأته ثلاثة قبل الدخول بها وقعن علیها فان فرق الطلاق بانت با لاولی و لم تقع الثانیة و الثالثة. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۳۷۳، کتاب الطلاق، الباب الثانی فی ایقاع الطلاق، الفصل الرابع فی الطلاق قبل الدخول) و مثله فی الهدایة علی صدر فتح القدیر ج۳، ص۳۹۱، کتاب الطلاق، فصل فی التشبیه الطلاق و وصفه.

## د دریو طلاقونو په یوه وخت کښې د واقع کیدو حقیقت

**سوال:** د زید له خپلې ښځې سره په کورني تعلقاتو د جنجال د پیدا کیدو له وجهې د دواړو ترمنځ څه خفګان راغی او یوه ورځ د دوی یو کوچنی هلك کور ته راغی او له خپلې مور څخه ئې په خبرو خبرو د کور د حالاتو پوښتنه وکړه نو هغه ته معلومه شوه چه پلار ئې په کور کښې څه خرڅه او داسې نور نه ورکوي نو په دې باندې ئې زوی ورته وویل چه زما څه روپۍ تا سره شته له هغو څخه ولې خرڅه نه کوې نو مور ئې ورته وویل چه زه خو د هغه دا روپۍ امانت ګڼم۔ په دې وخت کښې زید او مشر زوی ئې هم راغلل نو مشر زوی ئې وویل چه په دې جنجال او شخړې کښې په روپۍ کښې دولس آنې مې پلار ملامت دی او څلور آنې مې مور ملامته ده۔ زید د زوی په دې خبرې باندې خفه شو او وئې ویل چه که چېرته تاسو ټول د غسې وایی نو دا دې زما په تن باندې حرامه، حرامه، حرامه وي او هغې ته ئې وویل چه چاردیوالي پریږده نور چه څه غواړې درسره یو ئې سه او کومې پیسې چه ورسره دي له هغو څخه دې خپل مهر وصول کړي او نورې پاتې روپۍ مې هم ور بخښلي دي۔ له دې الفاظو څخه وروسته کله چه د زید غصه سړه شوه نو پښیمانه شو او وئې ویل چه دا مې څه وکړل۔ نو تاسو محترمین د قرآن

او حدیثو په رڼا کښې د دې شخړې په اړه فتوٰی صادره کړی؟

**یادونه:** د دې استفتاء په ځواب کښې یو عالم صاحب لاندینی ځواب راکړی دی۔

**الجواب:** بسم الله الرحمٰن الرحیم: ۔ په صورت مسئوله کښې د حرام، حرام، حرام د لفظ ویونکي به نیت مراد وي لکه څرنګه چه په هدایې کښې دي: قال و بقیة الکنایات اذا نوی بها الطلاق کانت واحدة بائنة. (ج۲، ص۴۸۹)

که چېرته د دغو الفاظو څخه طلاق مراد واخیستل شي نو ښځه په یوه طلاق بائن سره طلاقیږي او د عدت په منځ کښې رجوع ورته کولی شې۔

بله دا چه په صورت مسئوله کښې که چېرته خپلې ښځې ته په یوه مجلس کښې درې ځله د طلاق په لفظ او یا د حرام په لفظ سره طلاقه کړې نو دا طلاق به یو طلاق رجعي ګڼل کیږي او د اسې سړي ته په کار دي چه په فوري توګه خپلې ښځې ته رجوع وکړي او پخپل کور کښې ئې و اوسوي ځکه چه درې طلاقه په یو ځای ورکول خو هسې هم بدعت دی۔ امام مالک رحمه الله د اسې طلاق یو طلاق ګڼي۔ د مدخولې په اړه په حدیث شریف کښې راغلي: عن محمود بن لبیدؓ قال اخبرنی رسول اللهﷺ عن رجل طلق امرأته ثلٰث تطلیقات جمیعاً فقام غضبان ثم قال أیلعب بکتاب الله تعالٰی و انا بین اظهر کم.

د سائل صورت په بل حدیث کښې اول دلیل موجود دی: عن ابن عباس رضی الله تعالٰی عنهما قال طلق ابو رکانة ام رکانة فقال النبیﷺ ارجع امرأتك فقال انی طلقتها ثلاثاً قال قد علمت ارجعها. (رواه ابو داؤد)

په دې حدیث کښې دي چه ابو رکانهؓ حضرت رسول اللهﷺ ته وویل چه ما دې ته (ښځې ته) درې ځله په یو ځای طلاق ورکړی دی نو حضورﷺ ورته وفرمایل چه ما ته معلومه ده ته رجوع وکړه۔

حضرت امام محمد رحمه الله پخپل مسند کښې په زائدو الفاظو سره روایت کوي چه: طلق ابو رکانة امرأته فی مجلس واحد ثلاثاً فحزن علیها فقال له رسول اللهﷺ فانها واحدة. ابو رکانة.

چنانچه ابو رکانهؓ د حضورﷺ په حکم سره رجوع وکړه۔ د امسئله ډیره اوږده ده۔ په دې مسلک باندې حضرت علي او حضرت ابن عباس رضی الله عنهم هم قائم دي او په تابعینو او تبع تابعینو کښې حافظ قاسم، امام جعفر صادق، امام باقر، امام ابن تیمیه او امام ابن قیم رحمهم الله دي۔

سائل ته دې دا خبره واضحه وي چه د دین په معامله کښې تنګي نشته۔ د امام اعظم رحمه الله په مسلک کښې دا خبره شامله ده چه یو سړی له نقصان څخه د بچ کیدو لپاره د بل امام مسلک باندې فتوٰی حاصله کړي نو عمل پرې کولی شي لکه څرنګه چه په دې خبرې باندې په سبل السلام صفحه ۲۷۳ کښې علامه صنعاني رحمه الله اورد بحث کړی دی او د هغه د شرح خو اته رجوع کولی شی۔ د دې خلاصه دا ده چه مسئله صحیح ده او که چېرته تعصب شا



ته وغورځول شي نو په نوموړي سړي باندې کوم مانع موجود نه دی چه په دغو کښې په یوه باندې عمل وکړي۔ نو ځکه په دغو حالاتو کښې سوال کوونکي ته دا فتوٰی ورکول کیږي چه د احادیثو، صحابه کرامو او ائمهٔ عظامو د اقوالو مطابق خپلې ښځې ته د دوو ګواهانو په مخکښې رجوع وکړي او خپل کور ته ئې بوزي او له خپل ځان سره دې ساتي۔ برسیره پر دې دا خبره دې هم واضح وي چه د موجوده عائلي قوانینو مطابق په دې صورت کښې بالکل طلاق واقع شوی نه دی نو له دې وجهې په فوري توګه رجوع وکړی او سائل دې په زړه کښې هیڅ خفګان هم نه پیدا کوي۔

و السلام

تر دې ځایه پورې د نوموړي عالم صاحب ځواب وو لیکن دې ته په نظر کولو سره لاندې نکات مخ ته راځي کوم چه د توجه قابل دي۔

﴿۱﴾ په صورت مسئوله کښې کوم طلاق واقع کیږي؟ د طلاق ثلاثه د وقوع په باره کښې د ائمهٔ اربعهؒ مسلک څه شی دی؟ حدیث شریف ------ له دې حدیث شریف څخه د عدم وقوع طلاق ثلاثه ثبوت کیږي او که نه؟

﴿۲﴾ په نوموړي ځواب کښې د ابو داؤد شریف د ابو رکانهؓ حدیث لیکلی دی نو آیا دا حدیث د حجت او عمل قابل دی او که نه؟

﴿۳﴾ د صورت مسئوله په مذکوره ځواب کښې د امام ابو حنیفهؒ مسلک پریښودل او نفساني او شهواني خواهشاتو لپاره د بل امام په مسلک باندې عمل کیدلی شي او که نه؟

﴿٤﴾ په مذکوره ځواب کښې مجیب د موجوده ملکي عائلي قوانینو باندې د عمل کولو تلقین کړی دی نو څوک چه په ملکي عائلي قوانینو د عمل کولو تلقین کوي د هغه په باره کښې د مقدس شریعت څه حکم دی؟

﴿۵﴾ د امام نووي رحمه الله د تحقیق خلاف طلاق ثلاثه په یوه طلاق باندې د ګڼلو په صورت کښې د ائمهٔ اربعهؒ تضلیل لازمیږي او که نه؟

د پورته ذکر شوي سوالونو په وضاحت سره ځواب راکړی ډیره مهرباني به مو وي۔

**الجواب من دار الافتاء دار العلوم حقانیه:** دې امورو ته له توجه ورکولو څخه مخکښې د دې مسئلې په باره کښې دومره عرض دی چه د حرام لفظ طلاق کنایي دی او په کنایي طلاق سره طلاق بائن واقع کیږي لهذا د زید په ښځې باندې طلاق بائن واقع شوی دی اګر که هغه د طلاق نیت کړی هم نه وي۔ علامه شامي رحمه الله د طلاق کنایي په بحث کښې دا تصریح کړې ده چه د حرام لفظ عرفاً چونکه د طلاق لپاره استعمالیږي نو ځکه مفتٰی بهٖ قول دا دی چه په داسې ښځې باندې یو طلاق بائن واقع کیږي اګر که په دې کښې نیت هم نه وي کړی او د حرام دوهم او دریم لفظ لغو دی ځکه چه په طلاق بائن سره نکاح فوراً ماتیږي او کله چه په اول ځل حرام

ویلو سره نکاح ماتیږي نو بیا د حرام، حرام ویل لغو ګرځي. او په دې سره زائد طلاق نه واقع کیږي له دې وجهې دا ښځه په عدت کښې او یا له عدت نه وروسته په دواړو حالتونو کښې د نکاح د تجدید په ذریعې سره پخپلې نکاح کښې راوستلی شي او یوازې رجوع کافي نه ده تر څو پورې چه د ښځې په رضا سره دوباره نکاح و نه شي. دا په هغه وخت کښې چه کله زید د حرام له لفظ څخه د دریو طلاقونو نیت نه وي کړی او که چېرته هغه د دریو طلاقونو نیت کړی وي نو بیا ښځه مغلظه ملطقه ګرځي چه له حلالې نه پرته هیڅکله نه ورته روا کیږي. او تاسو چه کوم شپږ سوالونه کړي دي د هغو لنډ ځوابونه په لاندې ډول دي:

﴿۱﴾ په صورت مسئوله کښې بائن طلاق واقع شوی دی نه رجعي! او ښځې لره دوباره په نکاح کښې د راوستلو لپاره رجوع کافي نه ده بلکه د نکاح تجدید ضروري دی خو له رضاء سره او د طلاق ثلاثه په باره کښې د ائمه اربعهؒ مسلك دا دی چه طلاق ثلاثه که یو ځل ورکړی شي او که ځانته ځانته، که په یوه طهر (پاکوالي) کښې وي او که په څو اطهارو کښې، په ټولو صورتونو کښې درې طلاقه واقع کیږي. امام نووي رحمه الله د مسلم په شرح کښې په دې باندې د ائمه اربعهوؒ اجماع رانقل کړی دی.

﴿۲﴾ د ذکر شوي حدیث صحیح مفهوم دا دی چه په یوه طهر کښې درې طلاقه ورکول که متفرقا د طلاق الفاظ درې واره ووایي او یا په یو ځل ورته ووایي چه انتِ طالق ثلاثاً (ته طلاقه ئې په درې طلاقونو) نو دا ټول بدعي طلاق دي او دا ډول طلاق ورکول ګناه ده لیکن مطلب ئې هیڅکله دا نه دی چه درې طلاقونه نه واقع کیږي بلکه طلاقونه خو درې واقع کیږي لیکن چونکه دا ډول طلاق ورکول د طلاق د شرعي طریقې څخه مخالف دی نو له دې وجهې دا ډول طلاق ورکوونکی به ګنهګار وي. د دې مثال هغه واقعه ده چه په مسلم شریف او د حدیثو په نورو کتابونو کښې روایت شوې ده او هغه دا چه حضرت عبد الله بن عمر رضی الله عنهما یو ځل خپلې ښځې ته د حیض په حالت کښې طلاق ورکړ نو حضور ﷺ هغه ته د توبیخ په توګه د رجوع حکم ورکړ لیکن طلاق ئې معتبر وګرځاوه. (مسلم شریف)

همدارنګه یوه بل سړي خپلې ښځې ته درې طلاقونه په یوه ځای ورکړه نو حضور ﷺ وفرمایل چه عصیت ربك و بانت منك امرأتك (دار قطنی بحوالهٔ مشکٰوة) چه له دې څخه معلومیږي چه دا فعل اګر که ګناه دی لیکن طلاقونه درې واقع کیږي. کوم خلك چه د محمود بن لبید په حدیث سره د طلاق په عدم وقوع باندې استدلال کوي د دوی دا استدلال غلط دی او د طلاق د عدم وقوع استدلال له دې څخه نه معلومیږي. له دې څخه یوازې دا معلومیږي چه په یوه ځای درې طلاقه ورکول خو خامخا ګناه ده لیکن له ګناه څخه دا نه لازمیږي چه طلاق واقع کیږي نه. د زهرو چښل ګناه دی لیکن چه څوك ئې وچښي نو خامخا له مرګ سره مخامخ کیږي. همدارنګه دا طلاق اګر که بدعي دی لیکن واقع کیږي خامخا.



﴿۳﴾ د رکانهؓ په حدیث کښې دوه ډوله الفاظ مروي دي یو دا چه "طلق امرأته ثلاثا" او بل دا چه "انه طالق امرأته البتة فقال له النبی علیه الصلوٰة و السلام آلله ما اردت الا واحدة فقال آلله ما اردت واحدة" په اول روایت کښې چه په هغه کښې د "طلق امرأته ثلاثا" الفاظ دي نو محدثینو دا روایت ضعیف ګرځولی دی. امام نووي رحمه الله فرمایي:

ابو داؤد هم د طلقها البتة روایت ئې د طلقها ثلاثاً له روایت څخه اصح ګرځولی دی. لکه څرنګه چه لیکي و هذا اصح من حدیث ابن جریج ان رکانة طلق امرأته ثلاثا آه د دې وجهې دا بیانوي چه د طلقها البتة والا حدیث راویان د رکانه د اهل بیت اولاد دي. او ظاهره خبره ده چه د اجنبي خلکو په نسبت د رکانهؓ واقعه د طلاق علم د هغه اهل بیت او اولاد ته زیات وي. فرمایي: و حدیث نافع ابن عجیر و عبد الله ابن علی ابن یزید ابن رکانة عن ابیه عن جدّه ان رکانة طلق امرأته البتة فردّها النبیﷺ اصح من حدیث ابن جریج لانهم ولد الرجل او اهل بیته و هم اعلم به. (ابو داؤد ج ۱، ص ۳۰۰)

له دې څخه معلومه شوه چه رکانهؓ د انتِ طالق البتة په الفاظو سره طلاق ورکړی وو نه د انتِ طالق په الفاظو سره او چونکه البتة د کنایي طلاق لفظ دی. په دې کښې د دریو نیت هم صحیح دی. نو خطره وه چه رکانهؓ د دریو په نیت سره دا الفاظ ویلی وي. او په دې تقدیر باندې ئې ښځه په نکاح کښې نه شوه راتلی. نو له دې وجهې د هغه د نیت په باره کښې د اطمینان د حاصلولو لپاره حضور اکرم ﷺ وفرمایل چه آلله ما اردت الا واحدة کله چه د رکانهؓ په ځواب چه آلله ما اردت الا واحدة اطمینان حاصل شو نو حضور ﷺ په نوې نکاح سره ده ته ښځه بیرته نکاح کړه. لکه څرنګه چه د "فردها" د معنی په بیانولو سره محدثین حضراتؒ لیکي: قلت معنٰی قوله فردّها الیه یعنی با لنکاح لانها مطلقة بتطلیقة واحدة البتة آه. (فتح القدیر)

لهذا کوم خلك چه دا وایي چه رکانهؓ درې طلاقه ورکړي وو او حضور ﷺ دا درې طلاقونه یو طلاق رجعي ګرځولی وو دا غلطِ محض دی او مسلمانانو ته دوکه ورکول دي.

﴿۴﴾ د نفساني خواهشاتو لپاره که د امام صاحبؒ مذهب وي او که د بل امام مذهب پرېښودل ئې عظیمه ګناه او د ایمان د لمنځه تلو خطره ده. کما صرح به العلماء قاطبة فی زبرهم و اسفارهم لان هٰذا ترك الدین لاجل هوی النفس و هو مذموم جداً.

﴿۵﴾ په عائلي قوانینو کښې چه د نکاح او طلاق په باره کښې کومې مادې ایښودل شوي دي په هغو کښې اکثره د هر مکتب فکر علماوو د قرآن او حدیثو صریح مخالف ګڼلي دي. له دې وجهې چه کوم یو په داسې مادو باندې مشتمل په عائلي قوانینو باندې خلکو ته د عمل کولو تلقین ورکوي نو په حقیقت کښې هغه خلکو ته د قرآن او حدیثو په خلاف تلقین ورکوي کوم چه په هیڅ صورت کښې د یوه دیني عالم نه بلکه د یوه عام انسان له شان سره هم نه ښایي. د داسې قوانینو مصنفینو او واضعینو په باره کښې د قرآنکریم فیصله دا ده.

فَوَيْلٌ لِّلَّذِيْنَ يَكْتُبُوْنَ الْكِتَابَ بِاَيْدِيْهِمْ ثُمَّ يَقُوْلُوْنَ هٰذَا مِنْ عِنْدِ اللّٰهِ لِيَشْتَرُوْا بِهٖ ثَمَنًا قَلِيْلًا فَوَيْلٌ لَّهُمْ مِّمَّا كَتَبَتْ

اَیۡدِیۡهِمۡ وَ وَیۡلٌ لَّهُمۡ مِّمَّا یَکۡسِبُوۡنَ (سورة البقرة)

د نن صبا د قانونو جوړوونکو حالت د دغو خلکو له حالت سره ډیر فرق نه لري کوم چه په دې آیت کښې ذکر دي۔

﴿٦﴾ دریو طلاقونو لره په طلاق ګڼل اګر که د ائمه کرامو تضلیل نه لازمیږي لیکن تخطیه خو خامخا لازمیږي او دا هم کوچنی جرم نه دی۔ د کومو حضراتو په امامت او رهبرۍ باندې د امت سوادِ اعظم متفق وي نو د هغوی په تخطیه کوونکي د کوم منطق له مخې به حق په جانب ګڼل کیږي۔ چنانچه د نبي کریم ﷺ مبارك ارشاد دی چه "اتبعوا السواد الاعظم (الحدیث)" همدارنګه د دغو تولو ائمهٔ اربعه وو اجماعي فیصله د حضور اکرم ﷺ د یوه راشد خلیفه په فیصلې باندې مبني ده چه د هغه په اړه د حضور ﷺ په صراحت سره مبارك ارشاد داسې راغلی دی چه هغوی ملهم او محدث في هذه الائمه دي۔ دا خلیفه حضرت عمر رضی الله عنه دی چه هغوی یو ځای دریو طلاقونو لره درې طلاقونه ګڼلي دي او یوه صحابي او تابعي هم د دې فیصلې په خلاف رأیه نه ده ورکړې نو د هغوی د دې فیصلې حیثیت د یو ډول اجماع حیثیت لري چه له وجهې ئې د وروسته راتلونکو لپاره د مخالفت کوونکي هیڅ یو معقول حق نه پاتې کیږي۔ د داسې فیصلو په باره کښې حضور نبي کریم ﷺ فرمایلي دي چه "علیکم بسنتی و سنة الخلفاء الراشدین المهدیین"

لهذا د ائمه اربعه وو او د امت د سواد اعظم د اجماعي فیصلې په مقابله کښې د یو یا دوو علماوو او یا د امام ابن تیمیه رحمه الله او د امام ابن قیم رحمه الله ذاتي رأیه او اجتهاد کښې هغه وزن هیڅکله نه پاتې کیږي کوم چه د ائمه اربعه وو رحمهم الله تعالی او کوم چه د امت د سواد اعظم په متفقې فیصلې کښې دي او فیصله هم هغه کومه چه د حضرت عمر رضی الله عنه۔ لکه څرنګه چه د ملهم او محدث خلیفه راشد په فیصلې باندې مبني وي۔

قد ذکره هذه المسئلة العلامة ابن الهمام الحنفیؒ: و قد اثبت انه یقع ثلاث تطلیقات بلفظ واحد و هو یقول و ذهب جمهور الصحابة و التابعین و من بعدهم من ائمة المسلمین الی انه یقع ثلاث. و ایضاً قال و قد اثبتنا النقل عن اکثرهم صریحاً بایقاع الثلاث و لم یظهر لهم مخالف فما ذا بعد الحق الا الضلال و عن هذا قلنا لو حکم حاکم بان الثلاث بفم واحد واحدة لم ینفذ حکمه لانه لا یسوغ الاجتهاد فیه فهو خلاف لا اختلاف. (فتح القدیر شرح الهدایة ج۳، ص ۳۳۰، کتاب الطلاق)

د حضرت ابن همامؒ له پورته ذکر شوي اقوالو څخه ثابت شو چه په یوه لفظ سره د دریو طلاقونو په وقوع باندې د صحابهٔ کرامو اجماع منعقده شوې ده او له دې اجماع څخه مخالفت کول جائز نه دي او د صحابهٔ کرامو په اجماع باندې عمل نه کول ګمراهي ده۔

املك العلماء امام کاساني حنفي رحمه الله فرمایي چه په یوه لفظ سره درې طلاقونه واقع کیږي او په دې کښې د هیچا اختلاف نشته یواځې شیعه وو اختلاف کړی دی۔ او حضرت عمر رضی الله عنه د دریو طلاقونو د وقوع فیصله کړې ده او له ده سره یوه صحابي هم



اختلاف نه دی کړی بلکه په دې باندې د صحابه کرامو اجماع منعقده شوې ده۔ دی فرمایي: و اما حکم طلاق البدعة فهو انه واقع عند عامة العلماء و قال بعض الناس انه لا یقع و هو مذهب الشیعه. و قال هکذا و روینا عن عمر رضی الله تعالی عنه انه کان لا یؤتی برجل قد طلق امرأته ثلاثاً الا اوجعه ضرباً و اجاز ذلك علیه و کانت قضایاه بمحضر من الصحابة رضی الله تعالی عنهم اجمعین فیکون اجماعاً منهم علی ذلك. (بدائع الصنائع ج۳، ص۹۶، کتاب الطلاق)

په هر تقدیر دا مسئله د اسلامي امت او د اهل السنة و الجماعة سلف او خلف چه په هغوی کښې جمهور صحابهٔ کرام رضی الله عنهم او تابعین او تبع تابعین هم شته د دوی د تولو په دې خبرې باندې اجماع ده چه په یوه لفظ "طلاق ثلاثه" سره درې طلاقونه واقع کیږي او د یوه یا دوو او له دې څخه د زیاتو افرادو په مخالفت باندې د دوی په دې اجماع باندې اثر نه شي غورځولی۔ لکه څرنګه چه علامه قاضي شوکانيؒ فرمایي چه د داودِ ظاهريؒ مخالفت په دې مسئله کښې په اجماع باندې کوم اثر نه شي غورځولی د نور تفصیل لپاره د بلوغ المرام شرح شپږم مخ وګورئ۔

او علامه احمد بن محمد القسطلانيؒ د دریو طلاقونو په یوه طلاق باندې د ګڼونکو د مذهب په اړه فرمایي چه: بانه مذهب شاذ فلا یعمل به اذ هو منکر. (ارشاد الساری ج۸، ص۱۵۷ طبع فی المصر)

## د طلاق د ورکولو په وخت کښې د خولې د بندولو حکم

**سوال:** یوه سړي خپلې ښځې ته وویل چه یو، دوه، درې او له دې الفاظو نه وروسته یوه بل سړي ئې په خولې باندې لاس کیښود او خوله ئې وربنده کړه او د خولې له بندولو ئې وروسته کومه خبره او یا لفظ له خولې نه دی را ایستلی نو آیا په دې سره طلاق واقع کیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په صورت مسئوله کښې د نوموړي سړي ښځه نه ده طلاقه شوې ځکه چه هغه په طلاق باندې تلفظ نه دی کړی نه په صریح او نه په کنایې باندې۔ بلکه هغه یواځې په عدد باندې تلفظ کړی دی او یواځې عدد نه صریح طلاق دی او نه کنایي طلاق دی۔ په طلاق کښې د عدد اعتبار په هغه وخت کښې وي چه له طلاق نه وروسته پرله پسې ذکر شي۔

قال العلامة قاضی خانؒ: قالت المرأة لزوجها طلقنی فقال الزوج ان شئت الف مرّة لا یقع شیء. (الخانیة ج۲، ص۲۱۷، کتاب الطلاق)

**الجواب:** تر څو پورې چه خاوند د طلاق الفاظ په خوله نه وي یاد کړي نو په دغو الفاظو سره هیڅ طلاق نه واقع کیږي۔ (امداد المفتین ج۲، ص ۶۲۰، کتاب الطلاق)

## د "زما له کوره اوځه" د الفاظو په طلاق باندې اثرات

**سوال:** که چېرته خاوند ښځې ته د جنګ جګړې په وخت او د غصې په حالت کښې ووایي چه "زما له کور څخه اوځه" او دا الفاظ بار بار تکرار کړي نو په دې الفاظو سره ئې ښځه په کوم طلاق طلاقیږي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** دا الفاظ د کنایي طلاق دي له دې څخه د نیت او دلالت حال څخه پرته طلاق نه واقع کیږي۔ بیا هم د جنګ او جګړې په وخت کښې لکه څرنګه چه دلالتِ حال موجود دی د دې لپاره په ښځې باندې طلاقِ بائن واقع کیږي کوم چه د نکاح په نوې کولو سره بیرته له منځه ځي۔

قال العلامة التمرتاشیؒ: فتحو اخرجی و اذهبی و قومی...... ففی حالة الرضاء تتوقف الاقسام علی نیّة..... الخ. (تنویر الابصار علی هامش رد المحتار ج۲، ص٥٠٤، باب الکنایات)

قال العلامة قاضی خانؒ: قومی اخرجی اذهبی...... لا یقع الطلاق الا با لنیّة و اذا قال لم انوی الطلاق کان مصدقاً..... الخ. (الفتاوی قاضی خان علی هامش الهندیة ج۱، ص٤٦٨، فصل فی الکنایات و المدلولات) و مثله فی الهندیة ج۱، ص٣٧٥، الفصل الخامس فی الکنایات.

## د "مور او پلار کره لاړه شه" په ویلو سره په نکاح باندې اثرات

**سوال:** د خاوند او ښځې تر منځ د جنګ او جګړې په وخت کښې د غصې په حالت کښې خاوند خپلې ښځې ته وویل چه "مور او پلار ته دې لاړه شه" آیا په دې سره په نکاح کښې کوم فرق راځي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** نوموړي الفاظ په عربي کښې د "الحقي باهلك" سره تعبیر کیږي۔ د فقهاء کرامو د تصریحاتو په رڼا کښې دا کنایي طلاق دی چه په دې باندې د تلفظ په وخت کښې د نیت په کولو سره طلاق واقع کیږي او که نه وي نو نه واقع کیږي۔

قال العلامة قاضی خانؒ: و عن ابی یوسف رحمه الله تعالی فی الاملاء انه الحق بهٰذه الخمسة اربعة اخری لا ملك لی علیك لا سبیل لی علیك خلیت سبیلك الحقی باهلك الخ. (الفتاوی قاضی خان علی هامش الهندیة ج۱، ص٤٦٧، فصل فی الکنایات و المدلولات)

قال العلامة صدر الشریعةؒ: و کنایته ما لم یوضع له و احتمله و غیره فلا تطلق الا بنیته او دلالة الحال و فیه. الحقی باهلك تقع واحدة بائنة ان نواها. ملخصاً. (شرح الوقایة ج۲، ص٧٧، کتاب الطلاق، باب ایقاع الطلاق) و مثله فی الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص٥٠٢ الی ٥٠٤، باب الکنایات.

## "زما ښځه نشته" په ویلو سره طلاق نه واقع کیږي

**سوال:** یو سړي د حاکم په مخکښې وویل چه "زما ښځه نشته" په داسې حال کښې چه په کور کښې ئې ښځه شته نو آیا په دې الفاظو سره په نکاح کښې کوم فرق راځي او که نه؟ بینوا توجروا۔



**الجواب باسم ملهم الصواب:** چونکه دا الفاظ د طلاق نه دي نو ځکه په دې الفاظو سره په نکاح کښې کوم فرق نه راځي۔

قال العلامة الحصکفیؒ: و لو سئل الك امرأة فقال لا لا تطلق اتفاقاً و ان نوی. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص٤٩١، باب الصریح)

قال العلامة ابن نجیم المصریؒ: و قوله لا عند سؤاله بقوله الك امرأة و قوله لا حاجة لی فیك کما فی البداع ففی هٰذه الالفاظ لا یقع و ان نوی. (البحر الرائق ج۳، ص٣٠٥، باب الکنایات فی الطلاق) و مثله فی فتح القدیر ج۳، ص٤٠٢، باب ایقاع الطلاق، فصل فی الطلاق قبل الدخول.

## ښځې ته اجازه ده چه بل میړه وکړي

**سوال:** یو سړي خپلې ښځې ته د طلاق ورکولو قصد وکړ لیکن تر اوسه پورې ئې په ژبې باندې څه نه دي ویلي۔ او له ارادې وروسته ئې دا وویل چه زما ښځې ته اجازه ده چه بل میړه وکړي نو آیا په داسې ویلو سره طلاق واقع کیږي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** یوازې د طلاق په ارادې سره طلاق نه واقع کیږي البته نوموړي سړي چه دا ویلي دي چه زما ښځه ته اجازه ده چه بل میړه وکړي نو په دې سره یو طلاق بائن په هغه وخت کښې واقع کیږي چه نیت ئې د طلاق وي۔

قال العلامة الحصکفیؒ: اذهبی و تزوجی تقع واحدة. قال العلامة ابن عابدینؒ (تحت هٰذا القول) علی ان تزوجی کنایة مثل اذهبی فیحتاج الی النیّة. (رد المحتار ج۲، ص٥١٤، باب الکنایات، مطلب المختلفة المبانة نسبة امرأة من کل وجه)

قال العلامة عالم بن العلاء الانصاریؒ: و لو قال لها اذهبی فتزوجی لا یقع الطلاق الا با لنیّة و اذا نوی فهی واحدة و اذا نوی الثلاث فثلاث. (الفتاوی التاتارخانیة ج۳، ص٣١٦، کتاب الطلاق، باب الکنایات، نوع آخر فی قوله خلیة و اشباهها) و مثله فی خلاصة الفتاوٰی ج۲، ص٩٨، الفصل الثانی فی الکنایات، جنس آخر فی الامر با لذهاب.

## "زه تا ته هیڅ ضرورت نه لرم" د ویلو حکم

**سوال:** که چېرته څوك خپلې ښځې ته ووایي چه "زه تا ته هیڅ ضرورت نه لرم" نو آیا په دې الفاظو سره په نکاح کښې کوم فرق راځي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د فقهاء کرامو له تصریحاتو څخه څرګندیږي چه په دې الفاظو سره طلاق نه واقع کیږي۔ البته احتیاط په دې کښې ده چه دا الفاظ په کنایاتو کښې داخل کړی شي۔ که چېرته خاوند د طلاق نیت کړی وي نو بیا یو طلاق بائن واقع کیږي او که چېرته ئې د طلاق نیت نه وي کړی نو طلاق نه واقع کیږي۔

لما فی الهندیة: و لو قال لا حاجة لی فیك ینوی الطلاق فلیس بطلاق. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص٣٧٥، الفصل الخامس فی الکنایات)

قال العلامة ابن نجیمؒ: و قوله لا حاجة لی فیك لما فی البدائع ففی هٰذه الالفاظ لا یقع و ان نوی. (البحر الرائق

ج۳، ص۳۰۵، باب الکنایات فی الطلاق) و مثله فی رد المحتار ج۲، ص۵۰۱، باب الکنایات.

## "ته له ما څخه آزاده ئې" په ویلو سره د طلاق حکم

**سوال:** یوه سړي خپلې ښځې ته وویل چه "ته له نن څخه له ما نه آزاده ئې" نو آیا په دې الفاظو سره کوم طلاق واقع کیږي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** ښځې ته دا ویل چه "ته له ما څخه آزاده ئې" په عربي کښې د "سرحتك" په لفظ سره تعبیر کیږي چه په عرف کښې په طلاق رجعي کښې استعمالیږي نو ځکه په دې الفاظو سره طلاق رجعي واقع کیږي۔

قال العلامة ابن عابدینؒ: فاذا قال سرحتك یقع به الرجعی مع ان اصله کنایة ایضاً. (رد المحتار ج۲، ص۵۰۳، باب الکنایات)

و فی الهندیة: و لو قال الرجل لامرأته "ترا چنك باز داشتم و بهشتم و ایله کردم ترا. فهٰذا کله تفسیر قوله طلقتك عرفاً حتیٰ یکون رجعیاً و یقع بدون النیّة. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۳۷۹، الفصل السابع فی الطلاق بالفاظ الفارسیة) و مثله فی خلاصة الفتاویٰ ج۲، ص۹۹، الفصل الثانی فی الکنایات جنس آخر و فی الفتاویٰ.

## ته "له ما څخه جدا ئې" د ویلو حکم

**سوال:** یوه سړي د غصې په حالت کښې ښځې ته وویل چه "ته له ما څخه جدا ئې لکه څرنګه چه دا شی زما په لاس کښې دی" او هغه شی له لاسه وغورځوي نو په دې سره کوم طلاق واقع کیږي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د "ته له ما څخه جدا ئې" الفاظ په عرف کښې د طلاق لپاره استعمالیږي نو د دې لپاره په دې سره یو طلاق رجعي واقع کیږي۔

لما فی الهندیة: و لو قال لها انت بائن ثم قال لها انت بائن لا یقع الا طلقة واحدة بائنة لانه یمکن جعله خبر عن الاوّل و هو صادق فیه فلا حاجة الیٰ جعله ان شاء. و فیه. و الحق ابو یوسف بخلیة و بریة خلیت سبیلك فارقتك. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۳۷۵ الی ۳۷۷، الفصل الخامس فی الکنایات)

قال العلامة عالم بن العلاء الانصاریؒ: حتیٰ ان الرجل لو اذا قال للمرأة انت بائن و لم یقل منّی یقع الطلاق اذا نوی. (الفتاوی التاتارخانیة ج۳، ص۳۱۱، کتاب الطلاق، باب الکنایات، نوع منه فی قوله انت حرام علی)

## "ته په مـــــــا باندې حرامه ئې" د ویلو حکم

**سوال:** که یو سړی د خپلې ښځې په اړه درې ځلې داووایي چه "هغه په ما حرامه ده" نو آیا د دې الفاظو په ویلو سره ئې په نکاح کښې کوم فرق راځي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** منکوحې ته دا ویل چه "ته په ما حرامه ئې" کنایي طلاق دی چه په دې سره د طلاق وقوع تر نیته پورې موقوف دی۔ د دې لپاره که چېرته ئې خاوند د درې طلاقونو نیت کړی وي نو درې طلاقه واقع کیږي او که چېرته ئې د دریو طلاقونو نیت نه وي کړی یوائې ئې دا اراده وي چه په دې سره ښځې ته یو طلاق ورکوم نو بیا طلاق بائن واقع کیږي



او که چېرته دا الفاظ په څو څو ځله استعمال شي او نیت ئې هم د طلاق وي نو دوهم او دریم ځل ویل ئې لغو دي ځکه چه ښځه په یو ځل طلاق بائن باندې جدا کیږي او دوهم او دریم ځل د الفاظو لپاره کوم محل نه پاتې کیږي۔ په هر حال په دې کښې د نیت او یا د طلاق له یادونې پرته د طلاق وقوع ممکن نه دی۔

قال العلامة الحصکفیؒ: لان البائن لا یلحق البائن. و ایضاً قال قلت لکن عبارة البزازیة لو قال امرأتیه انتما علی حرام و نوی الثلاث فی احداهما و الواحدة فی الاخری صحت نیته عند الامام و علیه الفتویٰ. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص۵۰۳، ص۵۱۰، باب الکنایات)

قال العلامة ابو البرکات النسفیؒ: و فی الفتاویٰ اذا قال لامرأته انت حرام علی حرام و الحرام عنده طلاق و لکن لم ینوی طلاقاً وقع الطلاق. (الکنز الدقائق علی هامش البحر الرائق ج۳، ص۲۹۹، باب الکنایات فی الطلاق) و مثله فی البزازیة علی هامش الهندیة ج۴، ص۱۸۸، الفصل الثانی فی الکنایات و فیه اجناس الاوّل.

## "ما هغې لره پرېښې ده" د ویلو حکــــــم

**سوال:** که چېرته یو سړی د خپلې ښځې په حق کښې ووایي چه "ما هغې لره پرېښې ده" نو آیا په دغو الفاظو سره کوم طلاق واقع کیږي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د خپلې ښځې په اړه دا ویل چه "ما هغې لره پرېښې ده" کنایي طلاق دی۔ د نیت په موجودوالي کښې په دې سره طلاق بائن واقع کیږي لیکن ابن عابدین شامي رحمه الله د عرف په حوالې سره دا الفاظو په طلاق رجعي کښې ګڼلي دي چه په دې سره له نیت څخه پرته هم طلاق رجعي واقع کیږي۔

قال ابن عابدینؒ: فاذا قال سرحتك یقع به الرجعی مع ان اصله کنایة. ایضاً الخ. (رد المحتار ج۲، ص۵۰۳، باب الکنایات)

و فی الهندیة: و لو قال الرجل لامرأته "ترا چنك باز داشتم و بهشتم و ایله کردم ترا. فهٰذا کله تفسیر قوله طلقتك عرفاً حتیٰ یکون رجعیاً و یقع بدون النیّة. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۳۷۹، الفصل السابع فی الطلاق بالفاظ الفارسیة) و مثله فی الفتاوی البزازیة علی هامش الهندیة ج۴، ص۱۸۹، الفصل الثانی فی الکنایات و فیه اجناس الاوّل.

## د "هغه زما په کار نه دی" د ویلو حکم

**سوال:** یوه سړي خپلې ښځې ته له کور څخه د ایستلو نه وروسته وویل چه "هغه زما په کار نه دی" نو آیا په دې الفاظو سره طلاق واقع کیږي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په دې الفاظو سره طلاق نه واقع کیږي اګر که نیت ئې پکښې د طلاق هم کړی وي۔

لما فی الهندیة: و لو قال لا حاجة لی فیك ینوی الطلاق فلیس بطلاق. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۳۷۵، الفصل الخامس فی الکنایات)

و قال العلامة الکاسانی رحمه الله: و لو قال لا حاجة لی فیك لا یقع الطلاق و ان نوی لان عدم الحاجة لا یدل

علی عدم الزوجیة. (بدائع الصنائع ج۳، ص۱۰۷، فصل و اما الکنایات و اما القسم الثالث) و مثله فی البحر الرائق ج۳، ص۳۰۳، باب الکنایات فی الطلاق.

## "ته څلورو خواوو ته تللې شې" په ویلو سره د طلاق حکم

**سوال:** یوه سړي د غصې په حالت کښې خپلې ښځې ته وویل چه "ستا لپاره د څلورو خواوو لارې خلاصې دي کومې خواته چه غواړې تلی شې" په مقدس شریعت کښې د دغو الفاظو حکم څه دی؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** دا د کنایي طلاق الفاظ دي۔ د نیت په کولو سره په دې الفاظو باندې طلاق واقع کیږي او له نیت څخه پرته طلاق نه واقع کیږي۔

لما فی الهندیة: رجل قال لامرأته اربعة طرق علیك مفتوحة لا یقع بهٰذا شیء و ان نوی الا اذا قال خذی ای طریق شئت و قال نویت الطلاق. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۳۷۶، الفصل الخامس فی الکنایات)

و قال العلامة الحصکفی رحمه الله: و لا یقع باربعة طرق علیك مفتوحة و ان نوی ما لم یقل خذی ای طریق شئت. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص۵۱۵، باب الکنایات) و مثله فی البحر الرائق ج۳، ص۳۰۴، باب الکنایات فی الطلاق.

## دا "د سپي لور دې طلاقه وي" د ویلو حکم

**سوال:** که چیرته څوك په کورنۍ شخړې کښې خپلې ښځې ته ووایي چه دا د خنزیر لور، دا د سپي لور دې طلاقه وي او دا سپۍ دې طلاقه وي او ورسره ئې په لاس هم اشاره وکړه نو په دې سره کوم طلاق واقع کیږي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په طلاق کښې د ښځې د متعین کولو لپاره یو ائې اشاره کافي ده او له دې نه وروسته ذکر شوي صفاتو لره اعتبار نشته۔ لهذا په صورت مسئوله کښې درې طلاقه واقع شوي دي او ښځه ورته له شرعي حلالې پرته حلاله نه ده۔

قال العلامة الحصکفیؒ: قال لامرأته هٰذه کلبة طالق طلقت. قال ابن عابدینؒ لا تعتبر الصّفة و التسمیة مع الاشارة. (رد المحتار ج۳، ص۲۹۳، فی آخر باب طلاق غیر المدخول بها)

قال العلامة الحصکفیؒ: قال لامرأته هٰذه الکلبة طالق طلقت. قال السید احمد الطحطاویؒ تحته الظاهر انه لو لم یشر و اتی بأل العهدیة یکون الحکم کذٰلك اما اذا لم یشر و لم یکن نیته بأل عهد زوجته انها لا تطلق لکون الکلبة غیر محل للطلاق. (طحطاوی حاشیة الدر المختار ج۲، ص۱۳۰، باب طلاق غیر المدخول بها)

## له قصد او ارادې پرته د طلاق په ورکولو سره طلاق واقع کیږي

**سوال:** که چیرته یو څوك له قصد او ارادې پرته دا الفاظ ووایي چه زما ښځه دې طلاقه، طلاقه، طلاقه وي نو آیا طلاق واقع کیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د صریح طلاق الفاظ داسې الفاظ دي چه د قصد او ارادې هیڅ ضرورت ورته نشته او له ارادې پرته هم واقع کیږي اګر که د نوموړي سړي نیت د طلاق وي او که نه وي۔



لهذا په صورت مسئوله کښې د نوموړي سړي په ښځې باندې درې طلاقونه قضاءً واقع شوي دي۔

قال العلامة الحصکفیؒ: و یقع طلاق کل زوج بالغ عاقل و لو عبداً او مکرهاً او هازله........ او مخطئاً بان اراد التکلم بغیر الطلاق فجری علی لسانه الطلاق. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص۴۶۱، کتاب الطلاق، قبل مطلب فی طلاق المدهوش)

قال العلامة طاهر بن عبد الرشید الانصاری رحمه الله: و طلاق اللاعب و الهازل و طلاق الرجل الذی اراد ان یتکلم فسبق لسانه با لطلاق واقع الخ. (خلاصة الفتاوی ج۲، ص۷۵، کتاب الطلاق) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۳۵۳، کتاب الطلاق، فصل فیمن یقع طلاقه و فیمن لا یقع طلاقه.

## طلاق طـــــلاق طلاق درکوم په ویلو سره د طلاق ثلاثه د وقوع حکم

**سوال:** جناب محترم مفتي صاحب! زما سوال دا دی چه ما خپلې بي بي ته چه کلثوم نومیږي او د سراج احمد لور ده او د آلوی تحصیل او ضلع هري پور اوسیدونکې ده په تاریخ ۹۸/۳/۲۱ تحریري طلاق په هغه وخت کښې ور ولیږه چه د خپل یوه رشته دار د فوت کیدو د تعزیت لپاره کراچۍ ته تللې وه۔ په معمولي غوندې خبرې باندې ما هغه کار وکړ چه په سوچ او فکر کښې مې هم نه وو۔ ما پخپل تحریر کښې دا الفاظ لیکلي وو چه زه کلثوم جانه د سراج احمد خان لور ته طلاق، طلاق، طلاق ورکوم او ورسره مې مهر هم د چیك په صورت کښې د رجسټرۍ په ذریعه نوموړې ته ولیږه۔

جناب محترم! له دې وروسته ما ته په دې خبرې باندې ډیر افسوس راغی او سخت پریشانه شوم چه ما ولې داسې وکړل او له هغې ورځې راهیسې سخت خفه یم۔ په کوم وخت کښې چه مې طلاق نامه لیکله په هغه وخت کښې زه په کوټه کښې بالکل یو ائې ناست وم او ما ته بالکل ذهن ته هم نه راځي چه ما دا پورته ذکر شوي الفاظ ولې او څنګه ولیکل او زما قلم ولې بند نه شو۔

جناب محترم! زه پوهیږم چه طلاق ورکول ښه نه دي او ښه خبره نه ده لیکن په دې باندې د پوهیدلو سره سره نه پوهیږم چه ولې داسې وشول؟ ما د دې غلطۍ معافي له الله تعالی څخه په سجدې کښې وغوښته، هیله ده چه الله تعالی به مې خامخا معاف کوي۔

جناب محترم! ما اوس اوس د خپلې علاقې دیني علماوو سره رابطه وکړه چه ښایي د دې مسئلې مثبت حل د قرآن او نبوي احادیثو په رڼا کښې له تجدید نکاح او حلالې څخه پرته وکړی شي او علماوو زما د دې مسئلې مثبت حل و ایست چه زما تسلي پرې شوې ده لیکن بیا هم زه ستاسو غوندې د عظیم مفکر او عالم دین په خدمت کښې عرض کوم چه د زیاتې تسلۍ لپاره تاسو د قرآن او نبوي احادیثو په رڼا کښې په ځواب سره چه څومره زر کیدلی شي مونږ بهرمند وګرځوی۔

شکریه

د علاقې د علماء کرامو ځواب، تصدیق او تائید فوتو کاپي هم ارسال خدمت دی۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په نوموړي صورت کښې د قرآن، حدیث او اجماع امت له مخې درې طلاقه واقع شوي دي اګر که په یوه مجلس کښې درې طلاقونه ورکول د سنتو خلاف او ګناه هم ده لیکن کله چه ورکړی شي نو درې واړه طلاقونه واقع کیږي او په دې خبرې باندې د اهل سنت و الجماعت د ټولو علماوو په نزد هیڅ شك او شبه نشته۔ د امام اعظم، امام شافعي، امام مالك، امام احمد حنبل رحمهم الله او د ټول محمديؐ امت همدا مذهب دی او له شرعي حلالې نه علاوه بله هیڅ چاره نشته۔ د قرآنکریم مبارك ارشاد دی: فَاِنْ طَلَّقَهَا فَلَاتَحِلُّ لَهٗ مِنْۢ بَعْدُ حَتّٰی تَنْکِحَ زَوْجاً غَیْرَهٗ. (الآیة)

• و قال الامام النوویؒ فی شرح مسلم و قد اختلف العلماء فیمن قال لامرأته انتِ طالق ثلاثاً فقال الشافعی و مالك و ابو حنیفة و احمد و جماهیر العلماء من السلف و الخلف رحمهم الله یقع الثلث و احتج الجمهور لقوله تعالیٰ: وَ مَنْ یَّتَعَدَّ حُدُوْدَ اللّٰهِ فَقَدْ ظَلَمَ نَفْسَهٗ. (الآیة) لَاتَدْرِیْ لَعَلَّ اللّٰهَ یُحْدِثُ بَعْدَ ذٰلِكَ اَمْراً. قالوا معناه ان المطلق قد یحدث له ندم فلا یمکنه تدارکه لوقوع البینونة فلو کانت الثلاث لم یقع طلاقه هٰذا الا رجعیا فلا یندم. (صحیح مسلم ج۱، ص۴۷۸، کتاب الطلاق، باب طلاق الثلاث)

قال العلامة ابن عابدینؒ: و ذهب جمهو الصحابة و التابعین و من بعدهم من ائمة المسلمین الی انه یقع الثلاث. قال فی الفتح بعد سوق الاحادیث الدالة علیه و هٰذا یعارض ما تقدم و اما امضاء عمر الثلث علیهم مع عدم مخالفة الصحابة لهٗ و علمه بانها کانت واحدة فلا یمکن الا و قد ثبت النقل عن اکثرهم صریحاً بایقاع الثلاث و لم یظهرلهم مخالف فما ذا بعد الحق الا الضلٰل و من هٰذا قلنا لو حکم حاکم بانها واحدة لم ینفذ حکمه الخ. (رد المحتار ج۲، ص۴۱۹، کتاب الطلاق)

د قرآن، حدیثو او د فقهاء کرامو د عبارتونو له مخې ستاسو منکوحه په دریو طلاقونو باندې طلاقه شوې ده او له شرعي حلالې پرته ستا لپاره حلاله نه ده۔ کومو خلکو چه په عدت کښې د رجعت د صحت حکم کړی دی او یا هغوی د عدم وقوع طلاق قائل دي نو هغوی د الله تعالیٰ او د هغه د رسول ﷺ د حکم مخالفین دي۔

د حلاله صورت دا دی چه ستا طلاقه شوې بي بي دې د دریو حیضونو د عدت له تیرولو وروسته له یوه بل سړي سره په کفو کښې نکاح وکړي او هغه سړی دې له دې سره د جماع له کولو نه وروسته پخپله خوښه باندې هغې ته طلاق ورکړي او بیا به عدت تیروي له دې وروسته بیا تاسره نکاح کولی شي۔ او که چیرته د دې خبرې خطره وي چه هغه بل خاوند به بیا طلاق نه ورکوي نو د دې لپاره دا حیله کیدلی شي چه ښځه دې په دې شرط سره د هغه بل سړي سره نکاح وکړي چه پخپل ځان باندې دې د طلاق د واقع کیدو اختیار له ځان سره واخلي۔ بیا چه کله ئې خاوند له هغې سره یو ځل جماع وکړي نو دا ښځه په ځان باندې طلاق واقع کولی شي او د عدت له تیرولو وروسته بیا د اول خاوند په نکاح کښې راتلی شي۔

او که چیرته بالفرض د حلالې د سقوط لپاره ته غیر مقلد جوړ شې نو بیا هم حلاله نه



شي ساقطیدلی او له حلالې پرته اول خاوند د مطلقه ثلاثه سره دوباره نکاح نه شي کولی۔

په در مختار کښې دي: ان الحکم الملفق باطل با لاجماع و ان الرجوع عن التقلید بعد العمل باطل اتفاقاً و هو المختار فی المذهب. (ج۱، ص۷۵)

او د دې غرض لپاره په غیر مقلد والي سره د حلالې د ساقطیدو په ځای باندې ډیره لویه ګناه ده چه له وجهې ئې د ایمان د له منځه تلو خطره هم دی۔

کما قال الجوزجانیؒ: فی رجل ترك مذهب ابی حنیفةؒ لنکاح امرأة من اهل الحدیث فقال اخاف علیه ان یذهب ایمانه وقت النزع لانهٗ استخف بمذهبه الذی هو حق عنده و ترکه لاجل جیفة. (شامی ج۲، ص۳۰۷، ص۳۹۰ / امداد المفتین ج۱، ص۶۹۲)

## د "یو، دوه درې ته آزاده ده ئې" په ویلو سره د طلاق د واقع کیدو حکم

**سوال:** که چیرته یو سړی خپلې ښځې ته د شخړې په حالت کښې ووایي چه "یو، دوه، درې ته آزاده ئې" نو آیا په دغو الفاظو سره طلاق واقع کیږي او که نه؟ او که چیرته واقع کیږي نو څو طلاقه واقع کیږي؟ په د اسې حال کښې چه په عرف کښې خو درې طلاقونه ګڼل کیږي۔ خلك په دغو الفاظو باندې چه "په ما باندې په دریو طلاقونو طلاقه یې" او په پورته ذکر شوي الفاظو کښې کوم فرق نه کوي۔ یوه دیني عالم وویل چه په دې الفاظو باندې یو ازخې یو طلاق بائن واقع کیږي۔ د قرآن او سنتو په رڼا کښې د پورته ذکر شوي الفاظو د شرعي حیثیت وضاحت وکړی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د طلاق په واقع کیدو کښې عرف ډیر دخل لري۔ که چیرته په یوه ځای کښې په صورت مسئوله کښې درج شوي الفاظ په عرف کښې د دریو طلاقونو لپاره استعمالیده نو هلته د عرف مطابق درې مغلظ طلاقونه ګڼل کیږي ځکه چه "ته آزاده ئې" الفاظ فقهاء کرامو د عرف په بناء د صریح طلاق په معنٰی سره اخیستی دی اګر که په ظاهره سره په نوموړې جملې کښې عدد او معدود هیڅ تړاو نه سره لري دواړه د یوه او بل سره مغایر دي لیکن عرف دواړه یو ګرځولی دی۔ همدارنګه آزاد کنایي لفظ دی لیکن عرف دا لفظ په صریحو الفاظو کښې استعمال کړی دی۔

قال العلامة ابن عابدینؒ: و ان کان الحرام فی الاصل کنایة یقع بها البائن لانه لما غلب استعماله فی الطلاق لم یبق کنایة و لذا لم یتوقف علی النیّة او دلالة الحال...... ثم فرق بینه و بین سرحتك فان سرحتك کنایة لکنهٗ فی عرف الفرس غلب استعماله فی الصریح ای سرحتك یقع به الرجعی مع ان اصله کنایة ایضاً و ما ذاك الا لانه غلب فی عرف الفرس استعماله فی الطلاق و قد مر ان الصریح ما لم یستعمل الا فی الطلاق من ای لغة کانت. (رد المحتار ج۲، ص۶۳۸، کتاب الطلاق، باب الکنایات)

## څو ځله له دې ویلو سره چه "زه تا ته طلاق درکوم" د مغلظ طلاق حکم

**سوال:** جناب مفتي صاحب! ما ډیر امیدونه په زړه کښې نیولي دي او ستاسو په خدمت کښې حاضره شوې یم. هیله ده چه تاسو به خامخا زما لارښوونه کوی. زما د واده پنځلس کاله کیږي او دوه مې زامن دي چه په ترتیب سره ئې عمرونه دیارلس او څوارلس کاله دي. زه دلته په ابو ظهبي کښې د درس او تدریس په شعبې کښې یم. زما یوه مسئله ده او هغه دا چه:

﴿۱﴾ د واده په اولو کلونو کښې زما خاوند په ما باندې بندیز ولګاوه چه که چېرته تاسو د خپلو پښو او لاسونو ویښتان صفا نه کړل نو ته طلاقه ئې لیکن له دې سره سره ما ډیر وارې دا ویښتان صفا کړل ځکه چه زما دا ویښتان خوښ نه وو.

﴿۲﴾ په ۱۹۹۲ء کښې مې خاوند دلته له یوې فلپانۍ ښځې سره تعلقات قائم کړي وو او اکثره شپې ئې له هغې سره تیرولې او کله چه ما ته د دې خبرې معلومات وشول نو په دې خبرې باندې مې جنګ او جګړه ورسره وکړه او له ډیر جنجال نه وروسته هغه راته وویل چه زه تا ته طلاق درکوم.

﴿۳﴾ ۱۹۹۳ء کښې مې د خاوند نوکري له دې ځایه ختم شوه نو هغه نوموړې فلپانۍ ښځه بیا له ځان سره کړه او له هغې سره اوسیده او فلپانۍ ښځه چه میري وِك (Merry Vick) نومیده له عیسایي وه. دوی دواړه په یوه کټ باندې سره څملاستل او د هرې ښځې غوندې دا خبره زما لپاره د زغملو نه وه. اګر که زمونږ تر منځ جمساني تعلقات ختم شوی وو لیکن بیا مې په ذهن کښې دا خبره وه چه د رشتې تار خو مو تر اوسه پورې باقي پاتې دی. یوه ورځ د دې ښځې له وجهې زمونږ تر منځ بیا جنجال را منځ ته شو او ما خپل خاوند ته وویل چه ته دا ښځه له نکاح پرته له ځان سره ساتې دا خو ډیره لویه ګناه ده! په دې خبرې باندې هغه راته وویل چه دا زما ذاتي معامله ده زه سړی یم چه څه غواړم هغه به کوم ته څوك ئې چه ما منع کوې؟ ما په ځواب کښې ورته وویل چه زه آخر ستاه ښځه یم زما ستا سره یوه رشته ده. نو هغه راته وویل چه که ته په دې رشتې باندې ډیره غره یې نو زه دا رشته ختموم او تا ته طلاق درکوم. له دې وروسته ده ډیرو خلکو ته ویلي وو چه چونکه زما ښځه زما په ذاتي کارونو کښې مداخله کوي نو له دې وجهې ما خپله ښځه پریښې ده ځکه چه هغه له ما سره جنګ، جدل او د اسې نور کوي.

﴿٤﴾ د دې جنجال څو ورځې وروسته مې زوی مریض شو نو ما خپل خاوند ته وویل چه زوی مې مریض دی او روغتون ته بوتلل غواړي نو هغه ځواب راکړ چه زما او ستا تر منځ د خپلوي هیڅ رشته نشته زما له خوا څخه ته آزاده ئې چه څه غواړې هغه کوه ما ته د بچي هیڅ پروا نشته، زه تا ته وایم چه بچی زما لپاره زنځیر نه دی.

جناب مفتي صاحب! د ۱۹۹۳ء په آخر کښې د هغه ویزه ختمه شوې وه او بیرته پاکستان لاړ ځکه چه له فلپانۍ ښځې میرو وِك څخه ئې هم زړه موړ شوی وو او له ابو ظهبي



څخه له تلو وروسته ئې له مونږ سره هیڅ ډول رابطه هم و نه کړه لیکن مونږ ته کله نا کله معلومات کیده چه پاکستان ته تللی دی او هلته د کومې ښځې د زلفو اسیر شوی دی او واده کوي لیکن هغو خلکو انکار ترې کړی دی. و الله اعلم بالصواب.

اوس تقریبا شپږ کاله وروسته هغه بیرته له پاکستان څخه راغلی دی ځکه چه هغه لره هیڅچا هم قبول نه کړ او ما ته وایي چه زه له خپلو بچیانو سره غواړم چه اووسیږم ځکه چه زما او ستا رشته نه ده ختمه شوې، ته زما د بچیانو مور ئې ما ته په پاکستان کښې یوه مولوي صاحب ویلي دي چه ته له خپلې ښځې سره د نکاح تجدید کولی شې، نو ځکه ته د دغو بچیانو په خاطر بیرته زما ښځه شه او و اوسیږه، تا ته بیا زه د شکایت موقع نه درکوم، او د اسې نور.

جناب مفتي صاحب! زه پو هیږم چه دا عارضي ژوند دی او زه د کوم غلط کار په کولو سره خپل آخرت نه خرابوم نو له دې وجهې مې تاسو ته رجوع وکړه چه په دې مسئله کښې زما لارښوونه وکړی چه د مقدس شریعت په دې باره کښې څه حکم دی؟ مهرباني وکړی خپله فیصله په جلا صفحې کښې ولیکی او را وئې لیږی تر څو چه ئې زه د هغه وکیل ته ښکاره کړم. خدای پاك به تاسو ته د دې اجر درکوي او زه د ځواب سخت منتظره یم. (پریشان حال مسز شهناز چوهدري ابو ظهبي)

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په اسلامي شریعت کښې په حلالو او جائزو شیانو کښې مبغوض ترین شی طلاق دی. د طلاق په ذریعې سره هغه عظیمه رشته چه د خاوند او ښځې تر منځ ده له منځه ځي او پرې کیږي، او په دې کښې حقیقت، مسخره او توکه ټول سره برابر دي. بلکه دلته چه د خاوند له ژبې څخه الفاظ اوځي نو هلته ښځه طلاقه ګرځي تر دې پورې چه د طلاق په صریحو الفاظو کښې له نیت نه پرته هم طلاق واقع کیږي نو ځکه خاوند باید د دغو الفاظو له استعمالولو څخه د امکان تر حده پورې پرهیز وکړي.

د صورت مسئلې د مطالعې او په غور سره له کتلو نه وروسته د دوه قسمه طلاقو ثبوت پیدا کیږي

﴿۱﴾ **طلاق معلق:** کوم چه په اول نمبر کښې د واده په اولو کلونو کښې چه "که چېرته ته د خپلو پښو او لاسونو ویښتان صفا نه کړې نو ته طلاقه ئې" څخه څرګندیږي. د د اسې طلاق حکم دا دی چه له کوم شرط سره طلاق معلق شوی دی د هغه شرط له پوره کیدو نه وروسته په ښځې باندې طلاق واقع کیږي چونکه دلته دا شرط نه دی پوره شوی چه په هغه باندې ستا دا الفاظ چه "لیکن له دې سره سره مې ډیر وارې دا ویښتان صفا کړي دي" دلالت کوي. له دې وجهې په تا باندې یو طلاق رجعي واقع شوی دی.

﴿۲﴾ **طلاق مؤجز:** یو طلاق مؤجز چه په دوهم نمبر کښې په دغو الفاظو چه "زه تا ته طلاق درکوم" څخه څرګندیږي. او دوهم په دریم نمبر ۱۹۹۳ء کښې په دې الفاظو کښې چه "زه دا رشته ختموم او تا ته طلاق درکوم" څخه معلومیږي. د دې دوهم ډول دوه طلاقونه هم صریح

دي نو ځکه واقع شوی دی۔ لهذا که چېرته د صورت مسئوله مطابق تول واقعات درست وي او خاوند د ا الفاظ بعینه همد ا ډول ویلي وي کوم چه ستا په خط کښې تفصیلا ذکر دي نو بناء پر دې ستاسو خاوند د ښځې والي د ا رشته په طلاق مغلظه سره ختمه کړې ده۔ اوس ته د ده ښځه نه شې جوړېدلی اګر که د زامنو مور خو خامخائې لیکن له شرعي حلالې پرته ستاسو اوسیدل له ده سره ناجائز او حرام دي۔ او که چېرته یوه مولوي صاحب پرته له شرعي حلالې څخه تا ته د نکاح د تجدید ویلي وي نو د ا بالکل غلط دي او د هغه په قول باندې ستا لپاره عمل کول په هیڅ ډول جائز نه دی۔

قال الله تعالی: اَلطَّلَاقُ مَرَّتٰنِ فَاِمْسَاكٌۢ بِمَعْرُوْفٍ اَوْ تَسْرِیْحٌۢ بِاِحْسَانٍ. وَ لَا یَحِلُّ لَكُمْ اَنْ تَاْخُذُوْا........ فَاِنْ طَلَّقَهَا فَلَا تَحِلُّ لَهٗ مِنْۢ بَعْدُ حَتّٰی تَنْكِحَ زَوْجًا غَیْرَهٗ. (البقرة)

لما فی الهندیة: من قال لامرأته انْ دخلت الدار فانت طالق یتعلق الطلاق با لدخول. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص ۴۲۰، کتاب الطلاق)

## د "ستا ښځه دې طلاقه وي" په ځواب کښې د "هو" ویلو حکم

**سوال:** جناب مفتي صاحب! د یوه ملګري سره په یوې موضوع باندې زما خبرې اترې روانې وې هغه د خبرو په منځ کښې له ما څخه د یوې خبرې پوښتنه وکړه چه ستا ښځه دې په تا باندې په درېو طلاقونو طلاقه وي چه دروغ به نه وائې او ما ئې په ځواب کښې یو ائځې "هو" وویل او بیا مې هغه ته دروغ وویل۔ نو اوس پوښتنه دا ده چه آیا په دې صورت کښې زما ښځه په درېو طلاقونه طلاقه شوې ده او که نه؟ په تفصیل سره مې پوه کړی تر څو چه مې شك او شبه لرې شي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د پورته ذکر شوي عبارت څخه څرګندیږي چه سائل چه کله د خپل ملګري په خط کشیده الفاظو چه "هو" وویل نو سائل حالف جوړ شو یعنې هغه پخپلې ښځې باندې د درېو طلاقونو وقوع په دروغو ویلو باندې مشروط کړ او چه کله پخپلو خبرو اترو کښې دروغ ووایې نو په ښځې باندې ئې د شرط د موجودوالي له وجهې درې طلاقونه واقع کیږي او مطلقه مغلظه شي او اوس له شرعي حلالې پرته ورته نه شي حلالیدلی۔

و لو قال علیك عهد الله ان فعلت کذا فقال نعم فا لحالف المجیب. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۳، ص۱۵۲، کتاب الطلاق)

و فی الشامیة: و لا یمین علی المبتدی و ان نوی الیمین خانیة و فتح آه. ای الاسناده الحلف الی المخاطب فلا یمکن ان یکون الحالف غیره. (ج۳، ص۱۵۲)

و فی الدر المختار: قیل لهٗ ان کنت فعلت کذا فامرأتك طالق فقال نعم و قد کان فعل طلقت. و فی الاشباه القاعدة الحادیة عشر السؤال معاد فی الجواب قال انمرأة زید طالق او عبده حر او علیه المشی لبیت الله ان فعل کذا و قال زید نعم کانٰ حالفاً الی آخره. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۳، ص۱۵۳، کتاب الطلاق)



# بـــــاب تعلیق و تفویض الطـــلاق

## (د معلق او مفوض طـــــلاق احکام او مسئلې)

## طلاق له کوم کار سره د معلق کولو حکم

**سوال:** که چېرته یو سړی د اسې قسم وکړي چه زه که چېرته کور ته له تللو نه مخکښې مکې مکرمې ته لاړ نه شم نو په ما باندې دې ښځه طلاقه وي۔ او بیا مکې مکرمې ته له تللو نه مخکښې کور ته لاړ نو په دې عمل سره ئې په نکاح کښې کوم فرق راځي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په نوموړي صورت کښې کور ته تګ د مکې مکرمې تر تللو پورې موقوف کړی دی او قسم ئې کړی دی له دې وجهې نوموړی سړی چه له مکې مکرمې نه مخکښې کور ته لاړ شي نو په ښځې باندې ئې یو طلاق واقع کیږي۔ چونکه مکې مکرمې ته تلل یو ممکن کار دی نو ځکه د مالي وسائلو فقد ان په حنث باندې کوم اثر نه کوي۔

لما فی الهندیة: و ذا اضافه الی الشرط وقع عقیبه اتفاقاً. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۴۲۰، الفصل الثالث فی تعلیق الطلاق بکلمة و اذا و غیرها)

قال العلامة برهان الدین المرغینانیؒ: و اذا اضافه الٰی شرط وقع عقیب الشرط. (الهدایة ج۲، ص۳۸۵، باب الایمان فی الطلاق) و مثله فی بدائع الصنائع ج۳، ص۳۰، کتاب الایمان.

## د یو چا په قتلولو پورې د طلاق د معلق کولو حکم

**سوال:** یوه سړي قسم وکړ چه که چېرته مې ته قتل نه کړې نو په ما باندې دې ښځه طلاقه وي او وروسته بیا نوموړي له قتل څخه پرهیز وکړ نو آیا په دې صورت کښې ئې په ښځې باندې طلاق واقع کیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** طلاق د عدم قتل سره متعلق کول ممکن الوقوع دی نو له دې وجهې دا قسم پخپل ځای کښې منعقد دی۔ بیا هم په نوموړي سړي باندې علی الفور حنث لازم نه دی چه له وجهې ئې ښځه پرې طلاقه شي۔ البته که چېرته په د کوم سړي په قتلولو ئې چه قسم کړی دی که هغه پخپل مرګ مړ شي او یا قسم کوونکی له قتل څخه مخکښې مړ شي نو په د اسې حالت کښې ئې په ښځې باندې طلاق واقع کیږي۔ په ظاهره سره خو د طلاق د تعداد ذکر نشته نو ځکه یو طلاق واقع کیږي۔

قال العلامة الحصکفی رحمه الله: لو حلف لیفعلنه برّ بمرّة. و قال العلامة ابن عابدینؒ تحت هٰذا القول و اذا لم یفعل لا یحکم بوقوع الحنث حتٰی یقع الیأس عن الفعل و ذٰلك بموت الحالف او بفوت محل الفعل. (رد المحتار ج۳، ص۱۴۸، باب الیمین فی الضرب و القتل و غیر ذٰلك)

قال العلامة المرغینانیؒ: و ان حلف لیفعلن کذا ففعله مرّة واحدة برّ فی یمینه لان الملتزم فعل واحد غیر عین اذ المقام مقام الاثبات فبایّ فعل فعله و انما یحنث لوقوع الیاس عنه و ذٰلك بموته او بفوت محل الفعل. (الهدایة ج۲، ص۵۰۶، باب الیمین فی تقاضی الدراهم) و مثله فی الفتاوی الهندیة ج۲، ص۱۲۹، الباب الحادی عشر فی الیمین فی الضرب.

## د ځان د ساتنې په خاطر په طلاق باندې د دروغو قسم خوړل

**سوال:** یوه سړي د ځان د خلاصوالي لپاره په طلاق باندې په دروغو قسم وکړ او د اسې ئې وویل چه په طلاق باندې مې دې قسم وي چه زه رښتیا وایم په د اسې حال کښې چه په حقیقت کښې رښتینی نه دی نو آیا په دې سره طلاق واقع کیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د اسې الفاظ په عرف کښې د طلاق لپاره نه استعمالیږي نو ځکه په دې سره نه طلاق واقع کیږي او نه په دغو الفاظو سره په چا قسم اوړي۔

لما فی الهندیة: و فی الفتاوی لو قال سوگند خوردم بطلاق لیس بتطلیقة لان الناس لم یتعارفوه یمیناً با لطلاق. (الفتاوی الهندیة ج۲، ص۵۸، الباب الثانی فیما یکون یمیناً و ما لا یکون یمیناً، الفصل الاول فی تحلیف الظلمة و فیما ینوی الحالف غیر ما ینوی المستحلف)

قال العلامة قاضی خانؒ: و لو قال سوگند خوردم بطلاق که ان کار نه کنم لا یکون یمیناً. (الفتاوی الهندیة ج۲، ص۷، فصل فی الفاظ الیمین با لفارسیة) و مثله فی الفتاوی البزازیة علی هامش الهندیة ج٤، ص۲۶۷، کتاب الایمان، نوع الثانی فیما یکون یمینا.

## له نکـــــاح څخه مخکښې د معلق طلاق حکم

**سوال:** د یوه هلك والدین کوم کور ته هغه ته د واده د کولو په نیت د دوستۍ لپاره ورغلل لیکن د نجلۍ د خپلوانو د ناجائزو غوښتنو له وجهې هلك وویل چه که چېرته ما له دې نجلۍ سره نکاح وکړ نو دا دې په ما باندې طلاقه وي نو آیا له نکاح نه وروسته دا نجلۍ له نوموړي هلك سره په نکاح کښې پاتې کیدلی شي او که طلاق پرې واقع کیږي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په نوموړي صوت کښې ئې چونکه طلاق له نکاح سره معلق کړی دی نو ځکه له نکاح نه وروسته په نجلۍ باندې طلاق واقع کیږي لیکن چونکه په قسم کښې طلاق یو ځل ذکر دی له دې وجهې دوهم وار په نکاح کولو سره نجلۍ د هلك په نکاح کښې راتلی شي بیا هم که چېرته ایجاب او قبول دوه ځله یا درې ځلې شوی وي نو په اول ځل ایجاب سره نکاح کیږي طلاق واقع کیږي او په دوهم ځل او دریم ځل ایجاب او قبول سره نکاح بیرته منعقده کیږي۔

قال العلامة الحصکفیؒ: شرطه الملك او الاضافة الیه کان نکحتك فانت طالق. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص۵۳۷، باب التعلیق)



قال العلامة المرغینانیؒ: و اذا اضاف الطلاق الی النکاح وقع عقیب النکاح مثل ان یقول لامرأة ان تزوجتك فانت طالق او کل امرأة اتزوّجها فهی طالق. (الهدایة ج۲، ص۳۸۵، باب الایمان فی الطلاق) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۴۲۰، الفصل الثالث فی تعلیق الطلاق بکلمة ان و اذا و غیرها.

## له معـــــلق طلاق څخه د ځان ساتلو حیله

**سوال:** یوه سړي د یوه کار له کولو سره درې طلاقونه معلق کړي دي تر اوسه پورې د حنث موقع نه ده راغلې او کیدای شي چه یو وخت حنث واقع شي او ښځه مغلظه مطلقه وګرځي نو په د اسې حالت کښې د دې خطرې څخه د بچ کیدو لپاره نوموړي سړي ته څه کول په کار دي یعنې څه باید وکړي چه له دې خطر څخه بچ شي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د معلق طلاق په صورت کښې د شرط موجود والی د طلاق د وقوع لپاره یوه ضروري خبره ده۔ بیا هم له دې څخه د بچ کیدو په خاطر دا تدبیر غوره کیدلی شي چه نوموړی سړی دې خپلې ښځې ته طلاق بائن ورکړي او فارغه دې کړي۔ د عدت له تیریدو نه وروسته ئې چه دا ښځه له نکاح څخه ووځي نو دا سړی دې هغه کار وکړي کوم چه درې طلاقه ئې ور سره معلق کړي دي چونکه په دې وخت کښې ئې ښځه په نکاح کښې د نشت والي له وجهې طلاق مؤثر نه وي او د یو ځل په حانث کیدو باندې قسم پوره کیږي او د دوباره په کولو سره ئې حنث نه لازمیږي نو ځکه چه کله دوباره نکاح وکړي نو بیا د هغه کار په کولو سره حنث نه لازمیږي۔

قال ابن عابدینؒ: لو حلف لا یخرج امرأته الا باذنه فخرجت بعد الطلاق و انقضاء العدّة لم یحنث و بطلت الیمین با لبینونة حتٰی لو تزوجها ثانیاً ثم خرجت بلا اذن لم یحنث. (رد المحتار ج۲، ص٥٤٤، باب التعلیق، مطلب زوال الملك..... الخ)

قال العلامة الحصکفی رحمه اللّٰه: فحیلة من علق الثلاث بدخول الدار ان یطلقها واحدة ثم بعد العدّة تدخلها فتنحل الیمین فینکحها. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص٥٤٥، باب التعلیق، مطلب اختلاف الزوجین فی وجود الشرط) و مثله فی الهندیة ج۱، ص٤١٦، الباب الرابع فی الطلاق با لشرط، الفصل الاول فی الفاظ الشرط.

## د طلاق کُلمـــــا حقیقت

**سوال:** یوه سړي د ګواهانو په وړاندې اقرار وکړ چه ما طلاق کُلما ورکړی دی نو په دې سره کوم طلاق واقع کیږي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د طلاق کُلما حقیقت د شرط په حروفو سره د ذکر کیدو په صورت کښې خاص الفاظ دي او همداسې دا عنوان د معنون د وجود لپاره لازم نه دی د دې لپاره یوائې د عنوان په ذکر کولو سره ئې هیڅ حقیقت نه پاتې کیږي۔

قال العلامة ابن عابدینؒ: ناقلاً عن البزازیة انه قد اشتهر فی رساتیق شروط ان من قال جعلت کلما او علی

کلما انه طلاق ثلاث معلق و هذا باطل من هذیانات العوام. (ردّ المحتار حاشیة الدر المختار ج٢، ص٤٦٥، باب الصریح)

و قال ابن البزازؒ: و اشتهر ایضاً انهٗ اذا قال جعلت کلما او علی کلما انه طلاق ثلاث معلق و هذا ایضاً باطل و هذا من هذیانات العوام لا نهایة لها. (الفتاوی البزازیة علی هامش الهندیة ج٤، ص٣٤٧، نوع فی تعلیقه با لملك

## د کُلما د طلاق له وقوع څخه د بچ کیدو صورت

**سوال:** یوه سړي له یوه کار څخه د اجتناب او پرهیز لپاره ډیر په تاکید سره وویل چه که چېرته ما فلانی کار وکړ نو چه هر کله زه نکاح وکړم نو هغه ښځه دې په ما طلاقه وي د د اسې سړي له طلاق څخه د بچ کیدو په خاطر کوم تدبیر غوره کیدلی شي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د اسې طلاق د فقهاوو په اصطلاح کښې د "طلاق کُلما" په عنوان سره معنون دی چه په دې کښې نوموړی سړی که چېرته د متعلقه کار له کولو نه وروسته اصالتاً یا وکالتاً نکاح وکړي نو ښځه ئې پرې طلاقه کیږي ځکه چه د نکاح د وکیل د تصرفاتو نسبت هم د مؤکل خوا ته وي۔ بیا هم فقهاء کرامؒ له دې څخه د بچ کیدو لپاره یوه حیله تجویز کړې ده چه له وجهې ئې د هغه د ژوند د جوړیدو توقع کیدلی شي او هغه دا چه د اسې سړی دې خپل حالت د یوه د اسې عالم په وړاندې بیان کړي کوم چه د هغه په ضروریاتو باندې د پوهیدو په صورت کښې ورته د فضولي په حیثیت سره نکاح وکړي او نوموړی سړی دې د چا د توکیل او یا په ژبې باندې د ایجاب او قبول په ځای په عملي توګه اجازت ورکړي کوم چه نکاح پرې متصور کیږي۔

قال ابن عابدینؒ: و الحیلة فیه ما فی البحر ان یزوجه فضولی و یجیز با لفعل کسوق الواجب الیها. (ردّ المحتار ج٢، ص٥٣٧، باب التعلیق)

و فی الهندیة: و اذا قال کل امرأة اتزوجها فهی طالق فزوجه فضوله و اجازه با لفعل بان ساق المهر و نحوه لا تطلق. (الفتاوی الهندیة ج١، ص٤١٩، الفصل الثانی فی تعلیق الطلاق بکلمة کل و کلما) و مثله فی البزازیة علی هامش الهندیة ج٤، ص٢٥٤، نوعٌ فی تعلیقه با لملك.

## که چېرته کور ته راغلم نو ته به طلاقه وې

**سوال:** یوه سړي خپلې ښځې ته وویل چه که چېرته زه کور ته راغلم نو ته دې طلاقه وې، اوس هغه پخپله کور ته نه دی تللی لیکن بل سړي په زور سره کور ته بوتلو نو آیا په دې سره طلاق واقع کیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د نوموړي سړي له خوښې پرته هغه لره را نیول او جبراً ئې کور ته په بوتللو سره طلاق نه واقع کیږي۔

لما فی الهندیة: فان احتمله غیره فادخله بغیر امره لم یحنث سواء کان راضیاً بذلك بقلبه او ساخطاً و سواء کان قادراً علی الامتناع او لم یکن. (الفتاوی الهندیة ج٢، ص٦٨، الباب الثالث فی الیمین علی الدخول و السکنیٰ)



قال قاضی خانؒ: و لو حلف ان لا یدخل......... و ان احتمله انسان و ادخله فیها فان کان الحالف لا یقدر علی الامتناع لا یحنث فی قولهم و ان کان یقدر و لم یمتنع و هو راض بقلبه اختلفوا فیه و الصحیح انه لا یحنث. (فتاویٰ قاضی خان ج٢، ص٣١٨، فصل فی الدخول، کتاب الایمان) و مثله فی خلاصة الفتاویٰ ج٢، ص١٦٥، الفصل السابع عشر فی الیمین فی الدخول.

## د چا له کور څخه د منع کولو لپاره په طلاق باندې قسم خوړل

**سوال:** یوه سړي خپله ښځه د چا له کور څخه د منع کولو لپاره وویل چه که چېرته ته په دې وخت کښې د فلانې کور ته لاړې نو په ما باندې دې طلاقه وې۔ اوس که چېرته ښځه په هغه وخت کښې او یا له هغه وخت نه وروسته نوموړي کور ته لاړ شي نو طلاق واقع کیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** له صورت مسئوله څخه د ا معلومیږي چه د زوج خبره د هغه مجلس سره خاص ده که چېرته ئې ښځه له دغه مجلس څخه پورته شوه او بیا هغه کور ته لاړه نو طلاقه ده او که چېرته له دغه مجلس څخه وروسته لاړه نو بیا نه طلاقه کیږي۔

قال العلامة المرغینانیؒ: و لو ارادت المرأة الخروج فقال ان خرجت فانت طالق فجلست ثم خرجت لم یحنث و کذلك ان اراد ضرب عبده فقال له آخر ان ضربته فعبدی حر فترکه ثم ضربه و هذه تسمّی یمین فور تفرد ابو حنیفة باظهاره الخ. (الهدایة ج٢، ص٤٨٦، باب الیمین فی الخروج و الاتیان و الرکوب و غیر ذلك)

قال ابن نجیمؒ: امرأة تهیأت للخروج فحلف لا تخرج فاذا جلست ساعة ثم خرجت لا یحنث لان قصده ان یمنعها من الخروج الذی تهیأت لهٗ فکانه قال ان خرجت ای الساعة و منه من اراد ان یضرب عبده فحلف علیه لا یضربه فاذا ترکه ساعة بحیث یذهب فوره ذلك ثم ضربه لا یحنث. (البحر الرائق شرح کنز الدقائق ج٤، ص٣١٥، باب الیمین فی الدخول و الخروج والسکنی و الاتیان و غیر ذلك) و مثله فی خلاصة الفتاویٰ ج٢، ص١٧٠، کتاب الایمان، الفصل الثامن عشر فی الخروج و الاتیان و الذهاب)

## له طـــلاق سره سمدستي د انشاء الله ویلو حکم

**سوال:** که چېرته یو سړی خپلې ښځې ته طلاق ورکړي او ورسره متصلاً دا ووایي چه انشاء الله تعالیٰ نو آیا د اسې طلاق واقع کیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** کله چه د طلاق له ورکولو نه وروسته متصلاً انشاء الله ووایي نو طلاق نه واقع کیږي۔

قال العلامة برهان الدین المرغینانیؒ: و اذا قال الرجل لامرأته انت طالق ان شاء الله متصلاً لم یقع الطلاق. (الهدایة علی صدر فتح القدیر ج٣، ص٤٦٠، کتاب الایمان فی الطلاق)

قال العلامة التمرتاشیؒ: قال لها انت طالق ان شاء الله تعالیٰ متصلاً مسموعاً لا یقع. (تنویر الابصار علی هامش ردّ المحتار ج٢، ص٥٥٢، باب التعلیق) و مثله فی کنز الدقائق ج١، ص١٢٣، باب التعلیق.

## که چیرته مې فلان کار وکړ نو طلاقي به وم

**سوال:** یوه سړي په قسم کولو سره د اسې وویل چه "که مې چیرته فلان کار وکړ نو زه به طلاقي وم" نو آیا د هغه کار په کولو سره طلاق واقع کیږي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** طلاقي په عرف کښې هغه سړي ته ویل کیږي چه ښځې ته ئې طلاق ورکړی وي نو ځکه د نوموړي الفاظو د ویلو په باره کښې مستقله جزئیه پیدا نه شوه لیکن له عامو قواعدو څخه دا انداز ه لګیږي چه په حانث کیدو سره یو طلاق واقع کیږي۔

لما قال العلامة ابن عابدينؒ: و قد تعورف فى عرفنا فى الحلف الطلاق يلزمنى لا افعل كذا يريد ان فعلته لزم الطلاق و وقع فيجب ان يجرى عليهم لانه صار بمنزلة قوله ان فعلت فانت طالق. و كذا تعارف اهل الارياف الحلف بقوله على الطلاق لا افعل الخ. (رد المحتار ج۲، ص۴٦۹، باب الصريح)

و قال العلامة ابن نجيم المصرىؒ: و فى فتح القدير و قد تعورف فى عرفنان فى الحلف الطلاق يلزمنى لا افعل كذا يريد ان فعلته لزم الطلاق و وقع فوجب ان يجرى عليهم..... الخ. (البحر الرائق شرح كنز الدقائق ج۳، ص۲۵۲، باب الطلاق) و مثله فى فتح القدير ج۳، ص ٤٦۰، كتاب الايمان فى الطلاق.

## د طلاق لپاره بل چا ته د حق ورکولو حکم

**سوال:** یوه سړي خپلې ښځې ته د طلاق ورکولو حق خپل والد ته د اسې ورکړی دی چه زه فلان بن فلان د هوش او حواس په حالت کښې په رضا او رغبت سره پرته له کوم جبر او اکراه څخه خپلې ښځې ته د طلاق ورکولو حق خپل والد ته سپارم او په دې باندې د هغه دستخط او ګواه هم موجود دی نو آیا له دې نه وروسته والد د خپل زوی ښځې ته طلاق ورکولی شي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په طلاق کښې مطلقا توکیل صحیح دی له دې وجهې که چیرته زوی خپل پلار ته د طلاق ورکولو اختیارات ورکړی وي نو والد چه هر وخت وغواړي له دې اختیاراتو څخه په استفادې سره د خپل زوی ښځې ته طلاق ورکولی شي ۔ بیا هم زوی چه کله وغواړي له دې توکیل څخه رجوع کولی شي او له هغه نه وروسته بیا والد ته د طلاق ورکولو حق نه پاتې کیږي۔

قال العلامة الحصكفىؒ: و اما فى طلقى ضرتك او قوله لاجنبى طلق امرأتى فيصح رجوعه منه و لم يقدى با لمجلس لانه توكيل محض. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج۳، ص۳۱۷، باب تفويض الطلاق)

قال العلامة طاهر بن عبد الرشيد الانصارىؒ: ما يدل على جواز الوكالة فى الطلاق و صحته ما نصه. و فى المحيط سئل شمس الاسلام عمن قال لغيره طلق امرأتك فقال ذٰلك الغير الحكم لك فقال ان كان الحكم لى طلقتها...... الخ. (خلاصة الفتاوٰى ج۲، ص۸۹، كتاب الطلاق، جنس آخر فى التوكيل...... الخ.



## ښځې ته د طلاق د حق ورکولو حکم

**سوال:** که چیرته یو سړی خپلې ښځې ته د طلاق حق ور وسپاري او ووایي چه "طلقي نفسكِ" نو آیا په دې اختیار سره ښځه درې طلاقه د ځان لپاره استعمالولی شي او که نه او که ئې استعمال کړي نو آیا درې طلاقونه واقع کیږي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په صورت مسئوله کښې چونکه د خاوند له خوا ښځه ښځې ته کلي اختیار حاصل دی له دې وجهې که چیرته ښځه وغواړي چه درې طلاقونه استعمال کړي نو استعمالولی ئې شي خو په دې شرط چه خاوند ئې د دریو نیت کړی وي او که نه وي نو ښځه بیا د یوه طلاق حق لري۔

لما قال العلامة الحصكفىؒ: قال لها طلقى نفسك هٰذا تفويض با لصريح و لا يحتاج الى النية و الواقع به رجعى و تصح فيه نية الثلاث. (الدر المختار على هامش رد المحتار ج۲، ص۵۱۵، باب تفويض الطلاق)

و فى الهندية: قال لها طلقى نفسك سواء قال لها ان شئت اولا فلها ان تطلق نفسها. (الفتاوى الهندية ج۱، ص۴۰۲، الفصل الاول فى المشيئه)

## باب تفریق مفقـــــود الخبر و نحوه

## (د مفقود الخبر او د اســـې نورو د تفریق احکام او مسئلې)

### د مفقود الخبر د ښځې لپاره د دوهم نکـــــاح د کولو حکم

**سوال:** د یوې بالغې نجلۍ نکاح له یوه هلك سره وشو او تر اوسه پورې سره یو ځای شوي نه وو چه خاوند ئې ورك شو او اوس ئې اته کاله پوره کیږي او د ذرائع ابلاغ او پلټنې په تولو وسائلو سره ئې تپ و تلاش وشو لیکن د هغه د مرګ او ژوند پته و نه لګیده. اوس نجلۍ ځوانه ناسته ده او سرپرست ئې هم نشته نو آیا په شریعت کښې د هغې لپاره د نکاح د فسخ کولو کوم صورت شته تر څو چه په بل ځای کښې نکاح وکړي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د مفقود الخبر د ښځې په باره کښې د حنفي فقهې په جزئیاتو باندې عمل کول مشکل دي ځکه چه تر ډیره وخته پورې د ښځې لپاره د خاوند انتظار د ګڼو معاشي او اخلاقي مسائلو سبب جوړیدلی شي نو ځکه فقهاء کرامو د امام مالك مذهب ته په نظر کولو سره د آسانتیا څه صورت پیدا کړی دی ځکه چه د ضرورت په وخت کښې د نورو فقهاوو په مذهب باندې عمل کول مرخص وي.

قال العلامة ابن عابدينؒ: و قد كان بعض اصحابنا يفتون بقول مالكؒ فى هٰذه المسئلة للضرورة ثم رأيت ما بحثته بعينهٖ. ذكره محشى مسكين عن السيد الحموىؒ و سيأتى نظير هٰذه المسئلة فى زوجة المفقود حيث قيل انه يفتى بقول مالكؒ انها تعتد عدة الوفات بعد مضى اربع سنين. (رد المحتار على الدر المختار ج٣، ص٥٠٩، باب العدّة)

و قال فى موضع آخر: و ذكر الفقيه ابو الليث فى تأسيس النظائر انهٗ اذا لم يوجد فى مذهب الامام قول فى مسئلة يرجع الى مذهب مالكؒ لانه اقرب المذاهب اليه. (رد المحتار ج٢، ص٥٨٤)

و قال فى مذهب مالك رحمه اللّٰه زوجة المفقود و قال فى الدر المنتقى باولى لقول القهستانى لو افتى به فى موضع الضرورة لا بأس به على ما اظن (الى ان قال) و قد قال فى البزازية الفتوٰى فى زماننا على قول مالكؒ. (رد المحتار ج٤، ص٢٩٥، كتاب المفقود، مطلب فى الافتاء بمذهب مالكؒ فى زوجة المفقود)

نو د دې لپاره په د اسې صورت کښې د امام مالك په مذهب باندې عمل کول جائز دي. چونکه د احنافو فقهاووؒ په دې باندې د عمل کولو ګنجائش پیدا کړی دی نو ځکه دا به هم د حنفي فقهې حکم ګڼل کیږي.

پس چه د کومې ښځې د خاوند پته معلومه نه وي او څلور کاله ئې د ورکیدو وتلي وي او د هغه د ژوند او مرګ په باره کښې معلومات نه وي نو که چېرته ښځه د خاوند په انتظار کښیني نو یو خو هغې ته د نفقې مسئله جوړیږي او که چېرته د مصارفو مسئله له کومې خوا څخه حل شي نو بیا بغیر له خاونده په کښیناستلو کښې د بې لارېو د ښکار کیدو خطره وي نو



په دې حالت کښې ځان په یوه امتحان کښې د اچولو په ځای د خلاصون صورت لټول ډیر مناسب دي تر څو چه ښځه پخپله خوښه چېرته په بل ځای کښې نکاح وکړی شي.

د اسې ښځې ته علماء کرام د اسې مشوره ورکوي چه هغوی دې د څلورو کلونو له انتظاره وروسته خپله معامله یو مسلمان حاکم عدالت ته وړاندې کړي او عدالت دې تر یو کاله پورې په ممکنو ذرائعو سره د هغې د خاوند پلټنه وکړي. که چېرته ئې خاوند پیدا شو او یا د هغه مرګ قطعي او یقیني شي نو فبها و نعمت او که نه نو د یو کال له تحقیق نه وروسته دې نوموړې محکمه دې ښځې ته د نکاح د فسخ سند ورکړي چه د ښځې په حق کښې طلاق بائن ګڼل کیږي چه له مخې ئې دا ښځه د عدت له تیرولو نه وروسته بل ځای نکاح وکړي. په دې حالت کښې ئې که چېرته خاوند راغی نو د محکمې فیصله دې د هغې د خاوند په راتلو سره متأثره نه شي او ښځه دې د نوي خاوند سره پاتې شي.

حضرت مولانا اشرف علي تهانوي رحمه الله د دې مسئلې په باره کښې د اسې رڼا اچولې ده:

"مفقود الخبر ته د ائمهٔ مجتهدینو په اتفاق سره د خپل مال په باره کښې تر هغه وخته پورې ژوندی تسلیم کړی شوی دی چه تر څو پورې د هغه هم عمره خلك ژوندي وي. په کوم وخت کښې چه په کلي کښې د هغه همزولي خلك ختم شي په هغه وخت کښې د هغه د مرګ حکم صادریږي یعنې قاضي به د هغه د مرګ حکم ورکوي. او د هغه د میراث او د اسې نورو د تقسیم حکم دې ورکوي. په دې باندې د ائمهٔ ثلاثه ووؒ یعنې امام اعظم ابو حنیفه، امام مالك او امام شافعي رحمهم الله اجمعین اتفاق دی. کما هو مصرح في کتبهم او امام اعظم او امام شافعي رحمهما الله او ډیر نور مجتهدینؒ دا حکم د مفقود الخبر د ښځې په اړه هم صادر کړل چه تر څو پورې د مفقود الخبر همزولي خلك ختم شوي نه وي تر هغه وخته پورې دې هغه ژوندی وګڼل شي د قاعدې مطابق د هغه ښځې ته په بل ځای کښې نکاح کول جائز نه دي. البته په ځینو صورتونو کښې د حنفیه ووؒ په نزد د مفقود الخبر ښځې ته د هغه د همزولو له ختم څخه د هغه د هلاکت او مرګ غالب ګمان موجود وي لکه څنګه چه په هغه کښې د مرګ غالب ګومان وي او یا ئې په سمندر کښې سفر کړی وي او ساحل ته ئې د رسیدو معلومات نه وي شوی نو په دغو صورتونو کښې به دومره انتظار کیږي چه په هغه کښې حاکم ته د مفقود د فوت کیدو غلبهٔ ظن حاصل شي او بیا د مرګ حکم ورکوي او د مرګ د حکم له ورکولو نه وروسته دا ښځه به د وفات عدت تیروي او نکاح به ورته روا کیږي.

كما فى الشامية تحت قول الدر. (و اختار الزيعلى تفويضه الى الامام) قال فى الفتح فاى وقت رأى المصلحة حكم بموته. (الى ان قال) و مقتضاه انه يجتهد و يحكم با لقرائن الظاهرة الدالة على موته و على هٰذا يبتنى ما فى الجامع الفتاوٰى حيث قال و اذا فقد فى المهلكة فموته غالب فيحكم به كما اذا فقد فى وقت الملاقات مع العدو او قطاع الطريق

او سافر على المرض الغالب هلاكه او كان سفره فى البحر و ما اشبه ذٰلك حكم بموته لانه الغالب فى هٰذه الحالات و ان كان احتمالين و احتمال. موته ناشىء عن دليل لا احتمال حياته لان هٰذا الاحتمال كاحتمال ما اذا بلغ المفقود مقدار ما لا يعيش على حسب ما اختلفوا فى مقداره نقل عن الغنية انتهى ما فى جامع الفتاوٰى و افتى به بعض مشائخنا و قال انه افتى به قاضى زاده صاحب بحر الفتاوٰى لكن لا يخفى انه لا بد من مضى مدة طويلة حتٰى يغلب على الظنّ موته لا بمجرد فقده عند ملاقات العدو او سفر البحر و نحوه. (رد المحتار ج۳، ص۳۶۳، مطلب فى الافتاء بمذهب مالك فى زوجة المفقود)

له دې صورتونو څخه علاوه په فقه حنفي کښې د مفقود الخبر د ښځې لپاره هيڅ ګنجائش نشته چه د مفقود الخبر د همزولو خلکو په ختم کيدو باندې قاضي د هغه د مرګ حکم وکړي او ښځه ئې د وفات عدت تير کړي او نکاح وکړي۔

ليکن امام مالك له څو شرائطو سره (چه تفصيل به ئې راشي) په هر حال کښې (که هلاکت مظنوني وي او که نه) د مفقود ښځې ته د حاکم له حکم نه وروسته څلور کاله نيتمه تاکلې ده او د عدت له تيرولو نه وروسته ئې ورته د دوهمې نکاح اجازه ورکړې ده او امام احمدؒ هم د مفقود په ځينو صورتونو کښې د څلورو کلونو وخت غوره کړې دی. کما فى المغني ج۹، ص۱۴۳۔

او هر څومره چه حنفي مذهب د دليل له مخې ډير قوي او په انتهايي احتياط باندې مبني دی ليکن له حنفي فقهاوو څخه ځينو متاخرينو ئې د وخت نزاکت او فتنو ته په نظر کولو سره په دې مسئله کښې د امام مالك صاحب په مذهب باندې فتوٰی ورکړې ده لکه څرنګه چه علامه شامي او منتقي رحمهما الله د قهستانيؒ (چه د څوارلسمې پيړۍ هجري له حنفي مشائخو څخه ګڼل کيږي) قول را نقل کړی دی چه "لو افتى به فى وقت الضرورة جازه (ج۳، ص۳۶۲، مطلب فى قضاء القاضى على ثلثة اقسام) او له يوې زمانې څخه د اهل هند او له هند نه د باندې ارباب فتواوو تقريبا ټولو په دې قول باندې فتوٰی ورکړې ده او دا مسئله په اوس وخت کښې په حنفي فقهې کښې داخله شوې ده ليکن تر څو پورې چه ښځه صبر کولی شي تر هغه وخته پورې په اصل مذهب د حنفي باندې عمل کول لازم دي۔ هو! په وخت د سخت ضرورت کښې مثلا چه د خرڅې انتظام ئې نه شي کيدلی او يا له وجهې د ويرې د معصيت څخه کښيناستل ورته مناسب نه وي نو په دې وخت کښې د مالکيه وو په مذهب باندې په عمل کولو کښې هيڅ مضائقه نشته او د داسې مواقعو لپاره د افتوٰی مرتبه شوې ده۔

ليکن په يوه مسئله کښې د بل امام د مذهب په غوره کولو کښې د هغه لپاره ضروري ده چه په هغې مسئلې کښې د هغه امام په نزد کوم شرطونه وي د هغو د ټولو رعايت به کوي۔

لما فى الدر المختار من ان الحكم الملفق باطل با لاجماع قال الشامىؒ تحته مثاله متوضىء سال من بدنه دم و لمس امرأة ثم صلى فان صحت هٰذه الصلوٰة ملفقة من مذهب الشافعىؒ و الحنفىؒ و التلفيق باطل فصحته منتفية آه. و ايضاً قال الشامىؒ عن الشرنبلالىؒ تحت قول الدر و ان الرجوع عن التقليد بعد العمل باطل. اتفاقاً و انه يجوز له العمل بما يخالف ما عمله على مذهبه مقلداً فيه غير امامه مستجمعا شروطه. (ج۱، ص۵۵، مطلب لا يجوز العمل با لضعيف)



لهذا د مفقود الخبر په مسئله کښې د مالکي مذهب د ټولو شرائطو معلومول ضروري شو او سامي او د اسې نورو احنافو علماوو چه د دې متعلق د امام مالك صاحب مذهب نقل کړی دی هغه محض اجمال وو او د مسئلې په پوره توګه تنقيح او د هغې ټول قيود او شرائط د مالکي علماوو څخه معلومولی شو نو ځکه د دې ضرورت په احساسولو سره د مالکي مذهب د ارباب فتواوو په خدمت کښې مدينې طيبې (زادها الله شرفا و نوراً) ته مفصله استفتاء وليږل شوه او د هغه ځای ګنو محققينو علماوو انتهايي له تفصيل او توضيح او د شرح او بسط سره ځوابونه ليکلي دي ليکن بيا هم په هغې کښې څه شبهې پاتې وې او ځينې نوې پوښتنې هم پيدا شوې نو ځکه مکرراً هغو حضراتو ته تکليف ورکړی شو او له مکررو ځوابونو نه وروسته هم د څه نورو سوالونو ضرورت پيدا شو نو دريم ځل مو هم د هغوی په خدمت کښې سوالونه وليږل او ځوابونه مو حاصل کړل۔ دا ټول مراسلات د مدرسۀ دار العلوم تهانه بهون په کتب خانه کښې محفوظ دي او د هغو فتواوو مجموعه په آخر د رسالې کښې ملحق شوې ده۔ د هغو فتواوو له کومو عبارتونو څخه چه زمونږ د سوالونو ځوابونه فهميږي په هغو ټولو باندې په الفاظو سره مو نمبر شمار يعنې د شمير ګڼه اچولې ده و ځوابونه ئې په لاندې ډول دي۔ د هغو عبارتونو ضرورت نشته او اهل علم د دغو نمبرونو په حوالې سره په آخر د رسالې کښې د استدلال عبارت پخپله مطالعه کولی شي۔ اوس سوالونه او ځوابونه په پښتو ژبه دلته درج کيږي۔

## سوالونــــــــه

څه فرمايي د مالکي مذهب علماء کرام د لانديني مسائلو په باره کښې چه:

﴿اول﴾ کوم سړی چه مفقود الخبر (ورك شوی وي او پته ئې معلومه نه وي) او د تحقيق او تفتيش سره سره ئې حال معلوم نه شي چه ژوندی دی او که مړ شوی دی آيا د هغه ښځه دا حق لري چه په کومه طريقه ځان له زوجيت څخه وباسي او بل نکاح وکړي او که چېرته دا حق ولري نو د هغې لپاره به څومره وخت د انتظار د کولو ضرورت وي او که به له مهلت پرته هغې ته اختيار ورکول کيږي؟

﴿دويم﴾ او که چېرته مهلت ورکول کيږي نو ابتداء به ئې له کوم وخت څخه وي، د مرافعې او مخاصمې له وخت څخه او که د ورك کيدو له وخت څخه او که د حاکم له حکم نه وروسته؟

﴿دريم﴾ آيا د ورك شوي ښځه د نکاح په فسخ کښې خود مختاره ده او که د قاضي قضاء ورته شرط دی او د فسخ صورت به څه وي؟

﴿څلورم﴾ که چېرته د قاضي قضاء شرط وي نو آيا په قاضي باندې هم دا خبره لازمه ده چه اول د مفقود پخپله تفتيش (پلټنه) وکړي او کله چه مايوس شي نو په هغه وخت کښې ئې ښځې ته مهلت وغيره ورکوي او که د ښځې او د هغې د اولياوو تلاش او پلټنه کافي ده؟

﴿پنځم﴾ په کومو هیوادونو کښې چه شرعي قاضي موجود نه وي لکه هندوستان او د اسې نور نو هلته به ئې څه صورت وي؟

﴿شپږم﴾ د مفقود حکم په دار الحرب او دار الاسلام کښې یو شی دی او که مختلف؟ او که چېرته مختلف وي نو بیا د هندوستان غوندې ملکونه چه په هغوی کښې په کروړونو مسلمانان اوسیږي دار الاسلام ګڼل کیږي او که دار الحرب؟ (اعینونا اعانکم الله تعالی)

## ځوابـــــونه

﴿د لومړي سوال ځواب﴾ د مفقود د ښځې لپاره د مالکیه وو په نزد د مفقود له زوجیت څخه د بیلیدو (جدا کیدو) په دار الاسلام کښې دا صورت دی چه ښځه به د قاضي په محکمې کښې مرافعه وکړي او د شرعي شهادت سره ئې ثابته کړي چه زما نکاح له فلاني سړي سره شوې ده (که چېرته د نکاح عیني ګواه موجود نه وي نو په دې معامله کښې شهادت بالتسامع هم کافي ده یعنې د عام شهرت په بناء بندې هم شهادت ورکول کیدلی شي.

کما فی المنتقی للباجی المالکی ج۵، ص۲۰۳، کتاب الاقضیة: (فرع) و اما النکاح ففی العتبة عن سحنون قال جل اصحابنا یقولون فی النکاح اذا استنشر خبره فی الجیران ان فلاناً تزوج فلانة و سمع الزفاف فله ان یشهد ان فلانة زوجة فلان الخ.

او له دې نه وروسته دې د شاهدانو په ذریعه د هغه مفقود والی ثابت کړي او بیا به قاضي پخپله د نوموړي مفقود پلټنه او لټون کوي او کله چه له معلوماتو څخه مایوس شي نو ښځې ته به څلور کاله نور هم د انتظار حکم کوي. که چېرته بیا هم په نوموړي څلورو کلونو کښې د ننه د مفقود پته معلومه نه شي نو مفقود به د دغو څلورو کلونو د مودې په ختم کیدو باندې مړ ګڼل کیږي او همدارنګه د څلورو کلونو د ختمیدو نه وروسته به څلور میاشتې او لس ورځې د وفات عدت تیروي او بیا به ئې ښځې ته په بل ځای کښې د نکاح د کولو اختیار وي. او اوس د څلورو کلونو د وخت له تیریدو نه وروسته بیا محکمې ته وړاندې کیږي او د وفات د عدت لپاره له قاضي څخه د حکم حاصلول د مالکیه وو په نزد ضروري نه دی بلکه د قاضي قضا یواځې په اول ځل د تاجیل په وخت کښې ضروري دی.

کمـــا صرح بذلك فی شرح الدرر ج۱، ص۴۰۰: حیث قـــال الخلیل فیؤجل الحر اربع سنین (الی قوله) ثم اعتدت عدة الوفاة و سقطت بها النفقة و لا یحتاج فیهـــا الاذن و قال الدردیر تحته لاذن من الحاکم لان اذنه حصل بضرب الاجـــل اولاً آه. و یأتی فی الروایة السابعة من فتوی العلامة محمـــد طیب بن اسحٰق مفتی المالکیة بالمدینة المنورة.

لیکن احتیاط په دې کښې دی چه کوم څلور کلونه قاضي مقرر کړي دي چه کله هغه ختم شي نو دوباره به ښځه محکمې ته ځي او له قاضي څخه به حکم بالموت حاصل کړي تر څو



چه د حنفي مذهب حتی الوسع (۱-) پورې رعایت وشي. لیکن په کوم ځای کښې چه قضاء او د اسې نورو ته دوباره رجوع مشکل وي نو هلته پرته له دوهمې مرافعې څخه په عمل کولو کښې مضائقه نشته.

دا ذکر شوی حکم خو په دار الاسلام کښې وو او په دار الحرب کښې د مفقود د ښځې د جمهورو مالکیه وو په نزد هغه حکم دی کوم چه د حنفیه وو دی یعنې تر څو پورې چه د هغه همزولي ژوندي وي تر هغه وخته پورې ئې د ښځې لپاره د هغه له نکاح څخه د جدا کیدو او د بل نکاح د کولو هیڅ صورت نشته.

کما فی الروایة الثالثة من فتوی العلامة سعید بن صدیق مفتی المالکیة بالمدینة الطاهرة زادها الله تعالی شرفا و اجلالاً.

او ځینې حضرات د هغوی وخت د طبعي عمر له لحاظه متعین کړی هم دی چه په دې کښې مختلف اقوال دي. د ځینو په نزد نوي کاله، د ځینو په نزد پنځه اویا کاله او د ځینو په نزد اویا کاله او د اسې نور دي.

و لکن الاولی ان یفوض الی رأی اهل الخبرة و اهل العلم بحاله من صحته و سقمه و قوته و ضعفه.

لیکن اشهب (کوم چه د امام مالك رحمه الله له ممتازو شاګردانو څخه د او په مالکي فقهاوو کښې لوی او اوچت مقام لري) په دار الحرب کښې هم د مفقود الخبر د ښځې لپاره هغه حکم متعین کړی دی کوم چه په دار الاسلام کښې دی.

کما ذکره ابن رشد فی مقدماته (مدونة ج۲، ص۱۵۷) حیث قال و اما المفقود فی بلادل الحرب فحکمه حکم الاسیر لا تتزوج امرأته و لا تقسم ماله حتی یعلم موته او یأتی علیه من الزمان ما لا یحیی الی مثله فی قول اصحابنا کلهم حاشا اشهب فانه حکم له بحکم المفقود فی المال و الزوجة جمیعاً آه.

﴿د دوهم سوال ځواب﴾ حاکم چه کوم څلور کاله د انتظار لپاره مقرروي ابتداء به ئې له هغه وخت څخه کیږي چه حاکم پخپله هم تلاش او تفتیش وکړي او له معلوماتو څخه ئې مایوس

---

۱- ځکه د حنفیه وو په نزد د مفقود د ټولو همزولو په ختم کیدو باندې حکم بالموت حاصلول شرط دی کمـــا فی شرح الدر عن القنیة انه انما یحکم بموته بقضاء لانه امر محتمل فما لم ینضم الیه القضاء لا یکون حجة آه او د قواعدو او احتیاط لـــــه مقتضی څخه پرته د حضرت عمر رضی الله عنه څخه هم همدغه مروي ده چه د ښځې په دوباره درخواست باندې ئې د مفقود د مرګ حکـــــم ورکړی وو او د وفات د عدت د تیرولو حکم ئې ورته کړی وو او د مفقود په مسئله کښې د مالکیه وو د مذهب اصل د حضرت عمر رضی الله عنه فیصله ده. بیا هـــــم نه ده معلومه چه په دې جزء کښې خلاف ولې کوي؟ همدارنګه عنین ته هم د قاضي له خوا څخه د ټول کال د مهلت د ورکولو سره سره هم د عنین ښځه د همدې کـــال په تیریدو باندې دوباره درخواست ورکوي او په دې کښې لـــــه حنفیه وو سره مالکیة هم متفق دي. بیا معــــلومه نه ده چه هغوی په عنین او مفقود کښـــــې څه فرق معـــلوم کړی دی؟ و الله اعلم.

شي اګر که د قاضي محکمې ته له تلو څخه او د قاضي له پلټنې څخه مخکښې هر څومره وخت تیر شوی هم وي د هغه به هیڅ اعتبار نه وي۔
کما فی اول الفتوٰی من العلامة سعید بن صدیق المالکی و یؤیده باوضح وجه ما فی الروایة العشرین من العلامة الموصوف.

﴿د دریم سوال ځواب﴾ د مفقود ښځه په هیڅ صورت کښې هم د هغه له نکاح څخه په وتلو کښې خپلواکه نه ده بلکه په هر حال کښې به د قاضي قضاء ورته شرط وي۔ کما هو مصرح فی الروایة العشرین من الامام مالك رحمه اللّٰه.

او د مرافعې او فسخ صورت د اول سوال په ځواب کښې تیر شو۔

﴿د څلورم سوال ځواب﴾ هو! په قاضي باندې هم ضروري ده چه یواځې د ښځې او د هغې د خپلوانو په تفتیش او پلټنې باندې اکتفاء و نه کړي بلکه پخپله قاضي به هم پلټنه کوي او د پلټنې صورت ئې دا دی چه قاضي او حاکم ته چه د مفقود کوم ځای ته د تللو غالب ګمان وي هلته دې سړی ولیږي۔

کما فی شرح الدردیر ص۳۹۹ من حین العجز عن خبره با لبحث عنه فی الاماکن التی یظن ذهابه الیها من البلدان بان یرسل الحاکم رسولاً بکتاب الحاکم تلك الاماکن مشتمل علی صفة الرجل و حرفته و نسبه لیفتش عنه فیها آه.

او چېرته ئې چه د تللو غالب ګمان نه وي یواځې احتمال وي نو هلته که چېرته خط کافي وګڼي نو خطونه دې ور ولیږي او تحقیق دې وکړي او که چېرته ئې په اخبار کښې د اعلان په خپرولو سره د پیدا کیدو امید وي نو دا اې دې هم وکړي۔ الغرض په تفتیش او پلټنې کښې دې پوره کوشش او بلیغ جهد وکړي کما لا یخفٰی۔ او کله چه د پلټنې نه وروسته ئې له پیدا کیدو څخه مایوس شي نو د همدې وخت په سر کښې دې په ذکر شوې طریقې باندې دې د څلورو نورو کلونو د انتظار حکم ورکړي۔
کما فی الروایة العشرین من فتوی العلامة سعید بن صدیق مفتی المالکیة با لمدینة المنورة زادها اللّٰه شرفاً.

او د پلټنې د مصارفو په باره کښې د مالکي فقهاوو تر منځ اختلاف دی ځینو ویلي دي چه دا خرڅه په ښځې باندې ده او ځینو ویلي دي چه د بیت المال په ذمه ده او د ځینو په نزد د دې دا تفصیل دی چه که چېرته له ښځې سره مال وي (و هٰذا القول الثالث اعدل الاقاویل عندنا. و اللّٰه تعالی اعلم ۱۲ منه) نو د تفتیش او پلټنې مصارف د هغې په ذمه دي کما فی الروایة الخامس عشر من فتوی العلامة الفا هاشم (افسوس چه نوموړی علامه د دې فتوې له خپرونې څخه لږ مخکښې رحلت وفرمایه۔ اِنَّا لِلّٰهِ وَ اِنَّا اِلَیْهِ رٰجِعُوْن) او چېرته چه بیت المال نه وي لکه هندوستان او د اسې نور نو په هغو ځایونو کښې که چېرته حکومت خرڅه برداشت کړي نو بهتره ده او که نه نو له مسلمانانو څخه دې چنده وکړي۔

﴿د پنځم سوال ځواب﴾ په کومو ښارونو کښې چه شرعي قاضیان موجود نه وي لکه له اسلامي هیوادونو برسیره چه د هندوستان د ټولو ښارونو دا حال دی نو که چېرته د هغو



ملکونو حکام د حکومت له خوا څخه د دې ډول معاملاتو د تصفیه کولو اختیار ولري نو که چېرته هغوی مسلمانان وي او فیصله د شریعت مطابق وکړي نو دا سې فیصله د قاضي د قضاء قائم مقام ګرځي لکه د دویم جزء په مقدمه کښې چه مفصل تیر شول او که چېرته مسلمان حاکم موجود نه وي او یا له محکمې څخه د شریعت مطابق فیصله نه کیدله نو بیا دې د مالکي مذهب موافق د دیندارو مسلمانانو یوه ټولی دې فیصل وټاکي او د مذکور بیان مطابق دې تحقیق وکړي او له پوره تحقیق نه وروسته دې فیصله وکړي نو دا فیصله به هم د قاضي د قضا په حکم کښې راځي۔ لیکن د دریم ګړو له هغو شرائطو سره موافق کیدل ضروري دي چه په مقدمې کښې تیر شول هلته ئې وګوری۔

**د دې ځواب تتمه:** که چېرته مفقود د اسې ځای ته لاړ شي چه هلته شرعي قاضي او یا مسلمان حاکم موجود وي او هغه د هغو په نزد مقدمه دائره کړي نو د هغه فیصله هم د مفقود د ښځې لپاره کافي ده۔ فانها اذا دخلت فی بلد القاضی دخلت تحت ولایته و اما المفقود فا لولایة علیه لیس(ے) بشرط کما لا یخفٰی.

لیکن که چېرته د مفقود او یا د عنین ښځه یواځې د یوه قاضي علاقې ته لاړه شي نو د قاضي فیصله به معتبره نه وي بلکه دا ضروري ده چه د مفقود او د عنین ښځې دواړه به د هم هغې علاقې اوسیدونکي وي۔

و هٰذا فی رد المحتار ج۲، ص۵۱۵، باب الولی، مطلب لا یصح تولید الصغیر شیخا علی الصغیرات ص۳۱٤، المجلد الثانی، مطبع دار احیاء التراث العربی: تحت قول الدر صغیرة زوجت نفسها و لا ولی و لا حاکم ثمة توقف و نفذ باجازتها بعد بلوغها لان له مجیزاً و هو السلطان. قوله و لا حاکم ثمة ای فی موضع العقد قوله توقف هٰذا مبنی علی کفایة ذٰلك المکان تحت ولایة السلطان و ان لم یکن تحت ولایة قاض و علیه فبطلان العقد یتصور فیما اذا کان فی دار الحرب او البهر او المفازة و نحو ذٰلك بخلاف القری و الامصار و یدل علیه ما فی الفتح فی فصل الوکالة با لنکاح حیث قال و ما لا مجیز لهٗ ای ما لیس له من یقدر علی الاجازة یبطل کما اذا کانت تحت حرة فزوجه الفضولی امة او اخت امرأته او خامسة او زوجه معتدة او مجنونة او صغیرة او یتیمة فی دار الحرب و اذا لم یکن سلطان و لا قاض لعدم من یقدر علی الامضاء حالة العقد فوقع باطلاً آه

---

ے که چېرته څوك دا شبه وکړي چه مفقود الخبر چه د کوم ځـــــای اوسیدونکی دی نو د هغه ځای د قاضي ولایت ګوا کــــه په دې وخت کښې په هغه باندې ثابت نه دی لیکن له دې مخکښې ئې ولایت پرې باندې موجود وو۔ لـــــه دې وجهې د ولایت اصلي په بناء باندې د هغه ځای د قاضي قضاء پرې باندې نافذ کیدلی شي او د کوم قاضي په ولایت کښې چه له اول څخه نه وي نو د هغه د قضاء نافذول نه دي په کار۔ د دې ځواب دا دی چـــــه د قضاء د نفاذ لپاره ولایتِ حال (اوسنی ولایت) شـــــرط دی او مخکښینی ولایت معتبر نه دی۔ پس د ټولو ځایونو قـــاضیان د مفقود په باره کښې یو شی دي۔

او چونكه په دې روايت كښې د مجنونه او صغيره په دار الحرب كښې عام دى د دې لپاره چه هغه مجنونه او يا صغيره له اوله په دار الحرب كښې وي او يا مخكښې په دار الاسلام كښې وو او اوس دار الحرب ته تللې ده. د دې عموم له وجهې دا ثابته شوه چه مخكښيني ولايت لره اعتبار نشته. كه چېرته ئې اعتبار وای نو دا مجنونه او صغيره چه له دار الاسلام څخه تللې اعتبار به ئې وای. او همدارنګه د شامي د دې قول چه اى فى موضع العقد او د ذلك المكان تحت ولاية السلطان له لفظ څخه څرګنديږي چه د ولايت لپاره د سلطان او قاضي په علاقه كښې شتون او موجودوالى شرط دى. او مالكيه ووّ د دې واضحه تصريح كړې ده. چنانچه په شرح درديركښې دي چه: (و لا يزوج) (القاضى) (امرأة) اى لا يتولى عقد نكاحها حيث لا ولى لها الا الحاكم (ليست بولاية) بان كانت خارجة عنها اذ لا ولاية عليها و ان كان اصلها من اهلها آه. (ج۲، ص۲۹۹) و الله تعالىٰ اعلم. ۱۲ منه (ماخوذ از حيله ناجزه ص۵۹ الى ۶۶)

﴿د شپږم سوال ځواب﴾ د مفقود حكم په دار الاسلام او دار الحرب كښې مختلف دى لكه څرنګه چه د اول سوال په ځواب كښې په تفصيل سره تير شو.

ليكن د مالكي مذهب د علماوو له فتواوو څخه څرګنديږي چه په هندوستان، مصر، شام او داسې نورو ملكونو كښې د كافر حكومت له مسلط كيدو سره سره په هغو كښې د اسلام شعائر تر اوسه پورې قائم دي په دغو تولو ملكونو كښې د مفقود هغه حكم دى كوم چه په دار الاسلام كښې دى بلكه په كوم دار الحرب كښې چه د اسلام شعائر هم موجود نه وي او هلته د مسلمانانو د صلح او داسې نورو له وجهې تلل او راتلل او تفتيش كول ممكن وي نو په هغه دار الحرب كښې هم د مفقود هغه حكم دى كوم چه په دار الاسلام كښې دى. پس اصل بناء د تفتيش امكان دى. نو ځكه په دار الحرب والي كښې كوم چه د علماوو اختلاف دى په دې مسئلې باندې هيڅ اثر نه كوي او د مفقود ښځې ته په دغو ممالكو كښې هم د څلورو كلونو له مهلت نه وروسته د وفات د عدت په تيرولو باندې د دوهمې نكاح اختيار وركول كيږي.

كما فى الرواية الخامسة للعلامة الفاهاشم آه. و الخامسة و العشرين للعلامة الطيب رحمه الله.

## د نـــامرده سړي د ښځې د جـــلاكولو مسئلـــه

**سوال:** يوه سړي له يوې ښځې سره باقاعده نكاح وكړه او له رخصتى څخه وروسته معلومه شوه چه خاوند ئې د زوجيت د حقوقو په اداكولو باندې قادر نه دى. نو كه چېرته نوموړې ښځه وغواړي چه ځان جلا كړي نو د شرعې له مخې به د دې څه صورت وي؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د كومې ښځې خاوند چه له پيدا ايښت څخه او يا د كومې كمزورۍ او يا بيمارۍ له وجهې په جماع باندې قادر نه وي نو: فقهاوو په اصطلاح كښې نوموړي سړي ته عنين ويل كيږي. د داسې سړي لپاره دا بهتره ده چه كله ورته د خپلې كمزورۍ معلومات وشي



او د علاج معالجې په ذريعه هم نوموړي ته د جماع د قوت د پيداكيدو امكان نه وي نو بيا دې خپلې ښځې ته طلاق وركړي، فارغه دې كړي تر څو ښځه ئې د عدت له تيرولو وروسته باقاعده بل ځاى نكاح وكړي او د سكون او اطمينان ژوند تير كړي. په دې حالت كښې كه چېرته يو ځل هم خلوت صحيحه شوې وي نو بيا د مهر حق هم اداكوي.

كه چېرته ئې خاوند په عزتمنه طريقه د ښځې آزادولو ته تيار نه وي نو بيا به ښځه د مجبورۍ له مخې خپله مقدمه په يوې مسلمانې محكمې كښې داېروليږ شي. د وخت حاكم به د تحقيق نه وروسته د خپل صوابديد له مخې خپل اختيارات استعمالوي او ښځې به د نكاح د فسخ سند وركوي كوم چه د ښځې په حق كښې طلاق بائن ګڼل كيږي او د طلاق د عدت له تيرولو نه وروسته ښځه آزاده ګرځي او په بل ځاى كښې بيا نكاح كولى شي. ليكن دا اقدام هم په څو شرائطو باندې مبني دى.

چنانچه حكيم الامت مولانا اشرف علي تهانوي رحمه الله دا شرائط په لاندې ډول بيانوي او فرمايي: لومړى شرط دا دى چه له نكاح څخه مخكښې ښځې ته د دې سړي د عنين والي علم نه وي. پس كه چېرته په هغه وخت كښې ئې علم وي او سره د علم نكاح ورسره وكړي نو هغې ته د جلا والي حق نه شي پاتې كيدلى.

لما فى الهندية: ان علمت المرأة وقت النكاح انهٗ عنين لا يصل الى النساء لا يكون لها حق الخصومة. و فى الدر المختار تزوج الاولى او امرأة اخرىٰ عالمة بحاله لا خيار لها على المذهب المفتى به. بحر عن المحيط خلافا لتصحيح الخانية. (الفتاوى الهندية ج۲، ص۵۲۴، الباب الثانى عشر فى العنين)

دوهم شرط دا دى چه خاوند له نكاح څخه وروسته يو ځل هم جماع نه وي كړى او كه چېرته يو ځل ئې جماع كړى وي او بيا عنين شوى وي نو ښځې ته به د نكاح د فسخ اختيار نه وي.

لما فى الدر المختار: فلو جُبَّ بعد الوصول اليها. (ج۲، ص۶۴۴، باب العنين) مرّة قال الشاميؒ قوله مرة و ما زاد عليها فهو مستحق ديانية لا قضاء بحر عن جامع قاضى خان و يأثم اذا ترك الديانة متعنتا مع القدرة على الوطى. (باب العنين ج۲، ص۶۴۵، مطلب باب العنين و غيره)

دريم شرط دا دى چه له كوم وخت څخه ښځې لره د خاوند د عنين توب معلومات شوى وي له هغه وخت څخه له هغه سره په اوسيدو باندې تصريح (۱-)رضا نه وي ښودلې. مثلا ويلي ئې نـــه وي چه هر څرنګه دى نو زه خپل ژوند ورسره تيروم ځكه كه چېرته هغې د خپلې

(۱-) يعني په ژبې سره ئې دا ويلي وي كه په تنهايي كښې ئې ويلي وي او يا د چا په مخكښې. كما يدل عليه اطلاق ما لم تقل فى الرواية الآتية. او له تاجيل څخه مخكښې تر تاجيل وروسته كما هو المصرح فى البدائع و نصه هٰذا فا لنص هو تصريح اسقاط الخيار و ما يجرى مجراه سواء كان ذٰلك بعد تخيير القاضى او قبله آه مختصراً. ۱۲ منه.

رضاء تصریح کړې وي نو بیا ورته د جلاوالي د غوښتنې حق نه پاتې کیږي. هو! محض (۲-) سکوت رضا نه ګڼل کیږي.

لما فی الدر المختار: فلو وجدته عنینا او مجبوبا و لم تخاصم زمانا لم یبطل حقها. قال الشامی قوله لم یبطل ای ما لم تقل رضیت با لمقام معهٗ کذا قیده فی التاتارخانیة عن المحیط. (الدر المختار و رد المحتار ج۲، ص۶۴۷، باب العنین وغیره، مطلب فی طبائع فصول النیة الاربع)

څلورم شرط دا دی چه په کوم وخت کښې د ټول کال له تیریدو نه وروسته قاضي ښځې ته اختیار ورکړی وي نو ښځه به په هغه مجلس د جلا والي اختیار حاصلوي. پس که چېرته په دغه مجلس کښې ښځې له خپل خاوند سره اوسیدل غوره کړي او یا ئې دومره وخت سکوت وکړ چه مجلس ختم شو که ښځه له مجلس څخه پورته شي او یا قاضي له مجلس څخه پورته شي نو بیائې اختیار باطلیږي او هیڅ ډول جلا والی نه شي کولی.

لما فی الهندیة: فان اختارت زوجها او قامت عن مجلسها او اقامها اعوان القاضی او قام القاضی قیل ان تختار بطل خیارها و کذا فی المحیط. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۵۲۴، الباب الثانی عشر فی العنین)

او همدارنګه د مجلس د ختمیدو او د ښځې له مجلس څخه د پورته کیدو څخه پرته نور هم داسې صورتونه شته چه مجلس ورسره بدلیدلی شي او د ښځې اختیار باطلولی شي. د مثال په توګه چېرته په بلې خبرې باندې سره لګیا شي او یا د لمانځه وخت راشي او په لمانځه باندې مصروف شي و غیر ذٰلك مما یدل علی الاعراض او تبدل مجلس شامی باب تفویض الطلاق څخه څرګندیدلی شي. و الدلیل علی الاعراض یبطل الخیار. قول الدر حیث قال لو وجد منها دلیل اعراض بان قامت الخ. لان هٰذا یدل علی ان القیام ذکر حیث ذکر تمثیلا و المراد مطلق الاعراض، هذا ما عندنا و اللّٰه اعلم با لصواب.

پنځم شرط دا دی چه عنین ته ټول کال مهلت ورکول او د کال په تیریدو باندې ښځې ته اختیار ورکول او وروسته له دې څخه که چېرته خاوند له طلاق څخه انکار وکړي نو جلا والی راوستل او داسې نور ټول امور چه مخکښې په تفصیل سره ذکر شول د قاضي قضاء ته احتیاج لري. د قاضي له حکم څخه پرته پخپله ښځې ته د جلا والي اختیار حاصل نه دی.

کما فی ردّ المحتار تحت قول الدر: و لا عبرة بتأجیل غیر قاضی البلدة لان هٰذا مقدمة امر لا یکون الا عند القاضی و هو الفرقة فکذا مقدمة. و الوالجیة. (رد المحتار ج۲، ص۶۴۶، باب العنین و غیره، مطلب فی عطف الخاص علی) (الحیلة الناجزة ص۱۴۷ الی ۱۴۹)

## د سزا ورکړ شوي قیدي د ښځې حکم

**سوال:** که چېرته یو سړی د کوم جرم له وجهې د ټول عمر د قید سزا پرې وخیژي نو ښځې لپاره ئې شرعا څه حکم دی؟ بینوا توجروا.

(۲-) بلکــــه تقبیل او مضاجعت او داسې نور کارونه هم د رضا موجب نه دي. کمــــا هو المصرح فی الـدر عن الخانیة. ۱۲ منه.



**الجواب باسم ملهم الصواب:** د داسې سړي ښځه به ټول عمر صبر کوي ځکه چه د داسې سړي باندې د مفقود تعریف نه صادقیږي ځکه د اسې څوك د مفقود په حکم کښې نه راځي.

لما قال الشیخ ظفر احمد العثماني رحمه الله: داسې سړی مفقود نه بلل کیږي ځکه چه مفقود هغه ته وایي چه د هغه د مرګ او د ژوند معلومات چا ته نه وي او د قیدي سړي ځای هم معلوم وي او حیات ئې هم معلوم وي. لهذا داسې سړي مفقود نه دی بلکه بتحیته ضار دی.---- په دې صورت کښې د امام مالك صاحبؒ په مذهب کښې هم وسعت نشته. لهذا د داسې سړي ښځه پرته د هغه له طلاق یا مرګ څخه له بل سړي سره نکاح نه شي کولی. (امداد الاحکام ج۲، ص۷۱۰، کتاب الطلاق، باب التفریق)

و قال الشیخ مفتي عزیز الرحمٰن صاحبؒ: د مفقود الخبر حکم بیل دی او د عمر قید حکم بیل دی عمر قید سړی مفقود الخبر نه بلل کیږي او ښځه ئې د نکاح بل عقد د خپل خاوند په ژوند کښې له چا سره نه شي کولی. او مفقود الخبر هغه دی چه ځای، مرګ او ژوند ئې معلوم نه وي. هغه ته په یو ټاکلي وخت کښې شریعت د مړي حکم ورکوي. (فتاوٰی دار العلوم دیوبند ج۱، ص۲۷۹، کتاب الطلاق)

## د مــــــرتد د ښځې حکــــــم

**سوال:** که چېرته یو مسلمان د اسلام د دښمنانو په جال کښې ګیر شي او مرتد شي (العیاذ با لله) نو په داسې حالت کښې ئې ښځې ته څه لائحهٔ عمل په کار دی؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د خاوند په مرتد کیدو باندې نکاح فسخ ګرځي. لهذا ښځه به عدت تیروي او له عدت نه وروسته آزاده ګرځي او باقاعده په بل ځای کښې نکاح کولی شي.

لما فی الهندیة: ارتد احد الزوجین عن الاسلام وقعت الفرقة بغیر طلاق فی الحال. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۳۳۹، الباب العاشر فی نکاح الکفار)

قال العلامة الحصکفیؒ: و ارتداد احد الزوجین فسخ فلا ینقص عدد عاجل بلا قضاء. (الدر المختار علی هامش المحتار ج۲، ص۴۲۵، باب نکاح الکافر، مطلب الصبیّ و المجنون لها باهل لایقاع طلاق بل للوقوع) و مثله فی دایة ج۲، ص۳۲۷، باب نکاح اهل الشرك.

## د متعنت د ښځې حکم

**سو** جناب مفتي صاحب! ما له نن څخه شپږ کاله مخکښې نکاح کړې ده او د نکاح له دوو، درکلونو څخه وروسته زمونږ د کورنۍ حالات ډیر خراب شو او زما خاوند زه د والدینو کور ته ولم او تر ننه پورې ئې زما خبر نه دی اخیستی. نو زه له داسې مصیبت څخه څنګه نجات حاصلی شم؟ بینوا توجروا.

**الجوا‌ام ملهم الصواب:** د متقدمینو علماوو په نزد خو د دې ډول عوارضو له وجهې عدالت

او یا مسلمان حاکم ته د نکاح د فسخ کولو مجاز نشته لیکن متاخرینو علماوو دا فتوی ورکړې ده چه دا ښځه دې اسلامي محکمې ته رجوع وکړي هغه به ئې حل وباسي۔

قا الشیخ مولانا اشرف علي تهانويؒ: (الجواب) د متعنت (هغه سړی چه خپله ښځه ئې له کوره ایستلې وي او په کلونو کلونو ئې خبر نه اخلي) ښځې ته په کار دی چه له خاوند سره خلع وغیره وکړي او خلاصون حاصل کړي۔ او که چېرته له کوشش سره سره د خلاصون کوم صورت پیدا نه شي نو بیا دې ښځه خپله مقدمه د اسلام قاضي او یا مسلمان حاکم ته او د حاکم د نشت والي په صورت کښې د مسلمانانو یوې ټولې ته وړاندې کړي۔ بیا له تحقیق نه وروسته په شرعي شهادت سره کله چه د ښځې دعوه صحیحه ثابته شي چه له وسعت سره سره خاوند خرڅه نه ورکوي نو خاوند ته دې ووایي چه یا د خپلې ښځې حقوق ادا کړه او یا طلاق ورکړه او که نه وي نو مونږ ستاسو تر منځ جلا والی راولو۔ له دې نه وروسته که چېرته په یوه صورت باندې عمل هم و نه کړي نو قاضي او یا د قاضي شرعا قائم مقام دې طلاق واقع کړي۔ په دې کښې د مهلت او انتظام ضرورت نشته۔ (الحیله الناجزه ص۷۳، حکم الزوجه المتعنت فی النفقه)

و قال المفتي عزیز الرحمٰنؒ و مفتي ظفر الدینؒ: په داسې صورت کښې چه خاوند د زوجیت حقوق نه شي ادا کولی او نفقه نه ورکوي نو بیا پرې لازم دي چه خپلې ښځې ته طلاق ورکړي۔ او په دې خبرې باندې دې مجبوره کړي چه طلاق ورکړي او له طلاق څخه پرته د حنفیهؒ په نزد د نفقې د نه ورکولو له وجهې په زوجینو کښې جلا والی نه شي راتلی۔۔۔۔۔ متاخرینو علماوو د تفریق صورت ایستلی دی کوم چه د شرعي قاضي او یا د دریمانو په ذریعه کیدلی شي۔ (ظفر) (فتاوی دار العلوم دیوبند ج۱، ص۲۲۶، کتاب الطلاق)

## له دیوث څخه د ښځې د خلاصون طریقه

**سوال:** که چېرته یو سړی دیوث وي او خپله ښځه ئې له خلکو سره په زوره زنا کولو ته مجبوروله نو د داسې سړي د ښځې لپاره څه حکم دی او څه باید وکړي چه له داسې خاوند څخه نجات پیدا کړي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** داسې خو هیڅکله هم له نکاح څخه وروسته ښځه له طلاق نه پرته خاوند نه نه آزادیږي لیکن په صورت مسئوله کښې دې ښځه شرعي محکمې ته په دوړه کښې رجوع وکړي او یا دې د شرعي دریمانو محاکمو ته خپله مقدمه دائره کړي او محکمه به په زوره په خاوند باندې ښځه طلاقوي او یا به پخپله نکاح فسخ کوي۔

لما قال الشیخ مفتي عزیز الرحمٰنؒ و مفتي ظفر الدینؒ: په دې صورت کښې چې څو پورې ښځې ته د هغې خاوند طلاق نه وي ورکړی او عدت ئې تیر شوی نه وي تر هغړې د دې ښځې له بل چا سره شرعا نکاح صحیح نه ده۔ د دار القضاء او شرعي دریمانو په ذه ښځه



له داسې مصائبو څخه ساتل کیدای شي۔ (فتاوی دار العلوم دیوبند ج۱، ص۲۳۲)

## د مجنون د ښځې د نکاح د فسخ کولو حکم

**سوال:** یو سړی له نکاح څخه څو کاله وروسته لیونی شو او په علاج سره ئې کوم فرق و نه شو او د لیونتوب په حالت کښې ډیر کارونه کوي تر دې پورې چه ښځې ته د ځان د ضائع کیدو خطره وه نو آیا داسې ښځه د خپل لیوني خاوند څخه خپل نکاح د عدالت په ذریعې سره فسخ کولی شي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په شرط د صدق او صحت د سوال سره که چېرته د دې ښځې خاوند په رښتیا لیونی وي او د ښه او بد و تمیز ئې نه شوای کولی او لیونتوب ئې هم تر دې اندازې پورې وي چه ښځې ته ئې له هغه سره اوسیدل ممکن نه وي او په علاج معالجې سره هم جوړ نه شي نو دې ښځې ته شرعا اجازه شته چه که چېرته ئې خپله نکاح فسخ کوله نو عدالت ته دې رجوع وکړي او عدالت به د پوره تحقیقاتو نه وروسته د نکاح د تنسیخ سند ورکوي چه دا بیا کار ترې اخیستلی شي۔

لما قال العلامة اشرف علی التهانویؒ: د امام محمدؒ په نزد هغه دا حق لري چه قاضي ته عریضه وکړي او د جدایي غوښتنه وکړي او خپل ځان د لیوني د زوجیت څخه جلا کړي په دې شرط چه د خاوند لیونتوب ئې دومره وي چه ګذاره ورسره سخته وي۔ مثلاً د دې د قتل اندیښنه وي الخ۔ (حیله ناجزه ص ۵۴/۵۲، حکم زوجهٔ مجنون)

# باب الایلاء

## (د ایلاء احکام او مسئلې)

### ښځې ته د نه نژدې کیدو قسم کول

**سوال:** یو سړي خپلې ښځې ته وویل چه په خدای مې دې قسم وي چه زه تا ته نه نژدې کیږم لیکن له څو ورځو وروسته نوموړي پخپلې خبرې باندې پښیمانه شو۔ نو اوس ورته څه کول په کار دي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته نوموړی سړی تر څلورو میاشتو پورې پخپل قسم باندې کلك ولاړ وي او خپلې ښځې ته نژدې نشي نو ښځه پخپله جلا کیږي چه بیائې د تحلیل لپاره د نکاح تجدید ضروري ده لیکن که چېرته په ذکر شوې موده کښې ښځې ته نژدې شي نو بیا پرې یوائې د قسم د کفارې ادا کول واجبیږي۔

لما قال العلامة الحصکفیؒ: فمن الصّریح لو قال و الله لا اقربك. قال ابن عابدینؒ ای بلا بیان مدة اشارة الٰی انه کا لموقت بمُدّة الایلاء لان الاطلاق کا لتابید. (رد المحتار ج۲، ص۵۹۳، باب الایلاء)

و فی الهندیة: الایلاء منع النفس عن قربان المنکوحة منعاً مؤکداً با لیمین با للّٰه مطلقاً او مؤقتاً باربعة اشهر. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۴۷۶، الباب السابع فی الایلاء) و مثله فی الهدایة ج۲، ص۹۶/۹۷، باب الایلاء.

### ښځې ته د نه نژدې کیدو مشـــــروط قسم کول

**سوال:** یو سړي خپلې ښځې ته وویل چه که چېرته تا خپله بن خوشحاله نه کړه نو په خدای مې دې قسم وي چه زه به تا ته در نژدې نه شم نو اوس پوښتنه دا ده چه په دې حالت کښې که چېرته څو کلونه تیر شي او نوموړی خپلې ښځې ته نژدې نه شي او نه هغه ښځه خپله بن خوشحاله کړي نو په دې سره په نکاح کښې کوم فرق راځي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په صورت مسئوله کښې د اسې قسم د ایلاء په حکم کښې راځي۔ که چېرته د شرط د موجودوالي نه پرته میړه ښځې ته نژدې شو نو حانث ګرځي او د قسم د کفارې ادا کول پرې لازمیږي او که چېرته خاوند پخپل قسم باندې قائم پاتې شي نو په ښځې باندې یو طلاق بائن واقع کیږي د څلورو میاشتو په تیریدو سره په دې کښې د نکاح دوباره تجدید ضروري ګرځي۔

لما قال العلامة الحصکفیؒ: و المدّة اقلها للحرة اربعة اشهر ثمّ قال ففی الحلف با لله وجبت الکفارة و فی غیره وجب الجزاء و سقط الایلاء لانتهاء الیمین و الا یقربها بانت بواحدة انتهٰی. و قال العلامة ابن عابدینؒ تحت هٰذا القول فلو مضت اربعة اشهر لا یقع الطلاق لانحال الیمین با لحنث سواء حلف علٰی اربعة اشهر او اطلق او علی الابد. "و قال کذٰلك" بانت واحدة لا حاجة الٰی ان شاء تطلیق او الحکم با لتفریق. (رد المحتار علی الدر المختار ج۲، ص۵۹۳، باب الایلاء)



و فی الهندیة: فان قربها فی المدّة حنث و تجب الکفارة فی الحلف با للّٰه........ و ان لم یقربها فی المدّة بانت بواحدة. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۴۷۶، الباب السابع فی الایلاء)

### په ایلاء کښې د رجوع لپاره د ښځې د انکار کولو حکم

**سوال:** که چېرته خاوند په ایلاء کښې د ننه رجوع وکړي لیکن ښځه ئې ترې انکار وکړي نو خاوند باید څه وکړي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د ایلاء د مودې په دوران کښې منکوحه د خاوند په نکاح کښې پاتې کیږي۔ په د اسې حالت کښې که چېرته خاوند غوښت چه رجوع وکړي او ښځه انکار وکړي نو منکوحه د نافرمانۍ په حکم کښې راځي نو بیا د هغې په انکار سره په نکاح کښې کوم فرق نه راځي۔ که چېرته خاوند په عملي توګه له رجوع څخه قاصر وي نو په ژبني توګه رجوع هم کافي ده۔

لما قال العلامة الحصکفیؒ: و کذا حبسها و نشوزها ففیؤه قوله بلسانه فئت الیها. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص۵۹۹، باب الایلاء)

و فی الهندیة: و لو عجز عن جماعها لرتقها او لکونها ممتنعة او کانت فی مکان لا یعرفها و هی ناشزة ففیؤه با للسان بان یقول فئت الیها. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۴۸۵، الباب السابع فی الایلاء، ثم الایلاء علی اربعة اوجه) و مثله فی تبیین الحقائق شرح کنز الدقائق ج۲، ص۲۵۱، باب الرجعة.

## باب اللعان

### (د لعان احکام او مسئلې)

### د لعان حکم

**سوال:** یوه سړي پخپلې ښځې باندې د زنا الزام ولګاوه او د والدینو کور ته ئې ولیږله۔ او ښځې هم د فیملي کورټ (ښځینه عدالت) څخه د نکاح د تنسیخ سند حاصل کړ نو آیا نوموړې ښځه له دې وروسته په بل ځای کښې نکاح کولی شي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د شریعت له مخې په ښځې باندې د زنا د تهمت په لګولو کښې د خاوند لپاره د څلورو ګواهانو وړاندې کول ضروري دي او که نه نو حد قذف پرې جاري کیږي۔
بیا هم په داسې حالت کښې په شریعت کښې د دې معاملې لپاره په خصوصي توګه چه کوم قانون موجود دی هغه ته لعان ویل کیږي او صورت ئې دا دی چه خاوند به د قاضي په عدالت کښې څلور ځله قسم کوي او خپل صداقت او ریښتینولي به ثابتوي او پنځم ځل به وایي چه که چېرته زه دروغ وایم نو په ما باندې دې د خدای لعنت وي او له دې نه وروسته به بیا ښځه څلور قسمونه کوي او د خپل خاوند تکذیب او د ځان صداقت به ثابتوي او پنځم ځل به دا وایي چه که چېرته زه دروغ وایم نو په ما باندې دې د خدای قهر او غضب وي۔ په دې سره لعان مکمل کیږي او قاضي به د دوی تر منځ جلا والی راولي۔

که چېرته عدالتي فیصله د دې حقیقت حامله وي نو په دې سره ښځې ته آزادي حاصلیدلی شي او که نه نو یواځې د زنا د تهمت په لګولو سره ښځه د خپلې ناراضیی له مخې د نکاح د تنسیخ د سند په لاس ته راوړلو سره آزادي نه شي حاصلولی۔

لما فی الهندیة: اذا قال لها یا زانیة او انت زنیت او رأیتك تزنی فانه یجب اللعان. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۵۱۵، کتاب الطلاق، الباب الحادی عشر فی اللعان)

و قال الله تعالی: وَ الَّذِیْنَ یَرْمُوْنَ اَزْوَاجَهُمْ وَ لَمْ یَكُنْ لَّهُمْ شُهَدَآءُ اِلاَّ اَنْفُسُهُمْ فَشَهَادَةُ اَحَدِهِمْ اَرْبَعُ شَهٰدٰتٍ بِاللّٰهِ اِنَّهُ لَمِنَ الصّٰدِقِیْنَ☆ وَ الْخَامِسَةُ اَنَّ لَعْنَتَ اللّٰهِ عَلَیْهِ اِنْ كَانَ مِنَ الْكٰذِبِیْنَ☆ وَ یَدْرَؤُا عَنْهَا الْعَذَابَ اَنْ تَشْهَدَ اَرْبَعَ شَهٰدٰتٍ بِاللّٰهِ اِنَّهُ لَمِنَ الْكٰذِبِیْنَ☆ وَ الْخَامِسَةَ اَنَّ غَضَبَ اللّٰهِ عَلَیْهَا اِنْ كَانَ مِنَ الصّٰدِقِیْنَ☆ (پ۱۸، سورة النور، آیت ۶، ۷، ۸، ۹)

و فی الهندیة: و اذا التعنا فرق الحاکم بینهما و لا تقع الفرقة حتی یقضی بالفرقة علی الزوج فیفارقها بالطلاق. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۵۱۶، کتاب الطلاق، الباب الحادی عشر فی اللعان)

قال العلامة المرغینانی: و اذا التعنا لا تقع الفرقة حتی یفرق القاضی بینهما. (الهدایة ج۲، ص۳۹۷، کتاب الطلاق، باب اللعان، و مثله فی الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص۶۳۹، باب اللعان، قبل مطلب فی الدعاء باللعن علی معین.



### تر لعان وروسته د دوباره نکاح کولو حکم

**سوال:** د لعان په ذریعه د ښځې او خاوند تر منځ له جدایي نه وروسته له حلالې پرته د ښځې او خاوند تر منځ ازدواجي تعلق قائمیدلی شي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د لعان په صورت کښې چونکه تفریق (جلا والی) د قاضي له خوا څخه کیږي نو ځکه د دوی دواړو تر منځ دوباره نکاح نه شي کیدلی مګر دا چه خاوند خپل ځان دروغجن وبولي نو بیا به په هغه باندې د قذف (د دروغو تهمت د لګولو) حد جاري کیږي او له دې وروسته بیا د دواړو تر منځ نکاح کیدلی شي۔

قال العلامة المرغینانی: و تکون الفرقة تطلیقة بائنة عند ابی حنیفة و محمد رحمهما الله لان فعل القاضی انتسب الیه کما فی العنین و هو خاطب اذا کذبه نفسه الخ. (الهدایة ج۲، ص۴۹۷، کتاب الطلاق، باب اللعان)

و فی الهندیة: قال ابو حنیفة رحمه الله تعالی الفرقة الواقعة فی اللعان فرقة بتطلیقة بائنة فیزول ملك النکاح و تثبت حرمة الاجتماع و التزوج ما داما علی حالة اللعان. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۵۱۵/۵۱۶، کتاب الطلاق، الباب الحادی عشر فی اللعان) و مثله فی الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص۶۹، باب اللعان، قبل مطلب فی الدعاء باللعن علی معیّن.

### د لعان نه وروسته د ښځې او خاوند تر منځ د عدالت د جلاوالي حکم

**سوال:** کله چه خاوند او ښځه پخپل منځ کښې لعان سره وکړي نو آیا د دواړو نکاح پخپله ختم کیږي او که د وخت حاکم به ئې تر منځ جلا والی راولي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته خاوند پخپلې ښځې باندې د زنا الزام ولګوي او ګواه ورسره موجود نه وي نو د مطالبې په وخت کښې د دواړو تر منځ لعان ضروري دی۔ د دواړو نکاح پخپل منځ کښې د لعان له وجهې پخپله نه ماتیږي بلکه د وخت حاکم او یا قاضي به د دواړو تر منځ جلا والی راولي اګر که دواړه پرې راضي هم نه وي۔

لما قال العلامة الحصکفی: و صفته ما نطق النص الشرعی به من کتاب و سنة فان التعنا و لو اکثره بانت بتفریق الحاکم فیتوارثان قبل تفریقه الذی وقع اللعان عنده و یفرق و ان لم یرضیا بالفرقة. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۳، ۴۸۸، باب اللعان)

قال العلامة ابن نجیم المصری رحمه الله: تحت قوله و صفته ما نطق به النص فان التعنا بانت بتفریق الحاکم و لا تبین قبله! ای الحاکم الذی وقع اللعان عنده لو لم یفرق الحاکم حتی عزل او مات فالحاکم الثانی یستقبل اللعان عندهما. (البحر الرائق ج۴، ص۱۱۷، باب اللعان) و مثله فی الاحوال الشخصیه ص۳۴۷، باب اللعان

### د خاوند په ښځې باندې د زنا له تهمت څخه د انکار کولو حکم

**سوال:** که چېرته یوه ښځه د چا په وینا د خپل خاوند په خلاف د زنا د تهمت دعوه وکړي یعنې دا وواېي چه خاوند مې په ما باندې د زنا تهمت لګولی دی نو آیا په دې صورت کښې د دواړو تر منځ لعان کیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** شرعاً لعان هغه ته ویل کیږي چه خاوند پخپلې ښځې باندې د ا تهمت ولګوي چه په یوې غیر منکوحې کښې د زنا د حد موجب وي. چونکه په نوموړې صورت کښې د لعان تعریف نه صادقیږي او نه په دې کښې د لعان شرائط موجود دي نو له دې وجهې په دې صورت کښې لعان نه کیږي.

قال العلامة الحصکفی رحمه الله: و سببه قذف الرجل زوجته قذفاً یوجب الحد فی الاجنبیة....... من قذف بصریح الزنا فی دار الاسلام زوجته الحیة بنکاح صحیح. (الدر المختار علی هامش ردّ المحتار ج۲، ص۸۰۶/۸۰۵، باب اللعان)

قال المفتی عزیز الرحمنؒ: (د ا ډول یوه پوښتنه له ده څخه هم شوې وه چه ده ئې په ځواب کښې ویلي وو) "حکم لعان درین صورت بحالتِ موجوده بلا تحقیق شرائط لعان کردن درست نیست و حکم تفریق نافذ نیست و اگر کسی فتوٰی داده است آن صحیح نیست برو عمل نباید کرد". (فتاوٰی دار العلوم دیوبند ج۱۰، ص۱۹۷، باب یازدهم لعان)

## په دار الکفر کښې په ښځې بـــــاندې د زنا په تهمت سره لعان نه لازمیږي

**سوال:** که چېرته یو سړی په دار الکفر کښې مثلا امریکه او یا لندن کښې پخپلې ښځې باندې د زنا تهمت ولګوي او ښځه هم له خاوند څخه جدا ایي وغواړي نو آیا ښځه د لعان په ذریعه جدا ایي اختیارولی شي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** فقهاء کرامو د دې خبرې تصریح کړې ده چه د زنا د تهمت د لګولو دا معامله که په دار الاسلام کښې وي او که په دار الکفر کښې وي نو د اسې به نه وي لکه په دار الاسلام کښې. چونکه په صورت مسئوله کښې د زنا د تهمت معامله په دار الکفر کښې واقع شوې ده نو ځکه دلته به لعان نه ترسره کیږي.

قال العلامة الحصکفیؒ: و یشترط....... کون القذف بصریح الزنا کونه فی دار الاسلام. قال العلامة ابن عابدینؒ تحت (قوله دار الاسلام) اخرج دار الحرب. (رد المحتار ج۲، ص۵۸۶، باب اللعان)

قال المفتی عزیز الرحمنؒ: (د دې ډول یوې پوښتنې په ځواب کښې ئې ویلي دي) "د لعان لپاره چونکه دار الاسلام هم شرط دی. کما صرح به فی کتب الفقه. له دې وجې په دې ملك کښې د لعان هیڅ صورت نشته. او په د اسې حال کښې چه لعان نشته نو بیلتون هم نه راځي". (فتاوٰی دار العلوم دیوبند ج۱۰، ص۱۹۹، باب یازدهم لعان)

## د زنـــــا شبهه د لعان موجب نـه دی

**سوال:** که چېرته یو سړی پخپلې ښځې باندې د زنا ګمان وکړي او پوره یقین ئې نه وي نو آیا د ښځې په مطالبې باندې به لعان کیږي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** لعان په هغه وخت کښې ترسره کیږي چه خاوند په ښځې باندې په صریحو الفاظو سره د زنا تهمت ولګوي او یوازې د شبهې په صورت کښې لعان نه شي ترسره



کیدلی. نو له دې وجهې په صورت مسئوله کښې یوازې د ښځې په غوښتنه لعان نه ترسره کیږي.

قال العلامة الحصکفی رحمه الله: فمن قذف بصریح الزنا فی دار الاسلام. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص۵۸۶، باب اللعان)

و فی الهندیة: سببه قذف الرجل امرأته قذفاً یوجب الحد فی الاجانب فیجب به اللعان بین الزوجین کذا فی النهایة و اذا قال لها یا زانیة او انت زنیت او رأیتك تزنین فانه یجب اللعان. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۵۱۵، الباب الحادی عشر فی اللعان) و مثله فی فتاوٰی دار العلوم دیوبند ج۱۰، ص۱۹۸، باب اللعان.

# باب الظهار

## (د ظهار احکام او مسئلې)

## په ظهار کښې تشبیه ضروري ده

**سوال:** د یوه سړي په یوې خبرې باندې له خپلې ښځې سره شخړه راغله نو ئې خپلې ښځې ته وویل چه "مورې غلې شه" نو په دغو الفاظو سره د نوموړي سړي په نکاح کښې کوم فرق راځي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** ښځې ته د "مور" غوندې په الفاظو سره مخاطب کول د بغاوت سره برابره ده نو ځکه د داسې الفاظو ویل د فقهاء کرامو په نزد مکروه دي۔ بیا هم په داسې الفاظو کښې د تشبیه د نشت والي له وجهې په نکاح کښې کوم فرق نه راځي۔

لما فی الهندیة: و لو قال لها انت اُمّی لا یکون مظاهراً و ینبغی ان یکون مکروها الخ. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۵۰۷، کتاب الطلاق، الباب التاسع فی الظهار)

قال ابن نجیمؒ: فعلم انه لا بد فی کونه ظهاراً من التصریح باداة التشبیه شرعاً. (البحر الرائق ج۳، ص۹۸، باب الظهار، کتاب الطلاق) و مثله فی رد المحتار ج۲، ص۶۲۶، باب الظهار، مطلب بلاغات محمدؒ.

## خپلې منکوحې ته د خور د ویلو حکم

**سوال:** که چېرته یو سړی خپلې منکوحې ته داسې ووایي چه "ته په ما باندې طلاقه ئې" او بیا پرله پسې دا هم ورته ووایي چه "که چېرته مې ستا د لاس خوراك وخوړل او یا مې چای وڅښه نو ته به زما خور وې" نو آیا په دغو الفاظو سره په نکاح کښې کوم فرق راځي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د ظهار په مسئله کښې د تشبیه د اداتو شتون ضروري دی۔ چونکه په صورت مسئوله کښې د تشبیه یو حرف هم نشته نو ځکه "ته زما خور ئې" په ویلو سره په نکاح کښې کوم فرق نه راځي۔ بیا هم د داسې الفاظو ویل له کراهیت څخه خالي نه وي۔ البته په دا ویلو سره چه "ته په ما باندې طلاقه ئې" یو رجعي طلاق واقع کیږي چه په هغه کښې رجوع بالقول او یا بالفعل کافي دی۔

لما قال العلامة الحصکفیؒ: و ان نوی بانت علی مثل اُمی برّاً او ظهاراً او طلاقاً صحت نیته و وقع ما نوی و ان لم ینو شیئاً او حذف الکاف لغواً. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص۶۲۶، باب الظهار، مطلب بلاغات محمدؒ مسنده)

قال العلامة المرغینانیؒ: و لو قال انت علی حرام کاُمّی و نوی ظهاراً او طلاقا فهو علی ما نوی. (الهدایة ج۲، ص۴۸۹، کتاب الطلاق، باب الظهار) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۵۰۷، کتاب الطلاق، الباب التاسع فی الظهار.

## په ظهار کښې عقل او بلوغ شرط دی

**سوال:** آیا د طلاق غوندې په ظهار کښې هم د ظهار کوونکي عاقل والی او بالغ والی ضروري دی او که د هلك او لیوني ظهار به هم صحیح وي؟ بینوا توجروا۔



الجواب باسم ملهم الصواب: دا کلي قاعده دي چه د هر تصرف لپاره عقل او بلوغ شرط دی نو د طلاق غوندې په ظهار کښې هم د مظاهر عاقل والی او بالغ والی شرط دی۔

و فی الهندیة: من الشرائط ان لا یکون معتوها و لا مدهوشاً و لا مبرسما و مغمٰی علیه و لا نائماً فلا یصح ظهار هٰؤلاء. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۵۰۸، الباب التاسع فی الظهار)

قال العلامة ابوبکر الکاسانیؒ: منها ان یکون عاقلاً اما حقیقة او تقدیراً فلا یصح ظهار المجنون و الصبیّ الذی لا یعقل لان حکم الحرمة و خطاب التحریم لا یتناول من لا یعقل. (بدائع الصنائع ج۳، ص۲۳۰، فصل الشرائط فانواع بعضها)

## په ظهـــــار کښې د کفارې په توګه څه شی لازمیږي

**سوال:** که چېرته یو سړی له خپلې منکوحې سره ظهار وکړي نو د ظهار په توګه څه شی او څومره شی لازمیږي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په ظهار سره ښځه په خاوند باندې تر هغه وخته پورې حرامه وي تر څو پورې ئې چه کفاره نه وي ادا کړې او کفاره ئې د دوو میاشتو روژې نیول او که طاقت ئې نه وي نو شپیته مسکینانو ته دوه وخته خوراك ورکول او یا د یوه غلام آزادول دي۔

و فی الهندیة: و حکم الظهار حرمة الوطی و الدواعی الی غایة الکفارة. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۵۰۶، باب الظهار)

قال الشیخ الدکتور وهبة الزحیلی: تحریم الوطیء با لاتفاق قبل التکفیر کذا عند الجمهور غیر الشافعیة تحریم جمیع انواع الاستمتاع...... الکفارة کما دل القرآن و السنة النبویة فیما سبق انواع ثلاثة. (۱)عتق رقبة سالمة من العیوب صغیرة او کبیرة ذکرا ام انثٰی. (۲)صیام شهرین متتابعین. (۳)اطعام ستّین مسکیناً یوماً واحداً غداء و عشاءً عند الحنفیة. (الفقه الاسلامی و ادلّته ج۷، ص۶۰۱/۶۰۷، المطلب الثالث، اثر الظّهار، المطلب الرابع کفارة الظهار)

## که چېرته تا ته در نژدې شوم نو لکه خپلې مور ته چه نـــــژدې شوم

**سوال:** یو سړی د غصې په حالت کښې خپلې ښځې ته وویل چه که چېرته زه تا ته نژدې شوم نو لکه خپلې مور ته چه نژدې شوم نو آیا په دغو الفاظو سره ظهار واقع کیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په ظهار کښې ادات تشبیه ضروري ده او په طلاق کښې د نکاح د مزیل الفاظ ویل ضروري دي۔ په صورت مسئوله کښې چونکه دا الفاظ په دواړو کښې داخل نه دي نو ځکه نه ظهار او نه طلاق واقع کیږي۔

و فی الهندیة: و لو قال اوطئتك وطئت اُمّی فلا شیءٌ علیه. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۵۰۷، الباب التاسع فی الظهار)

قال المفتی عزیز الرحمٰن: سوال: زید خپلې منکوحې ته د غصې او جګړې په حالت کښې وویل چه که ما له تا سره جماع وکړه نو ګواکه ما له خپلې مور یا خور سره جماع کړې وي۔ نو په داسې صورت کښې طلاق واقع کیږي او که ظهار؟

**الجواب:** په فتاوٰی عالمګیري کښې دي: و لو قال وطئتك وطئت اُمّی فلا شیءٌ علیه. له دې عبارت څخه څرګندیږي چه په صورت مسئوله کښې نه طلاق او نه ظهار یو شی هم نه واقع کیږي۔ (فتاوٰی دار العلوم دیوبند ج۱۰، ۲۱۲، کتاب الطلاق)

## كـــه چېرته زه بيرته كور ته راغلم نو ګوا كه له مور سره به مې زنا كړې وي

**سوال:** د خاوند او ښځې تر منځ شخړه راغله نو خاوند ئې خپل څادر واخيست او و ئې ويل چه كه چېرته زه بيرته كور ته راغلم نو ګوا كه له خپلې مور سره مې زنا وكړه. نو شرعاً د دغو الفاظو څه حكم دی؟ نو موړی سړی په مظاهر كښې شمارل كيږي او كه نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** فقهاء كرامو تصريح كړې ده چه په ظهار كښې د تشبيه د الفاظو شتون ضروري دی او پرته د تشبيه له الفاظو څخه ظهار نه واقع كيږي. چونكه په صورت مسئوله كښې ادات تشبيه نشته نو په دغو الفاظو سره نه ظهار او نه طلاق واقع كيږي.

قال العلامة الحصكفيؒ: تعريفه شرعاً تشبيه المسلم زوجته بمحرم عليه تابيداً. (الدر المختار على هامش ردّ المحتار ج٢، ص٧٩٤، باب الظهار)

قال المفتي عزيز الرحمنؒ: كه چېرته ئې دا وويل چه كه چېرته زه ستا كور ته راغلم نو ما به له خپلې مور سره بد فعلي كړې وي نو دا هم لغوه ده. نه ظهار دی او نه طلاق. (فتاوی دار العلوم ديوبند ج١٠، ص٢١٣، باب الظهار) و مثله في بدائع الصنائع ج٣، ص٢٢٩، كتاب الظهار.

## د ښځې خپل خاوند ته د ورور په ويلو سره ظهار نه لازميږي

**سوال:** جناب مفتي صاحب! يوه ورځ مو په ټيليويژن باندې د "دين او دنيا" په پروګرام كښې له يوه ډاكټر صاحب څخه دا واوريدل چه كه چېرته ښځه خپل خاوند ته ووايي چه ته زما ورور ئې نو په دې ظهار واقع كيږي. نو آيا په ريښتيا هم شرعاً د ښځې په دې الفاظو ظهار لازميږي؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په شريعت كښې د ظهار تعلق له سړي سره وي. د ښځې د داسې الفاظو شرعاً څه اعتبار نشته او د ښځې له خوا په داسې الفاظو سره هيڅ نه واقع كيږي.

قال الشيخ المفتي عزيز الرحمن رحمه الله: په دې صورت كښې نكاح نه ماتيږي. په ښځې باندې د داسې خبرې په ويلو سره هيڅ نه كيږي. (فتاوی دار العلوم ديوبند ج١٠، ص٢١١، باب الظهار)

قال العلامة ابو بكر الجصاص الرازيؒ: قال اصحابنا لا يصح ظهار المرأة من زوجها و هو مالك و الثوری و الليث و الشافعي. (احكام القرآن للجصاص ج٥، ص٣١٠، في ظهار المرأة من زوجها) و مثله في احكام القرآن للتهانویؒ ج٥، ص١٤، المسئلة الرابعة.

## بار بار د ظهار الفاظ له خولې څخه د ايستلو حكم

**سوال:** يوه سړي خپلې ښځې ته دا وويل چه ته په ما باندې زما د مور غوندې ئې او كفاره ئې لا نه وه ادا كړې چه بيا ئې همدا الفاظ له خولې ووتل او دريم ځل ئې بيا همدغه الفاظ وويل نو آيا په نوموړي سړي باندې درې ځله كفاره اوړي او كه د يو ځل كفارې په ادا كولو سره ئې غاړې خلاصيږي؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** كه چېرته څوك خپلې ښځې ته څو ځلې د ظهار الفاظ له خولې څخه وباسي او په دې وخت كښې ئې د لومړي ځل كفاره نه وي ادا كړې نو په يو ځل كفاره ادا كولو سره ئې غاړې خلاصيږي او كه چېرته يو ځل د ظهار الفاظ ووايي او كفاره ئې ادا كړي او دوباره



بيا د ظهار الفاظ ووايي نو دوباره به كفاره ادا كوي له دې څخه مخكښې ادا شوې كفاره كفايت نه كوي.

لما قال الشيخ عبد الرحمن بن ناصر السعديؒ: و اذا كرر الظهار من زوجة واحدة فعليه كفارة واحدة الا ان ظاهر ثم كفر ثم ظاهر بعد الكفارة فعليه كفارة اخرىٰ. (الفتاوی المراة المسلمة ج٢، ص٨٠٢، باب الظهار)

## كه ته مې وساتلې نو خپله مور مې وساتله

**سوال:** كه چېرته چا خپلې ښځې ته وويل چه "كه چېرته مې ته وساتلې نو خپله مور مې وساتله" نو آيا د داسې الفاظو په ويلو سره طلاق واقع كيږي او كه نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** چونكه په دغو الفاظو كښې ادات تشبيه نشته له دې وجهې په نوموړي صورت كښې ظهار نشته او د طلاق د قسم شته والی د خاوند تر نيته پورې اړه لري. كه چېرته هغه د طلاق اراده كړې وه نو طلاق واقع كيږي او د نكاح تجديد ضروري دی او كه چېرته ئې د قسم نيت وو نو د اسې الفاظ له ايلاء څخه ګڼل كيږي او د نكاح تجديد ئې كافي دی.

قال العلامة ابن نجيم المصری رحمه الله: فعلم انه لا بد في كونه ظهاراً من التصريح باداة التشبيه شرعاً. (البحرا لرائق ج٤، ص٩٨، باب الظهار)

و قال العلامة ابن الهمام رحمه الله: فعلم انه لا بد في كونه ظهاراً من التصريح اداة التشبيه شرعاً و مثله ان يقول لها يا بنتي او يا اختي و نحوه و في مثل اُمّي او كامي ينوی فان كان ينوی الطلاق وقع بائناً. (فتح القدير شرح الهداية ج٤، ص٩١، كتاب الطلاق، فصل فيما تحل به المطلقة، باب الايلاء) و مثله في الدر المختار على هامش رد المحتار ج٢، ص٦٢٦، كتاب الطلاق، باب الايلاء.

## پـــه لس ځله ظهار باندې د كفارې حكم

**سوال:** كه چېرته يو څوك خپلې ښځې ته دا ووايي چه ته په ما باندې لس ځله د مور غوندې ئې نو آيا نوموړی سړی به يو ځل كفاره ادا كوي او كه لس ځله؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د هر يوه لفظ د تعداد ذكر كول داسې دی لكه چه دغومره ځل ئې په هم هغه لفظ باندې تلفظ كړی وي. لكه يو سړی چه د طلاق د وركولو په وخت كښې د طلاق د لفظ تعداد ذكر كړي نو هم هغومره طلاقونه واقع كيږي. له دې وجهې په نوموړي صورت كښې نوموړی سړی به لس وارې كفاره ادا كوي.

قال العلامة الحصكفيؒ: لو قال ان تزوجتك فانت على كظهر ای مائة مرّة فعليه لكل مرّة كفارة. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج٣، ص٤٦٧، باب الظهار)

# باب الخلع

## (د خلع احكام او مسئلې)

### يوائې د خلع په وعدې سره ښځه نه شي آزاديدلی

**سوال:** يو سړی كه چېرته د مصلحينو په مخكښې وعده وكړي چه زه تر فلاني تاريخه پورې له ښځې څخه دومره روپۍ اخلم او آزادوم ئې ليكن اوس خپله وعده نه پوره كوي. آيا دا وعده خلع شمارل كيږي او ښځه آزاديدلی شي او كه نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په خلع كښې د خاوند او ښځې تر منځ باقاعده ايجاب او قبول ضروري دي يوائې د خلع په وعدې سره ښځه نه شي آزاديدلی ځكه چه خلع يو ډول عقد او انشاء ته وايي.

قال ابن عابدينؒ: يقال خالعت المرأة زوجها مخالعة اذا افتدت منه فخلعها. (رد المحتار ج۲، ص۶۰۴، باب الخلع)

و فى الهندية: و كذا لو قالت طلقتنى بكذا فقال نعم فليس بشىء لانه وعد. (الفتاوى الهندية ج۱، ص۴۸۸، الباب الثامن فى الخلع و ما فى حكمه)

و قال ابن نجيمؒ: و شرعاً على ما اخترناه ازالة ملك النكاح المتوقفة على قبولها بلفظ الخلع او ما فى معناه. (البحر الرائق ج۴، ص۷۰، باب الخلع) و مثله فى بدائع الصنائع ج۳، ص۱۵۲، فصل و اما الطلاق على مال فهو فى احكامه كا لخلع.

### په پردي سړي باندې د خلع د بدل د لزوم حكم

**سوال:** كه چېرته يوه ښځه له خپل خاوند سره د خلع په كولو باندې تياره شي او له هغې سره د خلعې بدل نه وي او بل سړی چه له نوموړې ښځې سره له آزادۍ څخه وروسته د نكاح اراده ولري د خلعې د بدل ذمه واري په ځان واخلي نو آيا په نوموړي سړي باندې د خلع د بدل اداكول لازمي دي او كه نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د خلع د بدل د اداكولو ذمه واري كه چېرته يو پردی سړی واخلي نو خلع واقع كيږي او ښځه بائنه ګرځي. او په پردي سړي باندې د خلع د بدل اداكول لازم دي. بيا هم له دې نه وروسته د نوموړي سړي له دې ښځې سره نكاح ځانته معامله ده چه كيدل او نه كيدل ئې په خلع پورې نه دي تړلي.

قال العلامة الحصكفيؒ: فان خالعها الاب على مال ضامناً له. و قال كا لخلع مع الاجنبى. قال ابن عابدينؒ تحت هذا القول و حاصل الامر فيه انهٗ اذا خاطب الزوج فان اضاف البدل الى نفسه يفيد ضمانه لهٗ او ملكه اياه كاخلعها بالف عليّ او على انى ضامن صح و البدل عليه. (الدر المختار على هامش ردّ المحتار ج۲، ص۶۱۸، باب الخلع، مطلب فى خلع الفضولى)

قال العلامة ابن نجيم المصريؒ: و فى البزازية الكبيرة اذا خلعها ابوها او اجنبى باذنها جاز و المال عليها. (البحر الرائق ج۴، ص۹۱، باب الخلع) و مثله فى فتح القدير ج۴، ص۷۹، باب الخلع.



### له سركشې ښځې سره د خلع د كولو حكم

**سوال:** كه چېرته د يوه سړي ښځه نافرمانه او سركشه وي او د والدينو په كور كښې پرته له كومې وجهې تر ډيره وخته پورې پاتې كيږي او د خاوند له بار بار غوښتنې سره هم كورته نه راځي نو كه چېرته خاوند د دې نافرمانې ښځې سره خلع وكړي او څه روپۍ وصول كړي نو آيا د خاوند لپاره د دې پيسو خوړل روا دي او كه نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** كه چېرته د ښځې نافرماني پرته له كومې وجهې وي او د خاوند پكښې څه قصور نه وي نو د خاوند لپاره د خلع په كولو او په بدل كښې ئې د پيسو په اخيستلو كښې څه حرج نشته. په دې حالت كښې له حق مهر څخه زياتې روپۍ هم په خلع كښې اخيستلی شي. البته كه چېرته د خاوند د كومې كمزورۍ له وجهې ئې ښځه نافرمانه وي نو د خاوند لپاره اګر كه له حق مهر څخه د زياتو پيسو اخيستل قضاءً جائز دي ليكن له كراهيت څخه خالي نه دي.

قال العلامة الحصكفىؒ: و كره تحريماً اخذ شىء و يلحق به الابراء عمالها عليه ان نشز و ان نشزت لا و لو منه نشوز. ايضاً و لو باكثر مما اعطاها على الاوجه فتح و صحح الشمنى كراهة الزيادة و تعبير الملتقى لا بأس به يفيد انها تنزيهية. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج۳، ص۴۴۵، باب الخلع)

قال العلامة ابن نجيم المصرى رحمه الله: تحت قوله و كره له اخذ شىء ان نشز و ان نشزت لا اى لا يكره له الاخذ اذا كانت هى الكارهة اطلقه فشمل القليل و الكثير و ان كان اكثر مما اعطاها و هو المذكور فى الجامع الصغير و المذكور فى الاصل كراهة الزيادة على ما اعطاها ينبغى حمله على خلاف الاولى. (البحر الرائق ج۴، ص۷۶، باب الخلع)

### قاضي په خاوند باندې د هغه له رضا پرته خلع نه شي كولی

**سوال:** يو سړی د صحت او مال په اعتبار سره او همدارنګه د نورو وجوهاتو له مخې هم معيوب نه دی ليكن ښځه ئې په محكمه كښې د هغه په خلاف د خُلع دعویٰ دائره كړه په دې حال كښې چه خاوند د خلع په تفريق باندې راضي نه دی نو آيا قاضي د خاوند له رضا پرته تفريق او يا خلع كولی شي او كه نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** كله چه خاوند د ښځې د حقوقو په اداكولو كښې كوتاهي نه كوي نو په دې صورت كښې د خاوند له رضا پرته قاضي د خلع او تفريق حق نه لري ځكه چه په طلاق او خلع كښې د زوج رضاء شرط دی.

قال العلامة الكاسانىؒ: و اما ركنه فهو الايجاب و القبول لانه عقد على الطلاق بعوض فلا تقع الفرقة و لا يستحق العوض بدون القبول. (بدائع الصنائع ج۳، ص۱۴۵، كتاب الطلاق، فصل فى الخلع)

و قال الامام السرخسى رحمه الله: و الخلع جائز عند السلطان و غيره لانه عقد يعتمد التراضى كسائر العقود و هو بمنزلة الطلاق بعوض و للزوج ولاية ايقاع الطلاق و لها ولاية الالتزام العوض. (المبسوط للشمس الائمة السرخسىؒ ج۶، ص۱۷۳، باب الخلع)

و فی الهندیة: و شرطه (ای الخلع) شرط الطلاق. (الفتاوی الهندیة ج١، ص٤٨٨، الباب الثامن فی الخلع و ما فی حکمه، الفصل الاول فی شرائط الخلع و حکمه و ما یتعلق به) و مثله فی الدر المختار علی هامش رد المحتار ج٢، ص٦٠٦، باب الخلع.

## د خُلع د بدل مقدار

**سوال:** آیا د بدلِ خلع څه حد شته او که نه؟ که چېرته د مهر له اندازې څخه په زیات مال سره خُلع وشي نو د خاوند لپاره له حقِ مهر څخه د زیات مال اخیستل جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د خلع د بدل لپاره کومه خاصه اندازه نه ده ټاکل شوې۔ خاوند او ښځه په خپلې رضاء سره چه په کوم مقدار سره متفق شي نو ښځه آزادیږي۔ بیا هم که په خلع سره د خپل منځې جدایي سبب د خاوند معاندانه رویه او ناروا اسلوك وي نو د خاوند لپاره له حقِ مهر څخه د زیاتو پیسو اخیستل مکروه دي او که نه وي نو په بل صورت کښې د ناشزه (نافرمانې) ښځې څخه د حقِ نکاح په عوض کښې چه کوم مقدار ټاکل شوی وي د خاوند لپاره ئې اخیستلو کښې څه حرج نشته۔

لما فی الهندیة: و ان کان النشوز منها کرهنا له ان یأخذ منها اکثر مما اعطاها...... و لو اخذ الزیادة جاز قضاءً. (الهدایة ج٢، ص٣٨٣، باب الخلع)

و قال العلامة ابن عابدین رحمه الله: نعم یکون اخذ الزیادة خلاف الاولی. (رد المحتار علی الدر المختار ج٢، ص٦٠٦، باب الخلع) و مثله فی الهندیة ج١، ص٦٩٥، باب الخلع.

## له یوه بل څخه تر نفرت (کرکې) خلع بهتره ده

**سوال:** که چېرته د خاوند او ښځې په طبعیتونو کښې له یوه بل سره د زړه تړون او محبت نه وي او هر وخت سره خفه اوسیدل او د حدود الله د نه رعایت کولو خطره وه نو په دې صورت کښې که چېرته ښځه خُلع وغواړي نو شرعاً ئې څه حکم دی؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** کله چه په طبعیتونو کښې له یوه او بل سره د محبت په ځای نفرت پیدا کیده چه له مخې ئې مختلف معاشرتي او اخلاقي مسائل پیدا کیده نو په داسې حالاتو کښې له یو ځای اوسیدو څخه د خلع په ذریعه جدا کیدل بهتر دي۔

قال الله تبارک و تعالی: فَاِنْ خِفْتُمْ اَنْ لَّا یُقِیْمَا حُدُوْدَ اللّٰهِ فَلَا جُنَاحَ عَلَیْهِمَا فِیْمَا افْتَدَتْ بِهٖ. (البقرة)

قال العلامة المرغینانیؒ: و اذا تشاق الزوجان و خافا ان لا یقیما حدود الله فلا بأس بان تفتدی نفسها منه بمال یخلعها به. (الهدایة ج٢، ص٣٨٣، کتاب الطلاق، باب الخلع) و مثله فی الدر المختار علی هامش رد المحتار ج٢، ص٦٠٦، باب الخلع.



## خُلع د ښځې تر قبلولو پورې موقوفه ده

**سوال:** که چېرته یو سړی خپلې ښځې ته د څو روپو په بدل کښې طلاق ورکولو ته تیار شي نو د نافذولو لپاره ئې د کومو شرائطو رعایت ضروري دی؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د نقدو روپو یا جائداد په عوض کښې که حق مهر وي او یا له دې څخه زیات وي که خاوند خپلې ښځې ته طلاق ورکول وغواړي نو په دې صورت کښې چونکه ښځه خاوند ته د ټاکل شوي مقدار مال ورکولو پابنده وي د دې لپاره د دې خبرې صحیح والی د ښځې تر قبلولو پورې تړلې وي۔ که چېرته ښځه دا خبره قبلوله نه کړي نو خاوند ئې له هغې څخه په جبري توګه نه شي غوښتلی او نه ښځه خپل خاوند لره د مال په عوض کښې د طلاق په ورکولو باندې مجبورولی شي۔ د مال په عوض کښې داسې طلاق ورکول د خُلع په نامه باندې یادیږي چه په هغه کښې که چېرته خاوند درې طلاقونه په یوه ځای ورکړي نو ښځه مطلقه مغلظه ګرځي او که نه نو په مطلق خُلع سره طلاق بائن واقع کیږي۔

لما قال العلامة ابن عابدینؒ: و اما رکنه فهو کما فی البدائع اذا کان بعوض الایجاب و القبول. (رد المحتار ج٢، ص٦٠٥/٦٠٦، باب الخلع)

و فی الهندیة: و لو زاد الزوج علی حرف الجواب فقال طلقتك ثلاثاً بالف عند ابی حنیفةؒ یتوقف علی قبولها فان قبلت یقع الثلاث و یلزمها الف و ان لم تقبل بطل و علی قولهما یقع للثلاث بالف قبلت ام لا کذا فی شرح الجامع الصغیر لقاضی خانؒ. (الفتاوی الهندیة ج١، ص٤٩٦، الباب الثامن فی الخُلع)

## د زوی له خوا څخه پلار خُلع نه شي کولی

**سوال:** د یوه نابالغ هلك او یوې نابالغې نجلۍ نکاح د دواړو والدینو په وړوکوالي کښې تړلې وه۔ اوس چه نجلۍ بالغه شوې ده او هلك تر اوسه پورې نابالغ دی د دواړو ترمنځ شخړه پیدا شوې ده او نجلۍ د پلار کره تللې ده۔ وروسته د هلك والدینو د نجلۍ له والدینو څخه د خلع بدل درې سوه روپۍ واخیستې او خلع ئې وکړه۔ نو اوس پوښتنه دا ده چه آیا د نابالغه هلك له خوا څخه د هغه د پلار له خوا څخه شوې خلع صحیح ده او که نه او آیا نجلۍ په بل ځای کښې په نکاح ورکولی شي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** نابالغ نه پخپله د خلع اهل دی او نه ئې والدین د هغه له خوا څخه خلع کولی شي۔ نجلۍ تر اوسه پورې د هلك په نکاح کښې ده او بل ځای کښې ئې نکاح جائز نه ده۔ د هلك له بلوغ نه وروسته صحیح صورت حال مخکښې راتلی شي۔

لما فی الهندیة: اذا خلع الاب علی ابنه الصغیر لا یصح و لا یتوقف علی اجازته کذا فی فتاوی قاضی خان. خلع السکران و المکره جائز و خلع الصبیّ باطل. (الفتاوی الهندیة ج١، ص٥٠٤، الفصل الثالث فی الطلاق با لمال)

و قال العلامة ابن نجیم المصری رحمه الله: و قیل با لانثی ای فی متن الکنز) لانه لو خلع ابنه الصغیر لا یصح و

لا يتوقف خلع الصغير على اجازة الولى. (البحر الرائق شرح الكنز الدقائق ج ٤، ص ٩١، باب الخلع) و مثله فى فتاوٰى قاضى خان على هامش الهندية ج ١، ص ٥٣٦، باب الخلع.

## خلع د طلاق بـــائن په حکم کښې دی

**سوال:** جناب مفتي صاحب! خلع د احنافو د فقهاوو په نزد طلاق دی او که د نکاح فسخ؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په دې مسئله کښې د فقهاوو اختلاف دی۔ د احنافو کثر الله سواد هم په نزد خلع د طلاقِ بائن په حکم کښې دی په د اسې حال کښې چه شوافع ئې د نکاح په فسخ کښې حسابوي۔

قال العلامة الحصكفىؒ: وقع طلاق بائن فى الخلع رجعى فى غيره و قوعاً. قال العلامة ابن عابدينؒ تحت قوله (بائن فى الخلع) لانه من الكنايات الدالة على قطع الوصلة فكان الواقع به بائناً. (رد المحتار ج ٢، ص ٦٠٩، باب الخُلع)

قال الشيخ وهبة الزحيلى: يقع به طلقة بائنة و لو بدون عوض او نية فى رأى الحنفية و المالكية و الشافعية فى الراجح و احمد فى رواية. (الفقه الاسلامى و ادلته ج٧، ص ٥٠٤، المبحث الخامس آثار الخلع) و مثله فى الهندية ج ١، ص ٤٨٨، الباب الثامن فى الخلع و ما فى حكمه.

## د خلع تر ايجاب وروسته د خاوند رجوع صحيح نه ده

**سوال:** په خلع کښې د يوې ښځې خاوند ايجاب او قبول وکړ ليکن ښځې ئې لا نه وه قبوله کړې چه خاوند ئې بيرته د رجوع الفاظ ووېل۔ ليکن سره له دې ښځې ئې خلع قبوله کړه نو آيا په دې سره به خلع لازميږي او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** خلع چونکه د سړي له خوا څخه يمين دی او په يمين کښې شرعا رجوع نه شي کيدلی نو ځکه په صورت مسئوله کښې د خاوند رجوع صحيح نه ده بلکه د ښځې په قبول سره به خلع نافذ العمله وي۔ البته که چېرته ايجاب د ښځې له خوا څخه وي نو د خاوند رجوع صحيح ده۔

قال العلامة الحصكفىؒ: هو يمين فى جانبه لانه تعليق الطلاق بقبول المال فلا يصح رجوعه عنه قبل قبولها و لا يصح شرط الخيار له و لا يقتصر على المجلس اى مجلسه و يقتصر قبولها على مجلس علمها و فى جانبها معاوضه بمال فصح رجوعها قبل قبوله و صح شرط الخيار لها. (الدر المختار على هامش رد المحتار ج ٢، ص ٦٠٦/٦٠٧، باب الخلع)

قال الشيخ وهبة الزحيلى: و ذهب ابو حنيفةؒ الى ان الخلع قبل قبول المرأة يمين من جانب الزوج فلا يصح الرجوع عنه لانه علق طلاقها على قبول المال و التعليق يمين اصطلاحاً و يعتبر معاوضة بمال من جانب الزوجة لانها التزمت بالمال فى مقابل افتداء نفسها و خلاصها من الزوج. (الفقه الاسلامى و ادلته ج٧، ص ٤٨٨، المبحث الثانى، صفة الخُلع)

## له خلع نه وروسته د نکاح تجديد صحيح دی

**سوال:** يوه سړي له خپلې ښځې سره خلع وکړه او اوس بيرته ورسره د نکاح د کولو اراده لري نو آيا شرعا د نکاح په تجديد سره ئې نکاح کيږي او که نه؟



**الجواب باسم ملهم الصواب:** د احنافو په نزد چونکه په خلع باندې طلاق بائن واقع کيږي او له طلاق بائن نه وروسته د نکاح په تجديد سره نکاح صحيح کيږي۔ له دې وجهې که چېرته په صورت مسئوله کښې خلع شوې وي نو دوباره نکاح کيدلی شي۔

قال العلامة الحصكفىؒ: الواقع و لو بلا مال (و بطلاق) الصريح على مال طلاق بائن. (رد المحتار ج ٢، ص ٦٠٨، باب الخلع)

و فى الهندية: و حكمه وقوع الطلاق البائن كذا فى التبيين. (الفتاوى الهندية ج١ ص ٤٨٨، الباب الثامن فى الخلع وما حكمه) ومثله فى تبيين الحقائق ج٢، ص ٢٦٧، باب الخلع.

## د صبي او مجنون خلع په عمل کښې جاري کيدونکې نه ده

**سوال:** آيا د نابالغ هلك او مجنون (ليوني) او د اسې نورو له خپلو ښځو سره د حقِ مهر او يا نورو مالونو په عوض کښې خُلع صحيح ده او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** خلع يو ډول طلاق دی چه پکښې هر هغه شرط ضروری دی کوم چه د طلاق لپاره ضروري دی۔ چونکه د نابالغه هلك او ليوني او معتوه طلاق شرعا صحيح نه دی نو له دې وجهې خلع ئې هم صحيح نه وي۔

و فى الهندية: و خلع الصبىّ باطلٌ و المعتوه و المغمى عليه و من مرض بمنزلة الصبى فى ذلك هكذا فى المبسوط. (الفتاوى الهندية ج ١، ص ٥٠٤، الباب الثامن فى الخلع)

قال الشيخ الدكتور وهبة الزحيلىؒ: يشترط فى الخلع ما يأتى (١) اهلية الزوج لايقاع الطلاق بان يكنو بالغاً عاقلاً فى رأى الجمهور..... فكل من لا يصح خلعه كا لصبىّ و المجنون و المعتوه و من افتل عقله لمرض او كبر سنّ. (الفقه الاسلامى و ادلته ج٧، ص ٤٩٠، المبحث الثالث، شروط الخلع)

# بــــاب العنين

## (د نامرد احكام او مسئلې)

## د عنين د ښځې حكم

**سوال:** د يوې نجلۍ له كوم هلك سره نكاح وشوه او له واده نه وروسته معلومه شوه چه هلك عنين (نامرده) دی او د زوجيت حقوق نه شي اداكولی او په علاج معالجې باندې هم جوړ نه شو۔ نجلۍ ځوانه ده، شرعاً دې مسئله څه حكم دی؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** كه چېرته د خاوند د نامرد والي علم منكوحې ته له نكاح څخه مخكښې نه وي او همدارنګه ښځه د هغه په نامردوالي باندې له خبريدو نه وروسته په نكاح كښې په اوسيدو باندې د رضاء اظهار نه وي كړی او خاوند ئې له هغې سره يو ځل هم جماع نه وي كړې۔ نو بيا قاضي او مسلمان حاكم په حكم سره خاوند ته به د علاج معالجې لپاره د يو كال مهلت وركول كيږي۔ كه چېرته په يو كال كښې جوړ نه شو نو د ښځې په مطالبې باندې قاضي او يا مسلمان حاكم به د دواړو تر منځ تفريق راولي او نكاح به فسخ كوي۔ او كه چېرته قاضي او يا حاكم د نكاح د فسخ لپاره ميسر نه وي نو ښځه پخپله هم خپله نكاح فسخ كولی شي كله چه خپل نفس ته د هغه له نكاح څخه د جدا كولو لپاره اختيار حاصل كړي۔

لما قال العلامة ابن عابدينؒ: و يكفى اختيار نفسها و لا يحتاج الى القضاء كخيار العتق و هو الاصل. كما فى غاية البيان و فى البدائع عن شرح مختصر الطحاوى ان الثانى اى عدم الاحتياج الى القضاء ظاهر الرواية. (رد المحتار على الدر المختار ج۲، ص۶۴۷، باب العنين، مطلب فى طبائع فصول السنة الاربع)

او دلته يوه خبره د يادونې وړ ده چه د علاج لپاره د يوه كال مهلت د قاضي او حاكم په حكم به د جګړې په وخت كښې تاكل كيږي۔ د يوه او بل سړي په ويلو سره له جنګ او جګړې څخه مخكښې به تاكنه اعتبار و نه لري۔

قال ابن عابدينؒ: و عبرة بتأجيل غير قاضى البلد الواجبة و لا يعتبر بتأجيل غير الحاكم كائناً من كان. (رد المحتار ج۲، ص۶۴۶، باب العنين. مطلب فى عطف الخاص على العام)

و فى الدر المختار: و يؤجل من وقت الخصومة. (ج۲، ص۶۴۶، باب العنين)

قال العلامة المرغينانىؒ: و اذا كان الزوج عنيناً اجل الحاكم سنة فان وصل اليها فبها و الا فرق بينهما اذا طلبت المرأة ذلك. (الهداية ج۳، ص۳۹۹، باب العنين و غيره) و مثله فى الهندية ج۱، ص۵۲۳، الباب الثانى فى العنين.

## په لومړي سر كښې د رضامندي په صورت كښې خيار باطلـــــيږي

**سوال:** كه چېرته يوه ښځه ابتداءً د عنين خاوند سره په اوسيدو باندې رضا ظاهره كړي او كال دوه كاله وروسته له خاوند څخه د بيليدو دعوٰی په عدالت كښې دائره كړي نو آيا دا ښځه له خاوند څخه د جدا كيدو شرعاً حق لري او كه نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** كه چېرته كومه ښځه له واده نه وروسته د خپل خاوند په نامردوالي باندې



پوهه شي نو هغې ته د عدالت په ذريعه د نكاح د فسخ كولو اختيار شته او كله چه ابتداءً د داسې خاوند سره رضا ظاهره كړې وي نو بيا هغه د تفريق يعنې د نكاح د فسخ كولو حق نه لري۔

قال الشيخ وهبة الزحيلى: اشترط الفقهاء شرطين لثبوت الحق فى طلب التفريق با لعيب و هما...... (۲) الا يرضى با لعيب بعد العقد فان كان طالب التفريق جاهلاً با لعيب ثم علم به بعد ابرام العقد و رضى به سقط حقه فى طلب التفريق. (الفقه الاسلامى و ادلته ج۷، ص۵۲۱، شروط التفريق با لعيب)

قال العلامة ابن نجيمؒ: و ان اختارته بطل حقها...... اشار ببطلانه باختيارها الى انه لو فرق بينهما ثم تزوجها ثانياً لم يكن لها خيارٌ لرضاها بحاله كما لو تزوجته عالمة بحالة على المفتى به. (البحر الرائق ج۴، ص۱۲۵، باب العنين) و مثله فى الدر المختار على صدر رد المحتار ج۳، ص۵۰۰، باب العنين.

## د فسخ د خيار د ختميدو شرطونه

**سوال:** كه چېرته يوې ښځې ته په كومې طريقې سره دا معلومه شي چه خاوند ئې په جماع باندې قادر نه دی نو له دې سره سره ئې حسن او جمال، يا د مال او دولت د لالچ له مخې نكاح ورسره وكړه او له څه وخت نه وروسته په دې بناء باندې د تفريق مطالبه وكړه چه دا سړی په جماع باندې قادر نه دی۔ نو آيا نوموړې ښځه د نكاح د فسخ كولو حق لري او كه نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د احنافو علماوؤ په نزد په خاوند كښې د عيب له وجهې د نكاح د فسخ كولو لپاره څو شرائط دي۔

﴿۱﴾ دا چه ښځې ته له نكاح څخه مخكښې د خاوند د عيب علم نه وي۔

﴿۲﴾ دا چه كه چېرته ښځې ته د خاوند عيب له نكاح څخه مخكښې معلوم وي او له دې سره سره ئې نكاح ورسره وكړه نو بيا ورته د جدايي د غوښتنې حق حاصل نه دی۔ همدارنګه په صورت مسئوله كښې هم نوموړې ښځه د نكاح د فسخ حق نه لري۔

لما قال العلامة ابو زهرةؒ: و يشترط للتفريق فى العنة و الجب و الخصاء ثلاثة شروط (اولاً) الا تكون عالمة بذلك عند العقد فان علمت به عند العقد و رضيت فانه ليس لها الحق فى طلب التفريق بسببه. (الاحوال الشخصيه ص۳۵۶، التفريق للعيب)

قال الشيخ وهبة الزحيلى: اشترط الفقهاء شرطين لثبوت الحق فى طلب التفريق با لعيب و هما (۱) الا يكون طالب التفريق عالماً با لعيب وقت العقد فان علم به فى العقد و عقد الزواج لم يحق له طلب التفريق لان قبوله التعاقد مع علمه با لعيب رضا منه با لعيب. (الفقه الاسلامى وادلته ج۷، ص۵۲۱، شروط التفريق با لعيب) و مثله فى الدر المختار على صدر رد المحتار ج۳، ص۵۰۰، باب العنين.

## د خصي او عنين حكم يو دی

**سوال:** جناب مفتي صاحب! لكه څرنګه چه د عنين لپاره د علاج او معالجې لپاره د يوه كال مهلت وي نو آيا خصي ته هم يو كال مهلت وركول كيږي او كه له مهلت پرته به د خاوند او ښځې تر منځ تفريق راوستل كيږي؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** عنين او خصي دواړو ته به قاضي د علاج لپاره د يوه كال مهلت

وركوي تر څو چه په دې وخت كښې دوى خپل علاج وكړي او د جماع طاقت پيدا كړي- او كه چېرته له دې سره سره د جماع قابل نه شي نو د يوه كال له مهلت نه وروسته به د دواړو له خپلو ښځو سره تفريق كيږي-

لما قال العلامة الامام ابو زهرةؒ: اما العنة و الخصاء فلا يحكم القاضى با لتفريق فيهما بمجرد طلبها و ثبوت عدم قبولها بل لا بد من تاجيلها سنة و يثبت انه لم يقربها و ذٰلك لان عمر رضى الله عنه اجل التفريق سنة عند ما طلبت امرأة التفريق لان زوجها لم يقربها. (الاحوال الشخصيه ص ۳۵۷، التفريق للعيب)

قال العلامة ابن نجيم المصرىؒ: و اجل سنة لو عنينا او خصياً و هو من نزع خصيتاه و بقى ذكره. (البحر الرائق ج٤، ص ۱۲٤، باب العنين) و مثله فى الدر المختار على صدر رد المحتار ج۳، ص ٤۹٦، باب العنين.

## د مقطوع الذكر حكم

**سوال:** كه چېرته يو سړى مجبوب (د تناسل آله ئې با لكل نه وي) نو آيا د اسې سړي ته به هم يو كال مهلت وركول كيږي او كه نه؟ بينوا توجروا-

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د واده له كولو نه وروسته كه چېرته د كومې ښځې خاوند مجبوب يا مقطوع الذكر وي نو هغه ته د مهلت په وركولو كښې چونكه هيڅ ګټه نشته او نه هغه مقصد حاصليږي كوم چه د هغه لپاره مهلت وركول كيږي نو ځكه د مجبوب او د ښځې تر منځ ئې د مهلت له وركولو نه مخكښې به قاضي تفريق راولي-

قال العلامة ابن نجيم المصرىؒ: وجدت زوجها مجبوباً فرق فى الحال و هو من استوصل ذكره و خصيتاه...... و انما لم يؤجل لعدم الفائدة. (البحر الرائق ج٤، ص ۱۲۲، باب العنين وغيره)

قال العلامة علاؤ الدين الحصكفى رحمه الله: اذا وجدت المرأة زوجها مجبوبا او مقطوع الذكر فقط او صغير جداً كا لزر...... فرق الحاكم بطلبها...... بينهما فى الحال و لو المجبوب صغير العدم فائدة التاجيل. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج۳، ص ٤۹٤، باب العنين)

## له عقيم سړي څخه د نكاح د فسخ حكم

**سوال:** جناب مفتي صاحب! يو سړى په جماع باندې قادر دى ليكن د ډاكټر د راپور مطابق ئې په مادۀ منويه كښې د اولاد د پيدا كيدو جراثيم ختم شوي دي په داسې حال كښې چه ښځه ئې تندرسته او د بچي د پيدا كيدو صلاحيت لري نو آيا داسې ښځه نكاح فسخ كولى شي او كه نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** چا ته اولاد وركول او نه وركول د الله تعالى كار دى چه چا ته وغواړي نو اولاد وركوي او چا ته ئې چه خوښه شي نو اولاد نه وركوي- د جراثيم نشت والى كوم عيب نه دى او نه د ډاكټر راپور قطعي حكم دى- لهذا كله چه د كومې ښځې خاوند په نفس جماع باندې قادر وي نو هغې ته دا اختيار نشته چه خپله نكاح د عدالت په ذريعه فسخ كړي-

لما قال العلامة المرغينانىؒ: اذا كان الزوج عنيناً اجل الحاكم سنة فان وصل اليها فبها و الا فرق بينهما اذا طلبت المرأة ذٰلك. (الهداية ج۲، ص ۳۹۹، باب العنين)



# باب العدة
## (د عدت احكام او مسئلې)
## د كونډې ښځې عدت

**سوال:** د كومې ښځې چه خاوند مړ شي نو د وهمې نكاح د كولو لپاره دې ته د څومره وخت د انتظار كولو حكم دى؟ آيا د حمل له وجهې په عدت كښې كموالى او زياتوالى ممكن دى او كه نه؟ بينوا توجروا-

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د كومې ښځې چه خاوند مړ شي نو د هغې لپاره څلور مياشتې او لس ورځې عدت تيرول ضروري دي- د عدت په دوران كښې په دوهمې نكاح او يا نورو امورو مشغول اوسيدل ناجائز او حرام دي او كومه ښځه چه حامله وي نو د هغې عدت د حمل تر وضع پورې دى اګر كه نهه مياشتې او يا يو ساعت وي-

و قال الله تبارك و تعالىٰ: وَ اُولَاتُ الْاَحْمَالِ اَجَلُهُنَّ اَنْ يَّضَعْنَ حَمْلَهُنَّ. (الطلاق، آيت ٤)

و ايضاً قال عز وجل: وَ الَّذِيْنَ يُتَوَفَّوْنَ مِنْكُمْ وَ يَذَرُوْنَ اَزْوَاجاً يَّتَرَبَّصْنَ بِاَنْفُسِهِنَّ اَرْبَعَةَ اَشْهُرٍ وَّ عَشْراً. (سورة البقرة، آيت ۲۳٤)

او رسول الله ﷺ په يوه حديث شريف كښې فرمايلي دي: لا يحل لامرأة تؤمن با لله و اليوم الآخر ان تحد على ميت فوق ثلاث الا على زوج اربعة اشهر و عشرا. (صحيح مسلم ج۱، ص٤۸۷، باب وجوب الاحداد فى عدة الوفات و تحريمه فى غير ذٰلك الا ثلاثة ايام)

و قال العلامة ابن عابدين رحمه الله: تحت قول الحصكفىؒ وضع جميع حملها اى بلا تقدير بمدة سواء ولدت بعد الطلاق او الموت بيوم او اقل. (ردّ المحتار ج۲، ص ٦٥٦، باب العدّة)

قال العلامة قاضى خان رحمه الله: فان كانت المعتدة عن الطلاق او الموت حاملاً فعدتها بوضع الحمل. و فيه ايضاً و عدّة الوفات على الحرة اربعة اشهر و عشرا. (الفتاوى قاضى خان على هامش الهندية ج۱، ص ۵۵۰، باب العدّة) و مثله فى الهندية ج۱، ص۵۲۸/۵۳۳، الباب الثالث عشر فى العدة.

## تر دخول مخكښې د مطلقه ښځې عدت

**سوال:** كه چېرته يو سړى له دخول څخه مخكښې خپلې ښځې ته درې طلاقونه وركړي نو آيا په داسې حالت كښې په مطلقه باندې د عدت تيرول ضروري دي او كه نه؟ بينوا توجروا-

**الجواب باسم ملهم الصواب:** له همبسترۍ او يا له خلوت صحيحه څخه مخكښې د طلاق وركولو په صورت كښې د مطلقې په ذمه باندې د عدت تيرول واجب نه دي- له دې وجهې چه كله منكوحې ته له دخول څخه مخكښې طلاق وركړى شي نو فوراً او يا له تاخير او ځنډ پرته په بل ځاى كښې نكاح كولى شي-

لما قال الله عز وجل: وَ اِنْ طَلَّقْتُمُوْهُنَّ مِنْ قَبْلِ اَنْ تَمَسُّوْهُنَّ فَمَا لَكُمْ عَلَيْهِنَّ مِنْ عِدَّةٍ تَعْتَدُّوْنَهَا. (سورة الاحزاب، آيت ٤۹،

لماقال العلامة الکاسانی رحمه اللّٰه: و شرط وجوبها (ای العدة)...... الدخول و ما یجری مجر الدخول و هو الخلوة الصحیحة. (بدائع الصنائع ج۳، ص۱۹۱، باب العدّة، فصل و منها ان یکون النکاح الثانی صحیح) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۵۲۶، الباب الثالث عشر فی العدّة.

## د نـــــابالغې نجلۍ عـــــدت

**سوال:** که څېرته يو سړی خپلې نابالغې ښځې ته له همبسترۍ څخه وروسته طلاق ورکړي نو عدت به ئې څه وي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** نابالغه ښځه د حيض د نشت والي له وجهې به د مياشتو په اعتبار سره عدت تيروي. نو څکه د دريو مياشتو له تيرولو نه وروسته به مطلقه آزاده وي. بيا هم که څېرته دعدت په دوران کښې ئې حيض راشي نو بيا به ئې عدت د مياشتو په ځای په حيض باندې شمارل کيږي.

قال اللّٰه تبارك و تعالى: وَ اللّٰئِی یَئِسْنَ مِنَ الْمَحِیْضِ مِنْ نِّسَآئِکُمْ اِنِ ارْتَبْتُمْ فَعِدَّتُهُنَّ ثَلٰثَةُ اَشْهُرٍ. (سورة الطلاق، آيت ٤)

و فی الهندیة: و العدّة لمن لم تحض لصغر او کبر او بلغت با لسّنّ و لم تحض ثلاثة اشهر کذا فی النقایة و کذا لو رأت دماً یوما ثم لم تر فعدّتها با لشهور و هو الصحیح و لو رأت ثلاثة دماً ثم انقطع فعدّتها با لحیض الخ. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۵۲۶، باب العدّة)

قال العلامة برهان الدین المرغینانیؒ: و ان کانت ممن لا تحیض من صغر او کبر فعدّتها ثلاثة اشهر. (الهدایة ج۲، ص۴۰۱، باب العدّة) و مثله فی البحر الرائق ج٤، ص۱۳۰، باب العدّة.

## معتده (هغه ښځه چه په عدت کښې وي) به عدت چېرته تيروي

**سوال:** د عدت تيروونکې ښځې لپاره د عدت په دوران کښې د خاوند له کور څخه پرته په بل ځای کښې اوسيدل څنګه دي؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د معتدې لپاره د خاوند له کوره وتل جائز نه دي. په کوم کور کښې چه په هغې باندې طلاق واقع شوی وي او يائې خاوند مړ شوی وي ښځه به هم هغلته عدت تيروي څکه چه د کومې ښځې مصارف او خرڅه د خاوند په ذمه باندې وي نو د هغې لپاره د خاوند له کوره په هيڅ وخت کښې وتل جائز نه دي. البته د متوفی د ښځې لپاره په ورځ کښې د دومره ضرورت لپاره وتل جائز دي چه په څومره وخت کښې د اخپل دنيوي ضرورتونه پوره کولی شي ليکن د شپې به بيرته د خاوند کره خامخا راځي. بيا هم که څېرته ئې کور د کرايې وي او د کونډې لپاره د کرايې انتظام مشکل وي نو بيا د داسې ضرورت له وجهې د والدينو په کور کښې د عدت ورځې تيرولی شي.

لما قال العلامة الحصکفیؒ: و تعتد ان ای معتدة طلاق و موت فی بیت وجبت فیه الا ان تخرج او ینهدم المنزل او تخاف انهدامه او تخاف تلف مالها او لا تجد کراء البیت و نحو ذٰلك من الضرورات فتخرج لاقرب موضع الیه. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص٦٧٤، باب العدّة)



و فی الهندیة: علی المعتدة ان تعتد فی المنزل الّذی یضاف الیها با لسکنٰی حال وقوع الفرقة او الموت، و فیه. و ان اضطرت الی الخروج من بیتها...... فی عدة الوفات فلا بأس عند ذٰلك ان تنتقل ...... الخ. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۵۳۵، الباب الرابع عشر فی الحداد) و مثله فی البحر الرائق ج٤، ص١٥٤، فصل فی الاحداد.

## د عدت په حالت کښې د خاوند په کور کښې اوسيدل ضروري دي

**سوال:** يوه سړي خپلې ښځې ته درې طلاقونه ورکړل. اوس دواړه د دوباره ژوند لپاره په حلاله باندې سره راضي دي ليکن ښځه چونکه حامله ده چه له مخې ئې د حمل له وضع پرته په بل ځای کښې نکاح کول ورته جائز نه دي نو په دې صورت کښې به نوموړې ښځه چېرته اوسيدل اختياروي؟ آيا د خاوند په کور کښې اوسيدلی شي؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د صورت مسئوله مطابق د دې ښځې لپاره د عدت په دوران کښې د خاوند په کور کښې نه يوازې دا چه اوسيدل جائز دي بلکه ضروري هم دي. بيا هم که څېرته له نکاح نه مخکښې د خاوند له خوا څخه که څېرته د فسق او فجور خطره وي نو د داسې خطرې د مخنيوي لپاره له خلوت څخه اجتناب کول او يا نور احتياطي تدابير اختيارول ضروري دي تو څو چه د زنا او د اسې نورو له ارتکاب څخه بچ شي.

قال العلامة الحصکفیؒ: لهما ان یسکنا بعد الثلث فی بیت واحد، اذا لم یلتقیا التقاء الازواج و لم یکن فیه خوف فتنة و فیه العدّة)

قال ابن نجیمؒ: فلا بأس بان یسکنا فی بیت واحد اذا کان عدلاً سواء کان الطلاق رجعیا او بائناً او ثلاثاً و الافضل ان یحال بینهما فی البیتوتة بستر الا ان یکون الزوج فاسقاً فیحال بامرأة ثقة تقدر علی الحیلولة بینهما. (البحر الرائق ج٤، ص١٥٤، باب العدّة، فصل فی الاحداد) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۵۳۵، الباب الرابع عشر فی الاحداد.

## د زنا په ارتکاب سره عدت نه متاثر کيږي

**سوال:** که څېرته د مغلظه مطلقې سره خاوند د عدت په دوران کښې زنا وکړي نو آيا په دې سره د مطلقې عدت متاثر کيږي او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که څېرته د مغلظې مطلقې سره خاوند د عدت په دوران کښې زنا وکړي نو عدت به جاري وي او عدت بالکل پرې نه متاثر کيږي.

لما فی الهندیة: و اما المطلّقة ثلاثاً اذا جامعها زوجها فی العدّة مع علمه انّها حرام علیه و مع اقراره با لحرمة لا تستأنف العدة. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۵۳۲، الباب الثالث عشر فی العدّة)

قال العلامة ابن عابدینؒ: لو وطئها بعد الثلاث فی العدّة بلا نکاح عالماً بحرمتها لا تجب عدة اخری لانه زنا. (ردّ المحتار ج۲، ص٦٦١، باب العدّة) و مثله فی الخانیة علی هامش الهندیة ج۱، ص۵۵۳، فصل فی انتقال العدّة.

## د ښځې لپاره د خاوند په کور کښې د عدت تيرولو وجه

**سوال:** له طلاق نه وروسته ښځې د خاوند په کور کښې د عدت د تيرولو حکم ولې شوی دی؟ په د اسې حال کښې چه ښځه په بل ځای کښې هم عدت تيرولی شي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** اګر که په ښځې باندې دا لازم نه دي چه د طلاق له وجهې د عدت تیرولو په صورت کښې به د خاوند په کور کښې اوسیږي لیکن د عدت په دوران کښې چونکه د دې نکاح له بل چاسره نه شي کیدلی نو له دې وجهې شریعت د دې د خرڅې د متبادل نظام تر نشت والي پورې د خاوند ذمه واري ګرځولې ده. برسیره پر دې دا هم ممکنه ده چه که ښځه حامله وي او د بچي تر ولادته پورې ښځه د خاوند په حق کښې محبوسه ګڼل کیږي نو د دې لپاره ښځې ته د خاوند له کوره پرته کوم بل او بهتر ځای نه میسر کیږي او د رجعي طلاق په صورت کښې ممکنه ده چه د خاوند په کور کښې د اوسیدلو په صورت کښې د دوباره تعلقاتو د بحالۍ ذریعه هم ثابته شي.

قال العلامة الامام الکاسانیؒ: و انما تجب هٰذه العدّة ای عدة الاقراء لاستبراء الرحم فوجبت العدّة لیعلم بها فراغ الرحم و شغلها. و ایضاً قال: و انها تجب لاظهار الحزن بفوت نعمة النکاح. (بدائع الصنائع ج۳، ص۱۹۱/۱۹۲، کتاب الطلاق، فصل و اما العدة با لاشهر فنوعان و فی الفصل قبله)

قال الشیخ الدکتور وهبة الزحیلی: "فی بیان وجه العدّة" براء ة الرّحم و صون النسب و اعطاء الفرصة الکافیة للزوج بعد الطلاق لیعود زوجته المطلقة. (الفقه الاسلامی و ادلته ج۷، ص۶۲۷، باب العدّة)

## د عدت کم تر کمه موده

**سوال:** کومه ښځه چه حامله نه وي له طلاق نه وروسته دعوٰی وکړي چه زما عدت تیر شوی دی نو په څومره وخت کښې به ئې خبرې ته اعتبار ورکول کیږي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د صاحبینوؒ په نزد د داسې دعوې لپاره کم تر کمه د نهه دیرشو ورځو تیریدل ضروري دي ځکه چه کم تر کمه د دریو حیضونو لپاره نهه ورځې او دوو طهرونو لپاره دیرش ورځې په کار وي. بیا هم د ښځې عادت ته په نظر کولو سره له نهه دیرشو ورځو څخه د زیات وخت په فیصله کولو کښې څه حرج نشته.

لما قال العلامة الحصکفیؒ: قالت مضت عدّتی و المدّة تحتمله و کذبها الزوج قبل قولها و الا تحتمله المدة لا. و قال العلامة ابن عابدینؒ: فی هٰذا المقام و عندهما اقل مدة تصدق فیها الحرة تسعة و ثلاثون یوماً ثلاث حیض بتسعة ایّام و طهران بثلاثین. (رد المحتار ج۲، ص۶۶۵، باب العدّة، مطلب فی وطیء المعتدة بشبهه)

قال العلامة برهان الدین المرغینانی رحمه اللّٰه: و اذا قالت المعتدة انقضت عدتی و کذبها الزوج کان القول قولها مع الیمین. (الهدایة ج۲، ص۴۰۴، کتاب الطلاق، باب العدّة) و مثله فی فتح القدیر ج۴، ص۱۵۶، باب العدّة، کتاب الطلاق.

## د خپل منځي تعلقاتو د قطع کیدو سره سره د مطلقې لپاره عدت ضروري دی

**سوال:** که چیرته ښځه له خپل خاوند څخه تښتیدلې وي او له کوم بل سړي سره تر ډیره وخته پورې په غیر شرعي تعلقاتو باندې تورنه وي او له ډیرو کلونو څخه ئې له خپل خاوند سره هیڅ تعلق نه وي. په دې حالت کښې که چیرته خاوند طلاق ورکړي نو آیا په داسې ښځې باندې د عدت تیرول ضروري دي او که نه؟



**الجواب باسم ملهم الصواب:** تر څو پورې چه منکوحې ته د خاوند له خوا څخه طلاق نه وي ورکړ شوی نو د خاوند او ښځې تر منځ تر ډیره وخته پورې له یوه او بل څخه د جدایي له وجهې نکاح نه خرابیږي. د نکاح په موجودوالي کښې چه د ښځې بچی پیدا شي نو د نکاح له وجهې ئې نسب له خاوند څخه ثابتیږي. په دې حالت کښې د نسب انتفاء په لعان باندې موقوف دی. له دې وجهې چه تر څو پورې د نکاح بقاء په زوال باندې منتج نه وي نو د ښځې لپاره به عدت ضروري وي اګر که له ډیره وخته راهیسې د خاوند او ښځې تر منځ تعلقات ختم شوي وي.

قال اللّٰه تبارك و تعالٰی: وَ الْمُطَلَّقٰتُ یَتَرَبَّصْنَ بِاَنْفُسِهِنَّ ثَلٰثَةَ قُرُوْءٍ. (سورة البقرة)

و قال النبی علیه الصلٰوة و السلام: "الولد للفراش". (رواه ابو داؤد ج۱، ص۳۱۷، عن عروة عن عائشه رضی اللّٰه عنها)

قال العلامة المرغینانیؒ: و یثبت نسب ولد المطلقة الرجعیة اذا جاء ت لسنتین او اکثر ما لم تقر بانقضاء عدّتها. (الهدایة ج۲، ص۴۰۹، کتاب الطلاق، باب العدّة) و مثله فی ردّ المحتار ج۲، ص۶۷۶، باب العدّة، فصل فی ثبوت النسب.

## د عدت ابتداء به د نکاح له زوال څخه شمارل کیږي

**سوال:** یوې ښځې له خپل خاوند څخه د څلورو کلونو څخه جلا اوسیدله او ملاقات ئې هم نه دی سره شوی. اوس ئې چه خاوند خلع ورسره کړې نو آیا په نوموړې ښځې باندې به عدت وي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په صورت مسئوله کښې د خاوند او ښځې له یوه او بل څخه تر ډیرې مودې پورې د جدا اوسیدو سره سره ئې نکاح باقي ده. د نکاح زوال چونکه د خلع یا طلاق په ورکولو سره راځي نو د دې لپاره دا وخت د نکاح له زوال څخه شروع کیږي او په ښځې باندې عدت لازمیږي.

لما قال علاؤ الدین الحصکفیؒ: و مبدأ العدة بعد الطلاق و بعد الموت علی الفور. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص۶۶۲، باب العدّة، مطلب فی وطئی المعتدة بشبهه)

قال العلامة المرغینانیؒ: و ابتداء العدّة فی الطلاق عقیب الطلاق. (الهدایة ج۲، ص۴۰۴، کتاب الطلاق، باب العدّة) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۵۳۱، کتاب الطلاق، فی الباب الثالث عشر فی العدّة.

## د عدت په دوران کښې رجوع بالقول کافي دی

**سوال:** یوه سړي خپلې ښځې ته طلاق ورکړ لیکن وروسته ئې، د عدت په آخري ورځو کښې د رجوع اراده وکړه. د خپل منځي تعلقاتو په ځای ئې یوائې د دوو شاهدانو په مخکښې دا وویل چه ما خپلې ښځې ته رجوع کړې ده نو آیا نوموړی سړی دا ښځه اوس پخپل نکاح کښې ساتلې شي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د عدت د تیریدو نه مخکښې د خاوند رجوع معتبره ده. د عدت په دوران کښې د رجوع لپاره د کوم عملي اقدام په ځای رجوع بالقول هم کافي دی نو د دې لپاره د

دوو ګواهانو په مخکښې به ئې رجوع ته اعتبار ورکول کیږي او دواړه د خاوند او ښځې په حیث سره اوسیدلی شي۔

لما فی الهندیة: فا لرجعة ان یراجعها با لقول و یشهد علی رجعتها شاهدین الخ. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۴٦٨، کتاب الطلاق، الباب السادس فی الرجعة و فیما تحل به المطلقة و ما یتصل به)

قال العلامة المرغینانیؒ: و الرجعة ان یقول راجعتك او راجعت امرأتی. (الهدایة ج۲، ص۳۷۳، کتاب الطلاق، باب الرجعة) و مثله فی ردّ المحتار ج۲، ص۵۷۳، کتاب الطلاق، باب الرجعة.

## په عدت کښې د ښځې ټوله خرڅه په خاوند باندې ده

**سوال:** که چېرته څوك خپلې ښځې ته درې طلاقونه ورکړي او فارغه ئې کړي نو چونکه د خاوند او مطلقې ښځې خپل منځي تعلقات په رجوع او یا د نکاح په تجدید نه جوړیږي نو د عدت په دوران کښې د مطلقې د خرڅې ذمه وار به څوك وي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** مطلقه که مغلظه وي او که بائنه د عدت په دوران کښې ئې خوراك، پوشاك او د استوګنې ټول اخراجات د خاوند په ذمه باندې دي۔ که چېرته ئې خاوند په رضا او رغبت د مصارفو د ادا کولو لپاره تیار نه وو نو ښځه د وخت د حاکم او یا قاضي په ذریعې سره له خاوند څخه د خپلو حقوقو د حاصلولو غوښتنه کولی شي۔

قال العلامة المرغینانیؒ: و اذا طلق الرجل امرأته فلها النفقة او السکنٰی فی عدتها رجعیاً کان او بائناً. (الهدایة ج۲، ص۴۲۱، کتاب الطلاق، باب النفقة)

قال ابن عابدینؒ: تحت قول الحصکفیؒ و تجب المطلقة الرجعی و البائن لان النفقة تابعة للعدة و قید با لرجعی و البائن احتراز عما لو اعتق ام ولده. (رد المحتار ج۲، ص۷۲٦، باب النفقة، مطلب فی نفقة المطلقة......) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۵۵۷، کتاب الطلاق، الفصل الثالث فی نفقة المعتدة.

## د وفات په عـــــدت کښې به د ښځې نفقه په چا باندې وي؟

**سوال:** د وفات په عدت کښې که چېرته کونډې ته عدت تیرول لازم وي نو د خرڅې ذمه وار به ئې څوك وي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د منکوحې اخراجات د خاوند په ذمه باندې وي لیکن د خاوند په وفات باندې پخپل منځ کښې د تعلق د ختمیدو له وجهې د خاوند ذمه واري له منځه ځي۔ چنانچه له وارثانو څخه ئې دا مطالبه نه شي کیدلی نو له دې وجهې ښځه به خپل مصارف پخپله زغمي۔ بیا هم که چېرته د خپلو اخراجاتو څخه قاصره وي نو بیا په عصبه (خپلوانو) باندې د دې د خرڅې ذمه واري اوړي۔

قال برهان الدین المرغینانی رحمه الله: و لا نفقة للمتوفی عنها زوجها. (الهدایة ج۲، ص۴۲۲، کتاب الطلاق، باب النفقة)

و قال ایضاً: و النفقة لکل ذی رحم محرم اذا کان صغیراً فقیرا او کانت امرأة بالغة فقیرة. (الهدایة ج۲،



ص۴۲۵، کتاب الطلاق، باب النفقة)

قال العلامة الحصکفیؒ: لا نفقة لاحد عشر و عد منها معتدة موت. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص۷۰۳، باب النفقة، مطلب لا تجب علی الاب نفقة زوجة ابنه الصغیر) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۵۵۸، کتاب الطلاق، الباب السابع عشر فی النفقات و فیه ستّة فصول، الفصل الثالث فی نفقة المعتدة.

## د عدت په ورځو کښې د تقاعد د اخیستلو لپاره له کوره د وتلو حکم

**سوال:** زما خاوند وفات شوی دی او ما ته هره میاشت د خپل تقاعد د اخیستلو لپاره دفتر ته تلل ضروري دي په داسې حال کښې د دفتر مالکان له ما پرته مې تقاعد بل چا ته نه ورکوي او د غربت او افلاس مې دا حالت دی چه له هغه بغیر مې ګذاره نه کیږي نو آیا زه د عدت په دوران کښې د تقاعد لپاره له کوره وتلې شم او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** اګر که د ښځې لپاره د عدت په دوران کښې له کوره د باندې وتل جائز نه دي لیکن شریعت مطهره سخت ضرورت ترې مستثنٰی کړی دی۔ نو د دې لپاره د دې مجبورۍ په خاطر چه ستا تقاعد بل چا ته نه ورکوي او له هغه بغیر دې ګذاره هم نه کیږي ته د خپل تقاعد د اخیستلو لپاره تللې شې لیکن د ضرورت له پوره کیدو وروسته به فوراً بیرته کور ته راځې۔

قال العلامة الحصکفیؒ: و تعتد ان ای معتدة طلاق و موت فی بیت وجبت فیه و لا یخرجان منه الا ان تخرج او یتهدم المنزل او تخاف انهدامه او تلف مالها او لا تجد کراء البیت و نحو ذٰلك من الضرورات فتخر لاقرب موضع الیه. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۳، ص۵۳٦، فصل فی الحداد)

قال العلامة ابن نجیم المصری رحمه الله: فقالوا لا تخرج المعتدة عن طلاق او موت الا لضرورة لان المطلقة تخرج للضرورة بحسبها لیلاً کان او نهاراً و المعتدة عن موت کذٰلك. (البحر الرائق ج٤، ص۱۵۳، فصل فی الحداد)

## د عدت په وخت کښې د ویزې د حصول لپاره د وتلو حکم

**سوال:** که چېرته په سفر کښې د کومې ښځې خاوند مړ شي او د عدت په دوران کښې ښځې ته د ویزې د لګولو ضرورت پیدا شي او د دې ښځې له تللو نه بغیر د ویزې لګول ممکن نه وي نو آیا نو موړې ښځې ته د عدت په دوران کښې د ویزې د لګولو لپاره متعلقه دفتر ته تللې شي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** عدت که د طلاق وي او که د وفات د دواړو په دوران کښې ښځه له سخت ضرورت پرته له کوره نه شي وتلې۔ البته که چېرته دومره سخت ضرورت وي چه هغه ځای ته د ښځې له تلو پرته مسئله نه حل کیدله نو د داسې مجبورۍ په خاطر ښځه له کوره وتلې شي لیکن د شپې لپاره به خامخا بیرته کور ته راځي۔ لهذا په صورت مسئوله کښې ښځه د ویزې د حصول لپاره د عدت په دوران کښې تللې شي۔

قال العلامة الحصكفيؒ: و تعتد ان اى معتدة طلاق و موت فى بيت وجبت فيه و لا يخرجان منه الا ان تخرج او ينهدم المنزل او تخاف انهدامه او تلف مالها او لا تجد كراء البيت و نحو ذٰلك من الضرورات فتخر لاقرب موضع اليه. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج۳، ص۵۳٦، فصل فى الحداد)

قال العلامة ابن نجيم المصرى رحمه اللّٰه: فقالوا لا تخرج المعتدة عن طلاق او موت الا لضرورة لان المطلقة تخرج للضرورة بحسبها ليلاً كان او نهاراً و المعتدة عن موت كذٰلك. (البحر الرائق ج٤، ص۱۵۳، فصل فى الحداد)

## په دار الحرب کښې د نوې مسلمانې شوې ښځې د عدت حکم

**سوال:** که چېرته یوه کافره واده شوې ښځه په دار الحرب کښې مسلمانه شي نو آیا دا ښځه د عدت په تیرولو سره له مسلمان سړي سره نکاح کولی شي او که نه؟ او که کولی ئې شي نو عدت به څنګه تیروي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** کله چه یوه کافره ښځه په دار الحرب کښې مسلمانه شي او هتله شرعي قاضي نه وي نو اول به درې حیضه عدت تیروي او بیا به له اول خاوند څخه آزادیږي۔ له دې وروسته ئې له یو مسلمان سړي سره نکاح صحیح ده۔

لما قال العلامة الحصكفيؒ: و لو اسلم احدهما ثمه لم تبن حتىٰ تحيض ثلاثاً او تمضى ثلٰثة اشهر قبل اسلام الآخر. قال ابن عابدينؒ و هل تجب العدة بعد مضى هٰذه المُدّة. (رد المحتار ج۲، ص٦٤۱، باب نكاح الكافر)

قال العلامة المرغينانى رحمه اللّٰه: و اذا سلمت المرأة فى دار الحرب و زوجها كافر او اسلم الحربى و تحته مجوسية لم يقع الفرقة عليها حتىٰ تحيض ثلٰث حيض ثم تبين من زوجها. (الهداية ج۲، ص٤۲، باب نكاح اهل الشرك) و مثله فى شرح الوقاية ج۲، ص٦۱، باب نكاح الرقيق و الكافر.

## د وفات د عدت په دوران کښې د حج لپاره د تللو حکم

**سوال:** جناب مفتي صاحب! ما له خپل ورور سره د حج لپاره داخله کړې وه او منظوره شوې هم وه چه په دې دوران کښې مې خاوند مړ شو نو اوس پوښتنه دا ده چه آیا زه د دې عدت په حالت کښې د حج د ادا کولو لپاره تللې شم او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د کونډې ښځې لپاره د عدت په دوران کښې له سخت ضرورت پرته له کوره وتل جائز نه دي۔ البته که چېرته د ځان، مال او یا د کومې عضو د تکلیف خطره وي نو د داسې مجبورۍ له مخې وتل پروا نه کوي۔ حج اګر که اسلامي فریضه ده لیکن علی الفور نه دی۔ لهذا که چېرته له داخلې او منظورۍ نه وروسته روپۍ واپس کیدلی شوې نو د حج او نورو سفرونو لپاره وتل جائز نه دي او که چېرته د روپو د واپس کیدو امکان نه وي نو بیا مجبوراً د حج لپاره په سفر کولو او له کوره په وتلو کښې څه حرج نشته۔

قال العلامة علاؤ الدين الحصكفى رحمه اللّٰه: لا يخرج من بيتها الا ان تخرج او ينهدم المنزل....... فتخرج لاقرب موضع اليه. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج۳، ص۵۳٦، باب الحداد)



قال العلامة صدر الشريعة رحمه اللّٰه: و تخرج معتدة با لموت فى الملكوين (اى الّيل و النهار) و تبيت فى منزلها اذا لا تقعه لها فتحتاج الى الخروج....... و تعتد فى منزلها وقت الفرقة و الموت و الطلاق الا ان تخرج او خافت تلف مالها او الانهدام...... (شرح الوقاية ج۲، ص۱۵۳، باب العدّة، كتاب النكاح) و مثله فى الهداية ج۲، ص۱۲۳، باب العدة، كتاب النكاح.

## د حیض د نه راتلو په صورت کښې د مطلقې د عدت حکم

**سوال:** که چېرته یوې ښځې ته خاوند طلاق ورکړي وي او نوموړې ښځې ته تر ډېره وخته پورې حیض نه راتلو په داسې حال کښې چه عمر ئې هم تقریبا ۲۵ یا ۲٦ کاله ده۔ نو آیا د داسې ښځې به د عدت د تیرولو څه طریقه وي؟ آیا دا ښځه به د حیض تر راتلو پورې انتظار کوي او که له دریو میاشتو وروسته د دوهمه نکاح کولی شي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د حنفیه وؒ په نزد د مطلقې اصلي عدت په حیضونو پورې تړلی دی او د میاشتو عدت د آئسې او صغیرې سره خاص دی۔ نو له دې وجهې د اسې ښځه د آئسې د عدت انتظار کوي۔ لیکن نن صباء د مجبورۍ له وجهې متاخرینو علماوو د امام مالك په قول دا فتوىٰ کړې ده چه تر یوه کاله پورې به انتظار کوي او بیا به دوهمه نکاح کوي۔ بیا هم په دې قول باندې به عمل په هغه وخت کښې کیږي چه له علاج او معالجې نه وروسته هم حیض را نه شي۔ او دوهمه نکاح به هم د قاضي او د وخت د حاکم په اجازې پورې تړلې وي۔

و قال الشيخ اشرف علي التهانويؒ: د حنفیه وؒ په نزد د ایاس د مودې پورې د حیض انتظار ضروري دی او د مالکیه وو په نزد تر نهو میاشتو او د معتمد قول له مخې د طلاق عدت یو کال دی۔ او د ضرورت په وخت کښې په دې قول باندې عمل جائز دی۔ (امداد الفتاوىٰ ج۲، ص٤٩٠، کتاب الطلاق فصل في العده و الرجعه)

قال الشيخ وهبة الزحيلى: سنة كاملة لمعتدّة الطّهر التى لم يجئها الحيض او جائها ثم انقطع و لم تبلغ سنّ الياس. (الفقه الاسلامى و ادلته ج۷، ص٦٤۱، الفصل الرابع فى العدّة و الاستبراد)

## د طلاق د عدت په دوران کښې د خاوند وفات کیدل

**سوال:** یوې ښځې ته خاوند دوه طلاقه ورکړه او د عدت په دوران کښې ئې خاوند مړ شو نو اوس به دا ښځه کوم عدت تیروي، د وفات عدت او که د طلاق عدت؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په دې مسئله کښې د علماوو اتفاق دی چه کله یو سړی د خپلې ښځې د طلاق د عدت په دوران کښې مړ شي نو د ښځې د طلاق عدت ئې د وفات په عدت بدلیږي۔ لهذا نوموړې ښځه د طلاق د عدت په ځای د وفات عدت (څلور میاشتې او لس ورځې) تیروي په دې شرط چه خاوند ئې طلاق رجعي ورکړی وي۔

قال الشيخ وهبة الزحيلى: اذا مات الرّجل فى اثناء عدّة زوجته التى طلّقها طلاً رجعياً انتقلت با لاجماع من

عدّتها با لاقراء او الاشهر الی عدة وفاة و هی اربعة اشهر و عشرة ایّام سواء اکان الطلاق فی حال الصحة ام فی حال مرض الموت لان المطلّقة رجعیاً تعد زوجة ما دامت فی العدّة و موت الزوج یوجب علی زوجته عدّة الوفاة. (الفقه الاسلامی و ادلته ج۷، ص٦٤٦، الفصل الرابع فی العدّة و الاستبراد)

قال العلامة المرغینانیؒ: اما اذا کان رجعیاً فعلیها عدة الوفاة با لاجماع. (الهدایة ج۲، ص۴۰۲، باب العدّة) و مثله فی بدائع الصنائع ج۳، ص ۲۰۰، فصل فی بیان انتقال العدة و تغیّرها.

## له زنا څخه د حاملې ښځې د عدت حکم

**سوال:** که چېرته کومه ښځه د زنا مرتکبه شي او له همدې زنا څخه حامله هم شي نو آیا د ا ښځه په بل ځای کښې د نکاح لپاره به د حمل د وضع انتظار کوي او که نه؟ او که حمل ئې نه وي نو آیا دې ښځې عدت شته او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د عدت مشروعیت د یوې مقدسې رشتې د پرې کیدو په صورت کښې وي۔ له دې پرته ئې په بل ځای کښې مشروعیت نشته۔ لهذا له زنا څخه د حاملې ښځې لپاره هیڅ عدت نشته لیکن خاوند به د جماع د کولو لپاره تر یوه حیضه پورې انتظار کوي تر څو چه حامله نه وي۔ او که چېرته حامله وي نو د حمل تر وضع پورې جماع ورته جائزه نه ده۔

قال العلامه الکاسانیؒ: و لا تجب علی الحامل با لزنا لان الزنا لا یوجب العدّة الا انه اذا تزوج امرأة و هی حامل من الزنا جاز النکاح عند ابی حنیفةؒ و محمدؒ لا یجوز له ان یطأها ما لم تضع لئلاّ یصیر ساقیاً مائه زرع غیره. (بدائع الصنائع ج۳، ص۱۹۳، فصل و اما عدة الحبل)

قال ابن نجیمؒ: و قدمنا ان الحامل من الزنا لا عدة علیها عندهما و لذا صح نکاحها لغیر الزانی و ان حرما الوطیء و انما الکلام فیما اذا تزوجت علی قول ابی حنیفة و محمدؒ و هی حامل من الزنا ثم طلقها او مات عنها فانها تعتد بوضع الحمل. (البحر الرائق ج٤، ص۱٤۳، باب العدّة) و مثله فی امداد الاحکام ج۲، ص۸۷٦، باب العدّة.

## د وفات عــــدت د خاوند په کور کښې تیرول ضروري دي

**سوال:** که چېرته کومه ښځه د کورنۍ شخړې له وجهې د پلار کره لاړه شي او تر څو کلونو پورې هم هلته ناراضه ناسته وي چه ناڅاپه ئې خاوند مړ شي نو دا ښځه به د وفات عدت چېرته تیروي؟ د پلار په کور کښې او که د خاوند په کور کښې؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د وفات عدت یو ډول غم دی کوم چه شرعاً دې غم تیرول د خاوند په کور کښې لازم دي۔ د خاوند کور د ښځې خپل کور دی او د پلار کره ورتګ د هغې لپاره یوه ناڅاپي پیښه ده۔ له دې وجهې ښځه به د وفات عدت د خاوند په کور کښې تیروي۔ بیا هم که چېرته د خاوند په کور کښې د عدت تیرول ئې د فتنې او فساد سبب ګرځیده نو بیا د دې مجبورۍ له مخې د والدینو په کور کښې هم د وفات عدت تیرول ورته جائز دي۔

قال العلامة برهان الدین المرغینانیؒ: تعتد فی المنزل یضاف الیها با لسکنٰی حال وقوع الفرقة و الموت و لهٰذا لو



زارت اهلها و طلقها زوجها کان علیها ان تعود الی منزلها فتعتد فیه. (الهدایة علی صدر فتح القدیر ج٤، ص۱٦٦، باب العدّة)

و فی الهندیة: علی المعتدة ان تعتد فی المنزل الذی یضاف الیها با لسکنٰی حال وقوع الفرقة و الموت........ و لو کانت زائرة اهلها او کانت فی غیر بیتها لا مرحین وقوع الطلاق انتقلت الی بیت سکناها بلا تاخیر. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۵۳۵، فصل فی الحداد) و مثله فی البحر الرائق ج٤، ص۱۵٤، فصل فی الحداد.

## د وفات د عــــدت په دوران کښې د بیمارۍ لـــــه وجهې د ښځې لپاره د والدینو کــــور ته د تللو حکم

**سوال:** که چېرته کومه ښځه د وفات د عدت په دوران کښې مریضه شي او د خاوند په کور کښې ئې د مریضې کوم بندو بست نه وي نو آیا د دې مجبورۍ له مخې والدین ئې هغې لره خپل کور ته د علاج او معالجې لپاره راوستلې شي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د وفات د عدت په دوران کښې اګر که د ښځې لپاره د خاوند له کور څخه وتل جائز نه دي لیکن له دې څخه سخت ضرورتونه مستثنیٰ دي۔ په دغو ضرورتونو کښې بیماري هم داخله ده نو د دې لپاره د دې مجبورۍ له وجهې کونډې ښځې لره خپل والدین د علاج او معالجې په غرض سره خپل کور ته راوستلې شي۔

قال العلامة الحصکفیؒ: و تعتد ان فی بیت وجبت فیه الا ان تخرج او ینهدم المنزل او تخاف انهدامه او تلف مالها و لا تجد کراء البیت و نحو ذٰلك من الضرورة. (الدر المختارعلی هامش رد المحتار ج۳، ص۵۳٦، باب الحداد)

قال العلامة ابن نجیم المصریؒ: (تحت قوله و تعتد ان فی بیت وجبت فیه الا ان تخرج او ینهدم) ای معتدة الطلاق و الموت تعتد ان فی المنزل المضافات الیهما با لسکنٰی وقت الطلاق و الموت و لا یخرجان منه الا لضرورة لما تلونا من الآیة. (البحر الرائق ج٤، ص۱۵٤، فصل فی الحداد) و مثله فی امداد الفتاوٰی ج۲، ص٤۸۷، کتاب الطلاق، باب العدّة.

## د هرې ښځې لپاره د وفات عدت په خپل کور کښې تیرول لازمي دي

**سوال:** که چېرته د یوه سړي دوه ښځې وي او د هرې یوې کور جلا جلا وي او خاوند ئې د یوې په کور کښې مړ شي نو بله ښځه به ئې عدت چېرته تیروي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** ښځه چه په کور کښې اوسیږي د وفات او د طلاق عدت په هم هلته تیروي تر دې پورې چه که د ا ښځه د خپل بن کره د تعزیت لپاره تللې وي نو بیرته به راځي او عدت به پخپل کور کښې تیروي۔

قال العلامه علاؤ الدین الحصکفیؒ: طلقت او مات و هی زائرة فی غیر مسکنها عادت الیه فوراً لوجوبه علیها و تعتدان ای معتدة طلاق و موت فی بیت وجبت فیه و لا یخرجان منه الا ان تخرج. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۳، ص۵۳٦، باب العدة، فصل فی الحداد)

و فی الهندیة: علی المعتدة ان تعتد فی المنزل الذی یضاف الیها با لسکنٰی حال وقوع الفرقة و الموت. کذا فی الکافی. و لو کانت زائرة اهلها او کانت فی غیر بیتها لا مرحین وقوع الطلاق انتقلت الی بیت سکناها بلا تاخیر. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۵۳۵، فصل فی الحداد) و مثله فی البحر الرائق ج٤، ص۱۵٤، فصل فی الحداد.

## د حائضه ښځې عدت به له حیض څخه وي

**سوال:** یوه سړي خپلې ښځې ته د رضاعت په حالت کښې طلاق ورکړی دی۔ اوس د دې ښځې لپاره شرعًا عدت څه حکم دی؟ آیا د دریو میاشتو په تیریدو سره دوهمه نکاح کولی شي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** کومو ښځو ته چه حیض ورځي لیکن د کوم عارضي علت له وجهې بند وي نو د هغې عدت به په حیضونو سره وي اګر که په دریو څلورو میاشتو کښې هم پوره شي۔ چونکه په نوموړي صورت کښې د رضاعت له وجهې حیض په عارضي توګه بند وي نو ځکه دې ښځې ته د دریو حیضونو تر راتلو پورې انتظار ضروري دی او همدغه د هغې شرعي عدت دی۔

قال العلامة الحصکفیؒ: و هی فی حق حرة و لو کتابیة تحت مسلم تحیض لطلاق و لو رجعیا او فسخ بجمیع اسبابه بعد الدخول حقیقة او حکما… ثلاث حیض کوامل الخ. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۳، ص۵۰۴، باب العدة)

قال العلامة برهان الدین المرغینانی رحمه الله: و هی حرة ممّن تحیض فعدّتها ثلاثة اقراء لقوله تعالٰی: وَ الْمُطَلَّقَاتُ يَتَرَبَّصْنَ بِاَنْفُسِهِنَّ ثَلٰثَةَ قُرُوْءٍ. (الهدایة ج۲، ص۱۱۷، باب العدة) و مثله فی شرح الوقایة ج۲، ص۱۴۴، باب العدة.

## خاوند که چېرته عیسایي یا میرزایي شي نو په ښځې باندې ئې عدت واجب دی

**سوال:** که چېرته د کومې ښځې خاوند عیسایي، قادیاني یا یهودي شي چه له وجهې نکاح له منځه ځي نو آیا په د اسې ښځې باندې عدت تیرول واجب دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په اسلامت شریعت کښې په هرې هغې جدایي باندې عدت واجب دی چه د خاوند او ښځې تر منځ له کومې وجهې منځ ته راشي۔ په صورت مسئوله کښې چونکه د خاوند د کافر کیدو له وجهې د دواړو ترمنځ خود بخوده جدایي راغله نو له دې وجهې په ښځې باندې ئې عدت لازم دی۔

قال فی الهندیة: و ان اخبرت المرأة ان زوجها قد ارتدّ لها ان تتزوج بآخر بعد انقضاء العدة فی روایة الاستحسان و فی روایة السیر لها ان تتزوج قال شمس الائمة السرخسیؒ الاصح روایة الاستحسان. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۳۴۰، الباب النکاح الکافر)

قال العلامة برهان الدین المرغینانیؒ: ثم ان کان الزوج هو المرتد فلها کل المهر ان دخل بها و نصف المهر ان لم یدخل بها. (الهدایة ج۲، ص۴۳، فی فصل نکاح اهل الشرك) و مثله فی شرح الوقایة ج۲، ص۴۳، فی باب نکاح اهل الرقیق.

## له خلوت صحیحه نه وروسته د طلاق د عدت حکم

**سوال:** والدین په یوه ځای کښې خپل زوی ته واده وکړ لیکن زوی ئې د زوجیت د حقوقو د ادا کولو قابل نه وو یواځې یوه شپه ئې خپلې ښځې سره تیره کړه او سهار د باندې را ووت او د ګواهانو په مخکښې ئې منکوحې ته طلاق ورکړ نو آیا په دې ښځې باندې عدت واجب دی او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** خلوت صحیحه (د خاوند او ښځې په یوې کمرې کښې پرته له کوم



حائل څخه سره ملاویدل) یو ډول جماع دی۔ نو له دې وجهې په صورت مسئوله کښې د نوموړې مطلقې په ذمه باندې عدت تیرول لازم دي۔

قال العلامة الحصکفی رحمه الله: و الخلوة بلا مانع حسی و شرعی کا لوطئ و لو کان الزوج مجبوباً او عنیناً او خصیاً او خنثی ان اظهر حاله فی ثبوت النسب و تاکد المهر و النفقة و السکنی و العدّة. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص۱۱۴، مطلب احکام الخلوة)

قال فخر الدین قاضی خانؒ: المهر یتاکد بثلاث با لوطء و موت احد الزوجین و با لخلوة الصحیحة و الخلوة الصحیحة ان یجتمعا فی مکان لیس هناك مانع یمنعه عن الوطی حساً او شرعاً او طبعاً. (فتاوٰی قاضی خان علی هامش الهندیة ج۱، ص۳۹۶، فصل فی الخلوة و تاکد المهر) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۳۰۴، الفصل الثانی فیما یتاکد به المهر و المتعة.

## د واده شوې ښځې چه له زنا څخه حامله وي د عدت حکم

**سوال:** که چېرته یو سړی خپلې ښځې ته په دې خبرې باندې طلاق ورکړي چه بد کرداره ده په د اسې حال کښې چه ښځه ئې له زنا څخه حامله هم وي نو اوس به نوموړې ښځه درې حیضه عدت تیروي او که به د حمل تر وضع پورې به انتظار کوي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** اسلامي شریعت د عدت دوه ډولونه مقرر کړي دي۔ کومه ښځه چه حامله نه وي نو عدت ئې بالاقراء دی۔ او کومه ښځه چه حامله وي (قطع نظر له دې خبرې چه دا حمل ئې له خاوند څخه وي او یا له بل چا څخه) نو د هغې عدت د حمل تر وضع پورې دی لهذا په صورت مسئوله کښې دا ښځه د حمل تر وضع پورې به انتظار کوي۔

قال العلامة الحصکفیؒ: و الحامل مطلقاً و لو امة او کتابیة او من زنا تعتد با لوضع. قال ابن عابدینؒ اذا حبلت المعتدة و ولدت تنقضی به العدّة سواء کان من المطلق او من زنا. (رد المحتار ج۶، ص۶۰۴، باب العدّة)

قال ابن نجیمؒ: قوله و للحامل وضعُه ای و عدة الحامل وضع الحمل لقوله تعالٰی: وَ اُولَاتُ الْاَحْمَالِ اَجَلُهُنَّ اَنْ يَّضَعْنَ حَمْلَهُنَّ اطلقها فشمل الحرة و الامة المسلمة و الکتابیة مطلقة او متارکة فی النکاح الفاسد او وطی بشبهه و المتوفی عنها زوجها لاطلاق الآیة. (البحر الرائق ج۴، ص۱۳۳، باب العدّة) و مثله فی امداد الاحکام ج۲، ص۸۲۱، باب العدّة.

## د وفات په عدت کښې د سپږو د له منځه وړلو لپاره د شامپو د استعمال حکم

**سوال:** جناب مفتي صاحب! زما د خاوند د وفات دوه میاشتې تېرې شوي دي او زما په سر کښې سپږې دي نو آیا د شریعت له مخې د سپږو د ختمولو لپاره زه شامپو استعمالولی شم او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** اګر که د وفات د عدت په دوران کښې د معتدې لپاره زیب او زینت یعنې د ځان سنګارول جائز نه دي لیکن ځینې حالات ضرورت له وجهې ترې مستثنٰی دي چه په هغوی کښې بیماري هم یو ضرورت دی نو له دې وجهې د سپږو د ختمولو لپاره د اسې دوا ګانې استعمالولی شی چه خوشبویي پکښې نه وي۔ چونکه د سپږو د ختمولو په شامپو کښې خوشبویي وي نو د دې لپاره استعمال ئې شرعًا جائز نه دي۔ بیا هم که چېرته د اسې شامپو وي

چه خوشبويي پکښې نه وي نو استعمال ئې جائز دی۔

قال العلامة الحصکفیؒ: و الدّهن و لو بلا طيّب کزيت خالص....... الا بعذر راجح للجميع اذا الضرورات تبيح المحظورات. قال ابن عابدينؒ او تشتکی رأسها فتدهن و تمسّط با لاسنان الغليظة المتباعدة من غير ارادة الزينة لان هٰذا تدو لا زينة. (رد المحتار ج۲، ص۶۱۷، فصل فی الحداد)

قال ابن نجيمؒ: قوله الا بعذر متعلّق با لجميع لا با لدهن وحدهٗ فلها لبس الحرير للحکّة و القمل و لها الاکتحال للضرورة. (البحر الرائق ج۴، ص۱۵۰، فصل فی الاحداد) و مثله فی امداد الفتاویٰ ج۲، ص۵۱۱، باب العدّة و الحداد.

## د وفات په عدت کښې لاسونو ته د بنګړي د اچولو حکم

**سوال:** د کومې ښځې چه خاوند مړ شوی وي نو آيا د اسې ښځه بنګړي په لاس کولی شي او که نه؟ او که چېرته ئې بنګړي له مخکښې څخه په لاس کښې وي نو د هغو څه حکم دی؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د کومې ښځې چه خاوند مړ شوی د هغې لپاره تر څلورو مياشتو او لسو ورځو پورې زيب او زينت او د ځان سينګارول او د اسې نور حرام دي۔ د ډول او سينګار د تولو شيانو پريښودل ورته ضروري دي۔ چونکه د لاس بنګړي هم يو ډول زيب او زينت دی نو له دې وجهې د وفات په عدت کښې ئې په لاس کول جائز نه دي او که چېرته ئې له مخکښې څخه په لاس کښې وي نو د هغو ايستل هم ضروري دي۔

قال العلامة الحصکفیؒ: بترك الزينة بحلی. قال ابن عابدينؒ ای بجميع انواعه من فضة و ذهب و جواهر بحر. قال القهستانیؒ و الزينة ما تتزين به المرأة من حلی او کحل. (رد المحتار ج۲، ص۶۱۷، فصل فی الحداد)

قال العلامة ابن نجيم المصری رحمه اللّٰه: و شمل لبس الحرير بجميع انواعه و الوانه و لو اسود و جميع انواع الحلی من ذهب و فضة و جواهر زاد فی التتارخانية القصب. (البحر الرائق ج۴، ص۱۵۰، فصل فی الاحداد) و مثله فی امداد الفتاویٰ ج۲، ص۵۱۲، کتاب الطلاق.

## د ليور له ويرې د خاوند د کور پرېښودلو حکم

**سوال:** که چېرته يوه معتده الوفات او ځوان ليور ئې په کور کښې يو ځای سره اوسيدل او ليور ئې څو ځله د دې په عصمت او عزت باندې تيری کړی وي نو آيا د اسې معتده د خاوند کور پرېښودلی شي او د والدينو کور ته تللی شي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د خپل عزت او عصمت ساتنه په هرې مسلمانې ښځې باندې فرض دی۔ که چېرته په کوم ځای کښې معتدې ته د عزت د تويېدو خطره وي نو د خپل عزت د ساتنې لپاره به مجبوراً د خپل خاوند کور پرېږدي او د والدينو کور ته به ځي۔ له دې وجهې د نومورې صورت مطابق که چېرته د معتدې لپاره له ليوره څخه د بچ کيدو کومه بله طريقه نه وي نو د والدينو کره د تللو شرعاً اجازت ورته شته۔

قال العلامة ابن عابدينؒ: و الافضل ان يحال بينهما فی البيتوتة بستر الا ان يکون فاسقاً فيحال بامرأة ثقة و ان تعذر فلتخرج هی خروجه. (رد المحتار ج۲، ص۶۷۵، باب العدّة)



# باب الحـــــلاله

## (د حلالې، احکام او مسئلې)

## د حلاله شـــــرعي حيثيت

**سوال:** د مغلظه مطلقې لپاره خو ضروري ده چه د دوباره نکاح لپاره حلاله وکړي نو د شريعت مطهره له مخې د اتر کومه ځايه پورې جواز لري؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په طلاق ثلاثه باندې اقدام کول د ناقابل مصالحت حالاتو ښوونه کوي نو له دې وجهې شريعت مطهره په د اسې خطرناك اقدام د خاوند او ښځې تر منځ د دوباره جمع کيدو تولې لارې ترلي دي مګر دا چه ښځه له بل خاوند سره نکاح وکړي او بيا له هغه څخه جدا شي او پخپلې کړن لارې باندې دوباره کره کتنه وکړي او بيا د مخکښيني خاوند سره په اوسيدو باندې راضي وي۔ اللّٰه تعالی فرمايي: فَاِنْ طَلَّقَهَا فَلاَ تَحِلُّ لَهٗ مِنْ بَعْدُ حَتّٰى تَنْكِحَ زَوْجاً غَيْرَهٗ. (البقرة) په د اسې حالاتو کښې د خاوند او ښځې په حلاله باندې اقدام کول مقصود نه وي او نه شريعت د استايي بلکه رسول اللّٰه فرمايي چه: لعن اللّٰه المحلل او محلل له

بيا هم له بل چا سره په نکاح کولو باندې ښځه د خاوند لپاره حلاليدلی شي نو د دې لپاره په دې حالت کښې که چېرته ئې څوك حل وغواړي نو په دې کښې څه حرج نشته۔ په د اسې حالت کښې له حلالې نه وروسته خاوند او ښځه دوباره نکاح سره کولی شي او نوی ژوند اختيارولی شي۔ بيا هم په دې کښې يوازې نکاح کافي نه ده تر څو چه بل خاوند جماع ورسره کړې نه وي۔

لما روی انه قال عليه الصلوٰة و السلام: لا تحلّ للاوّل حتی تذوق عسيلة الآخر يذوق عسيلتها. (ابو داؤد ج۱، ص۳۲۳، کتاب الطلاق، باب البيتوتة لا يرجع اليها زوجها....... الخ)

قال العلامة المرغينانیؒ: و ان کان الطلاق ثلاثا فی الحرة او ثنتين فی الامة لم تحلّ له حتی تنکح زوجاً غيره نکاحاً صحيحاً و يدخل بها ثم يطلقها او يموت عنها. (الهداية ج۲، ص۳۹۹، باب الرجعة، کتاب الطلاق) و مثله فی رد المحتار ج۳، ص۴۰۹، باب الرجعة، مطلب فی العقد علی المبانة.

## د حـــلاله په نکاح کښې له وطی پرته ښځه د اول خاوند لپـــاره نه شي حـــلاليدلی

**سوال:** که چېرته مطلقه ښځه له کوم سړي سره نکاح وکړي مګر له وطی نه مخکښې ئې دغه خاوند مړ شي نو آيا له دې ښځې سره چه خاوند تجديد نکاح وکړي نو ورته حلاليدلی شئ او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د حنفيه ووؒ په نزد د حلالې په نکاح کښې وطی ضروري ده له وطی

بغیر د ابنځه د اول خاوند لپاره نه حلالیږي- چونکه مرګ د وطی قائم مقام نه دی نو د دې لپاره د دوهم خاوند په مړیني باندې ښځه د اول خاوند لپاره نه شي حلالیدلی-

قال العلامة ابن عابدينؒ: لو مات عنها قبل الوطی لا يحلها للاوّل...... لان الشرط هنا الوطی. (رد المحتار ج٢، ص ٥٣٩، كتاب الطلاق، باب الرجعة)

قال العلامة ابن نجيم المصری رحمه الله: و الموت لا يقوم مقام الدخول فی حق التحليل. (البحر الرائق ج٤، ص ٥٦، كتاب الطلاق)

## د حلاله په نکاح کښې د جماع لپاره د ډبوسکي د استعمال حکم

**سوال:** که چېرته د حلالې په نکاح کښې د جماع لپاره ډبوسکی استعمال کړي او مباشرت ورسره وکړي نو آیا په دې طریقې سره ښځه د اول خاوند لپاره حلالیږي او که نه؟ بینوا توجروا-

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د حلالې په نکاح کښې د مشتهي سړي د ذکر داخلول ضروري دي تر څو چه دواړو ته څه لذت حاصل شي، انزال ضروري نه دی- له دې وجهې که چېرته د ډبوسکي سره لذت نه حاصلیده نو د اسې جماع (وطی) د اول خاوند لپاره محلل نه شي جوړیدلی او که لذت حاصلیده نو بیا جوړیدلی شي-

و فی الهندية: اذا لف ذكره بخرقة و ادخل فرجها فان وجد الحرارة تحل و الا فلا. (الفتاوی الهندية ج١، ص٤٧٣، الباب السادس فی الرجعة، فصل فيما تحل به)

قال العلامة طاهر بن عبد الرشيد الانصاری رحمه الله: اذا لف ذكَره بخرقة و ادخل فرجها فان وجد الحرارة تحل و الا فلا. (خلاصة الفتاوی ج٢، ص ١٢١، الجنس الثانی فی المحلل)

## د حلاله په نکاح کښې د جماع په وخت کښې د انزال او نه انزال حکم

**سوال:** یوه سړي مثلا زید خپلې ښځې ته درې طلاقونه ورکړي دي او اوس غواړي چه د نوموړې ښځې د دوباره په نکاح کولو لپاره شرعي حلاله وکړي نو د کوم سړي په ذریعې سره چه حلاله کول غواړي نو آیا د هغه لپاره دا ضروري دي چه د جماع په وخت کښې انزال وکړي او که له انزال پرته هم حلاله کیږي ځکه چه زید له حمل څخه ویریږي- نو له دې وجهې په دې باره کښې د شریعت حکم څه دی؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په شرعي حلاله کښې ایلاج (دخول حشفه) ضروري دی خو چه په منتشر حالت کښې وي تر څو چه محلل ته څه لذت حاصل شئ- البته انزال ضروري نه دی- د کوم سړي په ذریعې سره چه حلاله کوی او هغه د جماع په وخت کښې یوائې د حشفې دخول وکړي او له انزال پرته جماع ختم کړي او ښځه طلاقه کړي نو په دې صورت کښې نوموړې ښځه به د طلاق د عدت له تیرولو وروسته د اول خاوند لپاره حلاله وي-

لما قال العلامة الحصكفيؒ: و ان لم ينزل لان الشرط الذوق لا الشبع قلتُ و فی المجتبیٰ الصواب حلها



بدخول الحشفه مطلقاً. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج٢، ص ٥٤٠، كتاب الطلاق، باب الرجعة)

و فی الهندية: اما الانزال فليس بشرط للاحلال. (الفتاوی الهندية ج١، ص٤٧٣، كتاب الطلاق، فصل فيما تحل به المطلقة)

## په نابالغ باندې د حلاله کولو شرعي حکم

**سوال:** یو نابالغ هلك چه عمر ئې تقریبا ١٣ یا ١٤ کاله دی لیکن جماع کولی شي نو آیا د داسې هلك په حلاله سره ښځه د اول خاوند لپاره حلالیدلی شي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د حلالې لپاره د محلل بلوغ ضروري نه دی یوائې په جماع باندې قدرت ضروري دی نو د دې لپاره فقهاء کرامؒ مراهق (بلوغ ته نژدې هلك) کوم چه په جماع باندې قدرت ولري د بالغ په حکم کښې داخل کړی دی- لهذا په صورت مسئوله کښې که چېرته نوموړی نابالغ هلك په جماع باندې قادر وي نو حلاله ئې صحیح ده-

لما قال العلامة الكاسانی رحمه الله: و سواء كان الزوج بالغا او صبيا يجامع فجامعها او مجنوناً فجامعها لقوله تعالی: حَتّٰى تَنْكِحَ زَوْجاً غَيْرَهٗ. من غير فصل بين زوج و زوج لانه الصبیّ و المجنون يتعلق به احكام النكاح من المهر و التحريم كوطی البالغ العاقل. (بدائع الصنائع ج٣، ص ١٨٩، فصل فی ان يكون النكاح الثانی صحيحاً)

و فی الهندية: و فی الانفع الصبی المراهق فی التحليل کا لبالغ...... فسر المراهق فی الجامع الغير فقال غلام لم يبلغ و مثلهٗ يجامع جامع امرأته وجب الغسل عليها و احلها علی الزوج الاوّل و معنی هٰذا الكلام ان تتحرك اليه و يشتهي. (الفتاوی الهندية ج١، ص٤٧٣) و مثله فی مجموعة الفتاوی (فارسی) ج٢، ص ١٢٠، كتاب الطلاق)

## په دبر (د شا په طرف) کښې په جماع کولو سره د حلاله حکم

**سوال:** که چېرته څوك د حلاله په نکاح کښې د قوم لوط عمل وکړي یعنې د شا په طرف کښې دخول وکړي نو آیا په دې سره نوموړې ښځه د اول خاوند لپاره حلالیږي او که نه؟ بینوا توجروا-

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د شرعي حلاله لپاره دا ضروري ده چه جماع فی القبل وشي یعنې د مخې په طرف جماع وشي او د شا په طرف جماع کول د حلاله نپاره کافي نه دی او دا کبیره ګناه هم ده-

كما فی الفتاوی القنية: اذا اتاها فی دُبرها لا تحل للاوّل. (الفتاوی القنية ص ٧٣، كتاب الطلاق، باب الرجعة)

## مرګ د وطی قائم مقام نه دی

**سوال:** جناب مفتي صاحب! یوې ښځې د دوهم خاوند سره نکاح وکړه په داسې حال کښې چه اول خاوند هغې ته مغلظ طلاق ورکړی وو- له نکاح نه وروسته دوهم خاوند د زوجیت د حقوقو له اداکولو او جماع څخه پرته مړ شو- اوس نوموړې ښځه غواړي چه له اول خاوند سره نکاح وکړي نو آیا نکاح به ئې صحیح وي او که نه؟ بینوا توجروا-

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د حلالې په نکاح کښې د دوهم خاوند له خپلې منکوحې سره جماع ضروري ده چه ادخال هم پکښې وشي- په صورت مسئوله کښې مرګ د جماع قائم مقام نه شي

ګرځیدلی نو ځکه نوموړې ښځه د اول خاوند لپاره حلاله نه ده۔

لما قال العلامة ابن نجیم المصری رحمه الله: و الموت لا یقوم مقام الدخول فی حق التحلیل. (البحر الرائق ج٤، ص٥٦، کتاب الطلاق، باب الرجعة)

قال العلامة ابن عابدینؒ: و لو مات عنها قبل الوطی لا یحلّها للاول...... لان الشرط هنا الوطی. (رد المحتار ج٢، ص٥٣٩، کتاب الطلاق، باب الرجعة) و مثله فی الهندیة ج١، ص٤٧٣، کتاب الطلاق، فصل فیما یتعلق به المطلقة.

## د ښځې د ا خبره چه ما حلاله کړې ده

**سوال:** د طلاق ثلاثه نه وروسته یوه ښځه د خپل پلار کره لاړه او د یو کال له تیرولو څخه وروسته ئې خپل اول خاوند ته پیغام را ولیږه چه ما حلاله کړې ده یعنې ځان مې حلاله کړې ده له دې وجهې زه له تا سره غواړم چه دوباره نکاح وکړم نو آیا د ښځې په وینا د اول خاوند لپاره دوباره نکاح ورسره صحیح ده او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د ښځې له خوا څخه د ا خبره چه ما حلاله کړې ده د اول خاوند سره د دوباره نکاح د حلت لپاره کافي نه ده بلکه اول خاوند ته په کار دي چه د ښځې د دې خبرې ښه تحقیق وکړي او له هغې څخه د ټولو کیفیاتو او حالاتو په باره کښې معلومات حاصل کړي۔ که چیرته صحیح معلومات مهیا کړي او د حلالې لپاره ئې کافي هم وګڼي نو بیا په دې صورت کښې دوباره له دغې ښځې سره به ئې نکاح صحیح وي۔

لما فی القنیة: لو قالت حللت لك او قال حلاله کردم لا یحل له التزوّج ما لم یستفسرها لاختلاف الناس فی کیفیّة التحلیل و هو الصواب. (القنیة ص٨٤، کتاب الطلاق، باب الرجعة)

## د حلالې په نکاح کښې د بل خاوند سره کور والی ضروري دی

**سوال:** آیا د حلاله لپاره د په شوې نکاح کښې د بل خاوند سره همبستري ضروري ده او که نه؟ که چیرته همبستري و نه کړي نو آیا ښځه د اول خاوند لپاره حلالیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د حلاله په نکاح کښې د بل خاوند سره همبستري شرط ده له یو ځای کیدو پرته ښځه د اول خاوند لپاره نه حلالیږي۔

هکذا فی الهدایة ج٢، ص٩٤، فصل فیما تحل به المطلقة، کتاب الطلاق.



# باب ثبوت النسب

## (د نسب د ثبوت احکام او مسئلې)

## له وخت څخه مخکښې د پیدا کیدونکي بچي د نسب د ثبوت حکم

**سوال:** که چیرته د چا له واده نه شپږ میاشتې وروسته بچی پیدا شي نو ثابت النسب به ګڼل کیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** له واده څخه شپږ میاشتې او یا له دې څخه د زیات وخت نه وروسته پیدا کیدونکی بچی به ثابت النسب ګڼل کیږي۔ البته له شپږو میاشتو نه په کم وخت کښې پیدا کیدونکی بچی به ثابت النسب نه ګڼل کیږي۔

قال فی الهندیة: و اذا تزوّج فجائت با لولد لاقل من ستة اشهر منذ تزوّجها لم یثبت نسبه و ان جائت به لستة اشهر فصاعداً یثبت نسبه اعترف به الزوج او سکت. (الفتاوی الهندیة ج١، ص٥٣٦، الباب الخامس عشر فی ثبوت النسب)

قال العلامة الحصکفیؒ: اکثر مدة الحمل سنتان لخبر عائشه رضی الله عنها کما مر و عند الائمة الثلاثة اربع سنین و اقلها ستة اشهر اجماعاً. (رد المحتار ج٣، ص٥٤٠، فصل فی ثبوت النسب) و مثله فی البحر الرائق ج٤، ص١٥٧، باب النسب.

## د حمل د منع کوونکو ادویاتو د استعمال حکم

**سوال:** د حمل منع کوونکي ادویات جائز دي او که نه؟ او که چیرته جائز وي نو په کومو حالاتو او صورتونو کښې د اسې ادویات استعمالیدلی شي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** له نکاح څخه د اولاد پیدا کول وي نو له دې وجهې د حمل منع کوونکي ادویاتو او آلاتو استعمال د ځینو جزوي صورتونو پرته شرعا جائز نه دي او خصوصا د رزق او د معاش د وسائلو د ویرې له وجهې د نسل تحدید له اسلامي احکاماتو سره ټکر دی۔ بیا هم که چیرته په ځینو حالاتو کښې ښځې ته د حمل له وجهې بیماري او یا د غیر فطري طریقه ولادت سره آپریشن او د اسې نورو ته ضرورت پیدا شي او یا د دې غوندې د نورو سختو ضرورتونو په صورت کښې د حمل منع کوونکي ادویاتو او آلاتو استعمال وشي نو جائز دي آن تر دې پورې چه د ځینو مهلکو بیماریو په صورت کښې د رحم انقطاع هم مرخص دی۔

و فی الفتاوی الاسلامیة: تحدید النسل محرم مطلقاً لما جاء فی الشریعة الغراء من النهی عن التبتل و التشدید فی ذٰلك و الترغیب فی التزوّج با لولود الودود فیکون حبوب منع الحمل محرماً الا فی حالات فردیة نادرة لا عموم لها کما فی حالة التی تدعوا لحامل الٰی ولادة غیر عادیة و یضطر معها الٰی اجراء عملیة جراحیة لاخراج الولد و فی حالة ما اذا کان علی المرأة خطر من الحمل لمرض و نحوهٖ و هٰذا لا ینطبق علی حالة المرأة. (الفتاوی الاسلامیة لکبار العلماء با لعربیة السعودیة ج٢، ص٣٧٦)

قال ابن عابدینؒ: و یکره ان تسقی لاسقاط حملها و جاز لعذر کا لمرضعة اذا ظهر بها الحبل و انقطع لبنها و لیس لابی الصبیّ ما یستأجر به الظئر و یخاف هلاك الولد قالوا یباح لها ان تعالج فی استنزال لدم ما دام الحمل مضغة او علقة و لم یخلق عضو و قدروا تلك المدّة بمائة و عشرین یوماً و جاز لانه لیس باذی و فیه صیانة الآدمی. (رد المحتار ج۵، ص۳۰۵، کتاب الکراهیة) و مثله فی الهندیة ج۵، ص۳۵۶، الباب الثامن عشر فی التداوی و المعالجات.

## د اسقاط حمل د جواز حکم

**سوال:** هغه کوم عذرونه او وجوهات دي چه له وجهې ئې د حمل اسقاط یا ضائع کول جواز پیدا کوي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د حمل د څلورو میاشتو له پوره کیدو نه مخکښې د شریعت له مخې د ځینو معتبرو عذرونو په موجودوالي کښې د حمل اسقاط جائز دی او که چېرته عذر نه وي نو جائز نه دی۔ او معتبر عذرونه لکه د حمل له ظاهریدو نه وروسته ئې چه شیدې بندې شي او خاوند ئې د دایې یا بچي ته د شیدو د ورکولو د انتظام طاقت . و نه لري او یا په ښځې باندې د سختې بیمارۍ غلبه وي او یا ئې ولادت په غیر عادي توګه کیده۔ بیا هم په ځینو سختو صورتونو کښې کوم چه په هغو کښې د ښځې هلاکت یقیني وي نو بیا د څلورو میاشتو نه وروسته هم د اسقاط حمل د جواز ګنجائش شته۔

قال فی الهندیة: امرأة مرضعة ظهر بها حبل و انقطع لبنها و تخاف علی ولدها الهلاك و لیس لابی هٰذا الولد سعة حتی یستأجر الظئر یباح لها ان تعالج فی استنزال الدم ما دام نطفة او مضغة او علقة لم یخلق له عضو. (الفتاوی الهندیة ج۵، ص۳۵۶، الباب الثامن عشر فی التداوی و المعالجات)

قال ابن عابدینؒ: و یکره ان تسقی لاسقاط حملها و جاز لعذر کا لمرضعة اذا ظهر بها الحبل و انقطع لبنها و لیس لابی الصبیّ ما یستأجر به الظئر و یخاف هلاك الولد قالوا یباح لها ان تعالج فی استنزال لدم ما دام الحمل مضغة او علقة و لم یخلق عضو و قدروا تلك المدّة بمائة و عشرین یوماً و جاز لانه لیس باذی و فیه صیانة الآدمی. (رد المحتار ج۵، ص۳۰۵، کتاب الکراهیة) و مثله فی الهندیة ج۵، ص۳۵۶، الباب الثامن عشر فی التداوی و المعالجات.

## د ټیسټ ټیوب بې بي شرعي حیثیت

**سوال:** نن صبا د یوې خاصې ستنې په ذریعه مادهٔ منویه (مني) د ښځې رحم ته رسول کیږي چه بیا بچی ترې پیدا کیږي نو د اولاد د حصول لپاره د دې طریقې د خپلولو شرعي حیثیت څه دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په سوال کښې ذکر شوې طریقه کوم چه ټیسټ ټیوب بې بي یا صناعي تلقیح ورته وایي د ډیرو مفاسدو د شامل والي او د فحاشۍ او بې دینۍ د ذریعې د جوړیدو له وجهې د علماوو په اتفاق سره جائزه نه ده۔ بیا هم که چېرته د یوه سړي او ښځې اولاد نه پیدا کیده او په دواړو کښې د اولاد لپاره مطلوبه صلاحیت هم موجود وو لیکن خاوند له کومې



وجهې څخه خپله مني د ښځې رحم ته په رسولو باندې قادر نه وو او یا د ښځې په رحم کښې د امساك او استقرار د صلاحیت د نشت والي له وجهې د بچي د پیدا کیدو امکان نه وو نو په دې صورت کښې د مصنوعي نسل کشي دا طریقه جائزه ده خو په دې شرط چه ماده منویه د ښځې د خپل خاوند وي او دواړه پرې راضي هم وي او د دواړو په مخکښې دا عمل پای ته ورسیږي او دا طریقه کوم مسلمان مستند ډاکټر ورته تجویز کړي۔

قال فی یسئلونك فی الدین و الحیاة: و قدر قرر الفقهاء ان حمل المرأة بهٰذه الطریقة الصناعیّة یعد جریمة خلقیة و اجتماعیة و جنایة شرعیة........ بل هناك من الفقهاء من قرر ان هٰذه العلمیة فی معنی الزنی و تستوجب التعزیر و التأدیب و لو لا صورة الجریمة فیها مستورة بعض الشیء لکان حکمها الجلد الذی شرعه الله للزانی اما اذا کانت هناك امرأة متزوجة برجل و هی صالحة للانجاب و هو کذٰلك صالح للانجاب و لٰکن هٰذا الزوج لا یستطیع بسب ما ان یدخل مادته التناسلیة و تحقن فی رحم زوجته هو و رأی الطب المستقیم ان هٰذا هو الطریق الوحید و الا یسر للحمل فلا مانع شرعاً من ذٰلك...... و هٰذه الحالة تکون نظرة الشریعة الی التلقیح الصناعی بین الزوجین کنظرتها الی علاج الامراض و العلل و نظرتها الی استبقاء العترة الزوجیة الطیّبة بین هٰذین الزوجین. (یسئلونك فی الدین و الحیاة ج۱، ص۲۵۱)

و قال الشیخ وهبة الزحیلی: التلقیح الصناعی هو استدخال المنی لرحم المرأة بدون الجماع فان کان بماء الرجل لزوجته جاز شرعاً اذ لا محذور فیه........ و اما ان کان بماء رجل اجنبی عن المرأة لازواج بینهما فهو حرام لانه بمعنی الزنا الذی هو القاء ماء رجل فی رحم امرأة لیس بینهما رابطة زوجیة و یعا هٰذا العمل ایضا منافیاً للمستوی الانسانی و مضارعاً للتلقیح فی دائرة النبات و الحیوان. (الفقه الاسلامی و ادلّتهٗ ج۳، ص۵۵۹، المبحث الرابع، التلقیح الصناعی)

## د جماع په وخت کښې د ربوسکي د استعمال حکم

**سوال:** آیا د اسې سړي لپاره چه واده ئې کړی وي د جماع په وخت کښې د ربوسکي استعمالول جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د ربوسکي حکم د عزل غوندې دی نو ځکه پخپله د جماع په وخت کښې د ربوسکي استعمال مباح دی لیکن له ښځې څخه د اجازې اخیستل ضروري دي۔ د ښځې له اجازې پرته ئې استعمال مکروه دی۔ بیا هم که چېرته شرعي عذر وي نو له اجازې پرته عزل کول او یا د ربوسکي استعمالول څه پروا نه لري۔

قال العلامة الحصکفیؒ: و یعزل عن الحرة باذنها لٰکن فی الخانیة انه یباح فی زماننا لفساده قال الکمال فلیعتبر عذراً مسقطاً لاذنها. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص۴۱۲، باب نکاح الرقیق)

قال العلامة ابن نجیم المصریؒ: لان العزل عن امة نفسه بغیر اذنها و الاذن فی العزل عن الحرة لها و لا یباح بغیره لانه حقها. و فی الخانیة ذکر فی الکتاب انه لا یباح بغیر اذنها و قالوا فی زماننا یباح سوء الزمان الخ. (البحر الرائق ج۳، ص۳۰۰، کتاب النکاح، باب نکاح الرقیق) و مثله فی الهدایة ج۲، ص۳۱۱، باب نکاح الرقیق.

## د عـــــزل شرعي حیثیت

**سوال:** جناب مفتي صاحب! د یوه واده لرونکي سړي لپاره د عزل د کولو په باره کښې د شریعت څه حکم دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** عزل کول اګر که شرعا جائز دی لیکن په دې کښې له آزادې ښځې څخه د اجازې اخیستل ضروري دي او بغیر له اجازې نه عزل مکروه دی۔

قال العلامة الحصکفیؒ: و یعزل عن الحرة باذنها لکن فی الخانیة انه یباح فی زماننا لفساده قال الکمال فلیعتبر عذراً مسقطاً لاذنها. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص۴۱۲، باب نکاح الرقیق)

قال العلامة ابن نجیم المصریؒ: لان العزل عن امة نفسه بغیر اذنها و الاذن فی العزل عن الحرة لها و لا یباح بغیره لانه حقها. و فی الخانیة ذکر فی الکتاب انه لا یباح بغیر اذنها و قالوا فی زماننا یباح سوء الزمان الخ. (البحر الرائق ج۳، ص۳۰۰، کتاب النکاح، باب نکاح الرقیق) و مثله فی الهدایة ج۲، ص۳۱۱، باب نکاح الرقیق.

## د خاوند د تولید مـــاده د کومې پردۍ ښځې په رحــــم کښې د نشو و نمـــا کولو (لوییدلو) حکم

**سوال:** د تولید په نوې او جدیده طریقه کښې داسې هم کیږي چه د خاوند او ښځې ماده منویه یو ځای کوي او د تیوب (نل) په ذریعه ئې د پردۍ ښځې په رحم کښې ږدي او دا مادهٔ منویه د هغې په رحم کښې لوییږي او بچی ترې جوړیږي او پیدا کیږي۔ نو اوس پوښتنه دا ده چه د داسې بچي نسب له چا څخه ثابتیږي او د دې پردۍ ښځې به څه حیثیت وي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د نسب د ثبوت لپاره په ابتدایي وخت کښې د خاوند او ښځې د نطفو اخطلاط (ګډون) کافي دی۔ چونکه په نوموړې صورت کښې د تولید په جدیده طریقه کښې په ابتداء کښې د خاوند او ښځې نطفې سره ګډیږي او په دې اختلاط سره د علقې صورت اختیاروي او بیا د کومې پردۍ ښځې په رحم کښې ایښودل کیږي نو د نسب د ثبوت لپاره د اختلاط تر صورت پورې یعنې د علقې تر جوړیدو پورې زمانه کافي ده او دا اجنبیه (پردۍ) ښځه به د دې بچي لپاره د مرضعې په درجه کښې وي او حقیقي مور او پلار به ئې هغه خاوند او ښځه وي د کومو چه نطفه سره ګډه شوې ده۔

لما قـــال العلامة ابو بکر الکاسانی رحمه الله: النسب الثابت با لنکاح لا ینقطع الا با للعان. (بدائع الصنائع ج۳، ص۲۴۶، باب النسب)

## د تولید د نوي نظام شرعي حیثیت

**سوال:** په ځینو یورپي ممالکو کښې د جدید نظام تولید لپاره د پردو ښځو ارحام د اجارې په توګه نیسي یعنې د خاوند او ښځې د نطفو له اختلاط نه وروسته کله ئې چه د لوییدو مرحله راځي نو د ښځې د رحم په ځای یوې اجنبیه ښځې ته معاوضه او اجرت ورکوي او د لوییدو



لپاره د هغې رحم استعمالوي نو آیا شرعا دا طریقه صحیح ده او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** اګر که په دې طریقې سره پیدا کیدونکی بچی د نطفې خاوند انو ته منسوب کیږي لیکن د ثبوت د دې جواز له مخې د کومې پردۍ ښځې رحم په اجار باندې نیول جائز نه دي بلکه په مقدس شریعت کښې دا ډول شیان یوائې د خپلو خاوند انو د استعمال لپاره جائز دي۔ د نورو لپاره ئې استعمال په هیڅ صورت کښې هم جائز نه دی۔

لما قال الله تبارك و تعالی: نِسَآؤُكُمْ حَرْثٌ لَّكُمْ فَاْتُوْا حَرْثَكُمْ اَنّٰى شِئْتُمْ. (سورة البقرة، آیت ۲۲۳)

روی العلامة جلال الدین السیوطیؒ: عن ابن سیرینؒ و حسن بن زیاد لا یعار الفرج. (الدر المنثور ج۶، ص۵، سورة الشوریٰ) و مثله فی جواهر الفتاوٰی ج۱، ص۲۰۷، د تیسټ تیوب بې بي شرعي حیثیت)

## د رجعي طلاق تر دوو کلونو وروسته د پیدا شوي بچي د نسب ثبوت

**سوال:** زید خپلې ښځې ته رجعي طلاق ورکړ۔ له طلاق نه دوه کاله وروسته ئې بچی پیدا شو۔ کله چه زید د بچي له پیدا کیدو نه خبر شو نو زید د انکار په کولو سره وویل چه دا هلك زما نه دی۔ نو آیا دا بچی به د زید له نسب څخه ثابتیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د رجعي طلاق نه وروسته که چېرته ښځه د عدت د تیریدو اقرار وکړي او له عدت نه وروسته ئې بچی پیدا شي نو د بچي نسب به له زید څخه نه ثابتیږي۔ البته که چېرته ښځه مخکښې له ولادت څخه د عدت د تیریدو اقرار نه وي کړی نو د بچی نسب به له زید څخه ثابتیږي۔

لما قال العلامة التمرتاشیؒ: (فیثبت نسب) و لد معتدة الرجعی...... و ان ولدت لاکثر من سَنَتَین...... ما لم تقر بمضی العدة و المدة تحمله و کانت الولادة رجعة لو فی الاکثر. (تنویر الابصار علی هامش رد المحتار ج۲، ص۶۷۶، فصل فی ثبوت النسب)

قال العلامة ابن الهمامؒ: و یثبت نسب ولد المطلقة الرجعة اذا جاءت به لسنتین او اکثر ما لم تقر بانقضاء عدتها. (فتح القدیر ج۳، ص۱۷۲، باب الحضانة) و مثله فی کنز الدقائق علی هامش البحر الرائق ج۴، ص۱۵۶، باب ثبوت النسب.

## پلار له د خپل بچي له نسب څخه د انکار کولو حکم

**سوال:** یو سړي د خپلې منکوحې له اولاد څخه انکار کولی شي او که نه؟ که چېرته یو څوك انکار ترې وکړي نو اولاد به ئې ده ته منسوب کیږي او که بل چا ته؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** له منکوحې څخه د اولاد نسب قوي دی۔ د دې د ثبوت لپاره نه د کومې دعوې ضرورت شته او نه د خاوند له نفی او انکار څخه نسب نفی کیدلی شي۔ کوم بچی هم چه له منکوح څخه پیدا شي نسب به ئې د هغې له خاوند څخه ثابتیږي۔ بیا هم که چېرته خاوند له ښځې څخه د پیدا کیدونکي بچي څخه انکار وکړي او لعان وکړي نو بیا له

خاوند څخه د نوموړي بچي نسب نه ثابتيږي ليكن وروسته له دې څخه د خاوند او ښځې په حيث سره د دواړو يو ځاى اوسيدل مشكل دي نو د دې لپاره به يا خو خاوند ښځې ته طلاق وركوي او يا به قاضي د دواړو تر منځ تفريق (جلا والى) راولي.

لما قال العلامة ابن عابدينؒ: حيث قسم الفراش الى قوله و قوى و هو فراش المنكوحة و معتدة الرجعى فانه فيه لا ينتفى الا با للعان. (رد المحتار ج۲، ص٦٨٤، باب ثبوت النسب، كتاب الطلاق، مطلب الفراش على اربع مراتب)

قال فى الهندية: قال اصحابنا لثبوت النسب ثلاث مراتب الاول النكاح الصحيح و ما هو فى معناه من النكاح الفاسد و الحكم فيه انه يثبت النسب من غير دعوة و لا ينتفى بمجرد النفى و انما ينتفى با للعان فان كان ممن لا لعان بينهما لا ينتفى نسب الولد. (الفتاوى الهندية ج۱، ص٥٣٦، الباب الخامس عشر فى ثبوت النسب، كتاب الطلاق) و مثله فى الفتاوى التاتارخانية ج٤، ص٧٨، باب الثبوت، كتاب الطلاق.

## د ولد الــــــــزنا نسب

**سوال:** كوم بچي چه له زنا څخه پيدا شي نسب به ئې له چا څخه ثابتيږي؟ آيا زاني د اسې بچي ته خپل بچى ويلى شي او كه نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** له زنا څخه د پيدا كيدونكي بچي له زاني څخه د نسب ثابت كيدل ممكن نه دي. او نه زاني د اسې بچي ته خپل زوى ويلى شي. كه چېرته مزنيه د چا په نكاح كښې وي نو له زنا څخه د پيدا كيدونكي بچي نسب به د مزنيې له خاوند څخه ثابتيږي او كه چېرته د كومې ناواده شوې نجلۍ څخه بچى پيدا شي نو نسبت به ئې د والدې (مزنيې) خوا ته كيږي.

لقوله عليه الصلوٰة و السلام: الولد للفراش و للعاهر الحجر. (مشكوٰة ج۱، ص٢٨٧، باب اللعان، كتاب النكاح، فصل الاول)

قال فى الهندية: اذا زنى رجل بامرأة فجاء ت بولد فادعاه الزانى لم يثبت نسب منه و اما المرأة فيثبت نسب منها. (الفتاوى الهندية ج٤، ص١٢٧، فى الفصل الثامن فى دعوة الولد من الزنا و ما فى حكمه، كتاب الدعوىٰ) و مثله فى الهندية ج۱، ص٥٤٠، الباب الخامس عشر فى ثبوت النسب، كتاب الطلاق.

## له زنا څخه د حاملې ښځې تر نكاح وروسته د بچي نسب

**سوال:** يو سړي له يوې آزادې ښځې سره زنا وكړه او له حامله كيدو نه وروسته نوموړي سړي له دغې مزنيې ښځې سره نكاح وكړه او دا معامله ئې سره كړه. ليكن له زنا څخه چه كوم بچى پيدا شي او نوموړى سړى اقرار وكړي چه دا بچى زما له نطفې څخه دى نو آيا له دې څخه نسب ثابتيږي او كه نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** له زنا څخه هيڅكله هم نسب نه ثابتيږي. د نوموړي سړي د نسب د ثبوت دعوىٰ ناقابل التفات ده. بيا هم كه چېرته له نكاح څخه شپږ مياشتې وروسته ئې بچى پيدا شي نو بيا قضاءً ئې له ناكح څخه نسب ثابتيږي. او كه چېرته له نكاح نه وروسته له شپږو



مياشتو څخه په كم وخت كښې بچى پيدا شي نو بيا كه چېرته ئې خاوند اقرار وكړي چه دا بچى زما دى اگر كه د نسب د ثبوت لپاره دا اقرار مفيد نه دى ليكن د هغه د نسب له اقرار څخه دا بچى ميراث اخيستلى شي او چه د زنا اقرار وكړي او د بچي د نسب دعوىٰ وكړي نو په دې سره نه نسب ثابتيږي او نه په ميراث كښې ورته حصه وركول كيږي.

قال فى الهندية: و لو زنى بامرأة فحملت ثم تزوجها فولدته ان جاء ت به لستة اشهر فصاعد ثبت نسبه الا ان يدعيه و لم يقل انه من الزنا اما ان قال انه منى من الزنا فلا يثبت نسبه و لا يرث منه. (الفتاوى الهندية ج۱، ص٥٤٠، الباب الخامس عشر فى ثبوت النسب، كتاب الطلاق)

قال العلامة ابن الهمام رحمه الله تعالىٰ: و اذا تزوج الرجل امرأة فجاء ت بولد لاقل من ستة اشهر منذ يوم تزوجها لم يثبت نسبه. (فتح القدير ج٤، ص١٧٨، باب ثبوت النسب، كتاب الطلاق) و مثله فى البحر الرائق ج٤، ص١٥٥، باب ثبوت النسب، كتاب الطلاق.

## د تبنتول شوې ښځې د اولاد نسب

**سوال:** يو سړي د چا منكوحه ښځه وتبنتوله او تر ډيره وخته پورې ئې له ځان سره وساتله چه بچي ئې هم ترې پيدا شوي دي په د اسې حال كښې چه خاوند ئې هغې ته طلاق هم نه دى وركړى. نو په د اسې صورت كښې د نوموړې ښځې د اولاد نسب به له چا څخه ثابت وي؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د تبنتوونكي لپاره د بل چا له منكوحې څخه نفع اخيستل زنا ده او زنا د نسب د ثبوت سبب نه دى. د د اسې تبنتول شوې ښځې د اولادونو نسب به له خاوند څخه ثابتيږي چه د نفى لپاره به ئې خاوند د لعان ذريعه اختياروي. د اسې ښځې چه تر څو پورې له خاوند څخه باقاعده آزادي نه وي حاصله كړې تر ډيره وخته پورې له بل چا سره په اوسيدلو باندې ئې نكاح نه ورسره روا كيږي او نه ئې د اولادونو نسب ترې ثابتيږي.

لحديث النبى ﷺ: الولد للفراش و للعاهر الحجر. (مشكوٰة ج۱، ص٢٨٧، باب اللعان، كتاب النكاح)

و قال ابن عابدينؒ: اما نكاح منكوحة الغير و معتدته....... لانه لم يقل احد بجوازه فلم ينعقد اصلاً. (رد المحتار ج۲، ص٤٠٠، باب المحرمات، كتاب النكاح)

و قال الامام فخر الدين حسن بن منصور رحمه الله: الاوز جندى و لا يجوز نكاح منكوحة الغير عند الكل. (فتاوىٰ خانية على هامش الهندية ج۱، ص٣٦٦، باب المحرمات، كتاب النكاح) و مثله فى البحر الرائق ج٣، ص٩٢، باب المحرمات، كتاب النكاح.

## لــــــه کور څخه تر ایستلو وروسته د غیر مطلقه منکوحې څخــه د پیـــدا شوي بچي حکم

**سوال:** زید خپله ښځه په یوه وجه بغیر له طلاق ورکولو نه له کوره ایستله۔ دوه کاله وروسته د هغې زوی پیدا شو خاوند ئې په خبریدو سره انکار ترې وکړ چه دا بچی زما نه دی۔ آیا د زید دا انکار شرعاً درست دی او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د غیر مطلقه منکوحې چه له نکاح نه شپږ میاشتې وروسته بچی پیدا شي که ئې خاوند اقرار وکړي او یا خاموش پاتې شي په هر حالت کښې ئې بچی هغه ته منسوب کیږي۔ ګوا که له کور څخه د ایستلو نه وروسته تر څو پورې چه د ده په نکاح کښې پاتې شوې وي تر هغو پورې به د پیدا کیدونکو اولادونو نسب له خاوند څخه ثابتیږي۔ بیا هم که چیرته په ربښتیا هم له بچي څخه انکار کول مقصود وي نو بیا کولی شي چه د لعان طریقه غوره کړي کومه چه ورته له نسبت څخه د انکار لپاره ګټمنه ثابتیږي۔

لما قال العلامة برهان الدین المرغینانی رحمه الله: و اذا تزوج الرجل امرأة فجائت بولد لاقل من ستة اشهر منذ یوم تزوّجها لم یثبت نسبه...... و ان جائت به لستة اشهر فصاعداً یثبت منه اعترف الزوج او سکت....... فان جحد الولادة یثبت بشهادة امرأة واحدة تشهد با لولادة حتٰی لو نفاه الزوج یلاعن لان نسب یثبت با لفراش القائم. (الهدایة ج۲، ص۴۰۹، باب ثبوت النسب)

و قال فی الهندیة: و اذا تزوج الرجل امرأة فجاء ت با لولد لاقل من ستة اشهر منذ تزوجها لم یثبت نسبه و ان جاء ت به لستة اشهر فصاعداً یثبت نسبه منه اعترف به الزوج او سکت. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۵۳۶، الباب الخامس عشر فی ثبوت النسب) و مثله فی ردّ المحتار ج۲، ص۶۷۶، فصل فی ثبوت النسب، الباب الخامس عشر فی ثبوت النسب.

## د خــــــاوند د ډیر وخت د نه موجودوالي په صورت کـــــښې د ښځې د حامله کیدو حکم

**سوال:** که چیرته یو سړی له څو کلونو څخه مسافر وي او په نه موجودوالي کښې ئې بچی پیدا شي نو د بچي نسب ئې له هغه څخه ثابتیږي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د نسب د ثبوت لپاره نکاح اهم سبب دی نو د دې لپاره د نکاح په موجودوالي کښې چه کوم بچی پیدا شي هغه به ثابت النسبه وي۔ د صورت مسئوله مطابق که چیرته د خاوند د ډیرې مودې په نه موجودوالي کښې چه بچی پیدا شي نو خاوند ئې د نفی لپاره کولی شي چه د لعان طریقه خپله کړي۔

لقوله علیه الصلوٰة و السلام: الولد للفراش و للعاهر الحجر. (مشکٰوة ج۱، ص۲۸۷، باب اللعان، کتاب النکاح)

و قال ابن عابدینؒ: حیث قسم الفراش علی اربع مراتب و قوی و هو فراش المنکوحة و معتدة الرجعی فانه فیه لا



ینتفی الا با للعان. (ردّ المحتار ج۲، ص۶۸۴، مطلب الفراش علی اربع مراتب) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۵۳۶، الباب الخامس عشر فی ثبوت النسب.

## د حمــــــل موده

**سوال:** یو بچی له زیات څخه زیات او له کم څخه کم تر څومره وخته پورې د مور په نس کښې پاتې کیدلی شي او بیا په څومره وخت کښې په صحیح او سالم صورت کښې پیدا کیدلی شي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د حمل کم تر کمه موده شپږ میاشتې، ده او زیات نه زیاته موده ئې دوه کاله ده یعنې زیات نه زیات تر دوو کلونو پورې د مور په نس کښې پاتې کیدلی شي۔ د فقه حنفي له مخې د حمل موده له دوو کلونو څخه نه شي زیاتیږي۔

لما قال العلامة المرغینانیؒ: و اکثر مدة الحمل سنتان. لقول عائشةؓ الولد لا یبقی فی البطن اکثر من سنتین و لو بظل مغزل و اقله ستة اشهر. لقوله تعالٰی: وَحَمْلُهٗ وَفِصَالُهٗ ثَلٰثُوْنَ شَهْرًا ثم قال وَفِصَالُهٗ فِیْ عَامَیْنِ فبقی للحمل ستة اشهر. (الهدایة ج۲، ص۴۱۰، باب ثبوت النسب)

و قال شیخ الاسلام محمد بن عبد الله التمرتاشیؒ: و اکثر مدة الحمل سنتان لخبر عائشه رضی الله عنها........ و اقلها ستة اشهر اجماعاً. (تنویر الابصار علی هامش رد المحتار ج۲، ص۶۷۶، فصل فی ثبوت النسب) و مثله فی کنز الدقائق علی هامش البحر الرائق ج۴، ص۱۶۳، باب ثبوت النسب.

## د حمل له کمې مودې څخه د مخکښې پیدا شوي بچي د نسب حکم

**سوال:** یوه سړي له یوې مطلقه ښځې سره نکاح وکړه۔ ښځې د نکاح په وخت کښې اطمینان ورکړی وو چه حمل مې نشته او عدت مې تیر شوی دی۔ نوموړي سړي د ښځې په خبرې باندې اعتماد وکړ په داسې حال کښې چه له نکاح څخه پنځه میاشتې وروسته ئې بچی پیدا شو۔ نو اوس ئې دا بچی له مخکښیني خاوند څخه ګڼل کیږي او که له نوي خاوند څخه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** له نکاح څخه وروسته له شپږو میاشتو نه په کم وخت کښې د بچي پیدا کیدل ممکن نه دي۔ کله چه د دې ښځې د حمل له مودې څخه مخکښې بچی پیدا شي نو له دې څخه معلومیږي چه نوموړې ښځې دروغ ویلي دي او له بل سړي سره ئې د دوکې په صورت کښې نکاح کړې ده۔ نو ځکه دا نکاح اعتبار نه لري او بچی به له مخکښیني خاوند څخه ثابتیږي او دا سړی به د بچي له پیدا کیدو نه وروسته دوباره نکاح کوي او دا ښځه به له ځان سره ساتي۔

لما فی الهندیة: و اذا تزوجت المعتدة بزوج آخر ثم جاء ت بولد ان جاء ت به لاقل من سَنتین منذ طلقها الاول او مات و لاقل من ستة اشهر منذ تزوجها الثانی فا لولد للاوّل. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۵۳۸، الباب الخامس عشر فی ثبوت النسب)

قال العلامة المرغيناني: و اذا تزوج امرأة فجاء ت بولد لاقل من ستة اشهر منذ يوم تزوجها لم يثبت نسبه. (الهداية ج ٢، ص ٤٠٩، باب ثبوت النسب) و مثله فى فتح القدير ج ٤، ص ١٧٨، باب ثبوت النسب.

## د حمل کمتـــــرینه موده

**سوال:** كه چېرته د يوه سړي له واده څخه شپږ مياشتې وروسته بچى پيدا شي نو آيا دا بچى به ثابت النسبه وي او كه نه؟ او آيا كه چېرته ئې پلار له نسب څخه انكار وكړي نو د دې بچي د نسب نفى كيدلى شي او كه نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** له نكاح نه وروسته د حمل د كمې مودې يعنې شپږ مياشتې نه وروسته چه كوم بچى پيدا شي نو نسب ئې له پلار څخه ثابتيږي او د پلار لپاره ئې د انكار گنجائش نشته۔ له نسب څخه د انكار لپاره له لعان څخه پرته بله طريقه نشته۔

لما فى الهندية: و اذا تزوج الرجل امرأة فجائت با لولد لاقل من ستة اشهر منذ تزوجها لم يثبت نسبه و ان جائت به لستة اشهر فصاعداً يثبت نسبه منه اعترف به الزوج او سكت فان جحد الولادة يثبت بشهادة امرأة واحدة تشهد با لولادة. (الفتاوى الهندية ج ١، ص ٥٣٦، الباب الخامس عشر فى ثبوت النسب)

قال العلامة التمرتاشي: و اقلها ستّة اشهر اجماعاً فيثبت نسب. (تنوير الابصار على هامش رد المحتار ج ٢، ص ٦٧٦، باب ثبوت النسب) و مثله فى كنز الدقائق على هامش البحر الرائق ج ٤، ص ١٦٣، باب ثبوت النسب.

## د نسب د ثبوت لپاره موده د نكاح له وخت څخه شروع كيږي

**سوال:** د يوه هلك نكاح په كال ١٩٨٨ء د اپريل په مياشت كښې وشوه او خپله ښځه ئې د جولائي ١٩٨٨ء په مياشت كښې كور ته راوړله او له يو ځاى كيدو نه تقريبا درې مياشتې وروسته د خسر په كور كښې د ښځې بچى پيدا شو۔ اوس پوښتنه دا ده چه آيا د دې بچي نسب له نوموړي هلك څخه ثابتيږي او كه نه؟ په داسې حال كښې چه هلك او نجلۍ د ترور زوى او لور هم سره كيږي او د يوه او بل كور ته تلل او راتلل هم؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په نوموړي صورت كښې كه چېرته په رښتيا هم نكاح په اپريل ١٩٨٨ء كښې شوې وي او يو ځاى شوي په جولائي ١٩٨٨ء كښې وي او له جولايي نه درې مياشتې وروسته ئې په ستمبر كښې بچى پيدا شي نو په دې صورت كښې د نسب د ثبوت لپاره د وخت اعتبار به د نكاح له وخت څخه وي، د يو ځاى كيدو له وخت څخه به نه وي۔ بيا هم كه چېرته ئې خاوند ترې انكار وكړي نو بيا ورته د لعان د طريقې خپلول ضروري دي او له شپږو مياشتو څخه د كم وخت په صورت كښې به بچى ثابت النسبه نه وي۔

لما فى الهندية: و اذا تزوج الرجل امرأة فجائت با لولد لاقل من ستة اشهر منذ تزوجها لم يثبت نسبه و ان جائت به لستة اشهر فصاعداً يثبت نسبه منه اعترف به الزوج او سكت فان جحد الولادة يثبت بشهادة امرأة واحدة تشهد با لولادة. (الفتاوى الهندية ج ١، ص ٥٣٦، الباب الخامس عشر فى ثبوت النسب)



لما قال العلامة برهان الدين المرغيناني رحمه الله: و اذا تزوج الرجل امرأة فجائت بولد لاقل من ستة اشهر منذ يوم تزوّجها لم يثبت نسبه...... لان العلوق سابق على النكاح فلا يكون منه و ان جائت به لستة اشهر فصاعداً يثبت منه....... لان الفراش قائم و المدّة تامة الخ. (الهداية ج ٢، ص ٤١١، باب ثبوت النسب) و مثله فى فتاوىٰ قاضي خان على هامش الهندية ج ١، ص ٥٥٨، فصل فى النسب.

## د ساداتو نسب او د حضرت سيده فاطمه رضى الله عنها فضيلت

**سوال:** جناب مفتي صاحب! له څو ورځو څخه مې په ذهن كښې يو سوال پيدا شوى دى چه د اولاد نسبت خو د پلار خوا ته كيږي په داسې حال كښې چه د رسول اللهﷺ نارينه اولاد نه وو نو د ساداتو نسب څنگه باقي پاتې شو ځكه چه حضرت علي رضى الله عنه خو پخپله سيد نه وو؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** دا صحيح ده چه په اسلام كښې د اولاد نسب له پلار څخه ثابتيږي ليكن د سيده حضرت فاطمه رضى الله عنها دا يو ځانگړې خصوصيت دى چه د دې د اولادونو نسبت د دې خوا ته كيږي او د دې په واسطه سره د حضور اكرمﷺ خوا ته كيږي۔ له دې مباركې څخه پرته يوې ښځې ته هم دا شرافت او بزرگي نه ده حاصله نو ځكه د ساداتو د نسب سلسله نن په دنيا كښې قائمه پاتې ده۔

روى الحاكم عن جابر بن عبد الله عن النبىﷺ قال قال رسول اللهﷺ كل بني ام ينتمون الى عصبة الا ولد فاطمة فان و ليهم عصبتهم. (مجمع الزوائد ج ٩، ص ٢٧٤، رقم حديث ١٣، ١٥، كتاب المناقب، الباب ١٤)

قال العلامة المفتى عزيز الرحمٰن: له روايت څخه څرگنديږي چه نسب له پلاره ثابتيږي ليكن بني فاطمه له دې حكم څخه مستثنٰى دي۔ د امام حسن او امام حسين رضى الله عنهما نسب د حضرت فاطمه رضى الله عنها په واسطه د نبي كريمﷺ خوا ته منسوب دى...... په راتلونكې زمانه كښې د هيڅ يوې ښځې له خوا څخه اگر كه سيده هم وي نسب نه ثابتيږي۔ (فتاوىٰ دار العلوم ديوبند ج ١١، ص ٧٥، باب ثبوت النسب)

## له دريو كلونو وروسته د پيدا شوي بچي د نسب حكم

**سوال:** كه چېرته د يوه سړي د مړينې نه درې كاله وروسته ئې د ښځې بچى پيدا شي په داسې حال كښې چه هغې بل ميړه هم نه وي كړى نو د دې بچي د نسب په باره كښې د مقدس شريعت څه حكم دى؟ آيا دا بچى به نوموړي مړي ته منسوب كيږي او كه نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د مفتٰى به قول مطابق د حمل اقله (كمه) موده شپږ مياشتې او زيات نه زيات موده ئې دوه كاله دى۔ په دې وخت كښې چه كوم بچى پيدا كيږي هغه ثابت النسبه وي ليكن كوم بچى چه د چا له وفات څخه د دوو كلونو له پوره كيدو وروسته پيدا شي او له بل چا سره نكاح هم نه وي كړې نو نسب ئې د پلار خوا ته نه منسوبيږي۔ نو له دې وجهې په صورت

مسئوله کښې کوم بچی چه د پلار د مړینې له دریو کلونو وروسته پیدا شوی دی له پلار څخه نه ثابتیږي. او د اسې بچی به یوائې د مور خوا ته منسوبیږي.

لما فی الهندیة: و لو فات عنها قبل الدخول او بعده ثم جائت بولدٍ من وقت الوفاة الی سنتین یثبت النسب منه و ان جائت به لاکثر من سنتین من وقت الوفاة لا یثبت النسب. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص ، الباب الخامس عشر فی ثبوت النسب)

## له دولس کلن هلک څخه د نسب د ثبوت مسئله

**سوال:** جناب مفتي صاحب! دلته په قبائلي علاقو کښې خلك ډیر په وړوکوالي کښې خپلو اولادونو ته ودونه کوي نو پوښتنه دا ده چه که چېرته د یوه هلك عمر دولس یا دیارلس کاله وي او ښځه ئې حامله شي نو آیا د دې حمل نسبت به د هلك خوا ته کیږي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته هلك مراهق یعنې بلوغ ته نژدې (چه د هلك عمر دولس کاله او د نجلۍ عمر ۹ کاله) وي نو بیا له دوی څخه د حمل نسب ثابتیدلی شي او که نه وي نو نه شي ثابتیدلی. له دې وجهې په نوموړي صورت کښې هم د حمل نسبت به د هلك خوا ته کیږي ځکه چه عمر ئې دولس کاله یعنې بلوغ ته نژدې دی.

قال العلامة الحصکفیؒ: و لا نسب فی حالیه اذ لا ماء للصبی نعم ینبغی ثبوته من المراهق احتیاطاً. قال ابن عابدینؒ (قوله اذ لا ماء للصبی) ای فلا یتصوّر منه العلوق و انما ثبت نسب ولد المشرقی من مغربیة اقامة للعقد مقام العلوق لتصوّره حقیقة بخلاف الصّبیّ کما فی البحر قوله نعم ینبغی) عبارة الفتح ثم یجب کون ذٰلك الصبیّ غیر المراهق اما المراهق فیجب ان یثبت النسب منه. (رد المحتار ج۵، ص ۱۳۲، فصل فی بلوغ الغلام)

قال الشیخ الامام ابو زهرةؒ: الشرط الاول ان یکون الزوج یتصور منه الحمل فان کان صغیرا لا یتصور منه الحمل لا یثبت لان هٰذه قرینة قاطعة علی ان الحمل لیس منه و قد اتفق علی ذٰلك الائمة. (الاحوال الشخصیه ص۳۸۹، القسم الرابع، ثبوت النسب)

## له حلاله پرته د دوهمې نکاح څخه د پیدا شوي بچي د نسب حکم

**سوال:** یوه سړي خپلې ښځې ته په یوه ځای درې طلاقه ورکړه او بیا څو ورځې وروسته ئې بغیر له شرعي حلاله څخه دوباره نکاح ورسره وکړه ځکه چه یوه غیر مقلد عالم دین ورته د نکاح د تجدید فتوٰی ورکړې وه په داسې حال کښې چه نوموړی پخپله حنفي مذهبه دی. له دوهمې نکاح څخه ئې یو بچی پیدا شوی دی نو د داسې بچي د نسب په باره کښې د شریعت څه حکم دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په صورت مسئوله کښې دوهمه نکاح شرعا فاسده ده او پرته له کوم تاخیر او ځنډ څخه د دواړو ترمنځ جدایي ضروري ده. البته د بچي نسب ئې له خپل پلار څخه ثابتیږي.



لما فی الهندیة: و لو طلقها ثلاثاً ثم تزوجها قبل ان تنکح زوجاً غیره فجائت منه بولد و لا یعلمان بفساد النکاح فا لنسب ثابت و ان کان یعلمان بفساد النکاح یثبت النسب ایضاً عند ابی حنفیةؒ کذا فی التاتارخانیة. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص ۵۴۰، الباب الخامس فی ثبوت النسب)

لما قال العلامة عالم بن العلاء الانصاریؒ: و لو طلقها ثلاثاً ثم تزوّجها قبل ان تنکح زوجاً غیره فجائت منه بولدٍ و لا یعلمان بفساد النکاح فا لنسب ثابت و ان کان یعلمان بفساد النکاح یثبت النسب ایضاً عند ابی حنیفةؒ. (الفتاوی التاتارخانیة ج۴، ص ۸۰، کتاب الطلاق، الفصل التاسع و العشرون، باب ثبوت النسب)

## د عدت په حالت کښې له خوښینې سره د نکاح په صورت کښې د پیدا شوي بچي د نسب حکم

**سوال:** یوه سړي خپلې ښځې ته طلاق ورکړ او د طلاق وجه دا وه چه د ښځې ئې شك وو چه خاوند ئې له خپلې خوښینې سره ناجائز تعلقات لري ځکه چه دوی اکثره وخت په خلوت کښې یو ځای سره اوسیدل. اوس دا مطلقه ښځه ده او خاوند ئې د همدې ښځې له خور سره چه خوښینه ئې کیږي نکاح وکړه او وتښتید. څه وخت وروسته ئې یو زوی هم پیدا شو نو آیا د دې بچي نسب به له نوموړي سړي څخه ثابتیږي او که څنګه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د صورت مسئوله مطابق د عدت په دوران کښې له خوښینې سره نکاح جائز نه دی. که چېرته چا وکړه نو فسخ ئې واجبه ده. او اصلي خبره دا ده چه د امام ابو حنیفه رحمه الله په نزد له فاسد نکاح څخه پیدا کیدونکی بچی هم ثابته النسبه وي نو ځکه د دې بچي نسب به له خپل پلار څخه ثابتیږي. بیا هم د دواړو لپاره د اولې ښځې د عدت له ختمیدو نه وروسته دوباره نکاح ضروري ده او بغیر له نکاح څخه دوی یو ځای نه شي سره اوسیدلی.

لما قال العلامة الکاسانیؒ: ان تزوج احداهما بعد الاخری جاز نکاح الاولٰی و فسد نکاح الثانیة. (بدائع الصنائع ج۲، ص ۲۶۰، کتاب النکاح)

و قال ایضاً: و اما نکاح الفاسد فلا حکم له قبل الدخول و اما بعد الدخول فیتعلق به احکام منها ثبوت النسب. (بدائع الصنائع ج۲، ص۳۲۵، باب ثبوت النسب)

و فی الهندیة: و ان تزوجهما فی عقدتین فنکاح الاخیرة فاسد یجب علیه ان یفارقها........ یجب الاقل من المسمی و من مهر المثل و علیها العدة و یثبت النسب و یعتزل عن امرأته حتٰی تنقضی عدة اختها. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۲۷۸/۲۷۷، کتاب النکاح، القسم الرابع المحرمات با لجمع)

## له خواښې سره د نکاح نه وروسته د پیدا کیدونکو اولادونو د نسب حکم

**سوال:** یوه سړي د خپلې ښځې له مړینې نه وروسته له خپلې خواښې سره نکاح وکړه. څو کاله سره پټ وو او په همدې دوران کښې ئې څلور بچي هم پیدا شوي دي او اوس نوموړی سړی مړ شوی دی. نو آیا دغه اولادونه ثابت النسبه دي او د نوموړي سړي په ترکه کښې د میراث

مسئوله کښې کوم بچی چه د پلار د مړینې له دریو کلونو وروسته پیدا شوی دی له پلار څخه نه ثابتیږي- او د اسې بچی به یوائې د مور خوا ته منسوبیږي-

لما فی الهندیة: و لو فات عنها قبل الدخول او بعده ثم جائت بولدٍ من وقت الوفاة الی سنتین یثبت النسب منه و ان جائت به لاکثر من سنتین من وقت الوفاة لا یثبت النسب. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص ، الباب الخامس عشر فی ثبوت النسب)

## له دولس کلن هــــلك څخه د نسب د ثبوت مسئله

**سوال:** جناب مفتي صاحب! دلته په قبائلي علاقو کښې خلک ډیر په وړوکوالي کښې خپلو اولادونو ته ودونه کوي نو پوښتنه دا ده چه که چېرته د یوه هلك عمر دولس یا دیارلس کاله وي او ښځه ئې حامله شي نو آیا دي حمل نسبت به د هلك خوا ته کیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته هلك مراهق یعني بلوغ ته نژدې (چه د هلك عمر دولس کاله او د نجلی عمر ۹ کاله) وي نو بیا له دوی څخه د حمل نسب ثابتیدلی شي او که نه وي نو نه شي ثابتیدلی- له دې وجهې په نوموړي صورت کښې هم د حمل نسبت به د هلك خوا ته کیږي ځکه چه عمر ئې دولس کاله یعني بلوغ ته نژدې دی-

قال العلامة الحصکفیؒ: و لا نسب فی حالیه اذ لا ماء للصبی نعم ینبغی ثبوته من المراهق احتیاطاً. قال ابن عابدینؒ (قوله اذ لا ماء للصبی) ای فلا یتصوّر منه العلوق و انما ثبت نسب ولد المشرقی من مغربیة اقامة للعقد مقام العلوق لتصوّره حقیقة بخلاف الصّبیّ کما فی البحر قوله نعم ینبغی) عبارة الفتح ثم یجب کون ذٰلك الصبیّ غیر المراهق اما المراهق فیجب ان یثبت النسب منه. (رد المحتار ج۵، ص ۱۳۲، فصل فی بلوغ الغلام)

قال الشیخ الامام ابو زهرةؒ: الشرط الاول ان یکون الزوج یتصور منه الحمل فان کان صغیرا لا یتصور منه الحمل لا یثبت لان هٰذه قرینة قاطعة علی ان الحمل لیس منه و قد اتفق علی ذٰلك الائمة. (الاحوال الشخصیه ص۳۸۹، القسم الرابع، ثبوت النسب)

## له حلاله پرته د دوهمې نکاح څخه د پیدا شوي بچي د نسب حکم

**سوال:** یوه سړي خپلې ښځې ته په یوه ځای درې طلاقه ورکړه او بیا څو ورځې وروسته ئې بغیر له شرعي حلاله څخه دوباره نکاح ورسره وکړه ځکه چه یوه غیر مقلد عالم دین ورته د تجدید فتوٰی ورکړې وه په د اسې حال کښې چه نوموړی پخپله حنفي مذهبه دی- له دوهمې نکاح څخه ئې یو بچی پیدا شوی دی نو د اسې بچي د نسب په باره کښې د شریعت څه حکم دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په صورت مسئوله کښې دوهمه نکاح شرعا فاسده ده او پرته له کوم تاخیر او ځنډ څخه د دواړو ترمنځ جدايي ضروري ده- البته د بچي نسب ئې له خپل پلار څخه ثابتیږي-



لما فی الهندیة: و لو طلقها ثلاثاً ثم تزوجها قبل ان تنکح زوجاً غیره فجائت منه بولد و لا یعلمان بفساد النکاح فالنسب ثابت و ان کان یعلمان بفساد النکاح یثبت النسب ایضاً عند ابی حنیفةؒ کذا فی التاتارخانیة. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص ۵۴۰، الباب الخامس فی ثبوت النسب)

لما قال العلامة عالم بن العلاء الانصاریؒ: و لو طلقها ثلاثاً ثم تزوّجها قبل ان تنکح زوجاً غیره فجائت منه بولدٍ و لا یعلمان بفساد النکاح فالنسب ثابت و ان کان یعلمان بفساد النکاح یثبت النسب ایضاً عند ابی حنیفةؒ. (الفتاوی التاتارخانیة ج۴، ص ۸۰، کتاب الطلاق، الفصل التاسع و العشرون، باب ثبوت النسب)

## د عــــدت په حالت کښې له خوبنیني سره د نکــــاح په صورت کښې د پیدا شوي بچي د نسب حکم

**سوال:** یوه سړي خپلې ښځې ته طلاق ورکړ او د طلاق وجه دا وه چه د ښځې ئې شك وو چه خاوند ئې له خپلې خوبنیني سره ناجائز تعلقات لري ځکه چه دوی اکثره وخت په خلوت کښې یو ځای سره اوسیدل- اوس دا مطلقه ښځه ده او خاوند ئې د همدې ښځې له خور سره چه خوبنینه ئې کیږي نکاح وکړه او وتښتید- څه وخت وروسته ئې یو زوی هم پیدا شو نو آیا د دې بچي نسب به له نوموړي سړي څخه ثابتیږي او که څنګه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د صورت مسئوله مطابق د عدت په دوران کښې له خوبنیني سره نکاح جائز نه دی- که چېرته چا وکړه نو فسخ ئې واجبه ده- او اصلي خبره دا ده چه د امام ابو حنیفه رحمه الله په نزد له فاسد نکاح څخه پیدا کیدونکی بچی هم ثابت النسبه وي نو ځکه د دې بچي نسب به له خپل پلار څخه ثابتیږي- بیا هم د دواړو لپاره د اولې ښځې د عدت له ختمیدو نه وروسته دوباره نکاح ضروري ده او بغیر له نکاح څخه دوی یو ځای نه شي سره اوسیدلی-

لما قال العلامة الکاسانیؒ: ان تزوج احداهما بعد الاخری جاز نکاح الاولٰی و فسد نکاح الثانیة. (بدائع الصنائع ج۲، ص ۲۶۰، کتاب النکاح)

و قال ایضاً: و اما نکاح الفاسد فلا حکم له قبل الدخول و اما بعد الدخول فیتعلق به احکام منها ثبوت النسب. (بدائع الصنائع ج۲، ص ۳۲۵، باب ثبوت النسب)

و فی الهندیة: و ان تزوجهما فی عقدتین فنکاح الاخیرة فاسد یجب علیه ان یفارقها........ یجب الاقل من المسمی و من مهر المثل و علیها العدة و یثبت النسب و یعتزل عن امرأته حتٰی تنقضی عدة اختها. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۲۷۷/۲۷۸، کتاب النکاح، القسم الرابع المحرمات بالجمع)

## له خوابنې سره د نکاح نه وروسته د پیدا کیدونکو اولادونو د نسب حکم

**سوال:** یوه سړي د خپلې ښځې له مړینې نه وروسته له خپلې خوابنې سره نکاح وکړه- څو کاله سره پټ وو او په همدې دوران کښې ئې څلور بچي هم پیدا شوي دي او اوس نوموړی سړی مړ شوی دی- نو آیا دغه اولادونه ثابت النسبه دي او د نوموړي سړي په ترکه کښې د میراث

حقداره دي او که نه؟ په داسي حال کښې چه د مرحوم له اولې ښځې څخه پيدا کيدونکي بچي دغه بچيان خپل ورونه او خويندې نه ګڼي او د پلار په ميراث کښې دوی ته د ميراث حق نه ورکوي۔ مهرباني وکړی د قرآن او سنتو په رڼا کښې دا نزاع ختمه کړی؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** له خوابښې سره شرعا نکاح جواز نه لري او که چېرته څوك نکاح ورسره وکړي نو فاسد نکاح به وي په داسي حال کښې چه له فاسد نکاح څخه عدت او د نسب د ثبوت مسائل ثابتيږي۔ له دې وجهې په نوموړي صورت کښې اګر که له خوابښې سره نکاح فاسد دی او فسخ ئې واجبه ده مګر د پيدا شويو اولادونو نسب ئې له پلار څخه شرعا ثابت دی۔ او دا اولادونه د نورو خويندو او ورونو په شان په ميراث کښې برابر حق لري او هيڅوك ئې د خپلې حصې ميراث ترې نه شي ګرځولی او نه ئې چا ته د ګرځولو اختيار شته۔

لما فی الهندية: رجل مسلم تزوج بمحارمه فجئن باولاد يثبت نسب الاولاد منه عند ابی حنيفةؒ خلافاً لهما بناء علی ان النکاح فاسد عند ابی حنيفةؒ باطل عندهما. (الفتاوی الهندية ج۱، ص ۵۴۰، باب ثبوت النسب)

## د مزنيې لـــــه لور څخه تر نکاح وروسته د پيـــــدا شوي بچي د نسب حـــــكم

**سوال:** د يوه سړي له يوې ښځې سره ناجائز تعلقات وو چه د دې تعلقاتو د په ځای ساتلو لپاره ئې د نوموړې ښځې له لور سره نکاح وکړه او له نکاح نه وروسته ئې هم په هغه ډول ناجائز تعلقات وو۔ دوه کاله وروسته ئې له نوموړې نجلۍ څخه بچی پيدا شو۔ اوس پوښتنه دا ده چه د دې بچي نسب به له چا څخه ثابتيږي ځکه چه د علاقې علماوو ورته ويلي وو چه د دې نجلۍ له تا سره نکاح نه کيږي ليکن له دې سره سره ئې نکاح ورسره وکړه او دا بچی ترې پيدا شو؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په شرط د صحت د سوال د قبيح او ناجائزو تعلقاتو په وجه د دې ښځې لور په نوموړي سړي باندې د خپلو لوڼو غوندې حرامه ده۔ د امام ابو حنيفه رحمه الله په نزد که چا له خپلو محارمو سره نکاح وکړه نو داسې نکاح واجب الفسخ ده ليکن د نکاح له فساد سره سره د اولاد نسب له پلار څخه ثابتيږي او د عوامو او خواصو دا ذمه واري ده چه دا نجلۍ او دا سړی سره جلا او بيل کړي۔

لما فی الهندية: رجل مسلم تزوج بمحارمه فجئن باولاد يثبت نسب الاولاد منه عند ابی حنيفةؒ خلافاً لهما بناء علی ان النکاح فاسد عند ابی حنيفةؒ باطل عندهما. (الفتاوی الهندية ج۱، ص ۵۴۰، باب ثبوت النسب)

قال العلامة ابن عابدينؒ: نکاح المحارم مع العلم بعدم الحل فاسد عندهٗ خلافا لهما. (رد المحتار ج۲، ص۶۵۹، باب العدّة، مطلب عدّة المنکوحة فاسداً)

و قال ايضاً: قوله لانه نکاح باطل ای فا لوطی فيه زنا لا يثبت به النسب بخلاف الفاسد فانه وطی بشبهه فيثبت به النسب و لا تکون با لفاسد فراشاً لا با لباطل. (رد المحتار ج۲، ص۶۸۷، باب ثبوت النسب، قبل باب الحضانة)



## خپل ذات يعنې شجرهٔ نسب د بدلولو حكم

**سوال:** د ذات (شجرهٔ نسب) بدلول او يا بل قوم ته خپل نسبت کول په شريعت کښې جائز دي او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د يوه مسلمان لپاره خپل ذات (شجرهٔ نسب) بدلول او يا بل قوم ته خپل نسبت کول د شريعت له مخې حرام او ګناه ده۔ په حديث شريف کښې په دې باندې ډېر سخت وعيد راغلی دی۔ او نبي کريمﷺ فرمايلي دي چه په نسب بدلوونکي سړي باندې جنت حرام دی۔

عن سعدؓ قال سمعت رسول اللهﷺ يقول من ادعٰی الٰی غير ابيه و هو يعلم انهٗ غير ابيه فا لجنة عليه حرام. (صحيح البخاری ج۱، ص ۱۰۰۱، کتاب الفرائض)

## د بل چا له منې څخه د ستنې په ذريعه د پيدا شوي بچي د نسب حكم

**سوال:** زمونږ په کلي ګهلور ضلع مظفر آباد آزاد کشمير کښې يو سړی دی چه پنځلس کاله کيږي واده ئې کړی دی ليکن تر اوسه پورې د خدای په قدرت سره د اولاد له نعمت څخه محروم دی۔ هغه د خپل جائداد د وارث جوړولو لپاره يوه هيله جوړه کړه چه ښايي په دې طريقې سره مې زوی پيدا شي۔ نو ئې خپلې ښځې ته د کوم نامعلوم سړي د منې ستن ولګوله چه ښځه ئې ترې حامله شوه۔ له ټاکلي وخت څخه وروسته ئې لور پيدا شوه کومه چه له قدرتي لوييدو څخه محرومه او هر وخت مريضه وي، قد (ونه) ئې هم نه جګيږي، شکل ئې هم د دوی د خاندان له يوه فرد سره معمولي غوندې مشابهت نه لري۔ د دې بچي له پيدا کيدو نه وروسته تر شپږو کالو پورې ئې بيا بچي نه کيدل او واضحه خبره ده چه د نوموړي سړي پلار خپل ځان د اسلام ډېر لوی دعويدار هم ګڼي ليکن د چا د حقوقو د غصب کولو هيڅ پروا هم نه کوي، د بانك په سودي معاملاتو کښې ډېره ژوره دلچسپي لري، هغه نه هم د خپل زوی د دې ناښائسته عملونو ښه معلومات شته۔ اوس پوښتنه دا ده چه آيا د داسې سړي په اسلام کښې څه مقام شته او که نه؟ که چېرته ئې وي نو لږ وضاحت ئې وکړی؟ او که چېرته ئې د اسلام له حدودو او قيودو څخه تجاوز کړی وي نو د قرآن او سنت د دې سړي په باره کښې څه حکم دی؟ هيله ده چه په تفصيل سره ځواب راکړی؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په پورته ذکر شوې طريقې (د ستنې په ذريعه) د اولاد حصول حرام او د اسلامي اصولو خلاف ورزي ده۔ بيا که چېرته په دې طريقې سره د توليد عمل مکمل کړی شي نو نسب ثابتيږي۔ د رسول اللهﷺ فرمان دی چه الولد للفراش و للعاهر الحجر (الحديث) نو د دې بچي نسب له نوموړي سړي څخه ثابتيږي۔ او د وراثت، رضاعت او داسې نورو احکام پرې جاري کيږي۔ د نسب د ثبوت لپاره د وطی فطري صورت ضروري نه دی۔ له فطري صورت څخه پرته هم که چېرته په هرې طريقې سره د خاوند مادهٔ منويه د ښځې رحم ته ورسيږي نو

نسب ثابتیږي۔ د فقهاء کرامو په ځینو عبارتونو کښې دې خوا ته اشاره شوې ده۔ په خلاصه الفتاوٰی او عالمګیري کښې دي چه: البکر اذا جومعت فی ما دون الفرج فحملت بان دخل الماء فی فرجها فلما قرب او ان ولادتها نزال عزرتها ببیضة او بحرف درهم. (ج ٤، ص ١١٤)

"د نجلۍ له شرمګاه څخه د باندې (باهر) که چېرته جماع ور سره وشي او نجلۍ ترې حامله شي په دې شرط چه مادهٔ منویه د هغې په شرمګاه کښې داخل کړی شي او کله چه د ولادت وخت ئې راشي نو د هګۍ یا د درهم په کونجونو د هغې د بکارت پرده پرې کړی شي"۔

له دې څخه دا هم څرګندیږي چه د نسب د حرمت حکم هم ثابت شي یعنې مور، پلار، نیکه، انا او د اسې نور د نسب سلسله د اسې حرامه شي لکه څرنګه چه د فطري توالد او تناسل له وجهې حرامیږي۔ په دې کښې هیڅ شك نشته چه دا صورت عملا د زنا صورت دی او د اسې پیدا کیدونکی بچی ولد الزنا دی۔ البته په دې باندې په اسلامي ملکونو کښې د زنا شرعي سزا نه شي نافذیدلی ځکه چه شرعي سزا یوائې په ناجائز حمل باندې نه بلکه له یوه او بل څخه د خوند په اخیستلو باندې ده۔ (جدید فقهي مسائل ص۱۵۲)

په پورته ذکر شوي صورت کښې د دې سړي دا عمل جائز نه بلکه حرام دی۔ البته په دې باندې د نسب او د اسې نور تول احکام ثابتیږي اګر که د دې بچي شکل او صورت د دوی د خاندان سره مشابه وي او که نه؟ و الله اعلم۔

## د څوارلسو او پنځلسو کلـــــونو له جدایي ســـره سره بچی ثابت النسب ګڼل کیږي

**سوال:** یو څوك د ۱۹۷۱ء سنه د پاکستان او هندوستان په جنګ کښې ورك شو او تر څو کلونو پورې ئې د مرګ او ژوند معلومات نه کیده او له ورکیدو څخه ئې تقریبا څوارلس یا پنځلس کاله وروسته بچی پیدا شو۔ اوس پوښتنه دا ده چه د دې بچي نسب له چا څخه ثابتیږي؟ مهرباني وکړی د قرآن او حدیثو په رڼا کښې د دې مسئلې ځواب راکړئ؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** اسلام تر ډیره پورې د بچي د ثابت کیدو کوشش کړی دی۔ په نوموړي صورت کښې اګر که په ظاهره سره اثبات نظر مشکل معلومیږي لیکن شریعت مطهره د دې ولد نسب هم ثابت کړی دی او یوه قانوني ماده ئې پریښې ده چه "الولد للفراش و للعاهر الحجر" (بخاري شریف) (ولد یعنې بچی به د فراش تابع وي او د زاني لپاره یوائې ډبره ده) د دې قانون لاندې په صورت مسئوله کښې د دې ولد نسب ل. خپل پلار څخه ثابتیږي اګر که حقیقت د اسې نه دی۔ دا نسب له لعان نه بغیر له خپل پلار څخه نه نفی کیږي۔

لما فی الهندیة: و الحکم فیه انه یثبت النسب من غیر دعوة لا ینتفی بمجرد النفی و انما ینتفی با للعان. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۶۳، باب ثبوت النسب)



# مسائل شتّٰی
## (د طلاق متفرق احکام)
## د مغلظ طلاق څخه د بچ کیدو حیله

**سوال:** جناب مفتي صاحب! زما او زما د ورور تر منځ څه خفګان راغلی وو او اوس زمونږ تر منځ صلح شوې ده او د صلح په وخت کښې ما له خپل ورور سره وعده کړې وه چه که چېرته ما له فلاني سړي سره تعلقات وساته نو زما ښځه دې په ما باندې په درېو طلاقونو طلاقه وي۔ اوس مې جرګه مجبوروي چه زه له هغه سړي سره خبرې کول شروع کړم ځکه چه نوموړی سړی زما نژدې خپل هم کیږي۔ د شریعت له مخې زه باید اوس څه وکړم؟ ما ته د اسې ترکیب او طریقه وښایی چه زمونږ خبرې اترې هم شروع شي او طلاق مې هم په ښځې باندې واقع نه شي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د اسې خو په صورت مسئوله کښې درې طلاقونه مشروط دي په یوه شرط سره۔ کله چه شرط پوره شي نو طلاق مغلظه واقع کیږي۔ اوس له د اسې طلاق څخه د بچ کیدو تدبیر دا دی چه اول دې دی خپلې بي بي ته یو طلاق ورکړي او جدا دې کړي او کله چه ئې عدت ختم شي نو دی دې له نوموړي سړي سره خبرې شروع کړي او بیا دې دوباره له ښځې سره نکاح وکړي نو یوائې په دې صورت کښې د ده ښځه له مغلظ طلاق له وقوع څخه بچ کیدلی شي او که نه وي نو د نوموړي سړي سره د خبرو اترو او تعلقاتو په شروع کولو سره ئې په ښځې باندې مغلظ طلاق واقع کیږي۔

قال العلامة الحصکفیؒ: فحیلة من علق الثلاث بدخول الدار ان یطلقها واحدة ثم بعد العدة تدخلها فتنحل الیمین فینکحها. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص۵٤٥، قبل مطلب اختلاف الزوجین فی وجود الشرط)

## د مضارع په صیغې سره د طلاق حکم

**سوال:** که چېرته له یوې ښځې څخه غلط کار وشي او خاوند ئې د خبردارۍ لپاره هغې ته دا ووایي چه که چېرته تا په راتلونکي کښې دا کار وکړ نو بیا به طلاق درکوم۔ څو ورځې وروسته له هغې څخه بیا هغه کار وشو نو آیا په دې صورت کښې په نوموړې ښځې باندې طلاق واقع کیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د قواعدو او اصولو مطابق د مضارع صیغې په دوه ډوله دي ځینې د اسې صیغې دي چه د حال په معنٰی کښې استعمالیږي او ځینې بیا د راتلونکي په معنٰی کښې استعمالیږي۔ چونکه په لومړني صورت کښې انشاء فی الحال او ان شاء فی الماضي دی له دې وجهې د مضارع په د اسې صیغو سره طلاق واقع کیږي او په دوهم صورت کښې چونکه

د ارادې اظهار وي نو ځکه په دې صوزت کښې له انشاء پرته طلاق نه واقع کیږي. نو په نوموړې صورت کښې چونکه یوائې د ارادې اظهار دی د دې لپاره طلاق نه واقع کیږي.

قال العلامة ابن عابدینؒ: صیغة المضارع لا یقع بها الطلاق الا اذا غلب فی الحال، کما صرح به الکمال ابن الهمام. (تنقیح الحامدیة ج١، ص٢٨، کتاب الطلاق)

قال الشیخ ظفر احمد العثمانیؒ: دا د مضارع صیغه ده او د مضارع په صیغې باندې طلاق نه واقع کیږي لیکن کله چه مضارع د حال په معنې غالب شي نو فقهاوو د طلاق د واقع کیدو تصریح پرې کړې ده. (امداد الاحکام ج٢، ص٣٨٧، کتاب الطلاق)

## د طلاق له نیت پرته ښځې ته "بل خاوند درته ګوره" د ویلو حکم

**سوال:** که چېرته یو څوک له ښځې سره د جنګ او جدل په دوران کښې دا ووایي چه څه "بل خاوند درته وغواړه" لیکن په دې جمله کښې نیت د طلاق نه وي نو په دې سره طلاق واقع کیږي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** "څه بل خاوند درته وغواړه" د طلاق کنایي الفاظ دي کوم چه د طلاق په وقوع کښې نیت او یا د حال دلالت او یا د قرینې او قیاس محتاج وي. چونکه په صورت مسئوله کښې د دې سړي نیت د طلاق نه دی نو د دې لپاره طلاق نه واقع کیږي او که نه نو د نیت په صورت کښې په ښځې باندې طلاق بائن واقع کیږي.

و فی الهندیة: و بابتغی الازواج تقع واحدة بائنة ان نواها او اثنین و ثلاث ان نواها. (الفتاوی الهندیة ج١، ص٣٧٥، الفصل الخامس فی الکنایات)

قال العلامة ابو البرکات النسفی رحمه الله: و غیرها بائنة و ان نوی ثنتین و تُصحّ نیة الثلاث و هی بائنة بتةٌ حرام......... قومی ابتغی الازواج. (کنز الدقائق علی هامش البحر الرائق ج٣، ص٣٠٠/٣٠٢، باب الکنایات)

او د طلاق بائن حکم دا دی چه د عدت په دوران او یا د عدت له تیریدو وروسته د نکاح په تجدید سره ښځه د خاوند لپاره حلالیږي او د حلاله ضرورت نه وي.

## سرکشي (نافرماني) ښځې ته طلاق ورکول مستحب دي

**سوال:** د یوه سړي ښځه فاحشه او نافرمانه ده که چېرته طلاق ورکړي نو ګنهګار به وي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** کومه ښځه چه د خپل خاوند نافرمانه وي او د هغه په حقوقو کښې کوتاهي کوي او شرعي حدود هم تر پښو لاندې کوي نو په طلاق ورکولو سره به ئې خاوند ګنهګار نه وي بلکه له داسې ښځه نه د ځان خلاصول مستحب دي.

قال العلامة الحصکفیؒ: و ایقاعه مباح و قیل الاصح خطره الا لحاجة کریبة و کبر....... بل یستحب لو موذیة او تارکة صلوة غایة و مفاده ان لا اثم بمعاشرة من لا تصلی و یجب لوفات الامساک با لمعروف. قال ابن عابدینؒ (تحت



قوله و موذیة) اطلقه فشمل الموذیة له او لغیره بقولها او بفعلها الخ. (رد المحتار ج٢، ص ٤٥٠، کتاب الطلاق)

و قال الشیخ وهبة الزحیلی: ذهب الحنفیة علی المذهب الی ان ایقاع الطلاق مباح لاطلاق الآیات....... قال الکمال بن الهمام الاصح خطر الطلاق ای منعه الا لحاجة کریبة و کبر و رجح. قال ابن عابدینؒ هٰذا الرأی و لیست الحاجة مُختصة با لکبر و الریبة بل هی اعم. (الفقه الاسلامی و ادلته ج٧، ص٣٦٢، المبحث الاول.. حکم الطلاق)

## د نجلۍ د نه خوښیدلو په صورت کښې د طلاق د ورکولو حکم

**سوال:** مور او پلار ما ته په یوه ځای کښې نکاح وکړه او له یو ځای کیدو نه وروسته مې نجلۍ خوښه نه شوه نو آیا زه اوس هغې ته طلاق ورکولی شم او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** طلاق ورکول د خاوند ملکیت دی چه څه وخت وغواړي خپلې ښځې ته طلاق ورکولی شي لیکن له شرعي عذر څخه بغیر طلاق ورکول له کراهیت څخه خالي نه دی. په صورت مسئوله کښې چونکه د طلاق په صورت کښی د والدینو نافرماني هم لازمیږي نو د دې لپاره د امکان تر حده پورې له طلاق نه لرې ګرځه. او که چېرته سره له کوشش مو زغم یا برداشت ممکن نه وي نو بیا طلاق ورکول مباح دي.

قال العلامة الحصکفیؒ: و ایقاعه مباح عند العامة لاطلاق الآیات اکمل و قیل قائله الکمال الاصح خطره ای منعه الا لحاجة کریبة و کبره. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج٢، ص ٤٥٠، کتاب الطلاق)

و قال الشیخ وهبة الزحیلی: ذهب الحنفیة علی المذهب الی ان ایقاع الطلاق مباح لاطلاق الآیات....... قال الکمال بن الهمام الاصح خطر الطلاق ای منعه الا لحاجة کریبة و کبر و رجح. قال ابن عابدینؒ هٰذا الرأی و لیست الحاجة مُختصة با لکبر و الریبة بل هی اعم. (الفقه الاسلامی و ادلته ج٧، ص٣٦٢، المبحث الاول....... حکم الطلاق)

## یوائې د طـــــلاق د خیال په راتلو سره طلاق نه واقع کیږي

**سوال:** که چېرته د یوه سړي په زړه کښې بار بار د طلاق خیال راشي چه په ما باندې دې ښځه طلاقه وي په داسې حال کښې چه تر اوسه پورې ئې په ژبې باندې څه نه دي ویلي نو آیا په دې سره طلاق واقع کیږي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د طلاق د وقوع لپاره د طلاق الفاظ په ژبې سره ادا کول لازمي دي. یوائې په خیال کښې د طلاق په راتلو سره طلاق نه واقع کیږي.

قال العلامة ابن نجیم المصریؒ: فقد افاد ان رکنه ای الطّلاق اللفظ الدال علی ازالة حل المحلیة. (البحر الرائق ج٣، ص٣٥٢، کتاب الطلاق)

قال الشیخ وهبة الزحیلی: یشترط با لاتفاق القصد فی الطلاق و هو ارادة التلفظ به و لو لم ینوه. (الفقه الاسلامی و ادلته ج٧، ص٣٦٨، المبحث ما یشترط فی الرکن الثانی للطلاق القصد)

## د شك په صورت كښې څو طلاقونه واقع كيږي

**سوال:** كه چېرته يو چا ته د طلاق په تعداد كښې شك پيدا شي چه خپلې ښځې ته ئې يو طلاق وركړى دى او كه دوه يا درې. نو په دې صورت كښې د نوموړي سړي په ښځې باندې څو طلاقونه واقع كيږي؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د طلاق په تعداد كښې د شك په وقوع سره چونكه عدد اقل يعني كم متعين يعني ټاكل كيږي او هغه واقع كيږي تر دې پورې كه چېرته د هغه ډېر يقين په اكثر هم وي نو بيا به هم په اقل باندې عمل كوي. له دې وجهې په نوموړي صورت كښې كوم چه د شك صورت دى دوه طلاقه واقع كيږي. بيا هم كه چېرته ئې د دريو طلاقونو ګمان غالب وي نو بيا درې واقع كيږي.

قال العلامة طاهر بن عبد الرشيد البخارىؒ: رجل حلف با لطلاق و شكّ الرّجل انهٗ طلق واحدة او ثلاثاً فهى واحدة حتى يستيقن او يكون اكثر ظنه على خلافه. (خلاصة الفتاوىٰ ج۲، ص۱۲، كتاب الطلاق)

قال الشيخ الدكتور وهبة الزحيلى: و من شكّ فى صفة الطلاق انهٗ طلقها رجعية او بائنة يحكم با لرجعية لانها اضعف الطلاقين فكانت متيقناً بها. (الفقه الاسلامى و ادلته ج۷، ص۴۵۷، المبحث السادس الشك فى الطلاق)

## د مرض الموت په طلاق سره د وراثت حق له منځه نه ځي

**سوال:** يوه سړي د مرض الموت په حالت كښې ښځې ته طلاق وركړ او له دې نه څو ورځې وروسته له دغې بيمارۍ څخه وفات شو نو آيا نوموړي مطلقې ښځې ته د خاوند له ميراث څخه څه وركول كيږي او كه نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په مرض الموت كښې د طلاق په وركول سره د خاوند په باره كښې شبهه كيدلى شي چه ښايي هغه خپلې ښځې له له ميراث څخه د محروم كولو په خاطر دا اقدام كړى وي نو د دې لپاره په شريعت كښې په مرض الموت د طلاق په وركولو سره د ښځې د ميراث حق له منځه نه ځي.

لما فى الهندية: الرجل اذا طلق امرأته طلاقاً رجعياً فى حال صحته او فى حال مرضه برضاها او بغير رضاها ثم ماتت و هى فى العدة فانهما يتوارثان با لاجماع. (الفتاوىٰ الهندية ج۱، ص۴۶۲، الباب الخامس فى طلاق المريض)

قال العلامة ابن عابدينؒ: الطلاق اذا كان رجعياً فانها ترثه و كذا يرثها لو ماتت فى العدة. (رد المحتار ج۲، ص۵۶۷، باب طلاق المريض) و مثله فى كنز الدقائق على هامش البحر الرائق ج۴، ص۴۲، باب طلاق المريض.

## فاحشې ښځې ته طلاق وركول واجب نه بلكه مستحب دي

**سوال:** كه چېرته د چا ښځه آزاده ګرځيدله او د خاوند له خوا څخه پابندي ئې په ځان يو دروند بار بلله او تل د خپل خاوند خلاف ورزي كوي آن تر دې پورې چه له دې وجهې څخه په فسق او فجور كښې د اخته كيدو خطره ئې هم وي نو په د اسې حالت كښې ښځې ته طلاق وركول څنګه دي؟



**الجواب باسم ملهم الصواب:** د فاحشې او فاسقې ښځې په باره كښې ئې خاوند ته په كار دي چه ورته فكرمند شي او په اولومړني فرصت كښې ئې د اصلاح خوا ته توجه وركړي ممكنه ده چه اصلاحه شي او له فسق او فجور څخه منع شي ليكن كه چېرته د خاوند د ټول كوشش سره سره ئې له اصلاح څخه په كُلي توګه نا اُميده شي نو بيا د اسې ښځې ته طلاق وركول مستحب دي البته واجب نه دي.

قال العلامة الحصكفى رحمه اللّٰه: بل يستحب (اى الطلاق) لو موذية او تاركة صلوٰة. قال العلامة ابن عابدين رحمه اللّٰه اطلقه فشمل الموذية لهٗ او لغيره بقولها. (رد المحتار ج۲، ص۵۶۷، باب طلاق المريض) و مثله فى كنز الدقائق على هامش البحر الرائق ج۴، ص۴۲، باب طلاق المريض.

و فيه كذٰلك فى موضع آخر لا يجب على الزوج تطليق الفاجرة. (الدر المختار على هامش رد المحتار ج۲، ص۳۱۸، فصل فى المحرمات، مطلب فيما لو زوج المولىٰ امته)

قال العلامة ابن نجيم المصرىؒ: و فى غاية البيان يستحب طلاقها اذا كانت سليطة موذية او تاركة للصلوٰة الخ. (البحر الرائق ج۳، ص۲۳۷، كتاب الطلاق)

و فيه هٰكذا و فى المجتبىٰ من آخر الحظر و الاباحة لا يجب على الزوج تطليق الفاجرة و لا عليها تسريح الفاجر. (البحر الرائق ج۳، ص۱۰۷، كتاب النكاح، فصل فى المحرمات)

## د طلاق لپاره په خاوند باندې د ظلم كولو حكم

**سوال:** په كومو صورتونو كښې ښځه له خاوند څخه جبراً طلاق حاصلولى شي؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په طلاق كښې خاوند ته استقلال حاصل دى. د طلاق د حاصلولو لپاره په هغه باندې جبر او ظلم د هغه په حقوقو كښې لاس وهنه او مداخله ده. بيا هم كه چېرته د لعان په صورت كښې كله چه خاوند ښځې ته طلاق ورنه كړي نو قاضى د دوى تر منځ جدايي راوستلى شي. او همدارنګه په ظهار كښې د كفارې په ادا كولو او د طلاق په وركولو باندې ئې مجبوره كولى شي.

لما فى الهندية: المظاهر اذا لم يكفر و رفع امره الى القاضى يحبسه القاضى حتى يكفر او يطلق. (الفتاوىٰ الهندية ج۱، ص۵۰۷، الباب التاسع فى الظهار)

و قال العلامة الحصكفى رحمه اللّٰه: و عليها ان تمنعه من الاستمتاع حتى يكفر و على القاضى الزامه به با لتكفير دفعاً للضرر عنها بحبس او ضرب الى ان يكفر او يطلق. (الدر المختار على هامش رد المحتار ج۲، ص۶۲۶، باب الظهار) و مثله فى الفتاوىٰ الخانية على هامش الهندية ج۱، ص۵۴۴، باب الظهار، مطلب بلاغات محمدؒ مسندة.

## د والدينو د رضا لپاره ښځې ته د طلاق وركولو حكم

**سوال:** د يوه سړي په ښځه كښې كوم شرعي نقصان نشته چه له مخې ئې هغې ته طلاق وركړي ليكن د خاوند د والدينو او د ښځې يو ځاى اوسيدل مشكل دي په د اسې حالت كښې آيا نوموړى سړى د والدينو د رضا په خاطر ښځې ته طلاق وركولى شي او كه نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د والدينو د رضا لپاره له ښځې څخه تيريدل اګر كه د زوی د فرمانبرداری اعلیٰ او بهترينه نمونه ده ليكن په داسې حالت كښې چه د ښځې كوم جرم نه وي نو طلاق وركول د يوې ښځې له ژوند سره لوبې كول دي او هغه د جدايي په كندې كښې اچول دي يا په بله معنی دا ښځه د جدايي په ناقابل برداشت دروند بار لاندې ښخول د يوه لوی امتحان څخه كم نه دی. په عامه معاشره كښې د حضرت عمر رضی الله عنه غوندې پلار چا ته نصيب كيږي چه له هغه څخه د ابن عمر رضی الله عنه غوندې د كردار توقع وشي. نو د دې لپاره د والدينو د رضاء لپاره ښځې ته طلاق وركول اګر كه جائز دي ليكن حالاتو ته په نظر كولو سره دا اقدام د يو مصيبت سبب جوړيدلی شي.

قال الله تبارك و تعالیٰ: فَلَا تَمِيْلُوْا كُلَّ الْمَيْلِ فَتَذَرُوْهَا كَالْمُعَلَّقَةِ. (النساء، آيت ١٢٩)

و ايضاً قال: وَ لَا تُمْسِكُوْهُنَّ ضِرَاراً لِتَعْتَدُوْا وَ مَنْ يَّفْعَلْ ذٰلِكَ فَقَدْ ظَلَمَ نَفْسَهٗ وَ لَا تَتَّخِذُوْٓا اٰيٰتِ اللّٰهِ هُزُواً. (سورة البقرة، آيت ٢٣١)

و عن ابن عمر رضی الله عنه قال كانت تحتی امرأة احبها و كان عمر رضی الله عنه يكرهها فقال لی رسول اللهﷺ طلقها. (رواه الترمذی. (مشكوٰة ص ٤٢١، كتاب الطلاق)

و قال الشيخ عبد الحق فی شرح هٰذا الحديث: ان كان الحق فی جانب الوالدين فطلاقها واجب للزوم العقوق فی الحقوق و ان كان فی جانب المرأة فان طلقها لرضاء الوالدين فهو جائز. (اللمعات شرح المشكوٰة)

## د مطلقې د ميراث حكم

**سوال:** كه چيرته د عدت په دوران كښې د مطلقې خاوند مړ شي نو آيا مطلقې معتدې ته د خاوند له ميراث څخه څه وركول كيږي او كه نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** كه چيرته د ښځې په غوښتنې سره خاوند خپلې ښځې ته طلاق وركړی وي نو په داسې صورت كښې مطلقه د ميراث له حق څخه محرومه كيږي او له دې صورت پرته چونكه معتده د خاوند په نكاح كښې د عدت تر وخته پورې باقي پاتې وي نو د دې لپاره هغې ته په ميراث كښې برخه وركول كيږي اګر كه مغلظه مطلقه هم وي.

لما فی الهندية: الرجل اذا طلق امرأته طلاق رجعياً فی حال صحته او فی حال مرضه برضاها او بغير رضاها ثم مات و هی فی العدّة فانهما يتوارثان....... و لو طلقها طلاقاً بائناً او ثلاثاً ثم مات و هی فی العدّة فكذٰلك عندنا ترث الخ. (الفتاوی الهندية ج ١، ص ٤٦٢، الباب الخامس فی طلاق المريض)

قال العلامة عالم بن العلاء الانصاریؒ: اذا طلق المريض امرأته طلاقا رجعيا ورثت مادامت فی العدة. و فيه. و لو طلقها بائناً او ثلاثاً ثم مات و هی فی العدّة فكذٰلك عندنا ترث. (الفتاوی التاتارخانية ج ٣، ص ٥٧٧، الفصل العشرون فی طلاق المريض، كتاب الطلاق) و مثله فی رد المحتار ج ٢، ص ٥٦٧، باب طلاق المريض.



## له رجوع پرته د عدت په تيرولو سره ښځه جدا كيږي

**سوال:** يوه سړي خپلې ښځې ته د غصې په حالت كښې وويل چه "ته په ما طلاقه يې" په داسې حال كښې چه په همدې وخت كښې يې د طلاق د وركولو اراده هم نه وه ليكن ښځې ته يې د بې باكۍ له وجهې داسې وويل. له دې نه وروسته ښځه د والدينو كره لاړه تر پنځه كلونو پورې د دوی خپل منځي تعلقات نه وو. اوس هغوی دواړه غواړي چه دوباره نكاح وكړي نو هغوی شرعاً بايد كومه طريقه تر سره كړي؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** "ته په ما باندې طلاقه يې" د طلاق صريح الفاظ دي. په داسې الفاظو كښې د نيت او ارادې ضرورت نشته كه نيت او اراده وي او كه نه وي طلاق واقع كيږي. په نوموړي صورت كښې چونكه يو طلاق واقع شوی دی او عدت يې هم تير شوی دی اګر كه د عدت په دوران كښې د خاوند لپاره رجوع بالقول او يا رجوع بالفعل كافي وو ليكن له رجوع نه پرته د عدت په تيريدو سره ښځه جدا شوې ده او دواړه د يو او بل په رضا سره د نكاح په نوې كولو سره بيرته خپل كور آبادولی شي.

قال العلامة ابن عابدين رحمه الله: و الرجعی لا يزيل الملك الا بعد مضی العدّة. (رد المحتار ج ٢، ص ٥٧٦، كتاب الطلاق، باب الرجعة)

قال العلامة اكمل الدين البابرتیؒ: فما دامت العدّة باقية كانت ولاية الرجعة باقية و اذا انقضت من غير رجعة بانت. (العناية شرح الهداية علی هامش فتح القدير ج ٣، ص ٣٥٢، باب ايقاع الطلاق، كتاب الطلاق) و مثله فی البحر الرائق شرح كنز الدقائق ج ٣، ص ٢٥٦، باب الطلاق.

## د مغلظه مطلقې لپـــــــاره د خاوند په كور كښې د اوسيدلو حكم

**سوال:** يوه سړي خپلې ښځې ته مغلظ طلاق وركړ او فارغه يې كړه. د حلالې لپاره د نه تياريدو له وجهې كه چيرته دا ښځه د خاوند په كور كښې چه د خادمې په توګه واوسي نو آيا ورته جائز دي او كه نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** كه چيرته يې خاوند فاسق او فاجر نه وي او د زنا خطره ترې نه وي نو د مغلظه مطلقې لپاره د خادمې په توګه د خاوند په كور كښې اوسيدل پروا نه لري. بيا هم احتياط ضروري دی تر څو چه په كوم ډول بد عمل كښې مبتلا نه شي.

لما قال العلامة الحصكفیؒ: سئل شيخ الاسلام عن زوجين افترقا و لكل منهما ستون سنة و بينهما اولاد تتعذر عليهما مفارقتهم فيسكنان فی بيتهم و لا يجتمعان فی فراش و لا يلتقيان التقاء الازواج هل لهما ذٰلك قال نعم. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج ٢، ص ٦٧٥، باب العدّة، كتاب الطلاق)

و فی الهندية: اذا طلّقها ثلاثاً او واحدة بائنة و ليس لهٗ الا بيت واحد فينبغی له ان يجعل بينهما حجاباً حتیٰ لا تقع الخلوة بينه و بين الاجنبيّة. (الفتاوی الهندية ج ١، ص ٥٣٥، كتاب الطلاق، الباب الثالث عشر فی العدّة)

## د عدت په تیریدو کښې د ښځې په وینا باندې د اعتماد کولو حکم

**سوال:** که چېرته یوې ښځې دا وویل چه زما خاوند مړ شوی دی او عدت مې هم تیر شوی دی نو آیا د هغې بیان د صحیح ګڼلو په صورت کښې نکاح ورسره جائزه ده او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته د ښځې بیان د غلبۀ ظن لپاره مفید وي او د هغې په بیان کښې د صداقت او رښتینولي خوا ته میلان ډیر وي نو له هغې سره نکاح کومه پروا نه لري۔ بیا هم بهتره به دا وي چه بیان د معاشرې د حالاتو مطابق وتلي او معلوم ئې کړي۔ د بهرني قرائنو څخه پرته بنایي د ښځې بیان د غلبۀ ظن لپاره مفید نه شي جوړیدلی۔

لما فی الهندیة: و لو ان امرأة قالت لرجل ان زوجی طلقنی ثلاثاً و انقضت عدتی فان کانت عادلة و سعه ان یتزوّجها و ان کانت فاسقة تحرّیٰ و عمل بما وقع علیه تحریة کذا فی الذخیرة. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۳۱۳، کتاب الطلاق، الباب الثالث عشر فی العدّة)

قال العلامة الحصکفیؒ: و حل نکاح من قالت طلقنی زوجی و انقضت عدّتی او کنت امة فلان و اعقتنی. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص۶۹۸، کتاب الطلاق، باب العدة) و مثله فی الفتاوی الخانیة علی هامش الهندیة ج۱، ص۴۲۱، کتاب الطلاق، باب العدّة.

## د نفاسه ښځې د طـــــلاق عدت

**سوال:** یوه سړي د نفاس په حالت کښې خپلې ښځې ته طلاق ورکړ۔ اوس نوموړې ښځه د عدت د تیرولو نه پرته په بل ځای کښې نکاح کولی شي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته ښځه د حیض له راتلو څخه ناامیده شوې نه وي نو په دې صورت کښې په هغې باندې د دریو حیضونو تیرول لازمي دي۔ او که چېرته د سن ایاس ته د رسیدو په وجه د حیض له راتلو څخه نا اُمیده شوې وي نو په دې صورت کښې د دریو میاشتو د عدت له تیرولو وروسته له بل چا سره نکاح کولی شي۔ په هر حال کښې د عدت تیرول ورته ضروري دي۔

قال العلامة برهان الدین المرغینانیؒ: و اذا طلق الرجل امرأته و هی حدّةٌ ممن تحیض فعدّتها ثلاثة اقراء. (الهدایة ج۲، ص۴۲۲، کتاب الطلاق، باب العدة)

و فی الهندیة: و اذا طلق الرجل امرأته........ و هی ممن تحیض فعدّتها ثلاثة اقراء. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۵۲۶، کتاب الطلاق، باب الثالث عشر فی العدّة) و مثله فی الدر المختار علی هامش ردّ المحتار ج۲، ص۶۵۱، کتاب الطلاق، باب الثالث عشر فی العدّة.

## د نوې مسلمانـــــې شوې ښځې د عدت حکم

**سوال:** که چېرته یوه ښځه په اسلام باندې مشرفه شي او خاوند ئې د اسلام قبلولو ته تیار نه وي نو نوموړې ښځه که چېرته له کوم مسلمان سړي سره وغواړي چه نکاح وکړي نو عدت به ئې څه وي؟



**الجواب باسم ملهم الصواب:** د مسلمانې شوې ښځې خاوند که چېرته د اسلام له قبلولو څخه انکار وکړي نو دا ښځه د کافر سړي په نکاح کښې نه شي پاتې کیدلی۔ نو د دې لپاره یو مسلمان حاکم او یا قاضي د دې د خاوند له اسلام راوړلو څخه د انکار نه وروسته د دواړو تر منځ به د جدایي حکم صادروي کوم چه د ښځې په حق کښې طلاق ګڼل کیږي۔ په یوه اسلامي ملک او معاشره کښې د اوسیدونکې ښځې لپاره د طلاق په صورت کښې چه کله عدت تیر کړي نو بل ځای به نکاح کوي۔

قال العلامة برهان الدین المرغینانی رحمه الله: و اذا اسلمت المرأة و زوجها کافر عرض علیه السلام فان اسلم فهی امرأته و ان ابی فرق القاضی بینهما و کان ذلك طلاقاً عند ابی حنیفة و محمد رحمهما الله تعالی. (الهدایة علی صدر فتح القدیر ج۳، ص۲۸۸، کتاب النکاح، باب نکاح اهل الشرك)

قال العلامة الحصکفی رحمه الله: و اذا اسلم احد الزوجین المجوسیین او امرأة الکتابی عرض الاسلام علی الآخر فان اسلم فبها و الا بان ابی او سکت فرق بینهما. (الدر المختار علی هامش ردّ المحتار ج۲، ص۴۲۲، باب نکاح الکافر) و مثله فی البحر الرائق ج۳، ص۲۱۲، باب نکاح الکافر.

## "تا ته مې طلاق درکړی دی، درکړی دی، درکړی دی" د دریو طلاقونو حکم

**سوال:** که چېرته یو سړی خپلې ښځې ته دا ووایي چه تا ته مې طلاق درکړی دی، درکړی دی، درکړی دی۔ نو آیا په دې سره درې طلاقونه واقع کیږي او که یو طلاق واقع کیږي؟ په دا سې حال کښې چه نیت د دریو طلاقونو وي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** کله چه د یوه سړي نیت په دغو الفاظو سره د دریو طلاقونو وي نو په دې طلاقونه پرې واقع کیږي۔ او د شرعي حلاله نه بغیر د اسې خاوند او ښځه د یو او بل لپاره نه شي حلالیدلی۔

لما فی الهندیة: و لو قالت مرا طالق کُن، مرا طالق کُن، مرا طالق کُن. فقال کردم، کردم، کردم. تطلق ثلاثاً و هو الاصح. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۳۸۴، کتاب الطلاق)

لما قال العلامة اشرف علی التهانوی رحمه الله: الجواب: په ژبې سره دا ویل چه ما طلاق ورکړی دی، ورکړی دی، ورکړه په ما څه کوې الخ نو و به ګوری چه د دې مطلب څه دی؟ که چېرته ئې مطلب دا وي چه ګواکه تر اوسه پورې مې نه وو ورکړی لیکن اوس مې ورکړ نو بیا درې طلاقونه واقع شول۔ پرته له حلاله څخه د نکاح تجدید صحیح نه دی الخ۔ (امداد الفتاویٰ ج۲، ص۴۳۰، کتاب الطلاق)

## د "بنت فلان دې طلاقه وي" د ویلو شرعي حکم

**سوال:** یوه سړي د څو کسانو په مخکښې دا وویل چه که چېرته ما فلانی کار وکړ نو د فلانې لور (د خپل خسر نوم ئې واخیست) دې طلاقه وي۔ څو ورځې وروسته نوموړي هم هغه کار وکړ۔

اوس وایي چه په هغو الفاظو کښې ماد خپلې خوښیني نیت کړی وو د خپلې ښځې نیت مې نه وو کړی. نو آیا مقدس شریعت له مخې د نوموړې ښځه طلاقه شوې ده او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په صورت مسئوله کښې د نوموړي د متعلقه کار له کولو نه ورسته ئې په ښځې باندې طلاق واقع کیږي او قضاءً ئې نیت لره اعتبار نشته او دیانتاً خانته معامله ده.

لما قال العلامة قاضی خانؒ: و كذا قال بنت فلان طالق ذكر اسم الاب و لم يذكر اسم المرأة و امرأته بنت فلان و قال لم اعن به امرأتی لا يصدق قضاءً و تطلق امرأته. (الفتاوى قاضى خان ج ۲، ص ۲۱۵، كتاب الطلاق)

## په لفظ د تلاق سره د طلاق د وقوع حکم

**سوال:** یوې ښځې پخپل خاوند باندې دعوه وکړه چه ما ته ئې طلاق راکړی دی په داسې حال کښې چه خاوند ئې وایي چه ما طلاق نه دی ورکړی بلکه یو اخې مې دا ورته ویلي دي چه زما ښځه دې تلاقه وي یعنې د طا په ځای مې د "تا" حرف ویلی دی. نو آیا د تلاق لفظ سره طلاق واقع کیږي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته د طلاق په معامله کښې طا حرف څه رد او بدل کړي او د لام کلمه پخپل حال باندې پاتې شي نو په دې سره قضاءً طلاق واقع کیږي. همدارنګه په صورت مسئوله کښې د تلاق په لفظ سره طلاق واقع شوی دی او د ښځې دعوه صحیح ده.

قال العلامة الحصكفیؒ: و يقع بها اى بهذه الالفاظ و ما بمعناها من الصريح و يدخل نحو طلاغ و تلاغ و طلاك

قال ابن عابدينؒ: و منه الالفاظ المصحفة و هى خمسة فراد على ما هنا تلاق. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج۳، ص ۲۴۸، كتاب الطلاق، باب الصريح)

قال العلامة ابن نجيمؒ: و منه الالفاظ المصحفة و هى خمسة تلاق و تلاغ و طلاغ و طلاك و تلاك فيقع قضاء و لا يصدق الا اذا شهد على ذلك قبل التكلم. (البحر الرائق ج۳، ص ۲۵۲، كتاب الطلاق، باب الصريح)

## په طــلاق نامه کښې د ښځې د پلار د نامه غلط لیکــل د طلاق د وقوع مــانع نه ګرځي

**سوال:** یوه سړي خپلې ښځې ته طلاق نامه ولیږله چه متن ئې دا دی 'ما مسمّٰی محمد عمران بن محمد سلطان خپلې ښځې سعیده بنت سعید الرحمٰن ته درې طلاقه ورکړې دي' په داسې حال کښې چه د سعیده د پلار نوم عبد الرحمٰن دی نو آیا په دې طلاق نامې سره په سعیده باندې طلاق واقع شوی دی او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** کله چه په طلاق کښې په یو اضافت سره د خپلې منکوحې قصد او اراده وي نو د پلار د نامه غلط لیکل ئې د طلاق د وقوع مانع نه ګرځي. نو له دې وجهې په نوموړي صورت کښې د محمد عمران ښځه سعیده په درېو طلاقونو مغلظه طلاقه شوې ده کوم چه پرته له حلاله څخه د نوموړي لپاره دوباره نه شي حلالیدلی.



لما فی الهندية: قال امرأته عمرة بنت صبيح طالق و امرأته عمرة بنت حفص و لا نية له لا تطلق......... و ان نوی امرأته فی هذه الوجوه طلقت امرأته فی القضاء و فیما بینه و بین الله كذا فی خزانة المفتين. (الفتاوى الهندية ج۱، ص ۳۶۳، الفصل الاول فی الطلاق الصريح، مطلب اذ شك انه طلق الخ)

قال العلامة ابن نجيمؒ: و كذا لو قال بنت فلان طالق ذكر اسم الاب و لم يذكر اسم المرأة و امرأته بنت فلان و قال لم اعن امرأتی لا يصدق قضاء و تطلق امرأته. (البحر الرائق ج۳، ص ۲۵۳، كتاب الطلاق، باب الصريح)

## په یوه ناپوه سړي باندې د "امرأتي طالق" د الفاظو د ویلو حکم

**سوال:** یو چا یوه ناپوه سړي ته وویل چه ته داسې ووایه چه "امرأتي طالق" او هغه دا الفاظ وویل. د دې الفاظو ویونکی نه د دغو الفاظو په معنیٰ پوهیږي او نه ئې نیت د طلاق وو. نو آیا په دې سره طلاق واقع کیږي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د طلاق په صریحو الفاظو کښې اګر که د نیت ضرورت نشته لیکن بیا هم د طلاق د وقوع لپاره دا خبره ضروري ده چه د طلاق په اضافت کښې د ښځې قصد او اراده وي. که چېرته دا شرط پکښې نه وي نو طلاق به نه واقع کیږي. نو څکه په دې شرط چه سوال صحیح وي په صورت مسئوله کښې د نوموړي سړي په ښځې باندې طلاق نه دی واقع شوی.

لما قال العلامة ابن عابدينؒ: و لكن لا بد فی وقوعه قضاء و ديانة من قصد اضافة لفظ الطلاق اليها عالماً بمعناه و لم يصرفه الى ما يحتمله كما افاده فی الفتح و حققه فی النهر احترازاً عما لو كرر مسائل الطلاق بحضرتها او كتب ناقلا من كتاب امرأتی طالق مع التلفظ او حكى يمين غيره فانه لا يقع اصلاً ما لم يقصد زوجته و عما لو لقنته لفظ الطلاق فتلفظ به غير عالم بمعناه فلا يقع اصلاً على ما افتى به مشائخ. (رد المحتار ج۲، ص ۵۹۳، كتاب الطلاق)

## "زما او ستا معامله ختمه ده" په ویلو سره د طلاق حکم

**سوال:** د خاوند او ښځې تر منځ څه ترخې خبرې پیدا شوې نو خاوند ښځې ته وویل چه ته د خپل پلار کره لاړه شه څکه چه زما او ستا معامله ختمه شوې ده نو آیا د دوی دواړو نکاح د داسې الفاظو په ویلو سره ختمه شوې ده او که باقي پاتې ده؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** "زما او ستا معامله ختمه شوې ده" د طلاق کنایي الفاظ دي. که چېرته خاوند په دې باندې د طلاق نیت کړی وي نو ښځه ئې په طلاق بائن سره طلاقه شوې ده او که نیت ئې نه وي کړی نو الفاظ لغو دي.

لما فی الهندية: لم يبق بينی و بينك عمل و نوى يقع. (الفتاوى الهندية ج۱، ص۷۶، كتاب الطلاق، الفصل الخامس فی الكنايات)

## د طلاق د اثبات لپاره د پلار ګواهي

**سوال:** جناب مفتي صاحب! یوه مسئله را پیښه شوې ده او هغه دا چه یوې ښځې دا دعوه کړې ده چه خاوند مې درې طلاقونه راکړي دي په داسې حال کښې چه خاوند ئې ترې منکر دی.

ښځې په گواهي کښې خپل پلار او یو گاونډی وړاندې کوي۔ نو آیا د دوی په شهادت سره د طلاق دعوٰی ثابتیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د طلاق د دعوې د اثبات لپاره د نورو معاملاتو غوندې د دوو گواهانو موجود والی ضروری دی خو په دې شرط چه په گواهانو کښې د اسې گواه نه وي چه په هغه باندې د اقرباء پروري تهمت لگیدلی شي۔ چونکه په نوموړې صورت کښې د طلاق د اثبات لپاره یو گواه د ښځې پلار دی چه گواهي ئې د شریعت له مخې د طلاق د دعوې د اثبات لپاره صحیح نه دی او دوهم گواه یو پاتې شو نو د هغه په گواهي سره دعوٰی نه ثابتیږي۔ له دې وجهې په ښځې باندې د طلاق د وقوع فیصله مشکله ده۔ بیا هم که چېرته په رښتیا هم دا معامله شوې وي نو ښځه دې په بلې طریقې (خُلع) سره له خاوند۔ څخه ځان خلاصه کړي۔

لما فی الهندیة: لا تجوز شهادة الوالدین لولدیها. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۴۶۹، باب الشهادة)

قال العلامة المرغینانیؒ: و لا شهادة الوالد لولده و ولد ولده و لا شهادة الولد لابویه و لا جداده و الاصل فیه قوله علیه السلام لا یقبل شهادة الولد لوالده و لا الوالد لولده و لا لمراة لزوجها الخ. (الهدایة ج۳، ص۱۶۱، کتاب الشهادة، فصل من یقبل شهادته و من لا یقبل)

## چه د طلاق په تعـــــــداد کښې شك وي نو؟

**سوال:** که چېرته یوه سړي ته شك پیدا شي چه ښځې ته مې دوه طلاقه ورکړي دي او که درې؟ نو آیا نوموړی خپلې ښځې ته رجوع کولی شي او که نه؟ او که شرعي حلاله ورته لازمي ده؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته یو چا ته د طلاق په تعداد کښې شك پیدا شي نو هغه دې باید په کم عدد باندې عمل وکړي ځکه چه هغه خو یقیني وي شك ئې په زیاتی کښې وي۔ نو ځکه د صورت مسئوله مطابق په ښځې باندې دوه طلاقه واقع شوي دي او په دې بناء سره چه طلاق رجعي ده نو رجوع کولی شي۔

لما قال العلامة الحصکفیؒ: و لو شك اَطَلّق واحدة او اکثر بنی علی الاقل. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۳، ص۳۸۳، باب الصریح)

و فی الهندیة: عن محمدؒ اذا شك فی انه طلق واحدة او ثلاثا فهی واحدة یستیقن او یکون اکبر ظنه الخ. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۳۶۳، کتاب الطلاق، الفصل الثانی فی طلاق الصریح)

## په رجوع کښې د ښځې رضا شرط نه دی

**سوال:** یوه سړي خپلې ښځې ته رجعي طلاق ورکړ او اوس په خپل اقدام باندې پښیمانه دی او د گواهانو په مخکښې ئې د رجوع اعلان کړی دی لیکن ښځه ئې نه مني او وایي چه ما ته رجوع قبوله نه ده نو اوس پوښتنه دا ده چه آیا د ښځې له رضا پرته خاوند رجوع کولی شي او که نه؟ بینوا توجروا۔



**الجواب باسم ملهم الصواب:** په فقه حنفي کښې په رجعي طلاق سره نکاح نه ختمیږي یوائې د طلاق په تعداد کښې کموالی راځي۔ نو د دې لپاره د خاوند لپاره د رجوع کولو په صورت کښې د ښځې رضا شرط نه دی۔ منکوحه ئې که راضي وي او که نه وي لیکن خاوند ئې چه باقاعده رجوع وکړي نو نکاح ئې پخپل ځای پاتې کیږي۔

لما فی الهندیة: و اذا طلق الرجل امرأته تطلیقة رجعیة او تطلیقتین فله ان یراجعها فی عدتها رضیت بذلك او لم ترض. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۴۷۰، کتاب الطلاق، الباب السادس فی الرجعة)

قال العلامة الحصکفیؒ: و تصح الرجعة یتزوجها فی العدة. و فیه: ان لم یطلق بائناً فان ابابها فلا و ان ابتْ. قال ابن عابدینؒ ای سواء رضیت بعد علمها او ابت. (رد المحتار ج۲، ص۵۷۶، کتاب الطلاق، باب الرجعة) و مثله فی فتح القدیر ج۴، ص۱۴، کتاب الطلاق، باب الرجعة.

## موجوده جج د شرعي قاضي قائم مقام دی

**سوال:** جناب مفتي صاحب! یوې ښځې له یوه سړي سره نکاح وکړه۔ له واده نه څو میاشتې وروسته خاوند پخپل ښځې باندې نفقه بنده کړه۔ څو ځله د منطقي جرگې هغه لره پوه کړ لیکن له دې سره سره ئې د لیت او لعل څخه کار واخیست۔ آخر ښځه مجبوره شوه په عدالت کښې ئې د نکاح د تنسیخ دعوٰی وکړه۔ د عدالت په حکم باندې ئې خاوند یوائې یو ځل عدالت ته حاضر شو او له هغه نه وروسته د عدالت له اطلاع سره سره عدالت ته نه حاضریده۔ آخر عدالت ښځې ته د نکاح د تنسیخ سند ورکړ نو اوس پوښتنه دا ده چه:

﴿۱﴾ آیا د موجوده عدالتونو جج صاحبان د شرعي قاضي قائم مقام دي او که نه؟

﴿۲﴾ آیا د دغو عدالتونو جج صاحبان ښځې ته د نفقې په نه ورکولو باندې د ښځې په درخواست سره د هغې نکاح فسخ کولی شي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د پاکستان په فیملي لاء (یعني د ښځې په قانون) کښې د ځینو خبرو تعلق د قاضي له قضاء سره دی چه پرته له هغه څخه هغه حکم نه پوره کیږي۔ لیکن د قاضي لپاره دا شرط دی چه د هغه وخت د حاکم له خوا څخه تاکل شوی وي - پرته د حاکم له اجازې څخه هیڅ یو سړی قاضي یا جج نه شي جوړیدلی۔

قال الامام ما وردیؒ: و الثانی لان التقلید لا یصحّ الا من جهته و ایضاً فتقلید القضاء من جهته فرض یتعین علیه. (ادب القاضی ج۱، ص۱۳۷)

اگر که حکومت د کوم فاسق، فاجر یا کافر سړي په لاس کښې ولې نه وي۔

علامه ظفر احمد العثماني فرمایي: فیه دلیل علی جواز التقلید من الکافر المسلم الجائر با لاولی. (اعلاء السنن ج۱۵، ص۵۴، کتاب القضاء، باب صحة تقلد القضاء....... الخ)

همد ارنگه مولانا اشرف علي تهانوي صاحب لیکي چه کوم خلك د حکومت له خوا څخه په دې ډول معاملاتو کښې د فیصلې اختیار لري که چېرته هغه مسلمان وي او د شرعي

قواعدو مطابق فیصله وکړي نو د هغه حکم د قاضي د قضاء قائم مقام ګرځي۔ (حیلهٔ ناجزه ص۱٤۸، المرقومات للمظلومات)

نو د دې لپاره موجوده جج، مجسټریټ او د اسې نور چه د حکومت له خوا څخه د دغو احکاماتو د اجراء لپاره ټاکل شوي وي د شرعي قاضي قائم مقام دي خو په دې شرط چه فیصلې ئې د شرعي قواعدو مطابق وي۔

همدارنګه کوم سړی چه ښځې ته سره د دولت مندی، نفقه نه ورکوي او نه هغې ته طلاق ورکوي او نه خُلع کوي نو اګر که د حنفیه وو په نزد ښځې ته د نکاح د تنسیخ اجازه نشته لیکن د مجبوری، له مخې متاخرینو علماوو د مالکیه وو په قول باندې فتوی ورکړې ده خو په دې شرط چه خاوند ئې د طلاق او خُلع څخه هم انکاري وي او نفقه هم نه ورکوي یعنې له نفقې څخه هم انکاري وي او د ښځې د نفقې بله لار هم نه وي۔ لکه څرنګه چه په صورت مسئوله کښې نوموړي لره د بار بار پوهولو سره سره ښځې ته نفقه نه ورکوي او له طلاق او د اسې نورو څخه هم ځان یوې خوا ته کوي نو ښځه اختیار لري چه د خپلې د دې مسئلې د حل لپاره د عدالت دروازه و ټکوي۔ اوس که چېرته عدالت د حالاتو تحقیق ته نظر وکړي او ښځې ته د نکاح د تنسیخ سند جاري کړي نو دا ښځه د خاوند له نکاح څخه آزادېږي او د عدت په تیرولو سره چه چېرته و غواړي نکاح کولی شي۔

لما قال الشیخ وهبة الزحیلی: لا یجوز فی مذهب الحنفیة و الامامة التفریق لعدم الانفاق، اجاز الائمة الثلاثة التفریق لعدم الانفاق......... و الراجح لدی رأی الجمهور لقوة ادلتهم و دفعاً للضرر عن المرأة و لا ضرر و لا ضرار فی الاسلام. (الفقه الاسلامی و ادلته ج۷، ص۵۱۲، کتاب الطلاق) و هکذا فی الحیلة الناجزة ص۷۳، حکم زوجه متعنت)

## په برطانیه کښې د شریعت کونسل له خوا د نکاح د فسخ د فیصلې شرعي حیثیت

**سوال:** جناب مفتي صاحب! دلته په برطانیه کښې د شریعت کونسل په یوې فیصلې او مقدمې کښې د مدعي په حق کښې د نکاح د فسخ سند جاري کړی دی۔ اوس تاسو ته دا عرض دی چه د قرآن، سنت او فقه حنفي په رڼا کښې د هغې له شرعي حیثیت څخه مونږ خبر کړی او د دې مقدمې متن اوپس منظر دا دی۔

مسمی صفدر زمان په دسمبر ۱۹۸۳ء کښې د بي بي فاطمې سره په پاکستان کښې نکاح وکړه او له څه وخت وروسته انګلینډ ته لاړ او تر پنځو کلونو پورې ئې تعلقات ورسره ښه وو۔ له هغه نه وروسته ئې بي بي فاطمه له کور څخه په زور او جبر وایستله او له هغه وخت څخه تر ننه پورې نوموړې د خور کره ناسته ده، هیچا ئې هم پوښتنه و نه کړه۔ په دې دوران کښې صفدر زمان بل واده وکړ چه څلور بچیان ئې ترې پیدا شوي دي۔ او چونکه صفدر زمان



نه بي بي فاطمې لره طلاق ورکولو ته تیار وو او نه ئې له ځان سره ساتلو ته تیار وو، مجبوراً بي بي فاطمه د برطانیې په شرعي کونسل کښې دعوی دائره کړه۔ تر یو کاله پورې ئې مقدمه چلیدله او له هغه نه وروسته شریعت کونسل بي بي فاطمې ته د نکاح د تنسیخ سند ورکړ او دا ئې ورته ولیکل چه کله بي بي فاطمه عدت تیر کړي نو دوهمه نکاح کولی شي۔

د برطانیې د شریعت کونسل چئیرمین او مشر مفتي محمد اسلم صاحب دی۔ نور ممبران او اراکین ئې هم علماء کرام دي۔ مفتي صاحب د برطانیې د علماوو د جمعیت جنرل سیکرټر هم دی۔ له دې برسیره مولانا محمد امداد الله قاسمي صاحب د حمزه بر منګهم مسجد خطیب د بنوري ټاون د مدرسې فاضل، مولانا حافظ محمد نګین صاحب د هینټ البن د جامع جومات خطیب او د حضرت مولانا غورغشتوي صاحب شاګرد، مولانا محمد زمان صاحب د جامعهٔ اشاعت القرآن حضرو ضلع اټک هم د شریعت کونسل ممبران دي۔

د نکاح د فسخ د فیصلې نقل ستاسو په خدمت کښې حاضر دی۔

بي بي فاطمه یو کې انګلینډ

**الجواب باسم ملهم الصواب:** اسلام هیچا ته هم په نورو باندې د ظلم او زیاتوالی حق نه دی ورکړی اګر که هغه د چا مملوک وي او که منکوحه۔ بلکه له یوه او بل سره ئې د ښه سلوک حکم ورکړی دی۔ که چېرته د یوې ښځې خاوند ظالم وي او هر وخت خپله ښځه بغیر له کومې وجهې او قصور څخه وهي او ټکوي او په بدو خبرو باندې ئې د هغې ژوند خراب کړی وي او همدارنګه له نفقې څخه ئې هم څنګ کوي او ښځه نه له ځان سره په ښه طریقه ساتي او نه ئې طلاقوي۔ نو د مالکي مذهب مطابق د اسې مجبوره ښځه د خپل ځان د خلاصولو لپاره په عدالت کښې د دعوې د دائرولو حق لري او عدالت د پوره کوشش او تحقیقاتو نه وروسته د صلح د نه کیدو په صورت کښې ښځې ته د نکاح د تنسیخ د سند د ورکولو مجاز دی۔ د نکاح د تنسیخ د سند د ورکولو نه وروسته ښځه عدت تیرولی شي او له بل چا سره نکاح کولی شي۔ او که چېرته شرعي عدالت نه وي او دار الحرب وي نو هلته دا عهده هغه جرګه چه په هغې کښې مسلمان ممبران موجود وي سنبالولی شي۔ او د دوی له خوا څخه جاري کړی شوی د نکاح د تنسیخ سند جاري کول د شرعي قواعدو مطابق به مقبول وي او دا هم هغه مقام لري کوم چه د شرعي عدالت فیصله ئې لري۔ په فقه حنفي کښې هم بناء په سخت ضرورت په نورو مذاهبو باندې فتوی ورکول کیدلی شي۔ لهذا د صورت مسئوله مطابق په برطانیه کښې د شرعي عدالت په نه موجودوالي کښې هلته د شریعت کونسل چه کومه جرګه ده په دې ډول معاملاتو کښې د فیصلې حقدار دی او د دوی فیصله به نافذ العمله وي۔ چونکه د بي بي فاطمې د نکاح د تنسیخ فیصله د دې سختو ضرورتونو لاندې شوې ده کوم چه خاوند ئې یعنې صفدر زمان نه د خُلع لپاره تیار وو او نه د طلاق لپاره او نه ئې له ځان سره د ساتلو لپاره تیار وو نو د دې لپاره د

شریعت کونسل د نکاح د تنسیخ دا فیصله شرعا صحیح ده- بي بي فاطمه د عدت په تیرولو سره بل ځای نکاح کولی شي او نکاح ئې له اول خاوند سره ختمه شوې ده-

﴿۱﴾ قوله تعالی: وَلَا تُمْسِكُوهُنَّ ضِرَاراً لِتَعْتَدُوْا (الآية) و قال الله تعالی: فَإِمْسَاكٌ بِمَعْرُوْفٍ اَوْ تَسْرِيْحٌ بِإِحْسَانٍ. (الآية) و ان البقاء مع عدم الانفاق ضراره و امساك بغير معروف و كان حقاً عليه ان يطلق زوجة و لما لم يقم بذلك و قد تعين عليه قام القاضی مقامه فيه.

قال ﷺ لا ضرر و لا ضرار فی و ان الامساك مع عدم الانفاق ضراره و ان الامساك مع عدم الانفاق مضارة و علی القاضی ان يزيل الضرر بفك تلك العقد الی اصبحت ضرراً لا مصلحة فيها. (الاحوال الشخصيه لابی زهرىؒ ص ۳۴۹)

﴿۲﴾ فی مقدمات لابن رشدؒ: ان تبين ان الضرر من قبل الزوج فرق بينهما بغير عزم تعزمه المراة. (الاحوال الشخصيه ص ۳٦٤، التفريق للضرورة)

﴿۳﴾ و اجاز المالكية التفريق للشقاق او للضرر منعا للنزاع و حتی لا تصبح الحياة الزوجية جحيما وبلاً. و لقوله عليه السلام لا ضرر و لا ضرار و بناء عليه ترفع المرأة امرها للقاضی فان اثبت الضرر او صحة دعواها طلقها. (الفقه الاسلامی و ادلتهٗ ج۷، ص ۵۲۷، المبحث الثالث التفريق للشقاق.... الخ)

﴿٤﴾ که چېرته په کوم ځای کښې مسلمان حاکم موجود نه وي او يا عدالت ته د مقدمې د وړلو قانوناً اختيار و نه لري او يا مسلمان حاکم د شرعي قواعدو مطابق فيصله نه کاوه نو په داسې وخت کښې د امام مالك د مذهب مطابق (چه د سخت ضرورت په وخت کښې د احنافوؒ په نزد هم عمل پرې روا دی) د مسلمانانو د يوې ډلې حکم د قاضي د قضاء قائم مقام دی- او د دې صورت دا دی چه د هغه ځای د مسلمانانو يوه ډله چه په ښو او جيدو مسلمانانو باندې مشتمله وي چه کم تر کمه تعداد ئې درې تنه وي د هغوی په مخکښې دې خپله مقدمه وړاندې کړي او نومورې ډله دې د دې مقدمې تحقيق وکړي او د شريعت مطابق دې فيصله وکړي- (حيله ناجزه ص۱٤۸ــ ۳٤، المرقومات للمظلومات و تفريق بين الزوجين) و هٰكذا فی (د اسلام د طلاق مکمل نظام (اردو) ص۲۰۹ څخه تر ۲۱۱)



## د ټيسټ ټيوب بې بي شـــرعي حيثيت

په هر دور کښې سائنسي ايجاداتو څه نا څه نوې مسئلې پيدا کړي دي- د امت علماء او مفتيان کرام د شرعي نقطۀ نظر له مخې په دغو ايجاداتو باندې د تحقيق په کولو سره د قرآن او سنتو د دلائلو او شواهدو په رڼا کښې د دغو مسائلو د حل کولو لپاره له ماغزه ډکې مقالې، مضمونونه او کتابونه ليکلي دي چه خپلو او پرديو ټولو تسليم کړي دي- ټيسټ ټيوب بې بي هم د دغو سائنسي ايجاداتو کرشمه سازي ده چه پکښې د انساني توليد جديد ليکن حيا سوزوونکې او اخلاق ختموونکې طريقې وضع کړل شوي دي-

د دار العلوم حقانيه نائب مفتي حضرت مولانا مفتي غلام الرحمن صاحب ئې په ټولو اړخونو باندې بحث کړی دی چه بيا د دار العلوم ترجمان ماهنامه الحق د خپل اشاعت ببانـ جوړ کړی دی- له فتاوی او فقهي مباحثو سره د مناسبت په درلودو سره د عامې افادې لپا فتاوی حقانيه کښې هم شامل کړی شو-

(از مرتب عليه الرحمه)

## د ټیسټ ټیوب بې بي شرعي حیثیت

نیك او صالح اولاد د انسان د ژوند له ټولو نه زیاته قیمتي سرمایه ده۔ اولاد د والدینو لپاره یواځې دنیوي عزت او افتخار نه بلکه د اخروي سعادت او نجات لپاره هم بهترینه توښه ده۔ په اسلام کښې د اولاد په زیاتوالي باندې هیڅ پابندي نشته۔ د افرادي قوت د اضافې لپاره په اسلامي تعلیماتو کښې د نکاح بار بار ترغیب ورکړی شوی دی۔ بیا د داسې ښځې سره ئې د نکاح زیات ترغیب ورکړی دی چه د زیاتو بچیانو د پیدا کولو صلاحیت ولري۔ له حضرت بن یسار رضی الله عنه څخه روایت دی چه رسول الله ﷺ ارشاد وفرمایه:

تزوّجوا الولود و الودود فاني مکاثر بکم الامم. (ابو داؤد، نسائی)

"تاسو داسې ښځې په نکاح کړی چه له خپلو خاوند انو سره مینه کوونکي وي او ډیر بچي پیدا کوونکي وي ځکه چه زه د نورو امتونو په مقابله کښې ستاسو په ډیر والي باندې فخر کوم"۔

همدا وجه ده چه کله د تولید د ضبط تحریك وچلیده نو علماء حق د دې بې مقصده او بې فائدې تحریك سخت مخالفت وکړ۔ د مسلمان په حیثیت زمونږ عقیده دا ده چه د اولاد ورکول او نه ورکول د الله تعالی په قدرت کښې دي۔ اسباب، وسائل او ذرائع حصول او استعمال پخپل ځای کښې ضروري او مسنون دي لیکن د اولاد غوندې د عظیم نعمت د حصول لپاره توقف او دار ومدار په مشیت الٰهي باندې موقوف دی۔ په قرآن مجید کښې دا حقیقت داسې واضح کړی شوی دی:

لِلّٰهِ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَ الْاَرْضِ يَخْلُقُ مَا يَشَآءُ يَهَبُ لِمَنْ يَّشَآءُ اِنَاثًا وَّ يَهَبُ لِمَنْ يَّشَآءُ الذُّكُوْرَ ☆ اَوْ يُزَوِّجُهُمْ ذُكْرَانًا وَّ اِنَاثًا وَّ يَجْعَلُ مَنْ يَّشَآءُ عَقِيْمًا اِنَّهٗ عَلِيْمٌ قَدِيْرٌ. (سورة الشورٰی، آیت ۴۹/۵۰)

"د آسمانونو او زمکو بادشاهي الله لره دی هغه چه څه غواړي پیدا کوي ئې، چا ته ئې چه خوښه شي لونړې ورکوي او چا ته ئې چه خوښه شي زامن ورکوي او یا لونړې او زامن دواړه ورکوي او چا ته ئې چه خوښه شي بې اولاده ئې پریږدي، بې شکه هغه ډیر پوه، عالم او د لوی قدرت خاوند دی"

له دې آیت کریمه څخه د اولاد په اعتبار سره انساني افراد په څو برخو ویشل شوي دي۔

﴿الف﴾ داسې چه هغوی ته الله تعالی لونړې ورکوي لکه په انبیاء کرامو کښې د حضرت لوط علیه السلام او د حضرت شعیب علیه السلام یواځې لونړې وي او زامن ئې نه وو۔ د حضرت لوط علیه السلام دوه یا درې لونړې (زیتا او زعورا) او د حضرت شعیب علیه السلام دوه لونړې (لیا، صفوریا) وې۔

﴿ب﴾ داسې افراد چه هغو ته الله تعالیٰ زامن ورکوي او له لونړو څخه محرومه کوي لکه چه حضرت ابراهیم علیه السلام ته ئې یواځې زامن ورکړي وو او یوه لور ئې هم نه وه ورکړې۔ امام



قرطبي رحمه الله تعالی لیکي چه د حضرت ابراهیم علیه السلام اته زامن وو اسمٰعیل، اسحٰق، مدین، مدائن، نعشان، زمران، نعشیق، او شیوخ۔

﴿ج﴾ داسې افراد چه هغو ته الله تعالی لونړې او زامن دواړه ورکړي وو لکه رسول الله ﷺ ته چه الله تعالی څلور لونړې زینب، رقیه، ام کلثوم، او فاطمه رضی الله عنهن او درې یا څلور زامن قاسم، طاهر، طیب او ابراهیم عطا کړي وو۔

﴿د﴾ آخري ډول افراد هغه دي چه الله تعالی له دواړو نعمتونو څخه بې برخې کړي دي لکه په انبیاء علیهم السلام کښې چه حضرت یحیی او حضرت عیسٰی علیهما السلام الله تعالی د اولاد له نعمت څخه محروم پاتې کړي وو۔

اګر که د نوع انساني دا ټول ډولونه د معاشرې په عامو افرادو کښې وجود لري لیکن د انبیاء علیهم السلام له یادونې څخه مقصد دا دی چه له دې سره سره چه دوی انبیاء وو لیکن له اولاد څخه دوی په محروم والي کښې دا سبق دی چه دا ټول شیان د الله تعالی په قبضه او قدرت کښې دي چه چا ته ئې خوښه شي نو ډیر زامن ورکوي او د هغوی زړونه لونړې غواړي او د چا په ټول ژوند کښې یوه لور وي او هغوی د زامنو د پیدا کیدو لپاره د هر شي قربانولو ته تیار وي لیکن د مرګ تر وخته پورې د هغوی دا ارمان او آرزو نه پوره کیږي۔ په عربي کښې هغو ته عقیم او په پښتو کښې شنډ ورته ویل کیږي۔

## د شنډ والي اسباب

د یوه مسلمان په حیث زمونږ عقیده دا ده چه د ټولو ممکنه وسائلو په کار اچولو سره سره د اولاد نه پیدا کیدل د الٰهي مشیت نتیجه ده۔ ممکنه ده چه په خاوند او ښځې کښې په هر لحاظ سره د بچي د پیدائش صلاحیت موجود وي لیکن چه الله تعالی و نه غواړي نو د ټولې دنیا په غوښتلو کښې او له ښه نه ښه علاج له کولو سره سره همیشه محروم پاتې کیږي۔

د دې باطني او حقیقي سبب څخه پرته "د اهل طبائعو په نزد" څه ظاهري اسباب او د عواملو اثر هم وي۔ اګر که امام رازي رحمه الله دا خبره په سختي سره رده کړې ده او فرمایي چه د چا په نطفه کښې د بچي د پیدائش صلاحیت د الله تعالی د قدرت کامله نتیجه ده۔ د طبعي اسبابو په دې کښې هیڅ دخل نشته۔ لیکن د نظر لاندې مسئلې باندې د بحث د کولو لپاره مونږ باید په دغو طبعي اسبابو نظر واچوو تر څو چه د اصل مسئلې په پوهیدنه کښې څه مشکل باقي پاتې نه شي۔ ټول ضروري او موقوف علیه امور او وسائل او ذرائع له غوره کولو سره سره د اولاد نه پیدا کیدل له څو وجهو څخه وي: مثلاً

﴿الف﴾ ممکنه ده چه د نر په مادهٔ تولید یعني نطفه یا مني کښې هغه صلاحیت موجود نه وي چه ولد ترې پیدا شي۔

﴿ب﴾ دا هم ممکنه ده چه دا قصور د ښځې له خوا څخه وي۔ په ښځې کښې د قصور مختلف

اسباب وي كله ئې په مادۀ توليد كښې د ا صلاحيت نه وي او په ځينو وختونو كښې ئې په ماده توليد كښې صلاحيت موجود وي ليكن په رحم كښې ئې د مني د استقرار طاقت نه وي چه له مخې ئې نطفه تر تاكلي وخته پوره د مور په رحم كښې نه شي پاتې كيدلی۔ د انفرادي نقصان نښه دا وي چه كه چېرته د داسې ښځې او خاوند جدايي وشي نو د يوې خوا د صلاحيت د درلودو په صورت كښې له بل صلاحيت درلودونكي فرد سره د نكاح له كولو نه وروسته ئې ولد پيدا شي او په موجوده دور كښې ئې پيژند ګلي د لابراتواري معائنې په ذريعه په آسانۍ سره كيدلی شي۔

﴿ج﴾ دا هم ممكنه ده چه د دواړو خواوو د قصور له وجهې د اسې خاوند او ښځه ټول عمر د بچي له نعمت څخه محروم پاتې شي۔ د جوړې له تبديلۍ سره سره له يوې خوا څخه د ثمر آوري (ميوه راوړنې) اميدونه ډير كم وي۔

## د شنډ والي د علاج ممكن صورتونه

د شنډ والي د علاج نوی صورت "ټيسټ ټيوب بې بي" دا غلط فهمي مه كوی چه د دې په سبب سره د شنډ والي د ټولو صورتونو علاج ممكن دی ځكه چه د علاج د دې طريقې سره سره د ډيرو محرومو جوړو نااُميدي دا طريقه هم غلطه ثابته كړې ده۔ زمونږ په نزد له ټولو نه مخكښې دا تجربه يوولس څله كاميابه شوې ده ګوا كه چه د اړوندو ډاكټرانو د شپې او ورځې له كوششونو سره سره كه چېرته د سلو مريضانو علاج شوی دی نو په هغو كښې د لسو افرادو علاج كامياب شوی دی او د پاتې نوي كسانو علاج ناكام شوی دی۔ د دې كمې اندازې په كاميابۍ سره دا نتيجه مخ ته راځي چه د شنډ والي ځينې صورتونه تر اوسه پورې لاعلاجه دي۔ په هر حال د سړي او ښځې له خوا څخه د قصور په صورت كښې د علاج څو صورتونه دي۔

﴿الف﴾ د نر په مادۀ توليد كښې د ضعف علاج وشي او يا د ستضادې مادې د جلا والي علاج وكړی شي تر څو له اصلاح نه وروسته له هغې څخه مطلوب نتائج را ووځي۔ د شريعت له مخې دا د عامو علاجونو غوندې يو علاج دی او څه پروا نه لري۔

﴿ب﴾ همدارنګه د ښځې د قصور په صورت كښې كه چېرته په ماده توليد كښې څه نقص وي نو د هغې د اصلاح لپاره د څه دوايي استعمال جائز او مشروع دی۔

﴿ج﴾ په ښځې كښې د نقصان په صورت كښې اګر كه نقص په رحم كښې وي يعنې د مور په رحم كښې د استقرار صلاحيت موجود نه وي نو په دې صورت كښې هم كه چېرته ښځه د اسې دوايي وخوري چه له وجهې ئې په رحم كښې د امساك او استقرار صلاحيت پيدا شي نو په ظاهره خو دا علاج هم ممنوع نه دی بلكه د نورو بيماريو غوندې د دې بيماري علاج هم مشروع او روا دی۔



## د ټيسټ ټيوب بې بي د علاج طريقه

د ټيسټ ټيوب بې بي په ذريعه د آخر الذكر بيماري علاج پيدا شوی دی چه د سړي او ښځې د دواړو په مادۀ توليد كښې كه چېرته د بچي د پيدا كيدو صلاحيت موجود وي ليكن د مور په رحم كښې د امساك او استقرار د صلاحيت د نشت والي له وجهې ولد نه پيدا كيده نو د جديدو تحقيقاتو په رڼا كښې ئې د علاج دا طريقه ايجاد كړې ده چه د نر او ښځې د دواړو مادۀ توليد سره يو ځای كوي او له يوه ځانګړې ترتيب وركولو نه وروسته ئې د ښځې د نس په يوه خالي ځای كښې د معمولي آپريشن نه وروسته ږدي او د اړوندو ضرورياتو له رسولو نه ورسته په ټاكلي موده كښې دا ماده د تدريجي دورو له طی كولو نه وروسته مكمل بچی جوړيږي۔

د مشرق د اخبار ۲۳ اكتوبر ۱۹۸۷ء د يوې جائزې د تجرباتي راپور څخه د علاج دا طريقه په ګوته كوي او ليكي چه:

"له نن څخه اته كاله مخكښې د نيوزر لينډ يوې ۲۷ كلنې ښځې مارګريټ په مئی ۱۹۷۹ء كښې پنځه پونډه وزن يو تندرست زوی وزيږاوه او د دې بچي پيدائش د معمول مطابق نه وو۔ چونكه د دې ښځې جسماني نظام د زوی د زيږولو صلاحيت نه درلود نو ځكه ئې د هغې د خاوند نطفه په ليبارټري كښې د "ېبيټري ډش" د تكنيك په ذريعه د "امبريؤ" د شكل په وركولو سره ئې په ګيډه كښې پرورش وشو كوم ځای كښې چه نوموړي بچي د "يوټيرس" له مدد څخه ټوله غذا حاصله كړه او په صحيح طريقه سره ئې خپلې ورځې پوره كړې او بيا د آپريشن په ذريعه پيدا شو"

د علاج دا طريقه ورځ په ورځ مشهوره كيږي او د يوې اندازې مطابق په دې وخت كښې په دنيا كښې درې زره بچيان د اسې دي چه د همدې جديدې طريقې د توليد په ذريعه پيدا شوي دي او اوس پاكستان هم د هغو ملكونو په قطار كښې شامل شوی دی چه د توليد د دې طريقې مطابق په اول قطار كښې دی۔

ځينې ساده لوحه دوستان هم له عجلت پسندي څخه د كار اخيستو په صورت كښې پرته له تحقيق څخه د حكم لګولو قائل دي۔ چنانچه زمونږ د څو معززو ډاكټرانو په حواله څو ورځې مخكښې دا خبره خپره شوه چه ټيسټ ټيوب بې بي په كوم لوښي او ټيسټ ټيوب كښې نه دی بلكه د مور په جسم كښې لوييږي او نوم ئې ټيسټ ټيوب بې بي بايد نه وي۔ دا د علاج يوه نوې طريقه ده او په دې كښې دې ته هم ضرورت نشته چه په دې باندې بحث وشي چه دا اسلامي طريقه ده او كه غير اسلامي۔ كه چېرته دغسې د بې مهاره اوښ غوندې علاج هم پريښودل شي نو معلومه نه ده چه د فائدې په ځای به ئې نقصان څومره وي؟"

اګر كه د تجربې له مخې د توليد په دې جديد عمل كښې د خاوند او ښځې د توليد له مادې څخه كار اخيستل شوی دی ليكن آيا د دې خبرې څوك ضمانت كولی شي چه په

راتلونکي کښې دې دا عمل یوائې د خاوند او ښځې تر مادې پورې محدود وي؟ هیڅکله نه بلکه د ترقۍ په توګه دې تجربې ته نوره پراخې هم ورکړ شوې ده چه په هغه کښې د خاوند او ښځې تمیز نه دی پاتې شوی بلکه د ښائسته او چنل شوي نسل حاصلیږي او معلومه نه ده چه په راتلونکي کښې تر کومه ځایه پورې د دې د ترقۍ امکان دی (العیاذ بالله) او که چېرته امکاني صورتونو ته نظر وکړی شي او دې عمل ته وکتل شي نو د دې ډیر خطرناك نتائج را وتونکي دي او ممکنه ده چه دا نتائج په یوه وخت کښې محض د امکان په ځای د یوه واقعي حقیقت صورت اختیار کړي او د اصل مسئلې د حکم له بیانولو سره سره د تمهید یوه مقدمه ستاسو په خدمت کښې وړاندې کیږي۔

## سد ذرائع (د بندیز اسباب) او اسلام

د اسلامي نقطهٔ نظر له مخې د یوه شي په حکم کښې د هغه د اسبابو، عواملو، طریقو او نتائجو ډیر اثر وي۔ اسلام د یوه شي عارضي او وختي مصلحت ته په کتلو سره د عجلت خوښونې د فیصلې حامي نه دی۔ اسلام چونکه ابدي او دائمي دین دی نو د دې لپاره په دې کښې موجوده او راتلونکي هر دور کښې او د هر حالت امکاني صورتونو ته په نظر کولو سره حکم ورکوي۔ ممکنه ده چه ډیر امور په ظاهره سره ښه او ښائسته وي او په هغه کښې څه کمی او قصور نه وي لیکن د هغه د ظاهري حسن تر څنګ که چېرته یو شی د یوه بل ناجائز کار لپاره مقدمه، وجه او سبب وي نو په شریعت کښې د ناجائز کار لپاره د سببیت په حیث هغه کار هم د ناجائز والي په درجه کښې راځي او د هغه بل ناجائز کار له وجهې دا مقدمه او ذریعه هم د حرامو په زمرې کښې ګڼل کیږي۔ د فقهاء کرامو په نزد دا حکم د "سد الذرائع" په نامه سره مشهور دی او د علماء کرامو په نزد همدا معتبره ده په خاصه توګه حنابله او مالکیه دې ته ډیر اهمیت ورکوي۔ د قرآن او حدیثو په رڼا کښې دا قاعده هم په ګوته کیږي۔

## د قرآنکریم له مخې د قاعدې وضاحت

د مثال په توګه صحابهٔ کرامو د رسول اللهﷺ د شفقت د نظر او توجه په وخت کښې د "راعنا" لفظ استعمالولو چه واضح مقصد ئې دا وو چه اې رسول اللهﷺ زمونږ د مصلحت رعایت وکړه۔ په دې لفظ کښې هیڅ بې ادبي نه وه لیکن یهودو او منافقینو به دا لفظ استعمالاوه او دا مراد به ئې ترې اخیست چه د نبوت د منصب سره مناسب نه وو او په دې سره یهودیانو ته د شرارت موقع پیدا کیدله۔ الله تعالی د فساد او شرارت له وجهې د دې جائز لفظ په استعمالولو باندې پابندي ولګوله او په بدل کښې ئې دا لفظ استعمال کړ۔

يٰاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَقُوْلُوْا رَاعِنَا وَ قُوْلُوا انْظُرْنَا. (سورة البقرة، آیت ۱۰٤)

"ای د ایمان خاوند انو تاسو د راعنا لفظ مه وایی او د هغه په ځای أنظُرنا ووایی"



## د حدیثو له مخې د قاعدې وضاحت

همدارنګه رسول اللهﷺ ته د مکې د قریشو په جوړ کړل شوي بیت الله کښې ډیرې کمۍ معلومې شوې۔ ده مبارك محسوسه کړه چه د بیت الله په تعمیر کښې د مکې معظمې قریشو په اختیاري او یا غیر اختیاري اسبابو له وجهې داسې تصرفات کړي دي چه د ابراهیمي آبادۍ په خلاف دي۔ چنانچه په حدیث شریف کښې راغلي چه رسول اللهﷺ حضرت عائشه صدیقه ته وفرمایل:

"زړه مې غواړي چه اوسنی تعمیر ړنګ کړم او بالکل ئې بیرته د ابراهیمي بناء مطابق جوړ کړم لیکن په دې سره د ناخبرو عوامو په فتنه کښې د مبتلا کیدو خطره ده نو ځکه ئې اوس پخپل حال پریږدم"۔

ښکاره خبره ده چه د بیت الله تعمیر یوه اهمه او ضروري مسئله وه لیکن د ناجائزو امورو یعنې د فتنې او فساد لپاره د وجهې او سبب له مخې د مکې د قریشو تعمیر ئې پخپل حال پریښوده۔

په دې قاعده باندې له پوهیدلو نه وروسته اوس مونږ د ټیسټ ټیوب بې بي په ذریعې سره د علاج د طریقې په نتائجو باندې یو نظر اچوو او ګورو چه د علاج دا طریقه په معاشره باندې مذهبي، اقتصادي او په معاشرتي لحاظ سره کوم اثر اچوي؟ او دا معاشره تر کومه ځایه پورې متاثره کیږي تر څو چه مسئله ښه واضحه شي۔

## د ټیسټ ټیوب بې بي په ذریعه نسب محفوظ نه شي پاتې کیدلی

که چېرته په حقیقت سره وکتل شي نو د انسانیت لپاره له ټولو نه اهمه مسئله د نسب د تحفظ مسئله ده۔ دنیا سره له خپلې ترقۍ نن په دې میدان کښې حیرانه ده او د غیر ثابت النسبه بچیانو تعلیم او تربیه د موجوده دنیا لپاره یوه عظیمه مسئله ده۔ اسلام هغه واحد دین او مذهب دی چه په دې کښې د نسب د تحفظ مکمل ضمانت موجود دی۔ زنا او د زنا د دواعي د حرمت او ممانعت له وجهې هغه ټولې لارې بندې شوي دي چه نسب ترې متاثر کیږي۔ لیکن د علاج په موجوده طریقه کښې مونږ دا ویلی شو چه په دې کښې د انسان نسب محفوظ نه شي پاتې کیدلی ځکه چه د دې عمل تجربه اګر که د یوه خاوند او ښځې په ماده تولید سره شوې ده لیکن دا ضروري نه ده چه هغه دې یوائې د خاوند او ښځې پورې محدود پاتې شي ځکه چه که چېرته د یوه خاوند په نطفه کښې چه پخپله صلاحیت موجود نه وي او د علاج نوموړې طریقه میسره وي نو په دې کښې څه شی مانع دی چه د یوه بل ذي استعداد له نطفې څخه دا کار واخیستلی شي او یا یوې ښځې ته دا معلومه وي چه زما خاوند ناقابل او نالائق دی نو ممکنه ده چه د ده له نطفې څخه پیدا کیدونکی بچی هم د پلار غوندې ناقابله او نالائقه وي او

ښځه پخپل سر او يا د خاوند په مشورې سره د ښکلي، قابل او ماهر سړي له نطفې څخه د ا مسئله حل کولی شي تر څو چه له دې څخه پيدا کيدونکی بچی قابل او ذهين ثابت شي- چنانچه په دې تجربه کښې د کاميابۍ نه وروسته يوه اخباري خبره و اورئ:

"نن صبا د امريکې د کليفورنيا په علاقه "رسکو ډيډو" کښې رابرټ ګراهم عالي ظرف د نطفو يو بانك جوړ کړی دی چه په هغو کښې د لويو لويو فنکارانو، سائنسدانانو، موسيقار، فلسفي او ګڼ د اعلیٰ صلاحيت لرونکو خلکو نطفې ئې محفوظې ايښې دي او د هغو نطفو د تفصيل فهرست خپرېږي او د هغو ميندو په پلټنې کښې وي چه د نطفو لپاره د مختلفو خصوصياتو حاملې وي چه "امبري ؤ" څخه د اولاد په پيدا کولو سره د بهترينو عقل لرونکو خلکو په شمير کښې زياتوالی راوستی شي"-

ښکاره خبره ده چه د بل چا له نطفې څخه پيدا کيدونکی بچی اګر که قضاءً (الولد للفراش و للعاهر حجر) څخه د پلار زوی ورته ويل کيږي ليکن پخپله چه کله دې بچي ته معلومه شي چه زه د دې سړي له نطفې څخه نه يم پيدا شوی او زما د پيدائش لپاره ماده توليد له بل سړي څخه حاصل شوی دی نو دا بچی هيڅ کله هم نوموړی سړی خپل پلار نه مني او نه ديانتاً نوموړی سړی د پلار د ويلو مستحق دی-

## د مادۀ توليد مذموم کاروبار ورځنی معمول جوړيږي

که څېرته دا عمل جاري وساتل شي او د لوړپوړو خلکو له نطفو څخه د اولادونو د پيدائش دا طريقه پر مخ ولاړ شي نو ښکاره خبره ده چه د خلکو رجحان ته په نظر کښې نيولو سره د نطفو به باقاعده کاروبار شروع کړی شي څکه چه له قيمت څخه بغير د نه پيدا کيدو په صورت کښې ئې اخيستلو ته ضرورت پيدا کيږي- نو په شريعت کښې د دې په وجه چه مال نه دی بيع ئې باطله ده ليکن عام انسان هم په طبعي توګه له دې مذموم کاروبار څخه متنفر دی او دا هم ممکنه ده چه د وينې د اخيستلو او پلورلو غوندې دا کاروبار ځينې خلك د معاش او ګټې ذريعه جوړه کړي-

## په معاشره کښې د نکاح اهميت له منځه ځي

د موجوده دور په هرې يوې معاشرې کښې د نکاح لپاره خاص صورتونه موجود دي- له زنا څخه د نفرت لپاره مذهب، قانون يا فطرت يو اهم سبب دی اګر که د يورپ د درندګانو په نزد اخلاق سوزوونکي بدکاريو ته قانوني تحفظ ورکړ شوی دی ليکن بيا هم له زنا څخه څه نا څه خلك ځنګ کوي- ليکن د نظر لاندې د علاج د طريقې په خپلولو سره د نکاح وقعت او اهميت له منځه ځي او د يوې ځوانې او پيغلې ښځې لپاره به په دې کښې څه خنډ وي چه له خاوند پرته د يوه بل سړي له نطفې څخه حامله شي او مور جوړه شي او د اسې حاصل شوی بچی



نوموړې پيغله خپل ولد يعنې زوی وګڼي- او دا ولد به صبا ته لويېږي او د خپلې پيژندګلوې لپاره به يوازې د مور خوا ته په نسبت کولو باندې اکتفاء کوي- د اسې خو د هغې د بچي خواهش پوره کيږي په د اسې حال کښې چه د طبعي خواهشاتو تکميل په غير شرعي او غير فطري طريقې سره کوي او نکاح له ضرورت څخه يو زياتی شی ګڼي-

## د انساني نسل د زياتوالي فارم

کله چه خبره دې ځای ته ورسيږي چه د يوه سړي له نطفې څخه ګڼې ښځې حامله کيدلی شي نو بيا چه کوم ملك ته د افرادي قوت ضرورت پيدا شي او يا په کوم ځای کښې د نسل په زياتولو باندې اړوندو جوړو ته انعام ورکول کيږي نو هلته د دې ضرورت د تکميل لپاره يوه آسانه نسخه په لاس ورځي کوم چه د لوړ پوړو خلکو نطفو يو ځای کوي او له با استعدادو ښځو څخه د چرګانو، غواوو، ميږو او ووزو غوندې د فارمونو په جوړولو سره بچي پيدا کوي او نه ده معلومه چه له يوې ستنې څخه څومره بچي پيدا کيږي- ليکن د فکر خبره دا ده چه له فارمي نوي پيدا شوي بچيانو څخه د قوم، ملك او معاشرې د اصلاح څه هيله کيدلی شي په د اسې حال کښې چه د د اسې بچيانو راتلونکی خو پريږده پخپله د نسل د افزائش دا طريقه يو قبيح يعنې بد حرکت دی-

ممکنه ده چه د دې سفر انتهاء دا نه وي بلکه له دې نه وروسته د دې فارمونو لپاره به د با استعداده ښځو ضرورت وي او د دې مقصد لپاره به د رضاکارو ښځو د نه پيدا کيدو په صورت کښې به بيا ښځې په قيمت سره اخيستل کيږي چه په نتيجه کښې ئې د ښځو د اخيستلو او پلورلو يو مذموم کاروبار شروع کيږي او د زمانۀ جاهليت ياد به تازه کيږي-

## نارينه به هم بچي زيږولی شي

کله چه يوه نطفه د مور له رحم پرته د توليدي ادوارو د طی کولو سره د بچي د جوړيدو صلاحيت لري او د ښځې د نس په يوې خالي حصې کښې دا مقصد پوره کيږي نو بيا ممکنه ده چه په راتلونکي کښې د دې عمل يوازې د ښځې له نس سره تعلق پاتې نه شي بلکه د سړو په نس کښې هم دا عمل جاري شي او بچی ترې پيدا کړی شي چه تجربه ئې هم شوې ده- نو د سړي لپاره د مور جوړيدو په صورت کښې نورې خبرې خو يوې خوا ته پريږده دا د سړي لپاره د ذلت او رسوايي يو شرموونکی مقام دی- برسيره پر دې باندې ښځه په طبعي توګه د بچي د تربيت او ساتنې صلاحيت لري- يوه ښځه چه د خپل بچي کوم تربيت کولی شي په سړو کښې د دې ذمه واری او بار د اوچتولو بالکل صلاحيت نشته- همدا وجه ده چه د خاوند او ښځې تر منځ چه جدايي وشي او يا نکاح قائم پاتې شي نو د بچيانو د حضانت يعنې د بچيانو د ساتنې حق ښځو ته حاصل دی-

د فتاوٰی هندیه په اول جلد کښې راغلي دي چه د خاوند او ښځې تر منځ له جدايي نه وروسته د هلك لپاره ۷ يا نهه کاله پورې او د نجلۍ لپاره تر بلوغه پورې د حضانت حق والدې ته حاصل دی په داسې حال کښې چه کله سړی مور جوړیږي نو بچی ئې د نورو مسائلو سربيره د مور له شفقت او د هغې د تربيت له حق څخه محروم پاتې کيږي۔

## د زنانه بنديدونکې دروازه خلاصيږي

کله چه سړی د بچيانو د پيدا کولو بار په ځان واړوي نو هغه د ښځې څه ضرورت پاتې کيږي او همدارنګه چه يوه ښځه له خاوند پرته بچي زيږولی شي نو د ودیدو څه ضرورت ورته پاتې کيږي۔ نر او ښځه دواړه بچي پيدا کولی شي نو د طبعي او فطري خواهشاتو د تکميل لپاره ناجائز ذرائع استعمالوي نو بيا د زنا او لواطت نوې دروازه پرانستل کيږي چه ترې د پوره انسانيت هلاکت او تباهي يقيني ده۔

## د انسانانو رشته به له بيزوګانو او سپو سره وصل شي

کله چه د توليد دا جديده طريقه جاري وساتله شي او د تحقيق يوه خاص حد ته ونه رسيږي نو عين ممکن دی چه د انساني توليد ماده د بيزو او سپي د نس په خالي ځای کښې کيښودل شي او دا عمل ترې واخيستل شي۔ ښکاره خبره ده چه د انسان له نطفې څخه پيدا کيدونکی بچی به انسان ګڼل کيږي او د انسان دا خوږه رشته بيا د بيزوګانو او سپو له نسل سره منسلك کيږي۔ د فکر ځای دا دی چه آيا دا ترقي ده او که تنزل؟ چه د يوه اشرف المخلوقات او د عالم مخدوم ته د سپي او يا بيزو زوی وويل شي۔

د دغو ګنو او غير شرعي امورو په رڼا کښې مونږ دا ويلی شو چه د ټيسټ ټيوب بې بي په ذريعه توليدي عمل د شريعت له مخې ناجائز دی اګر که په موجوده دور کښې ئې خلك اعلٰی او سائنسي ترقي بولي ليکن په حقيقت کښې د رسوايي او تباهۍ د سبب جوړيدو په صورت کښې به په راتلونکي کښې کنټرول پرې مشکله مسئله جوړه شي۔



## خاندانی منصوبه بندي

کفار د مسلمانانو د ايماني قوت سره سره د هغوی له افرادي قوت څخه هم په ويره کښې دي۔ د دوی د افرادي قوت د ختم کولو لپاره يورپ د خاندانی منصوبه بندۍ غير فطري طريقه پيدا کړه او د خپلې دغې منصوبې د کاميابولو لپاره ئې د شنه باغ په توګه د وسائلو کمي، د رزق تنګي، صحيح تعليم او تربيه خصوصا د ښځو د صحت او داسې نورې نعرې ئې پورته کړې۔ په داسې حال کښې چه د دې زړه راښکونکې نعرې څخه د يهودو او هنودو مقصد په مسلمانانو کښې له جنسي اختلاط سره سره د هغوی ايماني او افرادي قوت له منځه وړل دي۔ حضرت مولانا سميع الحق صاحب مد ظله العالي د خاندانی منصوبه بندۍ په خطراتو او نتائجو باندې ډير په ښه انداز سره رڼا اچولې ده۔ د مولانا صاحب دا مضمون د عامې افادې لپاره په فتاوٰی حقانيه کښې هم شامل کړی شو۔

از مرتب مد ظله

## خاندانی منصوبه بندي او د هغې خطرې او نتيجې

يو را رسيدلی خبر دی چه خاندانی منصوبه بندي په حيدر آباد کښې د خپلو ضلعي افسرانو په يوه اجلاس کښې په دې خبرې باندې زور اچولی دی چه هغوی د خاندانی منصوبه (ضبط ولادت) تحريك په عوامو کښې په پوره توګه مقبوله کړي۔ مونږ د يوه معاصر په خبره په دغه بانګ بې هنګام باندې چپ نه شو پاتې کيدلی۔ د ضبطِ ولادت په تحريك باندې د ملك سنجيده علمي او ديني حلقو له ابتدا څخه د خفګان اظهار کوي او برابر د دې تحريك په ضررونو باندې معاشي، اخلاق، شرعي او عقلي په هر اړخ باندې رڼا ګانې اچولې دي او تر اوسه پورې ئې اچوي۔ د اوږدو مشاهداتو او تجرباتو په رڼا کښې د دې تحريك ترتيب شوي عقلي او شرعي تجزيې سره زمونږ کلي اتفاق دی چه د دې مهم مخامخ اثر به زمونږ د معاشرتي ژوند په قدرونو باندې وي۔ لذت پرستي او د جنسي بې لاريو تول خنډونه ختم کيږي او په يوه اسلامي ملك کښې اخلاقي، فحاشي او د بې حيايي او زنا کارۍ خبيثه ونه ښه ترقي کوي او د ضبط ولادت په غير فطري کوششونو باندې د ښځې او نر جسماني، او نفسياتي صحتونو باندې اثر کوي۔ کورنۍ ذمه واري او د اولاد د تعليم او تربيې څخه د سبکدوشۍ په احساس سره نه به يوائې په جذباتي او شهواني جذباتو کښې زياتوالی راځي بلکه ټوله معاشره کومه چه د کورنۍ په مضبوطو او مستحکمو رشتو باندې ولاړه او استواره ده نومورې استواري او قائم والی ئې له منځه ځي۔ کورني فرائض چه په پوره کولو کښې ئې اولاد يوه فرد لره مجبورولی

شو ای له دې څخه تیښتنه ډیره آسانه کیږي معاشره پخپل منځ کښې د یوه او بل له حقوقو څخه تښتي او د طلاق او شخړې ښکار ګرځي۔

## قومي خود کشي

د دې لازمي نتائجو او خطراتو برسیره یوه داسې منصوبه چه زمونږ د مسلمانې معاشرې شرعي او معاشي او د اقدارو له یوه اړخ سره هم تړاو نه خوري۔ په موجوده سختو او مشکلو حالاتو کښې چه د هندوستان غوندې عیار سامراج د مقابلې مشکل زمونږ په مخ کښې دی ضروري ده چه د دې منصوبه په دې مهلك اړخ باندې هم توجه وشي چه بد اثر ئې ټول قوم او ملت ته د رسیدو خطره ده۔ په دې وخت کښې کله چه په ظاهري اسبابو کښې زمونږ د کامیابۍ ټول دارومدار د دې ملك په عددي قوت او افرادي زیاتوالي باندې د اسې سکیمونه تر بحث لاندې راوړل له قومي خود کشي سره برابره ده چه له تجدید نسل او نسل کشي حوصله لوړوي۔

## افرادي قوت او یورپ

یورپ کوم چه د دې لعنت لومړنی سرچینه او داعي ده نو د نولسمې صدۍ له پیل څخه دا تحریك دوی خپل کړی دی۔ بالآخره په دې زوال تهذیب باندې واضحه شوه چه د آبادۍ د قلت دا تحریك که چېرته له یوې خوا څخه دوی له اخلاق او شرافت څخه خلاص کړل نو بلې خوا ته دوی ته څرګنده شوه چه د آبادۍ د کموالي دا مساعي د هغه د اجتماعي قوت د له منځه تللو او سیاسي قوت د انحطاط باعث او سبب جوړیږي۔ چنانچه له ډیرو خرابیو نه وروسته مغربي قومونو خپله رویه بدله کړه۔ د فرانسې مارشل پیټن دې لره د خپل ملك د زوال بنیادي سبب وګڼه۔ او د برطانیې یو مشهور مبصر او د پارلمان رکن رینډ الف چرچل د پیدائش د لاندې تللو له خطراتو څخه خپل ملك او هیواد خبر کړ۔ د یورپ د نورو هیوادونو هم همدا حال دی۔ فرانسه، جرمني او اټالیا اسقاط حمل او د نسل د تحدید ټول اقدامات سخت جرم وګرځاوه بلکه د هیواد د معاشي ترقیاتو د متبادلو انتظاماتو سره سره د نسل د افزائش سرپرستي کوي۔ چنانچه چه په سویډن او د اسې نورو هیوادونو کښې په ډیرو بچو زیږوونکو باندې د ټیکس شرح کمه کړه په دې وخت کښې همدا پالیسي د امریکې او یورپ د ټولو قومونو ده۔ په دوی باندې بالآخر دا حقیقت څرګند شو چه په دې ایټمي دور کښې د یوه ملك استحکام، سیاسي برتري او بین الاقوامي اهمیت په اسبابو کښې آبادي هم پوره دخل لري۔ د کوریا په جنګ کښې چین او د جنګ عظیم په جاپان کښې محض پخپل عددي قوت سره د دښمن منصوبې بې اثره وګرځولې۔ نن چه زمونږ په ګاونډیانو کښې چه چین او روسیې ته کوم اقتدار او لوړوالی حاصل دی بالخصوص چین چه د خپل عظیم قوم په متو باندې د مغربي



استبداد غرور چلینج کوي او اختار ورکوي۔ په دې کښې له دې څخه انکار نه شي کیدلی چه نفوس او آبادي پکښې ډیر دخل لري۔ دا ممالك که چېرته یوې خوا ته د ملکي معیشت د خوشحالۍ لپاره د قدرت بخښل شوي ټول وسائل او ذرائع په کار واچوي نو بلې خوا ته د خپل نفوس په اعتبار سره هم خپل تفوق او برتري په ځای ساتلی دی، زمونږ د عظیم اسلامي ملك انډونیشیاء هم همدا حال دی۔

## سیاسي او دفاعي ضرورت

په مغربي ممالکو کښې د آبادۍ د ډیروالي له کوششونو سره سره د شرقي قومونو او عالم اسلام د نفوس د شرح د زیاتوالي په وجه مغربي قومونه خپل سیاسي قیادت په خطر کښې ویني او د مغرب دا کوشش دی چه د خپل بین الاقوامي (بین المللي) حالت په ځای ساتلو لپاره د اسلامي او مشرقي ممالکو د نفوس د زیاتوالي مخه ونیسي او ختم ئې کړي او د دوی مقصد په دغو ممالکو کښې د تحدید نسل او ضبط ولادت تحریك ته ئې شهرت ورکړی دی او دوی ئې پخپل مرګ باندې پخپله آماده کړی دی۔ دلته زمونږ د غلطیدو یا دوکه کیدو دا حالت دی چه:

اپنی منقاروں سے حلقہ کس رہے ہیں دام کا
طائروں پر سحر ہے صیاد کے اقبال کا

د دغو وجوهاتو پر بناء د نسل د تحدید مسئله یواځې اخلاقي، معاشي او یا مذهبي مسئله نه ده بلکه بین الاقوامي حالاتو دې لره د پاکستان او عالم اسلام لپاره سیاسي او خالصتاً یوه دفاعي مسئله جوړه کړې ده او بیا زمونږ ملك په جغرافیایي لحاظ سره په داسې حالت کښې واقع دی چه زمونږ څلورو خواوو ته د آبادۍ نفوس له مونږ څخه درې چنده بلکه تر اتو چندو پورې زیات دی۔ پخپله هندوستان چه سامراجي او ظالمانه عزائم ئې تر څو پورې له خاورې سره خاورې نه کړو مونږ یوه لحظه هم په قراره نه شو کښیناستلی۔ د دوی نفوس له مونږ څخه څلور نیم چنده زیات دی۔

په داسې حالاتو کښې د عواقبو او نتائجو څخه بې پروا کیدل او د دې تحریك د آواز پورته کول د ربوبیت عامه او د رازقیت د شان اختار او د قومي او ملي مرګ سره برابره ده او اسلامي او قومي غوښتنو یوې خوا ته غورځول او د دې تحریك سرپرستي او په قوم کښې د مقبول ګرځولو لپاره دعوت ورکول د قومي ناعاقبت اندیشۍ څخه پرته بل هیڅ شی هم نه دی۔

## د آبادي او ترقۍ صحیح لاره

زمونږ د زړه دا غوښتنه ده چه د ملك د حقیقي مفاداتو په بناء سره په راتلونکي کښې له هر هغه تحریك، منصوبې او تکمیل څخه پرهیز وکړی شي چه زمونږ له ملي، قومي

تقاضا او سره موافق نه شي- او که چېرته د مغربي تهذیب او تمدن په تقلید کښې څه غلطي وشي نو د اوسني واقعاتو څخه سبق واخیستلی شي او هغه له د غلط حرف په توګه ختم کړی شي او هر هغه علمي او عملي اقدامات دې په سختۍ سره منع کړی شي چه د امت مسلمه لپاره د ديني او اخلاقي فتنو اسباب مهیا کوي او کوم چه د اسلامي جمهوریه او د غیورو مسلمانانو ئې ديني اقدار او مجاهدانه کردار څخه لرې کوي او له کوم شي څخه چه د عظیم قوم مؤمنانه او مجاهدانه روح زخمي کیږي که هغه خانداني منصوبه بندي وي او یا د عائلي قوانینو دوکه ورکوونکی شکل او یا د تجدد، ترقي او فیشن فکر انګیز نوم او یا د اسلامي تحقیق تر نامه لاندې د دین د تحریف تحریکونه وي- زمونږ په خیال کښې دا هغه طرز عمل دی چه زمونږ د راتلونکي آبادي، خوشحالي او د ملک د بقا او سلامتي ضامن جوړیدلی شي او دا هغه طرز عمل او طرز حیات دی چه د اوسني واقعاتو په نتیجه کښې زمونږ لائق او د احترام وړ صدر محمد ایوب خان په لاندیني الفاظو اشاره کړې ده۔

"دا تجربات زوړ او همه ګیر دي- د یوه عارضي جوش او خروش نتیجه نه دی او نه د یوه وخت او تیریدونکي خبرې دي- دغو واقعاتو نه مونږ ته د ژوند په هر میدان کښې یوه مستقله د عمل طریقه را بخښلې ده او همدا په اصل کښې د اسلام ضابطۀ حیات دی ان شاء الله اوس به د عمل دا طریقه زمونږ د راتلونکي طرز عمل او فکر لپاره د لارې مشال وي"۔

## د منصوبه بندۍ اخلاقي او فرهنګي اړخ

د ضبط ولادت د تحریک په رواجولو کښې زمونږ د هیواد پوره ماشین مصروف دی او د اقتصادي فوائدو څخه بغیر ئې د اخلاقي او سماجي ښه والي مشهوري هم کیږي- د تماشا خبره دا چه د نوي اسلام د پیدا کوونکو یوه کارخانه د "اسلامي تحقیقاتو اداره" او د دې کارخانې تش په نامه محققینو یوه لویه ډله هم د اولاد د قتل او د انسانیت ختمونکي تحریک دا آواز د قرآن او سنتو او فقهاء اسلام د اقوالو سره ئې په تطبیقولو باندې لګیا دي-

د اخبارونو ټول چاپونه او ضمیمې د شفاء د دې نسخې د مشهورۍ لپاره استعمالیږي- ښکاره خبره ده په دې نقار خانه کښې د اهل حق د غربت آواز ته څوک توجه هم نه کوي- بیا هم د حق علماوو د خپل احتساب د فریضې په بناء سره علماء پرته له کومې ویرې د دې تحریک روحاني سماجي او سیاسي عواقبو او تباه کوونکو نتائجو څخه قوم خبر کړی دی او خبروي ئې- هغه قوم چه پرته له کوم فکر او سوچ څخه د یورپ په ځناورانه بټۍ کښې ځان اچوي- د نن په فرصت کښې مونږ د دې میاشت دوه خپروني د اخلاقي زوال او نسل کشي تحریک د مشهور کوونکو په خدمت کښې وړاندې کوو- د دې تحریک طبي اړخ له دې خبرې څخه واضح کیږي-

"د لندن یو ډاکټر ویلي دي چه د خانداني منصوبه بندۍ لپاره چه کومې انسدادي ګولۍ



استعمالیږي کیدلی شي چه وروسته له هغه څخه د سړي په صحت اثر کوي او د مثانې مرض ورته پیدا کیږي د اسې څو واقعات مخې ته راغلي دي- (روزنامۀ جنګ، راولپنډي اکتوبر ۱۹۴۴ء)

"د ښځو لپاره هم د دې عمل د بې شمیره مرضونو د باعث کیدو خبرونه هره ورځ خپریږي- د ضبط ولادت د سیاسي نقصانونو اندازه له دې خبرې څخه لګیږي چه په دې میاشت کښې په رومانیه کښې د اسقاط حمل د ممنوع کیدو لپاره قانون نافذ شوی دی او په دې سلسله کښې د نافذیدونکي قانون لاندې یوائې د سخت طبي ضرورت څخه بغیر ئې اسقاط حمل ممنوع ګرځولی دی- (روزنامۀ جنګ راولپنډي ۲۵ اکتوبر ۱۹۶۶ء)

له دې څخه مخکښې د افرادو د کموالي او د قومي خود کشي ترخه تجربه په فرانس او څو نورو ممالکو کښې شوې ده او دا حماقت هغو ممالکو له، خاورې سره یو ځای کړ- پاتې شو د دې تحریک اخلاقي او سماجي اړخ نو د دې اندازه نن د یورپ له هر هغه ملک څخه لګیدلی شي چېرته چه د اخلاق او شرافت ټول بندونه مات شوي دي او د جنسي هیجان په طوفان کښې انسان محض یو کالبوت جوړ شوی دی- د لاندې د اخبارونو د څو تازه ګڼو څخه د دې حیوانیت اندازه ولګوی او په دې هنداره کښې د خپل ملک او معاشرې نور راتلونکي ته هم یو نظر وګوری- په امریکه کښې یوائې په تیر کال کښې د دوه لکه او پنځوسو زرو طالباتو نجونو اسقاط حمل وکړی شو- (مجله العربي ستمبر کویت)

د خانداني منصوبه بندۍ د آلاتو او ادویاتو کومو خلکو ته چه له دې دندې څخه خلاصون وربخښلی دی نو د دې اندازه تاسو پخپله ولګوی- په نوموړي تعداد کښې یوائې د طالباتو ذکر راغلی دی- او انګلستان کښې په تیر شوي کال کښې یو لک شپږ ویشت زره حرامي بچیان پیدا شوي دي- (العرب، کویت)

او همدارنګه د حرامیانو دا ښکر د حلالیانو د حلالي پیداوار تعداد پوره کړ- اوس د یوه دا سې ملک حال واورئ چه له یورپي ممالکو څخه نه بلکه د مشرق وسطی له ممالکو څخه دی او د کوم ځای چه تقریبا نیمه آبادي د مسلمانانو ده- د کویت مشهوره رساله العربي لیکي:

په بیروت کښې اتیا فیصده طالبات له ودونو څخه مخکښې جنسي اړیکې قائموي-

او اوس څو ورځې مخکښې زمونږ په سرکاري خلکو کښې هم د دې تحریک په ناجائز استعمال باندې تشویش ښکاره کړی شو چه خبرونه ئې په اخبارونو کښې خپاره شول- د انسان د حقیقي رشد او هدایت رېښتوني او لاجواب کتاب قرآن مجید ډېر مخکښې د اولاد د قتل څخه فوراً وروسته زنا او د زنا محرکات منع کړل- او دا حقیقت ئې په ګوته کړی دی چه د اولاد د قتل هر شکل او زنا او فحاشي ئې منع کړې ده- د دواړو آیتونو څخه ښکاریږي چه اول جرم د اولاد قتل

# کتاب النفقات

12

جلد چہارم



او دوهم جرم زنا او د زنا محرك دی. ولولی او قربان شی د د اسې لافاني کتاب له اعجاز څخه. د
الله تعالی ارشاد دی:
وَلَا تَقْتُلُوا أَوْلَادَكُمْ خَشْيَةَ إِمْلَاقٍ نَحْنُ نَرْزُقُهُمْ وَإِيَّاكُمْ إِنَّ قَتْلَهُمْ كَانَ خِطْأً كَبِيرًا.
''او خپل اولادونه مه وژنئ د غریبۍ او مفلسۍ له ویرې، مونږ هغو ته هم روزي ورکوو
او تاسو ته ئې هم درکوو، بې شکه خپل اولاد وژل ډیره لویه ګناه ده''.
او له دې آیت څخه فوراً وروسته ارشاد دی:
وَلَا تَقْرَبُوا الزِّنٰى إِنَّهُ كَانَ فَاحِشَةً وَسَاءَ سَبِيلًا
''او زنا ته مه نژدې کیږئ ځکه چه دا ډیره د بې حیایي خبره او ډیره بده لاره ده''.
نه یوازې په دې ځای کښې بلکه په بل ځای کښې هم د اولاد د قتل څخه د منع کولو نه
لږ وروسته د پټې او ښکاره فحاشۍ او بې حیایۍ څخه ئې منع فرمایلې ده. د بیان له دې اندازې
څخه په ښکاره توګه څرګندیږي چه دوهم جرم (بې حیایي او فحاشي د اول جرم (قتلِ اولاد او
ضبط اولاد) لازمي او طبعي رد عمل دی. د الله تعالی ارشاد دی:
وَلَا تَقْتُلُوا أَوْلَادَكُمْ مِنْ إِمْلَاقٍ نَحْنُ نَرْزُقُكُمْ وَإِيَّاهُمْ وَلَا تَقْرَبُوا الْفَوَاحِشَ مَا ظَهَرَ مِنْهَا وَمَا بَطَنَ. (سورة الانعام، آیت ۱۵۱)
''او خپل اولادونه د لوږې او غربت له وجهې مه وژنئ، مونږ تاسو ته هم روزي درکوو
او دوی ته ئې هم ورکوو او بې حیایي ته که ښکاره وي او که پټ لنډ هم ورځئ''.

# كتاب النفقات

## (د مصرف او خرڅي احكام او مسئلې)

### د ښځې علاج په خاوند باندې لازم نه دی

**سوال:** د زيد ښځه له ډېر وخت راهيسې بيماره ده او مور و پلار ئې په رضا او رغبت سره د علاج لپاره خپل كور ته بيولې وه او هلته ئې د هغې علاج وكړ۔ څه وخت وروسته د ښځې والدينو له زيد څخه په علاج باندې د لګيدلو روپو غوښتنه وكړه نو آيا د دوی دا غوښتنه د شريعت له مخې صحيح ده او كه نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د ښځې علاج او معالجه په هر حال كښې په خاوند واجبه نه ده۔ البته د مروت او مردانګي له مخې د خپلې ښځې علاج كول يوه ښه او مناسبه خبره ده۔

لما قال العلامة ابن الهمام رحمه الله: و لقائل ان يقول عليها كأجرة الطبيب الخ. (فتح القدير ج۴، ص۲۰۰، باب النفقة، كتاب النكاح)

قال العلامة ابن نجيمؒ: و قيد با لنفقة لان المداوة لا تجب عليه اصلاً. (البحر الرائق ج۴، ص۱۸۲، باب النفقة) و مثله فى الهندية (ج۱، ص۵۴۹، كتاب النكاح، الباب النفقة)

### د مور او پلار د نفقې حكم

**سوال:** د مور او پلار خرڅ او خوراك په اولاد باندې واجب دي او كه نه؟ او همدارنګه كه چېرته اولاد پخپله بې خرڅه يعنې فقير وي نو بيا به د مور او پلار خرڅ او خوراك جبراً ترې اخيستل كيږي او كه نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** والدين كه چېرې خپله غنيان وي نو اولاد به د هغو د خرڅې په برداشت كولو باندې نه مجبوره كيږي اګر كه اولاد غنيان هم وي۔ ليكن كه چېرته د والدينو د خرڅې بله كومه وسيله او سبب نه وي نو د هغو د خرڅې ذمه واري په بالغ اولاد باندې ده۔ البته كه چېرته اولاد پخپله غريب او تنګدسته وي نو د مور او پلار د خرڅ او خوراك په زغملو باندې ئې مجبورول مناسب نه دي۔

لما قال العلامة ابن نجيمؒ: (و لابويه و اجداده و جداته لو فقراء) اى تجب النفقة لِهٰؤلاء....... و اطلق فى الابن و لم يقيد فى الغنى مع انه مقيد به لما فى شرح الطحاوى و لا يجبر الابن على نفقة للابوين المعسرين اذا كان معسراً. (البحر الرائق ج۴، ص۲۰۵، باب النفقة، كتاب النكاح)

لما قال شيخ الاسلام برهان الدين المرغينانيؒ: و على الرجل الموسر ان ينفق على ابويه و اجداده و جداته اذا كانو فقراء او ن خالفوه فى الدين. (الهداية ج۲، ص۴۴۰، باب النفقة، كتاب النكاح) و مثله فى الهندية (ج۱، ص۵۸۳، الباب فى النفقة، كتاب النكاح)

12/12

قال الله تعالىٰ

لينفق ذو سعة من سعته ومن قدر عليه رزقه

فلينفق مما آتاه الله

من حلف كاذبا ادخله الله النار

## د بالغ اولاد د نفقې حکم

**سوال:** د بالغ اولاد د خرڅې ذمه واري په والد یعنې پلار باندې وي او که به د خپلې خرڅې پخپله ذمه وار وي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** اولاد تر څو پورې چه نابالغ وي تول مصارف ئې په پلار باندې دی تر دې پورې چه که چېرته پلار فقیر هم وي نو بیا به هم خپله ذمه واري ضرور سر ته رسوي۔ البته چه کله اولاد بالغ شي نو د خرڅې ذمه واري ئې له پلار څخه لرې کیږي لیکن د لونړو خرڅ او خوراك به د هغو تر ودولو پورې په پلار باندې وي۔

لما قال العلامة ابن نجیمؒ: و قید با لعجز عن الکسب و هو بالانوثة مطلقاً...... فلا یعتبر فی الانثیٰ الا الفقر.
(البحر الرائق ج۴، ص ۲۱۰، باب النفقة)

لما قال العلامة ابن همامؒ: و الاولاد کبارٌ اما اناث...... فللاناث علیه نفقتهن الی ان یتزوجّن اذا لم یکن لهم مال. فتح القدیر ج۴، ص۲۱۶، باب النفقة) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۵۸۳، کتاب النکاح، الباب فی النفقة)

## د عــــــدت په دوران کښې د ښځې د مصارفو حکـــم

**سوال:** د خاوند له وفات څخه وروسته د هغه د ښځې د عدت د ورځو مصارف به څوك برداشت کوي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د چا له وفات څخه وروسته د هغه په ترکه کښې د تولو شرعي وارثانو حقوق ثابتیږي۔ همدارنګه د خاوند له وفات څخه وروسته د هغه د ترکې له اتمې یا څلورمې حصې څخه د خرڅې ترنامه لاندې د زیات شي اخیستل د ښځې لپاره روا نه دي او نه په نورو وارثانو باندې د هغې د خرڅې ذمه واري راګرځي۔ ښځه به د خاوند له ترکې څخه خپله حصه اخلي او د عدت د ورځو ګذاره به پرې کوي۔ که چېرته ئې له اتمې حصې څخه مصارف نه پوره کیدل او په محارمو کښې ئې بل څوك هم د دې د مصارفو د بـِـداشتولو لپاره تیار نه شي نو بیا به د خپل لاس په ګټې باندې ګذاره کوي۔

لما قال العلامة ابن نجیم رحمه اللّٰه: (قوله لا الموت......) ای لا تجب النفقة لمعتدة الموت. (البحر الرائق ج۴، ص ۲۰۰، کتاب النکاح، باب النفقة)

قال العلامة برهان الدین المرغینانیؒ: و لا نفقة للمتوفی عنها زوجها. (فتح القدیر ج۴، ص ۲۱۴، باب النفقة)

## د کوچنیو بچیانو نفقه یعنې خرڅ او خوراك په پلار باندې واجب دی

**سوال:** یو سړی دوه لونړې او یو زوی لري که چېرته هغه خپلې ښځې ته طلاق ورکړي نو آیا د اولاد خرڅ او خوراك به د پلار په غاړه وي او که د مور؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** اولاد چه کله پخپله څه شی و نه لري نو د هغو نفقه په پلار باندې واجبه ده که د پلار په کور کښې اوسیږي او که د خاوند او ښځې د جدایي په صورت کښې د



مور سره اوسیږي په دواړو صورتونو کښې ئې خرڅ او خوراك د پلار په غاړه دی۔

لما قال العلامة طاهر بن عبد الرشید البخاریؒ: نفقة البنت البالغة یجب کا لصغیرة و لکل علیه اذا لم یکن للصغیر مال.
(خلاصة الفتاویٰ ج۲، ص۶۳، کتاب النکاح. فصل فی النفقة)

قال العلامة قاضی خانؒ: نفقة الاولاد الصغار و الاناث المصرات علی الاب لا یشارکه فیها احد و لا یسقط بفقره.
(الخانیة علی هامش الهندیة ج۱، ص۴۴۵، فصل فی النفقة) و مثله فی الهندیة (ج۱، ص ۵۶۰، کتاب النکاح، باب النفقة)

## د پلار کـــــــره د اوسیدو په صورت کښې د ښځې د نفقې حکم

**سوال:** څه فرمایي د دین علماء د دې مسئلې په باره کښې چه که چېرته د یوه سړې بي بي د هغه په خوښه د خپل مور او پلار په کور کښې اوسیږي نو آیا مصارف به ئې خاوند برداشت کوي او که مور او پلار ئې؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د ښځې لپاره د میړه په اجازه د والدینو کره تلل جائز دي۔ د دې لپاره که چېرته کومه ښځه د خپل میړه په اجازه باندې د مور او پلار کره اوسیږي نو مصارف به ئې د میړه په غاړه وي۔ ګواکه د میړه له غاړې نه د ښځې مصارف یوائې له دې وجهې نه چه د پلار کره اوسیږي نه اوړي تر څو چه ښځه نافرمانه نه وي۔

لما قال العلامة علاؤ الدین الحصکفیؒ: فتجب للزوجة علی زوجها (ر لو هی فی بیتِ ابیها) اذا لم یطالبها الزوج با لنقلة به یفتٰی. (الدر المختار شرح تنویر الابصار ج۳، ص۵۷۵، باب النفقة)

قال العلامة قاضی خانؒ: الناشزة لا نفقة لها و هی التی خرجت عن منزل الزوج بغیر حق. (الخانیة علی هامش الهندیة ج۱، ص۴۲۶، باب النفقة) و مثله فی الهندیة (ج۱، ص۵۴۴، باب النفقة)

## د معـــــــذور اولاد د نفقې حکم

**سوال:** څه فرمایي د دین علماء چه کله زوی بالغ شي په داسې حال کښې چه معذور وي او د خپلې خرڅې د ګټلو قابل نه وي آیا خرڅه ئې په پلار واجبه ده او که د بالغیدو سره ئې د پلار ذمه واري ساقطیږي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرې د چا اولاد معذور وي نو له بالغیدو سره سره ئې نفقه د پلار له غاړې نه ساقطیږي۔ بلکه تر څو ئې چه پلار ژوندی وي د معذور اولاد د مصارفو به ذمه وار وي۔ او که ئې پلار مړ شي نو دا ذمه واري ئې په نورو وارثانو باندې بقدر الارث راګرځي۔

لما قال العلامة ابن الهمامؒ: و الذکور اما عاجزون عن الکسب لزمانة و عمی او شلل او ذهاب عقل فعلیه نفقتهم. (فتح القدیر ج۴، ص۲۱۷، باب النفقة)

قال العلامة ابن نجیمؒ: و حکم و لد الکبیر الزمن او الانثیٰ مطلقا کا لصغیر لما سیأتی. (البحر الرائق ج۴، ص۱۹۶، باب النفقة، کتاب النکاح) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۵۶۳، کتاب النکاح، باب النفقة)

## د خفګان د ورځو نفقه د خاوند په ذمه نه ده

**سوال:** که چېرته کومه ښځه له خپل میړه څخه ناراضه شي او تر څو کلونو پورې د مور او پلار کره و اوسیږي او وروسته په عدالت کښې د خفګان د ورځو د نفقې دعوه وکړي نو آیا نوموړې ښځه د تیرو ورځو د نفقې حقداره ده او که نه؟ په د اسې حال کښې چه ظلم او زیاتی د خاوند له خوا وي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** غلطي یا زیاتی که د ښځې وي او که د خاوند په دواړو صورتونو کښې چه کله ښځه ناراضه شي او د پلار کره لاړه شي نو د خفګان د ورځو نفقه ئې په خاوند باندې واجبه نه وي۔ بیا هم که چېرته قاضي د ښځې په حق کښې فیصله وکړي چه خاوند به خپلې ښځې ته د کال یا د میاشتې دومره خرڅه ورکوي او له قضاء نه وروسته ئې میړه بیا خرڅه ورنه کړي نو په دې صورت کښې یعنې تر قضاء وروسته د ورځو نفقه به په خاوند باندې واجبه وي کوم چه د میړه په ذمې باندې به قرض ګڼل کیږي۔

لما قال العلامة قاضیخانؒ: لا تطالب بنفقة ما مضٰی من الزمان قبل الفرض لانا عندنا لا تصیر النفقة دَیناً الا با لقضاء. (فتاوٰی الخانیة علی هامش الهندیة ج۱، ص ۴۳۰، باب النفقة)

قال العلامة ابن همامؒ: و اذا مضت مدة لم ینفق الزوج علیها و طالبه بذٰلك فلا شیء لها الا ان یکون القاضی فرض لها النفقة. (فتح القدیر ج۴، ص ۲۰۴، باب النفقة) و مثله فی الدر المختار علی هامش رد المحتار (ج۳، ص۵۹۳، باب النفقة)

## د نافرمانې ښځې خرڅه په میړه باندې نه ده واجبه

**سوال:** که چېرته کومه ښځه بې له کومې وجهې د میړه له کوره لاړه شي او د بیا بیا د رابللو تر څنګ د میړه کور ته را نه شي نو د هغې نفقه به د میړه په غاړه پاتې شي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د ښځې بې له کومې وجهې د میړه له کوره تلل او د رابللو سره سره نه راتلل د نشوز (نافرمانۍ) په حکم کښې راځي۔ د د اسې ناشزې (نافرمانې) ښځې نفقه په میړه باندې واجبه نه ده۔ تر څو پورې چه ښځه نافرماني پریښې نه وي او د میړه کور ته راغلې نه وي تر هغه وخته پورې له میړه څخه د خرڅې غوښتنه نه شي کولی۔

قال المرغینانیؒ: و ان نشزت فلا نفقة لها حتٰی تعود الی منزله. (الهدایة ج۲، ص۴۱۶، باب النفقة)

قال العلامة الحصکفیؒ: لا نفقة لاحد عشر (وعد منها) و خارجة من بیته بغیر حق و هی الناشزه. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص۷۰۲، باب النفقة) و مثله فی الهندیة (ج۱، ص۵۴۵، الباب السابع عشر فی النفقات، الفصل الاول فی نفقة الزوج)



## د بې اتفاقۍ تر څنګ په خاوند باندې د خپل اهل و عیال نفقه لازمه ده

**سوال:** د کورني جنجال له مخې زید له خپل اهل او عیال څخه نفقه بنده کړې ده، اوس ئې ښځې ته څه کول په کار دي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د میړه په غاړه د اهل او عیال خرڅه د شرعې له مخې لازمه وي که چېرته خاوند له کومې وجهې په خرڅه ورکولو کښې له ځنډه څخه کار واخلي نو د جرګې یا د اسې نورو ذرایعو باندې به د خرڅې په ورکولو باندې مجبوریږي او یا به ښځې ته طلاق ورکوي۔ پرته له کوم شرعي عذره په خپل اهل او عیال باندې خرڅه بندول جائز نه دي۔

قال العلامة الحصکفی رحمه اللّٰه: و یجب لوفات الامساك با لمعروف، (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص۵۷۲، کتاب الطلاق)

قال الامام ابو زهرةؒ: لقولهٖ تعالی: (وَ لاَ تُمْسِکُوهُنَّ ضِرَارًا لِّتَعْتَدُوا) و قوله تعالی: (فَاِمْسَاكٌ بِمَعْرُوفٍ اَوْ تَسْرِیْحٌ بِاِحْسَانٍ) و ان البقا مع عدم الانفاق ضرارٌ و امساك بغیر معروف و کان حقا علیه ان یطلق زوجته. و لما لم یقسم بذٰلك و قد تعین علیه قام القاضی مقامه فیه. (الاحوال الشخصیه ص۳۴۹، باب اللعان، التفریق لعدم الانفاق) و مثله فی فتاوٰی دار العلوم دیوبند (ج۱۱، ص۱۱۳، باب النفقة)

## په نامرده خاوند باندې د ښځې نفقه لازمه ده

**سوال:** که چېرته میړه عنین (نامرده) وي او د زوجیت د حق په اداکولو باندې قادر نه وي نو د اسې سړي د ښځې نفقه به په چا باندې لازمه وي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** لکه څرنګه چه دا ښځه د نوموړي سړي لپاره محبوسه ده ځکه چه د دواړو نکاح شوې ده نو په دې صورت کښې د ښځې خرڅه په نوموړي باندې لازمه ده اګر که د ښځې په وطی کولو باندې قادر نه وي۔

قال العلامة الحصکفی رحمة اللّٰه علیه: فتجب للزوجة بنکاح صحیح. الخ علی زوجها لانها جزأ الاحتباس. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص۶۹۹، باب النفقة)

قال العلامة ابوبکر المرغینانی رحمة اللّٰه علیه: النفقة واجبة للزوجة علی زوجها مسلمة کانت او کافرةً اذا اسلمت نفسها الی منزله فعلیه نفقتها و کسوتها و سکناها الخ. (الهدایة ج۲، ص۴۱۳، کتاب الطلاق، باب النفقة) و مثله فی بدائع الصنائع (ج۴، ص۱۵، کتاب النفقة)

## د فـــاحشې او بد عملې ښځې د نفقې حکم

**سوال:** که چېرته د کوم سړي ښځه بد عمله او بد کرداره وي او د میړه د بار بار منع کولو تر څنګ هم له بد عملۍ نه منع نه شي او د خپل خاوند په کور کښې اوسیږي نو آیا د د اسې ښځې نفقه به په خاوند لازمه وي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** چه څوک هم له چا سره په کومه وجه محبوس وي د هغه خرڅ او

خوراك پرې لازم وي چونكه په نوموړي صورت كښې دا ښځه سره له دې چه بدعمله او بدكرداره ده د ميړه لپاره محبوسه ده نو څكه په ميړه باندې ئې، نفقه لازمه ده۔

قال العلامة الحصكفیؒ: فتجب للزوجة بنكاح صحيح...... علی زوجها لانها جزأ الاحتباس. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص۶۹۹، باب النفقة)

قال العلامة قاضی خان رحمه اللّٰه: و اما نفقة المرأة فمقابلة با لاحتباس و قد احتسبت بحق الزوج فكان لها النفقة علی الزوج. (الخانية علی هامش الهندية ج۱، ص۴۲۵، باب النفقة) و مثله فی الهداية (ج۲، ص۴۱۵، باب النفقه) هٰكذا فی مجمع الانهر (ج۲، ص۴۹۲، باب النفقة)

## له ميړه څخه د خفه كيدو په صورت كښې د پـــــلار په كور كښې د تير شوي كلونو نفقه په ميړه باندې واجبه نـــــه ده

**سوال:** يوه ښځه له ميړه څخه ناراضه شوه او څو كاله د پلار كره و اوسيده۔ اوس د جرګې والا د ميړه او ښځې ترمنځ فيصله كول غواړي ليكن ښځه د والدينو په كور كښې د تيرو شويو كلونو د خرڅې مطالبه كوي؟ آيا د شريعت له مخې د ميړه په ذمه باندې د تير شوي كلونو خرڅه لازمه ده او كه نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د فقهي ذخيرو له مخې معلوميږي چه په نوموړي صورت كښې د تير شوي كلونو خرڅه په ميړه باندې واجبه نه ده۔ له دې وجهې د ښځې نوموړې غوښتنه د قبول وړ نه ده۔ بيا هم كه چېرته ميړه په رضا او خوښي سره خرڅه وركوي نو وروكولی ئې شي په دې كښې هيڅ حرج نشته۔

لما قال العلامة علاؤ الدين الحصكفی رحمه اللّٰه: و النفقة لا تصير دينا الا با لقضاء او الرضاء. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص۷۱۵، باب النفقة)

قال العلامة المرغينانیؒ: و اذا مضت مُدة لم ينفق الزوج عليها و طالبته بذٰلك فلا شیء لها الا ان يكون القاضی فرض لها النفقة او صالحت الزوج علی مقدار نفقتها فيقضی لها بنفقة ما مضی. (الهداية ج۲، ص۴۲۰، باب النفقة) ومثله فی مجمع الانهر (ج۲، ص۴۹۹، باب النفقة)

## د كوچنيو بچيانو نفقه د پلار په ذمه ده

**سوال:** يوه سړي خپلې ښځې ته طلاق وركړ په د اسې حال كښې چه واړه بچيان ئې له مور سره دي نو آيا د نوموړي اولادونو خرڅه په پلار باندې واجبه ده او كه نه؟ په د اسې حال كښې چه پلار ئې د خرڅې له وركولو څخه انكار كوي يعنې خرڅه نه وركوي؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** مقدس شريعت اګر كه تر اوه كلونو پورې د بچي د پالنې حق ښځې ته وركړی دی ليكن په نوموړي صورت كښې د بچيانو خرڅه به د پلار په غاړه وي۔ پلار د حضانت د حق له مخې د بچيانو له نفقې څخه خلاص نه وي او انكار ئې صحيح نه دی يعنې د



خرڅې نه وركول د شريعت له مخې ورته درست نه دي۔

قال العلامة الحصكفیؒ: و تجب النفقة بانواعها علی الحر لطفله يعم الانثیٰ و الجمع. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص۷۲۸، باب النفقة)

قال المفتی عزيز الرحمٰنؒ: نفقهٔ صغيره به ذمهٔ پدر است حسبِ عرف نفقه از پدر گرفته شود و تا هفت سال نزد حاضنه اُمّ يا اُمُّ الام يا غير او شان بماند. (فتاوی دار العلوم ديوبند ج۱۱، ص۱۱۸، باب النفقة) و مثله فی شرح الوقاية ج۲، ص۱۸۰، باب النفقة)

## د ولادت (زيږنتون) مصارف په خاوند باندې دي

**سوال:** د بچي د پيدا كيدو په وخت په زچه خانه كښې چه په ښځې كومه خرڅه كيږي نو آيا د دې خرڅې اداكول د ميړه په غاړه دي او كه د ښځې د والدينو په غاړه دي؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** لكه څرنګه چه د شريعت له مخې نوموړی بچی د ميړه دی نو څكه ئې چه په پيدا كيدو څومره خرڅه كيږي هغه به ئې د پلار په غاړه وي۔

قال المرغينانیؒ: و نفقة الاولاد الصغار علی الابّ لا يشاركه فيها احد كما لا يشاركه فی نفقة الزوجة. (الهداية ج۲، ص۴۲۰، باب النفقه)

قـــال العلامة قاضيخانؒ: نفقة الاولاد الصغار و الاناث المعسرات علی الابّ لا يشاركه فیٓ ذٰلك احد. (فتاوٰی الخانية علی هامش الهندية ج۱، ص۴۴۵، فصل فی نفقة الاولاد) و مثلــــــه فی الهندية (ج۱، ص۵۶، الفصل الرابع فی نفقة الاولاد)

## د نادارو والدينو نفقه په اولاد باندې لازمه وي

**سوال:** جناب مفتي صاحب! زه يو غريب او سپينږيری سړی يم په د اسې حال كښې چه زما دوه زامن ښه مالدار او آباد دي۔ آيا زما خرڅ او خوراك به د دوی په غاړه وي او كه څنګه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** مور او پلار چه كله محتاج وي او له هغو سره د ژوند د تيرولو لپاره د ګټې كومه ذريعه نه وي نو د هغو خرڅ او خوراك په اولاد باندې لازم وي۔ كه چېرته ئې اولاد ادا نه كړي نو ګنهګار به وي۔

قال العلامة الحصكفیؒ: و تجب علی موسرٍ الخ. النفقة لاصوله الفقراء. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص۷۳۶، باب النفقة)

قال العلامة برهان الدين المرغينانی رحمه اللّٰه: و علی الرجل ان ينفق علی ابويه و اجداده و جداته اذا كانوا فقراء و ان خالفوه فی دينه. (الهداية ج۲، ص۴۲۴، باب النفقة) و مثله فی معين القضاة و المفتين ص۸۵، مادة ۴۹۵، الفصل الثالث عشر فی احكام النفقة)

## د پلار تر وفات وروسته د اولاد د نفقې حکم

**سوال:** که چېرته د کوم بچي پلار وفات شي او خپله د ګټې صلاحیت و نه لري نو د نوموړي بچي خرڅه به په مور باندې وي او که په کوم بل چا باندې وي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د کوم بچي چه په وړوکوالي کښې پلار مړ شي او پخپله د ګټې صلاحیت و نه لري نو د نوموړي بچي ټوله خرڅه به د مور په غاړه وي۔

قال العلامة ابن عابدينؒ: و هی اولٰی با لتحمل من سائر الاقارب. (رد المحتار ج۲، ص۹۲۲، باب النفقة)

و فی الهندية: الامّ اولٰی با لتحمل من سائر الاقارب حتیٰ لو كان الابّ معسرا و الامّ موسرة و للصغير جد موسر تؤمر الامّ با لانفاق من حال نفسها. (الفتاوٰی الهندية ج۱، ص۵۶۲، باب النفقة) و مثله فی فتاوٰی الخانية علی هامش الهندية ج۱، ص۴۴۷، باب النفقه، كتاب الطلاق)



# كتـــاب الايمان و النذرؒ

## (د قسم او نذر احـــکام او مسئلې)

## د منعقده (شوي) یمین (قسم) حکـــــم

**سوال:** د یوې نجلۍ پلار قسم وخوړ چه فلاني سړي ته به خپله لور په نکاح نه ورکوم۔ وروسته د دواړو تر منځ صلحه وشوه البته د قسم معامله لا پاتې ده۔ اوس که چېرته نوموړی سړی (د نجلۍ پلار) هغه سړي ته خپله لور په نکاح ورکړي نو په ده باندې به څه شی لازم وي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته د نجلۍ پلار د اسې قسم خوړلی وي چه زه د فلاني سړي په نکاح کښې خپله لور نه ورکوم نو د نکاح په عقد سره نوموړی سړی حانث کیږي کوم چه په بدله کښې ئې کفاره پرې لازمیږي۔ البته که چېرته نجلۍ بالغه شي او د پلار له کوم دخل څخه پرته له هغه سړي سره نکاح وکړي نو بیا ئې پلار په دې صورت کښې نه حانث کیږي یعنې قسم نه پرې اوړي۔

قال العلامة الحصكفیؒ: (و) ثالثها (منعقدة و هی حلفه علی مستقبل (آت) الخ.... (و) هذا القسم (فی الكفارة) الخ...... ان حنث. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۳، ص۵۲، كتاب الأيمان)

قال العلامة ابو البركات النسفیؒ: و علی آت منعقد و فيه الكفارة فقط. (كنز الدقائق ص۱۶۴، كتاب الأيمان) و مثله فی الهندية ج۲، ص۵۲، كتاب الأيمان، الباب الاول

## د حلالو شیانو په خپل ځان باندې د حرامولو حکم

**سوال:** که چېرته یو څوک دا ووایي چه که ما دا کارونه و نه کړل نو په ما باندې به ټول حلال شیان حرام وي۔ نو د دې سړي په باره کښې د شریعت حکم څه دی؟ آیا په دې خبره باندې قسم منعقد کیږي او که نه؟ او که منعقد کیږي نو کفاره به ئې څه وخت ادا کوي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په نوموړي صورت کښې که دا سړی له مرګ نه مخکښې هغه جائز کار وکړي کوم چه ده قسم څنې کړی دی نو له حنث نه بچ کیږي۔ البته که چېرته په ټول ژوند کښې له نوموړي جائز کار نه دا سړی پاتې شي او وئې نه کړي نو د ژوند په آخري مرحلو کښې دا سړی حانث ګڼل کیږي چه له مخې ئې په وارثانو باندې د کفارې ادا کول لازم دي۔ د ټولو حلالو شیان عموم ته په کتو سره دا اندازه لګیږي چه ښځه ئې په دې وخت کښې په طلاق بائن باندې ترې جلا کیږي۔

قال العلامة الحصكفیؒ: (كل حل) او حلال الله او حلال المسلمين (علیّ حرام) زاد الكمال او الحرام يلزمنی و نحوه (فهو علی الطعام و الشراب) و لكن الفتوٰی فی زماننا (علی انه تبين امرأته الخ. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۳، ص۶۵، كتاب الأيمان)

قال العلامة ابو البرکات عبد الله ابن احمد ابن محمود النسفیؒ: کل حل علیّ حرام علی الطعام و الشراب و الفتوی علی انه نبین امرأته بلا نیة. (کنز الدقائق ص۱۶۶، کتاب الایمان) و مثله فی الهندیة ج۲، ص۵۵/۵۶، الفصل الاول، الباب الثانی، کتاب الایمان)

## "که چیرته فـــــلان کار وکړم نو کافر به یم" دا قسم دی او که نه؟

**سوال:** یوه سړي د اسې قسم وخوړ چه که چیرته زه فلان کار وکړم نو کافر کیږم. اوس که چیرته هغه نوموړی کار وکړي نو په عقیده باندې ئې کوم اثر پریووزي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چیرته د اسړی بې علمه وي او د ائې عقیده وي چه له د اسې قسم څخه حانث کیدونکی سړی کافر کیږي نو د حنث په صورت کښې نوموړی هم کافر کیږي. او په بل صورت کښې یعنې چه عالم وي او عقیده ئې د اسې نه وي نو نه کافر کیږي بلکه حانث کیږي او کفاره پرې لازمیږي.

لما فی الهندیة: و لو قال ان فعل کذا فهو یهودی او نصرانی او مجوسی او بریٔ من الاسلام او کافر او یعبد من دون الله او یعبد الصلیب او نحو ذٰلك مما یکون اعتقاد کفر فهو یمین استحساناً کذا فی البدائع فی لو فعل ذٰلك الفعل یلزمه الکفارة و هل یصیر کافراً اختلف المشائخ فیه. قال شمس الائمة السرخسیؒ و المختار للفتوٰی انه کان عنده انه یکفر متٰی اتی بهذا الشرط و مع هذا اتی یصیر کافر الرضاء با لکفر و کفارته ان یقول لا اله الا الله محمد رسول الله و ان عنده انه اذا اتی بهٰذا الشرط لا یصیر کافراً لا یکفر و هٰذا اذا حلف بهٰذا الالفاظ علی امرٍ فی المستقبل و اما اذا حلف بهٰذا الفاظ علی امر فی الماضی بان قال هو یهودی او نصرانی او مجوسی ان فعل کذا امس و هل یعلم انه قد کان فعل انه لا یلزمه الکفارة عندنا لانه یمین غموس و هل یصیر کافراً اختلف المشائخ فیه. قال شمس الائمة السرخسیؒ و المختار الفتوٰی انه کان عنده ان هذا یمین و لا یکفر متٰی خلف به لا یکفر و ان عنده انه یکفر متٰی حلف به یکفر رضاه با لکفر. (الفتاوٰی الهندیة ج۲، ص۵٤، الباب الثانی، کتاب الایمان)

قال العلامة الحصکفی رحمه اللهٰ: (و) القسم بقوله (ان فعل کذا فهو) یهودی او نصرانی او فاشهدوا علی با لنصرانیة او شریك الکفار او (کافر) فیکفر بحنثه لو فی المستقبل اما الماضی عالماً بخلافه فغموس و اختلف فی کفره (و) الاصح ان الحالف (لم یکفر) سواء (علقه بماض او ات ان کان عنده) فی اعتقاده انه (یمین و ان) جاهلا و عنده انه یکفر فی الحلف با لغموس و بمباشرة الشرط فی المستقبل (کفر فیها لرضاه با لکفر) (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۳، ص۵۹، کتاب الایمان) و مثله فی خلاصة الفتاوٰی ج۳، ص۱۲۷، الفصل الثانی، کتاب الایمان)

## په قرآن مجید باندې د قسم خوړلو حکم

**سوال:** په قرآن مجید باندې قسم خوړل څنګه دي؟ آیا قسم پرې کیږي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** لکه څرنګه چه د قسم دار و مدار په عرف باندې وي د دې لپاره متاخرینو مفتیانو د عرف په بناء په قرآن کریم باندې قسم خوړل قسم بللی دی.

قال العلامة الحصکفی رحمه اللهٰ: قال الکمالؒ و لا یخفٰی ان الحلف با لقرآن الآن متعارف فیکون یمیناً او اما



الحلف بکلام اللهٰ فیدور مع العرف. و قال العینیؒ و عندی ان المصحف یمین لا سیما فی زماننا و عند الثلاثة المصحف و القرآن و کلام اللهٰ یمین. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص۵۱/۵۲، کتاب الایمان)

قال العلامة زین الدین ابن نجیم المصری رحمه اللهٰ: و فی فتح القدیر ثم لا یخفیٰ ان الحلف با لقرآن الآن متعارف فیکون یمیناً کما هو قول الائمة الثلاثة. (البحر الرائق ج٤، ص۲۸۶، کتاب الایمان) و مثله فی الهندیة ج۲، ص۵۳، الفصل الاول، الباب الثانی، کتاب الایمان)

## د زرو روژو د نیولو قسم کول

**سوال:** یوه سړي وویل چه د هیچا غیبت نه کوم او که مې وکړ نو قسم دی چه زر روژې به نیسم. وروسته له دې نه هغه سړي غیبت وکړ نو اوس په ده باندې د پوره زرو روژو نیول لازم دي او که یو ائې د قسم کفاره پرې لازمیږي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د د اسې سړي د قسم په کفارې (د دریو روژو په نیولو) سره له قسم څخه غاړې خلاصیږي.

لما فی الهندیة: و ان علق بشرط لا یرید کدخول الدار او نحوه یتخیر بین الکفارة و بین عین ما التزمه. و روی ان ابا حنیفةؒ الی التخییر ایضا و بهذا یفتی اسماعیل الزاهد قال رضی الله عنه هو اختیاری ایضا کذا فی المبسوط. (الفتاوی الهندیة ج۲، ص۶۵، الفصل الثانی فی الکفارة، کتاب الایمان)

قال العلامة ابن نجیم المصری رحمه اللهٰ: ان فعلت کذا فعلی حجة او صوم سنة او صدقة ما املکه اجزاه من ذٰلك کفارة یمین و هو قول محمدؒ و یخرج عن العهدة با لوفاء بما سمی ایضا اذا کان شرطا لا یرید کونه لان فیه معنی الیمین و هو المنع و هو بظاهره نذر فیتخیر و یمیل الی ان الجهتین شاء. (البحر الرائق ج٤، ص۲۹۵، کتاب الایمان)

## په فلاني جومات کښې چه لمونځ وکړم نو کافر به وم

**سوال:** یوه سړي وویل چه که چیرته زه په فلاني جومات کښې لمونځ وکړم نو کافر به وم او بیا هغه په نوموړي جومات کښې لمونځ وکړ. او س د نوموړي سړي په باره کښې د شریعت څه حکم دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د ا سړی په نوموړی جومات کښې د لمانځه د ورکولو نه وروسته حانث کیږي او کفاره پرې لازمیږي لیکن کافر کیږي نه.

لما فی الهندیة: و لو قال ان فعل کذا فهو یهودی او نصرانی او مجوسی او بریء من الاسلام او کافر او یعبد من دون الله او یعبد الصلیب او نحو ذٰلك مما یکون اعتقاده کفر فهو یمین استحساناً کذا فی البدائع حتٰی لو فعل ذٰلك الفعل یلزمه الکفارة و هل یصیر کافراً اختلف المشائخ فیه. قال شمس الائمة السرخسیؒ و المختار للفتوٰی انه کان عنده انه یکفر متٰی اتی بهذا الشرط و مع هذا اتی یصیر کافر الرضاء با لکفر و کفارته ان یقول لا اله الا اللهٰ محمد رسول اللهٰ و ان عنده انه اذا أتی بهٰذا الشرط لا یصیر کافراً لا یکفر الخ. (الفتاوی الهندیة ج۲، ص۵٤، الباب الثانی فیما یکون یمینا و ما لا یکون یمیناً)

قال العلامة الحصکفی رحمه اللّٰه: (و) القسم بقوله (ان فعل کذا فهو) یهودی او نصرانی او فاشهدوا علی با لنصرانیة او شریك الکفار او (کافر) فیکفر بحنثه لو فی المستقبل اما الماضی عالماً بخلافه فغموس و اختلف فی کفره (و) الاصح ان الحالف (لم یکفر) سواء (علقه بماض او آت ان کان عنده) فی اعتقاده انه (یمین و ان) جاهلا و عنده انه یکفر فی الحلف با لغموس و بمباشرة لشرط فی المستقبل (کفر فیها لرضاه با لکفر) (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۳، ص۵۹، کتاب الایمان) و مثله فی خلاصة الفتاوٰی ج۲، ص۱۲۷، کتاب الایمان، الجنس الاول)

## کــــــه مې له عمر سره خبرې وکړې نو له مور سره به مې زنا کړې وي، دا قســـــم نه دی

**سوال:** زید وویل چه که چېرته ما له عمر سره خبرې وکړې نو دا به داسې وي لکه ما چه له مور سره زنا کړې وي. اوس زید له عمر سره په خبرو کولو باندې مجبوروي. نو آیا د خبرې کولو په صورت کښې په زید باندې څه شی لازمیږي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په نوموړي صورت کښې زید له عمر سره خبرې کولی شي او هیڅ مؤاخذه پرې نشته ځکه چه دا قسم نه دی. سربیره پر دې دا الفاظ د ظهار موجب هم نه دي د عدم تشبه له وجهې او د ایلاء موجب هم نه دي لعدم ارادة زوجة.

لما فی الهندیة: لو قال ان فعلت کذا فان زان او سارق او شارب خمر او اکل ربٰو فلیس بحالف کذا فی الکافی. (الفتاوی الهندیة ج۲، ص۵۵، الفصل الاول، الباب الثانی فیما یکون یمینا و ما لا یکون یمینا)

قال العلامة الحصکفی رحمه اللّٰه: (و الا ان) فعله غضبه الخ او هو زان او سارق او شارب خمر او اکل ربا لا یکون قسما لعدم التعارف فلو تعورف هل یکون یمینا ظاهر کلامهم نعم و ظاهر کلام الکمال لا و تمام فی (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۳، ص۶۲، کتاب الایمان) و مثله فی کنز الدقائق ص۱۵۵، کتاب الایمان)

## له ورور سره د تعلقاتو د نه ساتلو قسم خوړل

**سوال:** یوه سړي قسم وخوړ چه زه له نن نه وروسته له خپل حقیقي ورور سره تعلقات نه ساتم. اوس د مور د ناراضه کیدو له وجهې له ورور سره بیرته تعلقات غواړي. که چېرته خپل قسم مات کړي نو ده ته شرعا څه حکم دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** داسې قسم ماتول واجب دي. داسړی به قسم ماتوي او کفاره به ئې ادا کوي. او که نه وي نو ګنهګار به وي.

قال العلامة الحصکفی رحمه اللّٰه: و من حلف علی معصیة کعدم الکلام مع ابویه او قتل فلان الیوم وجب الحنث و التکفیر. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۳، ص۶۲، مطلب کفارة الیمین)

قال العلامة عبید اللّٰه بن مسعود بن تاج الشریعةؒ: و من حلف علی معصیة کعدم الکلام مع ابویه حنث و کفر. (شرح الوقایة ج۲، ص۱۳۹، کتاب الایمان) و مثله فی مختصر القدوری ص۲۰۲، کتاب الایمان)



## د "محمد رسول اللّٰه ﷺ امتي به نه یم" په الفاظو قسم خوړل

**سوال:** یوه سړي داسې وویل چه که چېرته مې فلانی جامې واغوستې نو زه به د نبي علیه الصلوٰة و السلام امتي نه یم. او وروسته ئې هغه جامې واغوستې. اوس د نوموړي سړي په باره کښې د شریعت حکم څه دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** دا الفاظ د قسم الفاظ دي. له دې وجهې د حانث کیدو په صورت کښې به دا سړی کفاره ادا کوي. البته په حانث کیدو باندې ئې په ایمان کوم اثر نه پریووزي.

قال العلامة الحصکفیؒ: تعلیق الکفر با لشرط یمین و سیجیء بانه ان اعتقد الکفر به یکفر و الا یکفرّ (ای تلزمه الکفارة). (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۳، ص۵۲، مطلب فی القرآن اما الخلق بکلام اللّٰه)

قال العلامة طاهر بن عبد الرشید البخاری رحمه اللّٰه: و فی قوله هو یهودی ان فصل کذا و حنث لزمته الکفارة و هل اختلف المشائخ فیه قال الشیخ الامام شمس الائمة ان اعتقده یمینا یکون یمینا و اعتقده کفرا یکون کفرا علی ما یأتی فی الفاظ الکفر. (خلاصة الفتاوٰی ج۴، ص۴۱، کتاب الایمان) و مثله فی الهندیة ج۲، ص۵۴، الفصل الثانی، الاباب الاول)

## د توحید د کلمې په ویلو سره د قسم د انعقاد حکم

**سوال:** په ځینو علاقو کښې دا رواج دی چه د کومې خبرې په یقین ورکولو باندې او د مخاطب د مطمئن کولو لپاره د توحید کلمه وایي او خبره کوي. په عرف کښې خو دا ډول عمل قسم ګڼل کیږي. نو آیا یوازې د کلمې په ویلو سره قسم خوړل کیږي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** واضحه دې وي چه د قسم د انعقاد حکم په نیت او ارادې پورې اړه لري کوم چه په انعقاد کښې ئې عرف پوره دخل لري. د کلمې ویل اګرکه پخپله په ذات کښې قسم نه دی لیکن چه چېرته د عرف په موجودګي کښې د کلمې ویل د قسم په نیت سره وي نو هلته قسم پرې واقع کیږي.

لما فی الهندیة: و لو قال لا اله الا اللّٰه لافعلن کذا لا یکون فلیس بیمین الا ان ینوی یمیناً و کذٰلك سبحان اللّٰه و اللّٰه اکبر لافعلن کذا فی سراج الوهاج. (الفتاوی الهندیة ج۲، ص۵۵، الفصل الاول، الباب الثانی)

قال الشیخ طاهر بن عبد الرشید البخاریؒ: و فی التجرید عن محمدؒ لو قال لا اله الا اللّٰه افعل کذا او سبحان اللّٰه لیس بیمین الا ان ینوی. (خلاصة الفتاوٰی ج۲، ص۱۲۶، کتاب الایمان، الجنس الاول) و مثله فی رد المحتار ج۳، ص۵۲، کتاب الایمان)

## له آسماني کتابونو څخه د بیزارۍ قسم خوړل

**سوال:** زید قسم وخوړ چه که چېرته ما فلانی کار وکړ نو زه به له څلور واړو آسماني کتابونو نه بیزاره یم. او له هغه نه وروسته ئې هغه کار و هم کړ. نو اوس په دې صورت کښې به دی حانث کیږي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** دا الفاظ د قسم الفاظ دي له دې وجهې د حانث کیدو په صورت کښې

به په نوموړي باندې کفاره واجبه وي۔

قال العلامة ابو الليث السمرقندیؒ: و لو قال ان افعل كذا فانا بریء من الكتب الاربعة فان حنث فعليه كفارة واحدة. (الفتاوی النوازل ص۶۳)

و فی الهندية: و لو قال ان فعلت كذا فانا برئ من الكتب الاربعة فهو يمين واحدة. (الفتاوی الهندية ج۲، ص۵۷، الفصل الاول، الباب الثانی) و مثله فی البحر الرائق ج۴، ص۲۸۵، كتاب الايمان)

## د کوم دیني مصلحت په خاطر د قسم ماتول

**سوال:** که چیرته د قسم له خوړلو نه وروسته انسان ته دا احساس وشي چه د قسم د خوړلو په وخت کښې مې له بې احتیاطۍ څخه کار اخیستی دی نو آیا په داسې حالت کښې د قسم پوره کول ضروري دي او که څان حانثول او کفاره ادا کول مناسب دي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چیرته یو څوك د کوم کار د کولو یا نه کولو قسم وکړي او وروسته بیا د هغه کار په مخالفت کښې کوم دیني مصلحت مخته ورشي نو په نوموړي باندې لازم دي چه خپل قسم مات کړي او کفاره ادا کړي۔

عن ابی موسیٰ عن النبی ﷺ قال ما علی الارض يمين احلف عليها فاریٰ غيرها خيراً منها الا آتيته. (سنن النسائی ج۲، ص۱۴۳، باب من حلف علی يمين غيرها خيراً)

قال الامام الحافظ المجتهد ابو عبد الله محمد بن الحسن الشيبانیؒ: و قد بلغنا عن النبی ﷺ انه قال من حلف علی يمين فرأی غيرها خيرا منها فليأت الذی هو خير و ليكفر عن يمينه. (كتاب الاصل المعروف با لمبسوط ج۳، ص۱۹۰، كتاب الايمان) و مثله فی الهداية ج۲، ص۴۸۳، كتاب الأيمان)

## د یمین یعنې قسم په کفاراتو کښې د تداخل حکم

**سوال:** یو سړي ډیر قسمونه خوړلي دي او هر وار ئې هم د قسم د نه پوره کولو له وجهې حانث شوی دی۔ اوس هغه ته د خپلې غلطۍ احساس پیدا شوی دی نو آیا د نوموړي لپاره به د ټولو قسمونو یوه کفاره وي او که به د هر قسم څان څانته کفارې ادا کوي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د صورت مسئوله مطابق احتیاط په دې کښې دی چه ګنې کفارې ادا کړي یعنې د هر قسم څان څانته کفاره ادا کړي۔

قال العلامة الحصكفیؒ: تتعدد الكفارة لتعدد اليمين. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۳، ص۵۲)

البته که چیرته ئې مخکښې کفاره ادا کړې نه وي نو د امام محمد رحمه الله په نزد یوه کفاره هم ورته کافي ده۔

قال العلامة ابن عابدين رحمه الله: و فی البغية كفارات الايمان اذا كثرت تداخلت و يخرج با لكفارة الواحدة عن عهدة الجميع. و قال شهاب الائمة هذا قول محمدؒ قال صاحب الاصل هو المختار عندی آه مقدسی. و مثله فی القهستانی عن المنية. (رد المحتار ج۳، ص۵۲، كتاب الايمان)



و فی الهندية: اذا حلف الرجل علی امر لا يفعله ابداً ثم حلف فی ذلك المجلس او مجلس آخر لا افعله ابداً ثم فعله كانت عليه كفارة يمينين و هذا اذا نوی يمينا اخری او نوی التغليظ او لم يكن له نية و اذا نوی با لكلام الثانی اليمين الاولیٰ عليه كفارة واحدة. (الفتاوی الهندية ج۲، ص۵۲، كتاب الايمان) و مثله فی كتاب الاصل المعروف بالمبسوط ج۳، ص۲۳۷/۲۳۸، كتاب الايمان)

## د قسم د کفارې د ادا کولو طریقه

**سوال:** که چیرته څوك خپل قسم مات کړي نو څومره کفاره پرې لازمیږي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د قسم کفاره د یوه غلام آزادول یا لسو مسکینانو ته د دوو وختونو ډوډۍ ورکول یا لسو مسکینانو ته د اسې جامه ورکول چه د بدن اکثره حصه ئې پرې پټیږي۔ البته که چیرته د مالي کفارې د ادا کولو قدرت و نه لري نو بیا د دریو روژو په نیولو سره ئې غاړې خلاصیږي۔

قال الله تبارك و تعالی: فَكَفَّارَتُهُ إِطْعَامُ عَشَرَةِ مَسَاكِينَ مِنْ أَوْسَطِ مَا تُطْعِمُونَ أَهْلِيكُمْ أَوْ كِسْوَتُهُمْ أَوْ تَحْرِيرُ رَقَبَةٍ فَمَن لَّمْ يَجِدْ فَصِيَامُ ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ ذَٰلِكَ كَفَّارَةُ أَيْمَانِكُمْ. (سورة المائدة آيت )

قال ابو البركات النسفیؒ: و كفارته تحرير رقبة او اطعام عشرة مساكين كما فی الظهار او كسوتهم بما يستر عامة البدن فان عجز عن احداهما صام ثلثة ايام متتابعات. (كنز الدقائق ص۱۶۵/۱۶۶، كتاب الايمان) و مثله فی الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۳، ص۶۰، كتاب الايمان)

## د خوراك په ورکولو کښې د تسلسل یعنې پرله پسې والي حکم

**سوال:** لکه څنګه چه د روژې په کفاره کښې مسکینانو ته د خوراك په ورکولو کښې تسلسل یعنې پرله پسې والی ضروري دی همد ارنګه د قسم په کفاره کښې هم تسلسل ضروري دی او که نه؟ یا دا چه کله ئې یوه مسکین ته دوه وخته ډوډۍ ورکړه او بیا په دا منځ کښې څه وخت تیر شو بیا ئې یو او دوو مسکینانو ته دوه وخته ډوډۍ ورکړه۔ په همدې ډول ئې په مختلفو وختونو کښې د کفارې د حساب په پوره کولو سره کفاره ادا کیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د قسم په کفاره کښې که چیرته لس ورځې مسلسلې ډوډۍ ور نه کړي بلکه په منځ کښې څه ناڅه ناغه وکړي نو څه پروا نه لري یوازې د مسکینانو د تعداد پوره کول ضروري دي۔

قال العلامة قاضيخانؒ: و فی كفارة يمين يعتبر العدد. (فتاویٰ قاضيخان ج۲، ص۲۸۶)

قال العلامة ابن عابدين رحمه الله: و لو عشاهم فی رمضان عشرين ليلة اجزاء الخ. (رد المحتار ج۳، ص۵۳، كتاب الايمان) و مثله فی خلاصة الفتاوی ج۲، ص۱۲۵، جنس آخر فی كفارة اليمين)

## د روژو په صورت کښې د کفارې په ادا کولو کښې تسلسل ضروري دي

**سوال:** د قسم د ماتولو یعنې حانث کیدو په صورت کښې که چیرته روژې ونیسي نو په دغو روژو کښې پرله پسې والی ضروري دی او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د قسم د كفارې په صورت كښې د روژو په نيولو كښې تسلسل ضروري دى كه چېرته له كومې وجهې په منځ كښې ترې پاتې شي نو له سره به درې روژې نيسي۔

قال العلامة المرغيناني: فان لم يقدر على احد الاشياء الثلاثة صيام ثلاثة ايام متتابعات. و قال الشافعي: يخير لاطلاق النص و لنا قرائة ابن مسعود رضى الله عنهما فصيام ثلاثة ايام متتابعات و هى كا لخبر المشهور. (الهداية ج۲، ص۴۶۰، فصل فى كفارة اليمين)

قال الشيخ طاهر بن عبد الرشيد البخاري: و فيه ايضا كفارة المعسر صيام ثلٰثة ايام متتابعات و لو حاضت المرأة فى الثلث استقبلت بخلاف كفارة صيام رمضان. (خلاصة الفتاوىٰ ج۲، ص۱۲۵، كتاب الايمان، كفارة اليمين) و مثله فى الهندية ج۲، ص۶۱، الفصل الثانى كتاب الايمان)

## د قسم كفاره يوه سړي ته د وركولو حكم

**سوال:** د قسم په كفاره كښې كه يو څوك لسو مسكينانو ته خوراك وركوي نو آيا د لسو مسكينانو د خوراك برابره فديه يوه مسكين ته د ملكيت په توګه هم وركولى شي او كه به ئې خامخا لسو مسكينانو ته وركوي؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د قسم د كفارې فديه يوه مسكين ته په يو ځل په يوه ورځ وركول اګر كه د ځينو اقوالو له مخې د غاړې د خلاصيدو لپاره كافي دي ليكن د صحيح رائې مطابق داسې كول صحيح نه دي۔ د دې لپاره بهتره دا ده چه په دې كښې د تعدد رعايت وساتي او لسو مسكينانو ته ئې ځان ځانته وركړي۔

و فى الهندية: و لو اعطى مسكينا واحدا عشرة اثواب فى مرة واحدة لم يجزه كما فى الطعام و ان اعطاه فى كل يوم ثوبا حتى استكمل عشرة اثواب فى عشرة ايام اجزاه كما فى الطعام. (الفتاوى الهندية ج۲، ص۶۲، كتاب الايمان، الفصل الثانى)

قال العلامة ابن عابدين: اى تحقيقا او تقديرا حق لو اعطى مسكينا واحدا فى عشرة ايام كل يوم نصف صاع يجوز و لو اعطاه فى يوم واحد بدفعات فى عشر ساعات قيل يجز و قيل لا هو الصحيح. (رد المحتار ج۳، ص۶۰، كتاب الايمان، مطلب كفارة اليمين) و مثله فى فتاوىٰ قاضيخان ج۲، ص۲۸۷، كتاب الايمان)

## د ناذر (نذر كوونكي) له خپل نذر څخه د څه خوړلو حكم

**سوال:** كه چېرته يو چا نذر منلى وي او پخپله هم ډېر غريب وي نو له خپل نذر شوي شي څخه څه خوړلى شي او كه نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** نذر شوى شى واجب التصدق وي او د مصرف ځاى ئې يوازې فقيران او مسكينان دي۔ د دې لپاره له نذر څخه نه غنيان څه خوړلى شي او نه پخپله نذر منونكى څه خوړلى شي اګر كه پخپله ناذر فقير هم وي۔ د دې لپاره نذر له غربت څخه نه متاثر كيږي۔

قال العلامة الحصكفي: و لو ترك التضحية و مضت ايامها (تصدق بها حية ناذر) فاعل تصدق (لمعينة) و لو



فقيرا و لو ذبحها تصدق بلحمها و لو نقصها تصدق بقيمة النقصان ايضا و لا يأكل الناذر منها فان اكل تصدق بقيمة ما اكل. (الدر المختار على هامش رد المحتار ج۵، ص۲۰۳/۲۰۴، كتاب الاضحية)

قال الشيخ طاهر بن عبد الرشيد البخاري: لا يأكل الناذر منها و لو اكل منها فعليه قيمتها (خلاصة الفتاوىٰ ج۴، ص۳۲۰، كتاب الاضحية، الفصل الرابع فيما يجوز من الاضحية و فيما لا يجوز) و مثله فى بدائع الصنائع فى ترتيب الشرائع ج۵، ص۶۸، كتاب التضحية فصل و اما كيفية الوجوب فانواع)

## په نذر كښې د منل شوي شي د قيمت د اداكولو حكم

**سوال:** يوه سړي د اسې نذر په ځان و مانه چه كه چېرته زما فلانى كار وشو نو زه به غويي يا ميښه حلالوم او غوښه به ئې په فقيرانو تقسيموم۔ د هغه كار په كيدو باندې اوس نذر منونكى سړى د غوا يا ميښې د غوښو د ويشلو په ځاى د هغه قيمت وركول غواړي نو آيا په د اسې كولو سره ئې نذر اداكيږي او كه به پخپله نذر شوى شى خامخا وركوي؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په واجبو صدقاتو كښې بنيادي فلسفه د فقيرانو او غريبانو د ضرورياتو او د هغو د حاجاتو پوره كول دي۔ د كوم چه وعده ئې الله تعالى په دې الفاظو وَمَا مِن دَآبَّةٍ فِى الاَرْضِ اِلاَّ عَلَى اللهِ رِزْقُهَا سره كړې ده۔ د دې لپاره نذر منونكي ته دا اختيار شته چه كه پخپله هم هغه نذر شوى شى اداكوي او كه ئې قيمت اداكوي۔

قال العلامة الحصكفي: نذر ان يتصدق بعشرة دراهم من الخبز فتصدق بغيره جاز ان ساوى العشرة كتصدقه بثمنه. (الدر المختار على هامش رد المحتار ج۳، ص۷۱ مطلب فى احكام النذر النذر غير المعلق لا يختص بزمان و مكان و درهم و فقير)

و فى الهندية: و يجوز دفع القيم فى الزكوٰة عندنا و كذا فى الكفارات و صدقة الفطر و العُشر و النذر كذا فى الهداية. (الفتاوى الهندية ج۱، ص۱۸۱، الباب الثالث فى زكوٰة الذهب و الفضة و العروض، الفصل الثانى فى العروض) و مثله فى خلاصة الفتاوىٰ ج۱، ص۲۴۳، كتاب الزكوٰة. الفصل الثامن فى اداء الزكوٰة)

## د نذر شوي شي د مقصد له پوره كيدو څخه مخكښې د اداكولو حكم

**سوال:** يوه سړي وويل چه كه چېرته زما فلانى كار وشو نو زه به فلانى شى د الله په نامه صدقه كوم۔ اوس كه چېرته نوموړى د كار له پوره كيدو څخه مخكښې نذر اداكړي نو آيا نذر ئې اداكيږي او كه نه؟ او كه د كار له پوره كيدو نه وروسته د نذر پوره كول ضروري دي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د نذر واجب والى چه كله په كوم كار پورې مشروط شي نو د شرط له موجودګي نه مخكښې مشروط نه واجبيږي او نه ئې اداكول صحيح دي۔ له دې وجهې د كار له كيدو نه مخكښې د نذر په اداكولو سره ئې غاړې نه خلاصيږي او نذر به دوباره اداكوي۔

قال العلامة ابن عابدين رحمه الله: بخلاف النذر المعلق فانه لا يجوز تعجيله قبل وجود الشرط. (الرد المحتار ج۳، ص۷۰، مطلب فى احكام النذر، النذر غير المعلق لا يختص بزمان و مكان و درهم)

قال العلامة علاؤ الدین الکاسانیؒ: و ان کان معلقا بشرط نحو ان یقول ان شفی الله مریض او ان قدم فلان الغائب فلله علیّ ان اصوم شهرا او اُصلّی رکعتین اَو تصدق بدرهم و نحو ذٰلك فوقته وقت الشرط فما لم یوجد الشرط لا یجب با لاجماع و لو فعل ذٰلك قبل وجود الشرط یکون نفلا لان المعلق با لشرط عدم قبل وجود الشرط. (بدائع الصنائع فی ترتیب الشرائع ج۵، ص۹۳، کتاب النذر، فصل و اما حکم النذر الخ) و مثله فی البحر الرائق ج۴، ص ۲۹۱، کتاب الایمان)

## د نذر په روژو کښې د تسلسل (پرله پسې والي) حکم

**سوال:** که چېرته یوه سړي د څو روژو د نیولو نذر ومني نو آیا په دغو روژو کښې تسلسل ورته ضروري دی او که چه کله وغواړي نو خپل نذر پوره کولی شي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته ئې د پرله پسې روژو نیت نه وي کړی نو بیا تسلسل ضروري نه دی او که د پرله پسې والي نیت ئې کړی وي نو بیا تسلسل ورته ضروري دی۔

و فی الهندیة: و لو قال لله علیّ ان اصوم شهراً متتابعاً لزمه التتابع و ان اطلق لیخیر. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص ۲۱۰، کتاب الصوم، الباب السادس فی النذر)

قال العلامة فخر الدین حسن بن منصور بن محمود المعروف بقاضی خانؒ: لو قال لله علیّ صوم مثل شهر رمضان قال ان ارا و مثله فی الوجوب فله ان یفرق و ان ارا و فی التتابع فعلیه ان یتتابع و ان لم یکن له نیة فله ان یصوم متفرقا. (الفتاوی قاضی خان ج۱، ص۲۰۵، کتاب الصوم) و مثله فی الفتاوی الهندیة ج۱، ص۲۰۹، کتاب الصوم، الباب السادس فی النذر)

## د نذر شوي غوا د منافعو حکم

**سوال:** د یوې غوا کومه چه د الله لپاره نذر شوې وي بچی پیدا شي نو د دې څه حکم دی؟ آیا بچی به ئې د نذر منونکي وي او که به هغه هم صدقه کوي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** چه کله څوك کوم څناور نذر کړي نو دا حکم ئې په ټولو اجزاوو باندې جاري کیږي۔ چونکه بچی هم د دې یو جز دی۔ له دې وجهې د غوا غوندې بچی به ئې هم واجب التصدق وي۔

قال العلامة الحصکفیؒ: و لدت الاضحیة ولد قبل الذبح یذبح الولد معها و عند بعضهم یتصدق به بلا ذبح. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۵، ص۲۰۵، کتاب الاضحیة)

قال الامام فخر الدین حسن بن منصور المعروف بقاضی خانؒ: و لو ولدت ولدا یکون ولدها للاضحیة. (فتاوی قاضی خان علی هامش الهندیة ج۳، ص۳۴۷، کتاب الاضحیة، فصل فی صفة الاضحیة و وقت وجوبها و من تجب علیه) و مثله فی بدائع الصنائع فی ترتیب الشرائع ج۵، ص۷۹/۷۸، کتاب التضحیة، فصل و اما بیان ما یستحب قبل التضحیة)

## د نذر دارو مدار په الفاظو باندې دی

**سوال:** یوه سړي وویل چه که چېرته فلانی شی زما لاس ته راغی نو دومره روپۍ به خیرات کړم په داسې حال کښې چه په زړه کښې ئې دا اراده وي "که چېرته هغه شی صحیح وي" لیکن په ژبې باندې دا تعین و نه کړ۔ اوس د نوموړي شي په لاس ته ورتلو سره معلومه شوه چه خراب دی۔ نو آیا په نوموړي باندې هم هغومره روپۍ خیراتول واجب دي او که په مطلوبه شي کښې د خرابۍ له وجهې د خیرات په روپو کښې کمی یا زیاتی کیدی شي؟ بینوا توجروا۔



**الجواب باسم ملهم الصواب:** د نذر د پوره کولو ټول دارو مدار په الفاظو پورې وي او نیت ډېر دخل پکښې نه لري۔ د دې لپاره چه کله الفاظ مطلق وي نو د هغه شي د لاس ته راتلو په صورت کښې د ټاکل شویو روپو خیراتول واجب دي اګر که هغه شی روغ او ښه نه وي۔

قال العلامة التمرتاشیؒ: و من نذر نذراً مطلقاً او معلقاً بشرط و کان من جنسه (واجب) فرض و هو عبادة مقصودة وجد الشرط المعلق به لزم الناذر کصوم و صلوٰة و صدقة. (تنویر الابصار علی هامش رد المحتار ج۳، ص۶۷/۶۶، کتاب الایمان)

قال العلامة برهان الدین ابو الحسن علی بن ابی بکر المرغینانیؒ: و ان علق النذر بشرط فوجد الشرط فعلیه الوفاء بنفس النذر. (الهدایة ج۲، ص۴۶۳، کتاب الایمان، فصل فی الکفارة) و مثله فی شرح الوقایة ج۲، ص ۲۴۰، کتاب الایمان)

## په نذر شویو روژو کښې د عدم تسلسل حکم

**سوال:** جناب مفتي صاحب! ما ته د کینسر مرض لګیدلی وو۔ د بیماري په ورځو کښې ما دا نذر منلی وو چه که چېرته الله تعالی ښه کړم نو زه به دوه میاشتې روژې نیسم۔ اوس الحمد لله ښه شوی یم او د روژو د نیولو قابل یم نو آیا زه به دوه میاشتې مسلسلې روژې نیسم او که غیر مسلسلې ئې هم نیولی شم۔ دا خبره هم په نظر کښې ونیسی چه د بیمارۍ له وجهې مې بدن ډېر کمزوری شوی دی۔ د قرآن او سنت په رڼا کښې ځواب راکړی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د نوموړي صورت په ځواب کښې یو څه تفصیل شته۔ او هغه دا چه که چېرته تا د نذر د منلو په وخت کښې تتابع یعنې د دوو میاشتو پرله پسې روژو نیت کړی وي نو بیا به دوه میاشتې مسلسلې روژې نیسی او که چېرته مو د پرله پسې نیت نه وي کړی نو شریعت تا ته د مسلسلو او غیر مسلسلو روژو دواړو اجازت درکړی دی۔ که چېرته غیر مسلسلې روژې مو هم نیولې نو بیا به شپیته روژې پوره کوی۔ پاتې شوه دا چه که چېرته مو د بدن کمزوري زیاته وي نو تر پوره جوړیدو پورې انتظار هم کولی شي۔

لما قال العلامة الحصکفی رحمه الله: و کذا الحکم لو نکر السنة او شرط التتابع فیفطرها لکنه یقضیها هنا متتابعة و یعید لو افطر یوما بخلاف المعینة و لو لم یشترط التتابع یقضی خمسة و ثلاثین. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲. ص ۴۳۴، کتاب الصوم، مطلب فی الکلام علی النذر)

لما قال العلامة مولانا اشرف علی تهانویؒ: فی الدر المختار قبل با لاعتکاف: و کذا الحکم لو نکر السنة او شرط التتابع الی قوله و لو لم یشترط التتابع یقضی خمسة و ثلاثین آه له دې روایت څخه ثابته شوه چه که چېرته ئې تتابع شرط کړی نه وي نو تتابع واجب نه دی۔ البته د منهیه د ورځو په عوض کښې به روژې نیسي ترڅو چه یوه میاشت پوره شي۔ (امداد الفتاوٰی ج۲، ص۵۵۸/۵۵۷، کتاب النذر) و مثله فی خلاصة الفتاوٰی ج۱، ص ۲۶۱، الفصل الرابع فی النذر)

قال العلامة علاؤ الدين الكاساني: و ان كان معلقا بشرط نحو ان يقول ان شفى الله مريض او ان قدم فلان الغائب فلله علىّ ان اصوم شهرا او اُصلّی رکعتین او تصدق بدرهم و نحو ذٰلك فوقته وقت الشرط فما لم يوجد الشرط لا يجب با لاجماع و لو فعل ذٰلك قبل وجود الشرط يكون نفلا لان المعلق با لشرط عدم قبل وجود الشرط. (بدائع الصنائع فى ترتيب الشرائع ج۵، ص۹۳، كتاب النذر، فصل و اما حكم النذر الخ) و مثله فى البحر الرائق ج۴، ص۲۹۱، كتاب الايمان)

## د نذر په روژو کښې د تسلسل (پرله پسې والي) حکم

**سوال:** که چېرته يوه سړي د څو روژو د نيولو نذر ومني نو آيا په دغو روژو کښې تسلسل ورته ضروري دی او که چه کله وغواړي نو خپل نذر پوره کولی شي؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته ئې د پرله پسې روژو نيت نه وي کړی نو بيا تسلسل ضروري نه دی او که د پرله پسې والي نيت ئې کړی وي نو بيا تسلسل ورته ضروري دی۔

و فى الهندية: و لو قال لله علىّ ان اصوم شهراً متتابعاً لزمه التتابع و ان اطلق ليخير. (الفتاوى الهندية ج۱، ص۲۱۰، كتاب الصوم، الباب السادس فى النذر)

قال العلامة فخر الدين حسن بن منصور بن محمود المعروف بقاضى خانؒ: لو قال لله علىّ صوم مثل شهر رمضان قال ان ارا و مثله فى الوجوب فله ان يفرق و ان ارا و فى التتابع فعليه ان يتتابع و ان لم يكن له نية فله ان يصوم متفرقا. (الفتاوى قاضى خان ج۱، ص۲۰۵، كتاب الصوم) و مثله فى الفتاوى الهندية ج۱، ص۲۰۹، كتاب الصوم، الباب السادس فى النذر)

## د نذر شوي غوا د منافعو حکم

**سوال:** د يوې غوا کومه چه د الله لپاره نذر شوې وي بچی پيدا شي نو د دې څه حکم دی؟ آيا بچی به ئې د نذر منونکي وي او که به هغه هم صدقه کوي؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** چه کله څوك کوم څناور نذر کړي نو دا حکم ئې په ټولو اجزاوو باندې جاري کيږي۔ چونکه بچی هم د دې يو جز دی۔ له دې وجهې د غوا غوندې بچی به ئې هم واجب التصدق وي۔

قال العلامة الحصكفىؒ: و لدت الاضحية ولد قبل الذبح يذبح الولد معها و عند بعضهم يتصدق به بلا ذبح. (الدر المختار على هامش رد المحتار ج۵، ص۲۰۵، كتاب الاضحية)

قال الامام فخر الدين حسن بن منصور المعروف بقاضى خانؒ: و لو ولدت ولدا يكون ولدها للاضحية. (فتاوى قاضى خان على هامش الهندية ج۳، ص۳۴۷، كتاب الاضحية، فصل فى صفة الاضحية و وقت وجوبها و من تجب عليه و مثله فى بدائع الصنائع فى ترتيب الشرائع ج۵، ص۷۹/۷۸، كتاب التضحية، فصل و اما بيان ما يستحب قبل التضحية)

## د نذر دارومدار په الفاظو باندې دی

**سوال:** يوه سړي ووېل چه که چېرته فلانی شی زما لاس ته راغی نو دومره روپۍ به خيرات کړم په داسې حال کښې چه په زړه کښې ئې دا اراده وي "که چېرته هغه شی صحيح وي" ليکن په ژبې باندې دا تعين ونه کړ۔ اوس د نوموړي شي په لاس ته ورتلو سره معلومه شوه چه خراب



دی۔ نو آيا په نوموړي باندې هم هغومره روپۍ خيراتول واجب دي او که په مطلوبه شي کښې د خرابۍ له وجهې د خيرات په روپو کښې کمی يا زياتی کيدی شي؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د نذر د پوره کولو ټول دارومدار په الفاظو پورې وي او نيت ډېر دخل پکښې نه لري۔ د دې لپاره چه کله الفاظ مطلق وي نو د هغه شي د لاس ته راتلو په صورت کښې د ټاکل شويو روپو خيراتول واجب دي اګر که هغه شی روغ او ښه نه وي۔

قال العلامة التمرتاشیؒ: و من نذر نذراً مطلقاً او معلقاً بشرط و كان من جنسه (واجب) فرض و هو عبادة مقصودة وجد الشرط المعلق به لزم الناذر كصوم و صلوٰة و صدقة. (تنوير الابصار على هامش رد المحتار ج۳، ص۶۷/۶۶، كتاب الايمان)

قال العلامة برهان الدين ابو الحسن على بن ابى بكر المرغينانیؒ: و ان علق النذر بشرط فوجد الشرط فعليه الوفاء بنفس النذر. (الهداية ج۲، ص۴۶۳، كتاب الايمان، فصل فى الكفارة) و مثله فى شرح الوقاية ج۲، ص۲۴۰، كتاب الايمان)

## په نذر شويو روژو کښې د عدم تسلسل حکم

**سوال:** جناب مفتي صاحب! ما ته د کينسر مرض لګيدلی وو۔ د بيماري په ورځو کښې ما دا نذر منلی وو چه که چېرته الله تعالی ښه کړم نو زه به دوه مياشتې روژې نيسم۔ اوس الحمد لله ښه شوی يم او د روژو د نيولو قابل يم نو آيا زه به دوه مياشتې مسلسلې روژې نيسم او که غير مسلسلې ئې هم نيولی شم۔ دا خبره هم په نظر کښې ونيسی چه د بيمارۍ له وجهې مې بدن ډېر کمزوری شوی دی۔ د قرآن او سنت په رڼا کښې ځواب راکړی؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د نوموړي صورت په ځواب کښې يو څه تفصيل شته۔ او هغه دا چه که چېرته تا د نذر د منلو په وخت کښې تتابع يعنې د دوو مياشتو پرله پسې روژو نيت کړی وي نو بيا به دوه مياشتې مسلسلې روژې نيسې او که چېرته مو د پرله پسې نيت نه وي کړی نو شريعت تا ته د مسلسلو او غير مسلسلو روژو دواړو اجازت درکړی دی۔ که چېرته غير مسلسلې روژې مو هم نيولې نو بيا به شپيته روژې پوره کوی۔ پاتې شوه دا چه که چېرته مو د بدن کمزوري زياته وي نو تر پوره جوړيدو پورې انتظار هم کولی شي۔

لما قال العلامة الحصكفى رحمه الله: و كذا الحكم لو نكر السنة او شرط التتابع فيفطرها لكنه يقضيها هنا متتابعة و يعيد لو افطر يوما بخلاف المعينة و لو لم يشترط التتابع يقضى خمسة و ثلاثين. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج۲. ص۴۳۴، كتاب الصوم، مطلب فى الكلام على النذر)

لمـــــا قال العلامة مولانا اشرف على تهانویؒ: فى الدر المختار قبل با لاعتكاف: و كذا الحكـــم لو نكر السنة او شـــرط التتابع الى قوله و لو لم يشترط التتابع يقضى خمسة و ثلاثين آه له دې روايت څخه ثابته شوه چه که چېرته ئې تتابع شرط کړی نـــــه وي نو تتابع واجب نه دی۔ البته د منهيه د ورځو په عوض کښـــــې به روژې نيسي ترڅو چه يوه مياشت پوره شي۔ (امداد الفتاوىٰ ج۲، ص۵۵۸/۵۵۷، كتاب النذر) و مثله فى خلاصة الفتاوىٰ ج۱، ص۲۶۱، الفصل الرابع فى النذر)

## د نابالغ هلك د نذر شرعي حیثیت

**سوال:** جناب مفتي صاحب! زما د يوه زوی عمر لس کاله دی او د پنځم صنف طالب علم دی۔ د ده سالانه امتحان نژدې شو او خپلې مور ته ئې وويل چه که په امتحان کښې کامیاب شوم نو ځلور روژې به نیسم او سل روپۍ به د الله په نامه د نذر په توګه ورکوم۔ اوس د پوښتنې مسئله دا ده چه آیا په امتحان کښې د کامیابیدو نه وروسته په نوموړي هلك باندې د ځلورو روژو نیول او سل روپۍ په صدقه کښې ورکول لازم دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** نابالغ هلك لکه څرنګه چه غیر مکلف وي له دې وجهې د ده د منل شوي نذر پوره کول واجب نه دي۔ نو څکه که ستا زوی د پنځم صنف په امتحان کښې کامیاب هم شي نو بیا هم په ده باندې د ځلور روژو نیول او د سلو روپو نذر ورکول واجب نه دي۔

لما قال الشیخ اشرف علي تهانويؒ: سو ال: (۶۷۶) نابالغ هلك کوم چه عاقل وي که نذر معین یا غیر معین په ځان ومني د مقصود د پوره کیدو په صورت کښې په هغه باندې د نذر پوره کول واجب دي او که نه؟

الجواب: په هلك باندې د نذر پوره کول واجب نه دي۔ که چېرته هغه نذر ئې مالي وي نو ادا کول به ئې جائز هم نه وي۔ (امد اد الفتاوی ج ۲، ص ۵۵۷، کتاب النذر)

## د نذر شوي شي د نه پیدا کیدو په صورت کښې د هغه د قائم مقام حکم

**سوال:** یوه سړي د اوبښ د حلالولو نذر ومانه لیکن د دوی په ځای کښې د اوبښ پیدا کیدل مشکل دي او که پیدا کیږي هم نو دومره ګران چه د اخیستو له قدرت نه د باندې وي۔ اوس د نوموړي لپاره خاص د اوبښ حلالول ضروري دي او که کوم بل څناور ئې په بدله کښې حلالولی شي؟ د قرآن و سنت په رڼا کښې ځواب راکړی مهرباني به مو وي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته نوموړی سړی په رښتیا هم په داسې ځای کښې اوسیږي چه هلته د اوبښ پیدا کیدل مشکل وي نو اوس ده ته اختیار دی چه یا به اوه ووزې یا میږې حلالوي او خپل نذر به پوره کوي او یا د درمیاني اوبښ قیمت به صدقه کوي چه په دې باندې ئې هم نذر پوره کیږي۔

لما قال العلامة الحصکفیؒ: و لو قال لله علی ان اذبح جذوراً او تصدق لحمه فذبح مکانه سبع شاة جاز. (الدر المختار بحوالهٔ امداد الفتاوٰی ج ۲، ص ۵۵۲، کتاب النذر)

لما قال العلامة اشرف علی تهانویؒ: په دې صورت کښې ده ته اختیار دی که اوه پسونه حلالوي او په مساکینو ئې خیراتوي او که د متوسطې درجې د اوبښ قیمت په مسکینانو باندې تقسیموي۔ (امداد الفتاوٰی ج ۲، ص ۵۵۲، کتاب النذر)



## مطلق نذر واجب علی التراخي دی

**سوال:** یوه سړي نذر ومانه چه که چېرته زما فلانی کار وشو نو زه به درې روژې نیسم لیکن کوم وخت ئې ورته و نه ټاکه۔ اوس ئې الحمد لله هغه کار ترسره شو په داسې حال کښې چه موسم ډیر ګرم دی چه له مخې ئې د روژې نیول ورته ډیر مشکل دی۔ نو آیا دا سړی د یخ په موسم کښې دا روژې نیولی شي او که د کار د ترسره کیدو نه فورا وروسته په ګرمي کښې د نوموړي روژو نیول ورته ضروري دي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** مطلق نذر کوم چه وقت ئې ورته نه وي ټاکلی ادا کول ئې واجب علی التراخي دی۔ د دې لپاره د صورت مسئوله مطابق د نوموړي سړي لپاره د نذر د روژو نیول په یخ موسم کښې مرخص دي۔ البته بهتره دا ده چه د کار له ترسره کیدو نه فورا وروسته نذر شوي روژې ونیسي۔

لما فی الهندیة: لو قال لله علی ان اصوم یوما فانه یلزمه صوم یوم و تعیین الاداء الیه و هو علی التراخی با لاجماع. (الفتاوی الهندیة ج ۱، ص ۲۰۹، الباب السادس فی النذر)

## د درود شریف د لوستلو نذر منل

**سوال:** ما په یوې کارخانې کښې د نوکرۍ د کولو عریضه ورکړې وه او د منظورۍ لپاره مې نذر ومانه چه په نوکرۍ کښې د لګیدو په صورت کښې به تر څلویښتو ورځو پورې هره ورځ سل وارې درود شریف وایم۔ اوس په داسې حال کښې چه عریضه مې منظوره شوې ده او په همدې ځای کښې په نوکري ولګیدم نو آیا په ما باندې تر څلویښتو ورځو پورې هره ورځ سل وارې درود شریف ویل واجب دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د نذر د انعقاد لپاره ضروري دا ده چه هغه عمل په کوم مقام باندې فرض یا واجب وي۔ د درود شریف ویل هم په ځینو ځایونو کښې واجب دي د دې لپاره د درود شریف د ویلو نذر منل صحیح دي۔ اګر که د ځینو علماء کرامو په دې کښې څه خبره شته۔ لیکن درست او راجح قول دا دی چه د درود شریف نذر منل صحیح دي۔ له دې وجهې په تا باندې تر څلویښتو ورځو پورې هره ورځ سل وارې درود شریف ویل واجب دي۔

لما قال العلامة الحصکفیؒ: و لو نذر ان یصلّی علی النبی ﷺ کل یوم کذا لزمه و قیل لا. قال ابن عابدینؒ: تحته قوله لزمه لان من جنسه فرضاً..... منه یعلم انه لا یشترط کون الفرض قطعیا و قوله قیل لا لعل وجهه اشتراط کون الفرض قطعیا...... قلتُ و الاحوط الاول. (رد المحتار ج ۳، ص ۱۰۵، بحوالهٔ امداد الفتاوٰی ج ۲، ص ۵۹۲، کتاب النذور)

## "زه به له خپله پلاره نه یم" د ویلو شرعي حیثیت

**سوال:** د پښتنو په علاقو کښې دا خبره عامه ده چه کله یو څوك پخپلې خبرې باندې چا ته پوخ یقین ورکوي نو داسې وایي چه که چېرته ما دا کار داسې و نه کړ نو زه به د خپل پلار له نطفې

څخه نه يم پيدا شوی. د پوښتني خبره دا ده چه آيا په دې ډول الفاظو باندې يمين (قسم) منعقد کيږي او که نه؟ که چېرته يو څوك خپل دا ډول قسم پوره نه کړي نو کفاره پرې لازميږي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د قسم د انعقاد لپاره ضروري دي چه د الله تعالى په ذات يا صفاتو باندې خوړل شوی وي له دې پرته قسم نه منعقد کيږي. په صورت مسئوله کښې په نوموړي الفاظو قسم نه منعقد کيږي او نه ئې په مخالفت کوونکي باندې کفاره لازميږي.

لما قال العلامه مفتي عزيز الرحمٰن رحمه الله: (سوال) که چېرته د اسې ووايي چه "که ستاسو کره راغلم نو زه به له خپله پلاره نه يم بلکه له کوم خاکروب څخه به يم" بيا که ورشي نو کفاره پرې لازمه ده او که نه؟

(الجواب) په دې کښې کومه کفاره نشته ورتگ ورته جائز دی. (عزيز الفتاوی ج۱، ص۵۷۲، کتاب الايمان)

## له کومې ګناه څخه توبه ايستل قسم نه دی

**سوال:** يوه سړي په ډك مجلس کښې وويل چه زه توبه باسم چه په راتلونکي کښې به غلا نه کوم. يو څه وخت په همدې توبې باندې ولاړ وو ليکن بيا د غلا جرم ترې صادر شو. اوس په نوموړي سړي باندې شرعا کوم حکم جاري کيږي؟ يعنې د توبې مذکوره الفاظ قسم ګڼل کيږي او په نوموړي باندې د قسم کفاره لازميږي او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** دا ډول الفاظ اګر که د کومې خبرې د توثيق لپاره مفيد وي ليکن د قسم ثابتوونکي نه دي. له دې وجهې په نوموړي باندې هيڅ کفاره نشته. البته د غلا غوندې په بد عمل باندې د دوباره ګرفتاريدو په صورت کښې به مال خپل اصل مالك ته واپس کوي او الله تعالى ته به استغفار کوي نو انشاء الله ګناه به ئې معاف شي.

لما قال العلامه اشرف علي تهانوي رحمه الله: (سوال) که چا د اسې وويل چه زه له فلاني ګناه نه توبه باسم او له دې وروسته به ئې بالکل نه کوم نو دا به قسم وي او که نه؟

(الجواب) دا قسم نه دی. (امداد الفتاوىٰ ج۳، ص۵٤۹، کتاب الايمان)

## د يمين په کفاره کښې شلو مسکينانو ته په يوه وخت کښې خوراك ورکول

**سوال:** که چېرته يو څوك د قسم کفاره په دې ډول ادا کړي چه شلو مسکينانو ته يو وخت ډوډۍ ورکړي نو آيا په دې ډول ئې کفاره ادا کيږي او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د قسم په کفاره کښې لسو مسکينانو ته دوه وخته ډوډۍ ورکول ضروري دي. که چېرته يو څوك شلو مسکينانو ته يو وخت ډوډۍ ورکړي نو د دوو وختونو په ځای نه دريږي بلکه دا به د يوه وخت خوراك ګڼل کيږي او د دوهم وخت ډوډۍ ورکول پرې لازم دي.

لما قال العلامة ابن عابدين: و اذا غدى مسكيناً و عشیٰ غيره عشرة ايام لم يجزه لانه فرق طعام العشرة على



عشرين كما اذا فرق حصة المسكين على مسكينين. (رد المحتار ج۳، ص۷۲٦، كتاب اليمين، مطلب كفارة اليمين)

و لما قال العلامة ابو بكر بن على الحداد اليمنى: و ان غدا عشرة و عشا عشرة غيرهم لم يجزيه و كذا اذا غدا مسكيناً و عشا غيره عشرة ايام لم يجزيه لانه فرق طعام العشرة على عشرين يحصل لكل واحد منهم المقدار المقدر كما اذا فرق حصة المسكين على مسكينين. (الجوهرة النيرة ج۲، ص۲۹۲، كتاب الايمان)

## په غير الله باندې د قسم خوړلو حکم

**سوال:** د ځينو علاقو خلك چه کله د کومې خبرې پخلن کوي نو بل ته وايي چه ستا په سر مې دې قسم وي زه به دا کار کوم. نو آيا په دې الفاظو باندې شرعا قسم منعقد کيږي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د قسم خوړلو په صورت کښې دوه مقصدونه په نظر کښې وي.

﴿۱﴾ د مقسم بهٖ (چه په څه شي قسم خوري) تعظيم

﴿۲﴾ د خپلې خبرې پخلن

که چېرته په صورت مسئوله کښې له دې قسم څخه د خبرې پخلن مراد وي او د مقسم بهٖ د تعظيم هيڅ شائبه نه وي نو دا شرعي قسم نه دی يوازې د خبرې د پخلن له مخې دې ته قسم ويل کيږي. د دې لپاره فقهاء کرامو دې ته جائز ويلي دي او که چېرته د مقسم بهٖ تعظيم ترې مقصود وي نو د الله په صفاتو کښې د مشارکت په بناء باندې د اسې قسم جائز نه دی.

لما قال العلامة الحصكفى: و هل يكره الحلف بغير الله تعالى قيل نعم للنهى و عامتهم لا و به افتوا لا سيما فى زماننا و حملو النهى على الحلف بغير الله لا على وجه الوثيقة كقولهم بابيك و لعمرك و نحو ذلك. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج۳، ص۷۰۵، كتاب اليمين، مطلب فى حكم الحلف بغيره تعالى)

## د وما أُهِلّ بِهٖ لِغير الله نه څه مراد دي؟

**سوال:** څه فرمايي د دين علماء د دې مسئلې په باره کښې چه يو سړی په ځنګل کښې سفر کوي او د خوراك او څښاك هيڅ شی ورسره نه وي د ډېرې لوږې نه ئې د مرګ خطره هم موجوده ده په د اسې حال کښې چه د خوراك دوه شيان ورسره موجود دي. يو نذر د غير الله په نامه او دوهم د خنزير غوښه. په دې صورت کښې له دغو دوو شيانو څخه به د کوم يوه خوراك ورته جائز وي ترڅو چه له مرګه بچ شي په د اسې حال کښې چه د قرآن کريم د دې آيت چه "اِنَّمَا حَرَّمَ عَلَيْكُمُ الْمَيْتَةَ وَالدَّمَ وَلَحْمَ الْخِنْزِيْرِ وَمَا اُهِلَّ بِهٖ لِغَيْرِ اللّٰهِ فَمَنِ اضْطُرَّ غَيْرَ بَاغٍ وَّلَا عَادٍ فَلَا اِثْمَ عَلَيْهِ اِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ☆" (پاره نمبر ۲ سورة بقرة، آيت ) له مخې مردار، وينه، د خنزير غوښه او نذر د غير الله لپاره حرام ګرځول شوي دي. له دې وجهې د دې آيت کريمه په رڼا کښې د دې مسئلې وضاحت وفرمايئ؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د مَا اُهِلَّ بِهٖ لِغَيْرِ اللّٰهِ دوه تفسيرونه شوي دي. يو دا چه له دې نه مراد هغه ځناور دی چه په وخت د ذبحې کښې ئې د غير الله نوم اخيستل شوی وي. دوهم دا چه دا ځناور د غير الله په نامه نذر شوی وي. يعنې د خوراك او څښاك هغه ټول شيان چه د غير الله

لپاره نومول شوی وي او مقصد ئې ترې دا وي چه د غیر الله تقرب (نژدې والی) حاصل کړي۔ د مَا اُهِلَّ بِهٖ لِغَيْرِ اللّٰهِ لومړی ډول او د خنزیر غوښه په حرمت کښې دواړه سره برابر دي۔ محتاج او مضطر ته اختیار دی چه د اضطرار په حالت کښې له دغو دواړو څخه په اندازه د ضرورت دومره وخوري چه له مرګه پرې بچ شي۔ او دوهم ډول کوم چه نذر لغیر الله دی دا اګر که حرام دی لیکن په حرمت کښې له خنزیر څخه کم دی۔ او وجه ئې دا ده چه د خنزیر حراموالی لعینهٖ دی او د غیر الله په نامه نذر حرمت لغیرهٖ دی۔ او حرمت لغیره د حرمت لعینهٖ په نسبت کمه درجه لري۔ د دې لپاره په مضطر باندې لازم دي چه د خنزیر غوښه پرېږدي د. نذر لغیر الله څخه په اندازه د ضرورت دومره خوراك وکړي چه له مرګه پرې بچ شي۔ فقط والله اعلم

## د ایصال ثواب لپاره د منل شوي نذر شرعي حیثیت

**سوال:** یوه سړي دا نذر ومانه چه زه د خپل مرحوم د ایصال ثواب لپاره هره ورځ څلور رکعته نفل لمونځ کوم او په هره میاشت کښې یو پسه د الله تعالی په نامه باندې ذبح کوم۔ تر څو میاشتو پورې خو نوموړي سړي عمل پرې وکړ لیکن د څه حادثاتو له وجهې اوس د مالي مشکلاتو سره مخامخ دی۔ نفل لمونځ خو کوي لیکن هره میاشت د پسه د حلالولو طاقت او قدرت نه لري۔ اوس د دې سړي لپاره د مقدس شریعت څه حکم دی؟ که چېرته هره میاشت پسه ذبح نه کړي نو آیا نوموړی به د خدای په نزد مجرم وي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د نذر د انعقاد لپاره دا ضروري دي چه د هغه هم جنس کوم واجب یا فرض عمل موجود وي۔ چونکه ایصال ثواب یو داسې عمل دی چه د هغه هم جنس یو واجب عمل هم موجود نه دی د دې لپاره په صورت مسئوله کښې هم د ایصال ثواب لپاره منل شوی نذر نه دی منعقد شوی۔ او اوس دا سړی چونکه نادار او غریب دی او هره میاشت پسه نه شي ذبح کولی نو په پرېښودو سره به ئې د خدای په نزد مجرم نه وي۔

لما قال العلامه ظفر احمد عثمانيؒ: (الجواب) د ایصال ثواب نذر منعقد نه وي ځکه چه هم جنس ئې کوم واجب عمل نشته او دا قاعدهٔ کلیه ده چه "ما لیس من جنسه واجب لا ینعقد النذر به" او ګواکه د تصدق هم جنس واجب عمل شته لیکن دلته اصل مقصود د مړي په روح پسې ایصال ثواب دی او د تصدق نذر تبعاً دی او په صحیح نذر کښې هم د مکان او زمان او د فقیر تعین د نذر صحت نه دی بلکه په هغه کښې د تغیر اختیار وي۔ (امداد الاحکام ج۳، ص۳۰، کتاب الایمان و النذر)

قال العلامة ابن العربیؒ: حقیقة النذر التزام الفعل با لقول مما یکون طاعة الله عز و جل و من الاعمال قربة و لا یلزم نذر المباح. بدلیل ما روی فی الصحیح ان النبی ﷺ رأی ابا اسرائیل قائماً فسئل عنه فقالوا نذر ان یقوم و لا یقعد و لا یستظل و یصوم. فقال النبی ﷺ مروه فلیصم و لیقعد و لیستظل فاخبره باتمام العبادة و نهاه عن فعل المباح. (احکام القرآن ج۱، ص۳۵۲، سورة آل عمران) و مثله فی احکام القرآن للشیخ ظفر احمد العثمانیؒ ج۲، ص۱۸، سورة آل عمران)

# كتاب الوقف

# کـــتاب الوقف

## (د وقف احکام او مسئلې)

### د جومات لپاره په وقف شوي ځای کښې د ارث دعوی نه چلیږي

**سوال:** د جومات لپاره په وقف شوي ځای کښې د جومات امام اوسیده د هغه له وفات نه وروسته ئې وارثان د ارث دعوه کوي په داسې حال کښې چه وارثان ئې د جومات د امامت او خطابت غوندې ذمه واریو سره هم نه دي تړلي. نو آیا په داسې حالت کښې د امام وارثان په دې ځای باندې د ارث دعوی کولی شي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د جومات په وقف شوي ځای باندې هیڅوک هم د دعوٰې حق نه لري. نوموړی ځای که چېرته د جومات لپاره باقاعده وقف وي نو د امام له مرګ نه وروسته د هغه د وارثانو پکښې هیڅ حق نشته. یوائې د جومات د منافعو لپاره به استعمالیږي.

لما قال العلامة الحصکفیؒ: و عندهما هو حسبها علی حکم مِلك الله تعالی و صرف منفعتها علی من احب و لو غنیا فیلزم فلا یجوز ابطاله و لا یورث عنه و علیه الفتوٰی. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۳، ص۳۹۷، کتاب الوقف)

و قال العلامة المرغینانی رحمه الله: و من اتخذ ارضه مسجداً لم یکن لهٗ ان یرجع فیه و لا یبیعه و لا یورث عنه لانه یحرز عن حق العباد و صار خالصاً لله تعالی. (الهدایة ج۲، ص۶٤٥، کتاب الوقف، فصل فی المسجد) و مثله فی الهندیة ج۲، ص٤٦٦، کتاب الوقف، الباب الثانی عشر فی الرباطات و المقابر)

### د وقف شوي زمکې د خرڅولو حکم

**سوال:** یوه سړي خپله مملوکه زمکه د جومات یا هدیرې لپاره باقاعده وقف کړله. اوس واقف (وقف کوونکی) همدا موقوفه (وقف شوي) زمکه خرڅوي. نو آیا د شریعت له مخې د موقوفه زمکې خرڅول جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د وقف له تام کیدو نه وروسته واقف ته په موقوفه زمکې کښې د هیڅ ډول ردو بدل اختیار نشته او نه ئې خرڅول ورته شرعا جائز دي.

لما قال العلامة برهان الدین المرغینانیؒ: و اذا صح الوقف لم یجز بیعه و لا تملیکه. (الهدایة ج۲، ص۲٤۰، کتاب الوقف)

قال العلامة التمرتاشیؒ: فاذا تم و لزم (ای الوقف) لا یملك و لا یعار و لا یرهن ای لا یملك التملیك لغیره با لبیع. (تنویر الابصار علی صدر رد المحتار ج٤، ص۳۵۲، کتاب الوقف) و مثله فی بدائع الصنائع ج٦، س۲۲۱، فصل حکم الواقف الجائز.)

### د بـــاغ د میوې د وقف کولو حکم

**سوال:** یوه سړي د خپل باغ د وقف کولو په وخت کښې د زمکې او د حاصلاتو تعین و نه کړ. د ده له وفات څخه وروسته چه کله د باغ ونې د ګټې وړ پاتې نه شوې نو وارثانو ئې د زمکې دعوه

قال الله تعالٰی

الطلاق مرتان فامساک بمعروف

او تسریح باحسان

وکړه. د دوی موقف دا دی چه زمونږ مورث د باغ ونې او حاصلات وقف کړي وو او زمکه ئې نه وه وقف کړې. چونکه اوس نه د باغ ونې پاتې دي او نه ئې حاصلات، د دې لپاره دا زمکه مونږ پخپل منځ کښې سره ویشو. نو په دې معامله کښې هغوی تر کومه ځایه پورې په حقه دي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د شریعت له مخې د باغ د زمکې په شان د هغه د ونو او میوو وقف کول هم جائز دي. د دې لپاره په نوموړې صورت کښې د واقف الفاظو او عرف ته په کتو سره فیصله کول مناسب دي. که چېرته په علاقه کښې یواځې ونې او میوې وقف کیدلې نو بیا به د ونو او میوو اعتبار وي او که نه وي نو بیا زمکه وقف ګڼل کیږي.

لما قال العلامة برهان الدين المرغيناني رحمه اللّٰه: لان هذا صدقة با لمنفعة او بالغلة و ذٰلك قد يكون مؤبدا فمطلقه لا ينصرف الى التابيد فلا بد من التنصيص. (الهداية ج۲، ص۶۳۹، كتاب الوقف)

و قال العلامة طاهر بن عبد الرشيد البخاريؒ: و اذا وقف مالاً لاجل المساجد فانه جائز لجريان العرف به. (خلاصه الفتاوى ج۴، ص۴۱۵، كتاب الوقف، الفصل الثالث) و مثله فى التتارخانية ج۵، ص۷۲۰، كتاب الوقف)

## له وقف څخه د رجوع کولو حکم

**سوال:** یوه سړي خپله مملوکه زمکه د جومات لپاره وقف کړله او وقف تام هم شو. اوس هغه له دې وقف څخه رجوع کول غواړي نو آیا واقف له خپله وقف څخه رجوع کولی شي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** کوم سړی چه خپله مملوکه زمکه یو ځل د جومات لپاره وقف کړي او وقف تام هم وګرځي نو له دې نه وروسته واقف له خپل وقف څخه د شریعت له مخې د رجوع کولو حق نه لري.

لما قال العلامة فخر الدين الرازى الشهير بقاضى خانؒ: و عن محمدؒ و عن ابى حنيفة رحمه اللّٰه اذا جعل ارضه وقفاً على المسجد جاز و لا يكون لهٗ ان يرجع. (فتاوٰى قاضى خان على هامش الهندية ج۳، ص۲۹۱، باب الرجل يجعل داره مسجدا الخ)

و قال العلامة برهان الدين المرغينانى رحمه اللّٰه: و اذا صح الوقف لم تجز بيعه و لا تمليكه. (الهداية ج۲، ص۲۴۰، كتاب الوقف) و مثله فى بدائع الصنائع ج۶، ص۲۲۰، فصل الذى يرجع الى الموقوف)

## په موقوفه زمکه کښې د جومات د امام لپاره د کور جوړولو حکم

**سوال:** یوه سړي د جومات د مصالحو لپاره څه زمکه وقف کړې ده. اوس د جومات کمیټي د جومات د امام لپاره په نوموړې موقوفه زمکه کښې د اوسیدو لپاره یو کور جوړول غواړي نو آیا د کمیټي دا اقدام شرعا صحیح دی او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** کومه زمکه چه د جومات د مصالحو لپاره وقف شوې وي په هغې باندې د کمیټي لخوا د جومات د امام لپاره کور جوړول شرعا صحیح دي ځکه چه د جومات د



امام ضرورت هم د جومات په مصالحو کښې شامل دی.

لما قال العلامة ابن نجيم رحمه اللّٰه: و بما ذكرناه علم ان لو بنى بيتا على سطح المسجد لسكنى الامام فانه لا يضر فى كونه مسجداً لانه من المصالح. (البحر الرائق ج۵، ص۲۵۱، كتاب الوقف، فصل فى احكام المسجد)

و قال العلامة علاؤ الدين الحصكفى رحمه اللّٰه: و يبدأ من غلته بعمارته ثم ما هو اقرب لعمارته كامام مسجد و مدرس مدرسة يعطون بقدر كفايتهم. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج۴، ص۳۶۶، مطلب يبدأ من غلة الوقف بعمارته) و مثله فى البحر الرائق ج۵، ص۲۱۱، كتاب الوقف)

## په عیدګاه کښې لوبې کول جائز نه دي

**سوال:** په عیدګاه کښې لوبې او ورزش کول د شریعت له مخې جواز لري او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** اګر که عیدګاه د شرعي جومات په حکم کښې نه دی نو ځکه ځینې فقهاء ئې د ادب او احترام دومره قائل نه دي څومره چه د جومات قائل دي. لیکن بیا هم زمونږ په معاشره کښې عیدګاه هم د جومات غوندې ګڼل کیږي نو ځکه ئې احترام هم ډیر مناسب دی او په دې کښې له هر ډول لوبې او ورزش څخه د ځان ساتل په کار دي.

لما قال العلامة ابن عابدينؒ: اما مصلّى العيد لا يكون مسجداً مطلقاً و انما يعطى له حكم المسجد فى صحة الاقتداء با لامام و ان كان منفصلاً عن الصفوف و فيما سوى ذٰلك فليس له حكم المسجد و قال بعضهم يكون مسجداً حال اداء الصلوٰة لا غير و هو الجبانة سواءٌ و يجنب هٰذا لمكان عما يجنبُ عنه المساجد احتياطاً و الظاهر ترجيح الاول لانه فى الخانية يقدم الاشهر. (رد المحتار ج۴، ص۲۵۶، الوقف فى احكام المسجد)

و قال العلامة عالم بن العلاء الانصاریؒ: و ما اتخذ لصلٰوة العيد فانه لا يكون مسجدا مطلقا و انما يعطى له حكم المسجد فى صحة الاقتداء با لامام و ان كان منفصلا عن الصفوف اما فيما سوى ذٰلك ليس له حكم المسجد قال بعضهم له حكم المسجد حال اداء الصلٰوة لا غير هو و الحيانة سواء و يجنب هٰذا المكان عما يجنبُ المسجد احتياطاً و فى الواقعات المسجد الذى اتخذ لصلٰوة العيد. فا لمختار للفتوٰى انه مسجد فى حق جواز الاقتداء و ان انفصلت الصفوف و اما فى عدا ذٰلك فلا رفقا با لناس. (فتاوى تاتارخانية ج۵، ص۸۴۵، كتاب الوقف، مسائل وقف المساجد) و مثله فى البحر الرائق ج۵، ص۲۴۸، كتاب الوقف)

## له موقوفه زمکې څخه د عشر ادا کول ضروري دي

**سوال:** یوه سړي د مدرسې لپاره څه زمکه وقف کړې ده او وقف تام شوی هم دی نو آیا د نوموړې موقوفه زمکې د حاصلاتو عشر ورکول ضروري دي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** کومه زمکه چه د مدرسې او د اسې نورو لپاره وقف شي او وروسته پرې څه شی وکرل شي نو د حاصلاتو عشر ورکول ئې ضروري دي.

لما قال فى الهندية: قال ارض الوقف اذا كانت عشرية دفعها القيم مزارعة او معاملة فعشر جميع الخارج فى نصيب الدافع و هٰذا على قول ابى حنيفةؒ فان عنده فى الاجارة با لدراهم العشر على الاجر كا لخراج و عندهما يجب

فی الخارج فكذلك المزارعة. (الفتاوی الهندية ج۲، ص۴۲۴، کتاب الوقف، الباب الخامس)

قال العلامه المرغينانیؒ: قال ابو حنيفة رحمه الله فی قليل ما اخرجته و كثيره العشر سواء سقی سيحا او سقته السماء. (الهداية ج۱، ص۲۰۱، باب العشر) و مثله فی تنقيح الحامدية ج۱، ص۹، کتاب الصلوٰة)

## په موقوفه ځمکې باندې د ملکيت د دعوی کولو حکم

**سوال:** له ډیره وخته څخه ځمکه د جومات لپاره وقف شوې ده لیکن اوس واقف بیا د نوموړې ځمکې د ملکیت دعوه کوي- نو آیا شرعا د نوموړي دعوی صحیح ده او که نه؟ بینوا توجروا-

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته د ځمکې وقف مسلم او مبرهن وي نو دا ځمکه به باقاعده د جومات ځمکه وي او د چا ملکیت به نه ګڼل کیږي او نه ترې رجوع صحیح ده-

لما قال العلامة برهان الدين المرغينانیؒ: و من اتخذ ارضه مسجدا لم یكن له ان يرجع فيه و لا بيعه و لا يورث عنه لانه يحرز عن حق العباد و صار خاصاً لله تعالى. (الهداية ج۲، ص۴۶۵، کتاب الوقف)

و قال فی الهندية: اما حكمه عندهما زوال العين عن ملكه...... فانه يصح حتى لا يملك بيعه و لا يورث. (الفتاوی الهندية ج۲، ص۳۵۲، الوقف، الباب الاول فی تعريفه) و مثله فی الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۴، ص۳۵۲، کتاب الوقف، مطلب فی شرط واقف الكتب) .

## په موقوفه قبرستان کښې د مړي له ښخولو څخه د منع کولو حکم

**سوال:** یوه سړي د قبرستان لپاره خپله ځمکه وقف کړه کوم چه په هغې کښې په سلګونو مړي ښخ شوي دي- اوس د کلي د تنظیم مشران په نوموړي قبرستان کښې خلك د مړي له ښخولو څخه منع کوي نو آیا د کمیټي دا رویه او طریقه شرعا صحیح ده او که نه؟ بینوا توجروا-

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته د نوموړي قبرستان وقف کول مسلم او مبرهن وي نو دا ځمکه به باقاعده قبرستان وي او د کلي د کمیټي دا رویه شرعا صحیح نه ده- په دې قبرستان کښې به مړي ښخیږي او منع کول ئې جائز نه دي-

لما قال فی الهندية: و اذا كان يزول الملك عندهما يزول ملكه با لقول عند ابی يوسفؒ و هو قول الائمة الثلاثة و هو قول اكثر اهل العلم و علی هذا مشائخ بلخ و عليه الفتوٰی.... اما حكمه عندهما زوال العين عن ملكه الی...... فانه يصح حتى لا يملك بيعه و لا يورث. (الفتاوی الهندية ج۲، ص۳۵۲، الوقف، الباب الاول فی تعريفه الخ)

قال العلامة برهان الدين المرغينانی رحمه الله: و من اتخذ ارضه مسجدا لم يكن له ان يرجع و لا بيعه و لا يورث عنه. (الهداية ج۲، ص۶۴۵، کتاب الوقف) ومثله فی رد المحتار ج۳، ص۳۶۷، کتاب الوقف)

## په وقف کښې د واقف د شرائطو د معتبر والي حکم

**سوال:** یوه سړي پخپل ژوند کښې کلي والو ته د مدرسې د تعمیر لپاره ځای ورکړ او وئې ویل چه تر څو پورې په دې مدرسه کښې طالبان سبق وایي نو زه او زما وارثان به په دې ځمکې باندې د مداخلې حق نه لرو لیکن که چېرته په څه وجه په مدرسه کښې د تعلیم او تعلم سلسله بنده شي

14



نو بیا به نوموړې ځمکه زما او زما د وارثانو حق وي- اوس له څه وخت نه وروسته په نوموړې مدرسه کښې د تعلیم سلسله بنده شوې ده- نو د غه سړي وویل چه زه اوس خپله ځمکه ځان ته واپس کوم او خلکو ئې مخالفت وکړ- آیا نوموړی سړی د خپلې ځمکې د واپس اخیستلو شرعا حق لري او که نه؟ بینوا توجروا-

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په نوموړي صورت کښې چونکه واقف دا شرط له اوله لګولی دی چه که چېرته د تعلیم سلسله بنده شي نو بیا به نوموړې ځمکه زما او یا زما د وارثانو وي- نو دا وقف د عدم تایید له مخې نامقبوله او د وقف د نه تام والي په وجه نوموړې ځمکه د واقف له ملکیت څخه نه ده وتلې نو ځکه مذکوره ځمکه واقف بیرته ځانته ګرځولی شي-

لما قال العلامة ابن عابدينؒ: فان شرائط الواقف معتبرة اذا لم تخالف الشرع و هو مالك فله ان يجعل ماله حيث شاء ما لم يكن معصية و له ان يخص صقاً من الفقراء. (رد المحتار ج۴، ص۳۶۱، کتاب الوقف)

قال العلامة ابن نجيمؒ: شرط الواقف يجب اتباعه لقولهم شرط الواقف كنص الشارع ای فی وجوب العمل به و فی المفهوم و الدلالة. (الاشباه و النظائر ج۲، ص۲۲۸، کتاب الوقف) و مثله فی تنقيح الحامدية ج۱، ص۱۲۶، کتاب الوقف)

## د طلباوو لپاره د مخصوص وقف حکم

**سوال:** د دیني مدارسو لپاره کوم څناور او یا کومه غوښه چه خلك راوړي نو آیا له طلباوو نه پرته استاذان یا د مدرسې نوره عمله هم دا غوښه خوړلی شي او که نه؟ بینوا توجروا-

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته واقف څناور یا غوښه یوائې د مدرسې د طالبانو لپاره وقف کړې وي نو له طالبانو نه پرته ئې څوك نه شي خوړلی ځکه چه بیا د واقف د شرط مخالفت لازمیږي کوم چه ناجائز دی او د واقف شرط د شارع د نص غوندې وي- بیا هم د مدرسې په نامه د مدرسې د ذمه وارو حضراتو په اختیار کښې د ورکولو په صورت کښې د مدرسې لپاره د ورکړ شویو نورو عطیاتو غوندې ګرځي او بیا ئې له طلباوو پرته د مدرسې استاذان او نور ملازمین هم استعمالولی شي-

لما قال العلامة ابن عابدينؒ: قال فی الاسعاف يجب صرف الغلة علی ما شرط الواقف و فی غيره شرط الواقف كنص الشارع ای فی المفهوم و الدلالة. (تنقيح الحامدية ج۱، ص۱۲۶، کتاب الوقف)

قال العلامة الحصكفیؒ: قولهم شرط الواقف كنص الشارع ای فی المفهوم و الدلالة. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۴، ص۴۳۳، کتاب الوقف) و مثله فی الفتاوی الخيرية علی هامش تنقيح الحامدية ج۱، ص۳۴۷، کتاب الوقف)

## د کلي د مشترکه ځمکې د وقف حکم

**سوال:** یوه ټکړه ځمکه د ټول کلي مشترك ملکیت دی او په حکومتي اسنادو کښې نوموړې ځمکه د کلي له شاملاتو څخه ده- د کلي څو تنو دا ځمکه د الله په نامه وقف کړه او د وقف په تحریري سند باندې ئې ګوتې ولګولې او دستخط ئې هم وکړ په داسې حال کښې چه د کلي

تول خلك په دې وقف باندې راضي نه دي. نو آيا د اسې وقف شرعا جائز دی او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته نومورې زمکه په رښتیا هم د ټولو کلي والو مشترك ملکیت وي او ټولو مالکانو نه بلکه ځینو وقف کړې وي نو دا وقف شرعا صحیح نه دی ځکه چه دا وقف وقفِ مشاع دی. لهذا د کلي د شاملاتو د زمکې وقف د ټولو شریکانو له رضاء پرته صحیح نه دی.

لما قال العلامة فخر الدين حسن بن منصور الشهير بقاضی خانؒ: وقف المشاع عند محمدؒ لا يجوز و الفتوٰی علی قول محمدؒ. (فتاوی قاضی خان علی هامش الهندية ج۳، ص۳۰۳، فصل وقف المشاع)

قال العلامة ابن نجيم رحمه اللّٰه: و الحاصل ان وقف المشاع مسجدا! او مقبرة غير جائز مطلقاً اتفاقاً. (البحر الرائق ج۵، ص۱۹۷، كتاب الوقف) و مثله فی فتح القدير ج۵، ص۴۲۶، كتاب الوقف)

## د وقف استبدال د قاضي لپاه جائز دی

**سوال:** که چېرته یو څوك د یوې دیني مدرسې لپاره څه زمکه وقف کړي او وروسته د څه مصلحت په بناء د هغې بدلول غواړي نو د شریعت له مخې د اسې استبدال (بدلول) جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** فقهاء کرامو د ا تصریح کړې ده چه که چېرته قاضي د وقف په استبدال کښې څه مصلحت ویني نو بیا هغه ته شرعا دا اختیار حاصل دی چه د هغې استبدال وکړي. البته له قاضي پرته بل څوك دا اختیار نه لري.

لما قال العلامة فخر الدين حسن بن منصور الشهير بقاضی خانؒ: اما بدون الشرط اشار فی السير انه لا يملك الاستبدال الا القاضی اذا رأی المصلحة فی ذٰلك. (فتاوی قاضيخان علی هامش الهندية ج۳، ص۳۰۶، فصل فی مسائل الشرط فی الوقف)

قال العلامة زين الدين بن ابراهيم الشهير ابن نجيمؒ: شرط الوقف عدم الاستبدال فللقاضی الاستبدال اذا كان اصلح. (الاشباه و النظائر ج۲، ص ۲۳۰، كتاب الوقف) ومثله فی مجموعة الفتاوٰی ج۲، ص۱۱۲، كتاب الوقف)

## مشترك جائداد له تقسیم پرته د جومات لپاره دوقف کولو حکم

**سوال:** د څو کسانو یو مشترك جائداد دی چه په هغو کښې څو ملګریو څه زمکه د جومات لپاره وقف کړه په د اسې حال کښې چه ځینې شریکان پرې راضي نه دي نو آیا د شریعت له مخې د ا وقف جائز دی او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د مشترك جائداد وقف له تقسیم څخه پرته د اسې دی لکه وقف مشاع. نو ځکه د وقف د نه تام والي په وجه هغه شریکان چه پرې راضي نه دي له خپلو خپلو حصو څخه استفادې کولی شي.



لما فی الهندية: و اتفقا علی عدم جعل المشاع مسجدا او مقبرة مطلقا سواء كان مما لا يحتمل القسمة او يحتملها. (الفتاوی الهندية ج۲، ص۳۶۵، فصل فی وقف المشاع)

و قـــــال العلامة ابن نجيمؒ: و الحاصل ان وقف المشاع مسجداً او مقبرة غير جائز مطلقاً اتفاقاً و فی غيرهما ان كان مما لا يحتمل القسمة جاز اتفاقاً. (البحر الرائق ج۵، ص۱۹۷، كتاب الوقف) و مثله فی فتح القدير ج۵، ص۴۲۶، كتاب الوقف)

## د قبرستان د ونو د پلورلو حکم

**سوال:** په یوه قبرستان کښې لویې لویې ونې موجودې دي که چېرته ئې څوك وپلوري او قیمت ئې په قبرستان بیرته مصرف کړي نو آیا شرعا جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته ونې د قبرستان له جوړیدو نه مخکښې شنې شوې وي نو د زمکې د مملوك والي له وجهې ونې د زمکې د مالك دي اګر که مالك یو سړی وي یا قوم وي. البته که ونې د زمکې د قبرستان له جوړیدو نه وروسته پرې شنې شوې وي او نومورې زمکه د چا ملکیت هم نه وي بلکه د عامو مسلمانانو د قبرستان لپاره وقف شوې وي نو د دغو ونو پلورل او قیمت ئې په قبرستان یا په نورو عام المنفعت ځایونو کښې مصرفول صحیح دي.

لما فی الهندية: مقبرة عليها اشجار عظيمة فهٰذا علی وجهين اما ان كانت الاشجار قبل اتخاذ الارض مقبرة او نبت بعد اتخاذ الارض مقبرة ففی الوجه الاول المسئلة علی قسمين اما ان كانت الارض مملوكة لها مالك او كانت مواتاً لا مالك لها و اتخذ ما اهل القرية مقبرة. (الفتاوی الهندية ج۲، ص۴۷۳، الباب الثانی عشر الخ)

و قال العلامة طاهر بن عبد الرشيد البخاریؒ: مقبرة عليها اشجار ان كانت نابتة قبل اتخاذ الارض مقبرة و الارض مملوكة لها مالك جعلها مقبرة فا لاشجار باصلها علی مِلك رب الارض يصنع الورثة با لاشجار ما شاء وا لان الشجرة لا تدخل تحت الوقف...... و ان كانت الارض مواتا لا مالك لها باصلها علی حالها القديمة هٰذا كله اذا كانت الاشجار نابتة قبل اتخاذها مقبرة و لم ينبت بعد ذٰلك لا يخلوا اما ان علم غارسها او لا يعلم ان علم كانت للغارس و ان لم يعلم بها غارس فا لحكم للقاضی. (خلاصة الفتاوٰی ج۴، ص۴۱۹، كتاب الوقف، الفصل الثالث نوع آخر) و مثله فی البحر الرائق ج۵، ص۲۰۱، كتاب الوقف)

## د وقفِ مشـــــاع د اخیستلو او پلورلو حکم

**سوال:** که چېرته یو څو کسان څه روپۍ سره یو ځای کړي او د جومات لپاره زمکه پرې واخلي کوم چه مالکانه حقوق ئې هم د دوی په نامه منتقل شوی وي. لیکن اوس د دې ځای د بدلولو ضرورت پیدا شوی دی آیا نومورې کسان دا ځای پلورلی شي او په بل ځای کښې د جومات لپاره پرې زمکه اخیستلی شي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د څو کسانو په ګډه سره د جومات لپاره د زمکې اخیستل د وقف مشاع په حکم کښې دی کوم چه صحیح نه دی. له دې وجهې په نومورې صورت کښې د

نومړو کسانو د اخیستل شوې زمکې د جومات لپاره د تام وقف د نه موجودیت له وجهې په پلورلو کښې کوم مانع موجود نه دی۔ په داسې حالت کښې بهتره دا ده چه د زمکې د اخیستلو نه مخکښې نومړي کسان یوه سړي ته دا روپۍ هبه کړي او موهوب له خپلې روپۍ او موهوبه روپۍ سره یو ځای کړي او زمکه پرې واخلي او بیا دې جومات ته وقف کړي۔ کوم چه په دې ډول اخیستلو سره ئې بیا بدلول جائز نه دي۔

لما فی الهندية: وقف المشاع المحتمل للقسمة لا يجوز عند محمدؒ و به اخذ مشائخ بخارٰی و عليه الفتوٰی. (الفتاوی الهندية ج۲، ص۳۶۵، فصل فی وقف المشاع)

قال العلامة ابن نجيمؒ: و الحاصل ان وقف المشاع مسجدا او مقبرة غير جائز ملطقا اتفاقا. (البحر الرائق ج۵، ص۱۹۷، کتاب الوقف) ومثله فی الهداية ج۲، ص۶۰۱، کتاب الوقف)

## د مغصوبه جائداد منافع د جوماتونو د جوړولو لپاره د وقف کولو حکم

**سوال:** یو سړی تقریبا له شپیتو کلونو څخه په یوه جائداد باندې په غصب سره قبضه کړې ده او بنه زیاته ګټه ترې لاس ته راوړي۔ اوس که چېرته نومړی د همدې ځای د منافعو څه حصه د جومات د تعمیر یا نورو خیریه کارونو لپاره وقف کړي نو آیا د شریعت له مخې به جائز وي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د مغصوب جائداد خپل مالك ته واپس کول واجب دي او د داسې جائداد منافع د غاصب لپاره په ذاتي توګه استعمال حلال نه دي او نه ئې د ثواب په نیت سره د کوم جومات یا عامه مفاد لپاره وقف کولی شي ځکه چه د وقف د صحت لپاره د هغه شي مالك والی ضروري دی۔

لما قال العلامة التمرتاشیؒ: هو حبس العين على ملك الواقف و التصدق با لمنفعة. (تنوير الابصار على هامش رد المحتار ج۳، ص۳۹۱، کتاب الوقف)

و قال العلامة ابن نجيم المصریؒ: هو حبس العين على ملك الواقف و التصدق با لمنفعة. (البحر الرائق ج۵، ص۱۸۷، کتاب الوقف) و مثله فی الهندية ج۲، ص۳۵۰، کتاب الوقف، الباب الاول فی تعريفه)

## په زاړه قبرستان باندې د مدرسې د جوړولو حکم

**سوال:** دلته یو داسې قبرستان دی چه تاریخ ئې معلوم نه دی او قبرونه ئې بالکل هوار شوي دي، په آثارو باندې ئې حیوانات څري او د خلکو لپاره د بولو او متیازو مرکز جوړ شوی دی۔ نو آیا په داسې قبرستان کښې د دیني مدرسې د جوړولو شرعا څه جواز شته او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته په رښتیا هم په قبرستان او د هغه په موقوفه زمکې باندې د قبرونو نښې نښانې نه وي او ډېر زوړ قبرستان وي کوم چه قبرونه ئې له زمکې سره برابر شوي وي نو د حیواناتو له څریدو او د ګندګۍ او بولو د مرکز له جوړیدو څخه دا بهتره او ضروري ده



چه یوه دیني مدرسه پرې جوړه شي۔

لما قال العلامة ابن عابدينؒ: و لو بلى الميّت و صار ترابا جاز دفن غيره فی قبره و زرعه و البناء عليه. (رد المحتار ج۱، ص۶۵۹، کتاب الجنائز)

و قال فی الهندية: و لو بلى الميّت و صار تراباً جاز دفن غيره فی قبره و زرعه و البناء عليه. (الفتاوی الهندية ج۱، ص۱۶۷، باب الجنائز) و مثله فی البحر الرائق ج۲، ص۱۹۵، باب الجنائز)

## په جنازه ګاه کښې د کوهي کیندل جائز دي

**سوال:** یوه سړي خپله مملوکه زمکه د جنازې د ځای لپاره وقف کړه په داسې حال کښې چه یوه بل سړي په هغې زمکې کښې کوهی په دې مقصد وکینده چه خلك ئې له اوبو څخه د اوداسه او څښلو لپاره استفاده وکړي۔ نو آیا د کوهي کیندونکي لپاره شرعا دا عمل درست دی او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د مذکوره صورت مطابق چونکه د کوهی د کیندلو عمل او اراده د زمکې د واقف له عمل او ارادې سره تکر نه دی بلکه د کوهي کیندونکي عمل د واقف د عمل او ارادې پوره کوونکی او معاون دی۔ لهذا د نومړي سړي دا عمل شرعا درست دی او هیڅ قباحت پکښې نشته۔

لما قال فی الهندية: الذی يبدأ من ارتفاع الوقف عمارته شرط الواقف ام لا ثم الى ما هو اقرب الى العمارة و اعم للصلحة کا لامام للمسجد و المدرس للمدرسة ثم السراج و البسط کذٰلك الى آخر المصالح. (الفتاوی الهندية ج۲، ص۳۶۸، الوقف، الباب الثانی)

و قال العلامة علاؤ الدين الحصکفی رحمه الله: الشعائر التی تقدم شرط ام لم يشرط بعد العمارة هی امام.......... و قناديل و حصر و ماء وضوء. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج۴، ص۳۷۱، کتاب الوقف) ومثله فی الخانية على هامش الهندية ج۳، ص۳۸۸، قبل کتاب اللقطة)

## د هبې په لفظ سره د کوم شي د وقف کولو حکم

**سوال:** که چېرته یو سړی د زمکې د وقف کولو په وخت کښې د هبې لفظ استعمال کړي او یا داسې ووایي چه ما دا زمکه جومات ته ورکړې ده نو آیا په دې سره وقف صحیح کیږي او که نه؟ او آیا دا زمکه به د وقف ګڼل کیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** چونکه د "هبه" او "اعطاء" په لفظ سره هم دائمي حقوق ورکول کیږي نو ځکه د فقهاوو د تصریحاتو په رڼا کښې په هبې او اعطاء سره هم وقف صحیح کیږي۔ له دې وجهې نومړې زمکه به د وقف زمکه ګڼل کیږي۔

لما قال فی الهندية: و لو قال وهبت داری للمسجد او اعطيتها له صح و يکون تمليکاً فيشترط التسليم کما لو قال وقفت هٰذه المائة للمسجد يصح بطريق التمليك اذا سلمه للقيم. (الفتاوی الهندية ج۲، ص۴۶۰، الفصل الثانی فی

الوقف علی المسجد)

قال العلامة عالم بن العلاء الانصاری رحمه اللّٰه: و لو قال وهبت داری للمسجد او اعطیتها له صح و یکون تملیکاً فیشترط التسلیم کما لو قال وقفت هٰذه المائة للمسجد. (الفتاوی التاتارخانیة ج۵، ص۸۵۳، کتاب الوقف، مسائل وقف المساجد)

## په عیدګاه کښې د شفاخـــــانې د جوړولو حکم

**سوال:** د ښار نه د باندې خلك د اختر د لمانځه لپاره یو میدان مقرر کړی دی او تقریبا تر نهو کلونو پورې پرې د اختر لمونځ ادا شوی دی۔ اوس حکومت په نوموړې میدان باندې د شفاخانې د جوړولو اراده لري او د عیدګاه لپاره په بدله کښې د یو بل ځای ورکولو ته تیار دی۔ نو آیا د حکومت دا اقدام شرعا صحیح دی او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته د نوموړې عیدګاه زمکه موقوفه وي نو حکومت پرې د شفاخانې یا نورو شیانو د جوړولو حق نه لري او شرعا د حکومت لپاره جائز هم نه دي۔ ځکه چه دا د وقف د جهت له بدلولو سره برابر دی کوم چه ناجائز دی د دې لپاره چه د واقف شرط د شارع د نص غوندې دی۔ البته که چېرته دا ځای وقف نه وي بلکه دغسې د څو کلونو راهیسې په کښې د اختر لمونځونه کیږي نو په دې صورت کښې نوموړې زمکه د نورو مقاصدو لپاره په استعمالولو کښې څه حرج نشته۔

لما قال العلامة ابن عابدینؒ: فان شرائط الواقف معتبرة اذا لم تخالف الشرع و هو مالك فله ان یجعل ماله حیث شآء ما لم یکن معصیة. (رد المحتار ج۴، ص۳۹۵، کتاب الوقف، مطلب ما خالف شرط الواقف)

و لما قال العلامة ابن البزاز رحمه اللّٰه: شرط الواقف کنص الشارع ما لم تخالف الشرع. (الفتاوی البزازیة علی هامش الهندیة ج۶، ص۲۵۱، الباب الثانی فی نصب المتولی و ما یمکنه او لا......... کتاب الوقف) و مثله فی الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۴، ص۴۵۶، کتاب الوقف)

## د واقف د شرط د اعتبار حکم

**سوال:** که چېرته یوه سړي د جومات سره ملحقه خپله دوه جریبه زمکه په دې شرط باندې د جومات لپاره وقف کړي چه د جومات سره ملحقه یوه بله ټوټه زمکه واخلي او په هغې باندې د جنازې ځای جوړ کړي۔ اوس که چېرته له کومې وجهې ملحقه زمکه لاس ته ورنه غله نو آیا نوموړی سړی د خپلې دوه جریبه زمکې د واپس اخیستلو حق لري او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** کومه زمکه چه واقف له کوم شرط سره وقف کړې وي او هغه شرط پوره کیدی نه شي نو واقف د خپلې زمکې د واپس اخیستلو حق لري۔ له دې وجهې نوموړی خپله دوه جریبه زمکه واپس اخیستلی شي۔

لما قال العلامة ابن عابدین رحمه اللّٰه: و ما خالف شرط الواقف فهو خالف للنص و هو حکم لا دلیل علیه ما



سواء کان نصه فی الوقف نصاً او ظاهراً و هذا موافق لقول مشائخنا کغیرهم شرط الواقف کنص الشارع فیجب اتباعه. (رد المحتار ج۴، ص۴۹۵، کتاب الوقف، مطلب ما خالف شرط الواقف)

قال العلامة ابن نجیمؒ: شرط الواقف یجب اتباعه لقولهم شرط الواقف کنص الشارع. (الاشباه و النظائر ج۲، ص۲۲۸، کتاب الوقف) و مثله فی مجموعه الفتاوٰی ج۲، ص۱۰۱، کتاب الوقف)

## د قبرستان لپاره په موقوفه زمکې باندې د تصرف کولو حکم

**سوال:** یوه سړي خپله زمکه د قبرستان لپاره وقف کړه او د واقف د مرګ له ۳۵ یا ۳۶ کاله وروسته د هغه زوی په نوموړې زمکې باندې یو ډول داسې تصرف کوي چه چا ته ئې خوښه شي نو مړی ئې ښخولو ته پرېږدي او چه چا ته ئې خوښه شي منع کوي ئې۔ او له دې برسیره د وقف شوې زمکې په څه حصې باندې فصل هم کري۔ اوس پوښتنه دا ده چه د پلار په موقوفه زمکې کښې د زوی کوم ډول تصرف جائز دی او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په نوموړې صورت کښې د واقف زوی د پلار له مړینې نه وروسته په دغې موقوفه زمکې کښې د هیڅ ډول تصرف حق نه لري۔ ځکه چه یو ځل د وقف له تام والي نه وروسته زمکه د مالك له ملك څخه ووځي کوم چه وروسته بیا د واقف یا د هغه د وارثانو پکښې هیڅ حق باقي نه پاتې کیږي۔

لما قال العلامة فخر الدین الزیلعی رحمه اللّٰه: و عند ابی یوسفؒ یزول مِلکه با لقول و عند محمدؒ اذا استسقی الناس عن السقایة و سکنو الخان و الرباط و دفنوا فی المقبرة زال التملیك الخ. (تبیین الحقائق ج۳، ص۳۳۱، کتاب الوقف)

و قال فی الهندیة: من جعل ارضه مقبرة لم یزل مِلکه عن ذٰلك حتی یحکم به الحاکم عند ابی حنیفةؒ و عند ابی یوسفؒ یزول ملکهٖ با لقول کما هو اصلهٖ....... و دفنوا فی المقبرة زال المِلك و یکتفی بواحد ذکر فی المبسوط ان الفتوٰی علی قولهما فی هٰذه المسائل و علیه الاجماع. (الفتاوی الهندیة ج۲، ص۴۶۴، الباب الثانی عشر فی الرباطات و المقابر) و مثله فی البحر الرائق ج۵، ص۲۵۳، کتاب الوقف)

## له جنازه ګاه څخه د لارې د بیلولو حکم

**سوال:** یوه سړي د جنازې د ځای لپاره درې جریبه زمکه وقف کړه او وقف تام شوی هم دی لیکن اوس په دې وقف شوې زمکه کښې د لارې ضرورت پیدا شو نو آیا د شریعت له مخې له دې زمکې څخه لاره جلا کولی شي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته نوموړې موقوفه زمکه له وقف کیدو نه وروسته د جنازې د لمانځه لپاره استعمال کړی شو اګر که یو وارې هم وي نو دغه وقف اوس تام شوی دی۔ له دې وروسته د لارې او نورو شیانو لپاره ئې استعمال شرعا جائز نه دی۔

لما قال العلامة التمرتاشی رحمه اللّٰه: فاذا تم و لزم (ای الوقف) لا یملك و لا یعار و لا یرهن (ای لا یقبل التملیك لغیره با لبیع). تنویر الابصار علی صدر رد المحتار ج۴، ص۳۷۲، کتاب الوقف)

قال العلامة برهان الدين المرغيناني رحمه الله: اذا صح الوقف لم تجز بيعه و لا تمليكه. (الهداية ج۲، ص ۲٤۰، كتاب الوقف) و مثله في بدائع الصنائع ج٦، ص۲۲۱، كتاب الوقف)

## د وقف غير تام د استبدال حكم

**سوال:** يوه سړي د جومات لپاره زمكه وقف كړې ده او حال دا چه نژدې يو بل جومات هم شته. ليكن بيا هم په دې ځاى باندې د جومات په جوړولو كښې فائده شته. لهذا كه چېرته نوموړى سړى د دې زمكې په بدله كښې كوم چه تر اوسه پرې جومات جوړ شوى نه دى په بل ځاى كښې جومات جوړ كړي نو شرعا به صحيح وي او كه نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د جومات د زمكې د وقف د تام والي لپاره دا شرط دى چه لار ئې جدا كړى شي او عامو خلكو ته په هغې باندې د لمانځه د كولو اجازه وركړي او په آذان او اقامت سره كم تر كمه يو ځل په جمعې سره لمونځ پرې ادا شي. چونكه په نوموړي صورت كښې دا كارونه او اقدامات نه دي شوي له دې وجهې د وقف تام د نه شتون له وجهې د زمكې مالك په هغې كښې هر ډول تصرف كولى شي او چه كله په كومې زمكې باندې يو ځل شرعي جومات جوړ شي بيا نو داسې ځاى له جومات څخه پرته د نورو مقاصدو لپاره څوك نه شي استعمالولى.

لما قال العلامة ابن نجيمؒ: و من بنى مسجداً لم يزل مِلكه عنه حتىٰ يفرزه عن مِلكه بطريقه و يأذن با لصلوٰة فيه و اذا صلى فيه واحد زال مِلكه. (البحر الرائق ج۵، ص ۲۸٤، الوقف، فصل في احكام المسجد)

لما قال العلامة المرغيناني رحمه الله: و اذا بُنى مسجدا لم يزل مِلكه عنه حتىٰ يفرزه عن ملكه بطريقه و يأذن للناس با لصلوٰة فيه و اذا صلّى فيه واحد زال عن ملكه الخ. (الهداية ج۲، ص ٦٤٤، كتاب الوقف) ومثله في الهندية ج۲، ص ٤٥٤، الوقف، الباب الحادى عشر في المسجد)

## د وقف د مملوك والي حكم

**سوال:** چا د جومات لپاره زمكه وقف كړه او په هغې باندې ئې جومات جوړ كړ او لمونځ پكښې ادا شو نو آيا دغه موقوفه زمكه د زمكې د مالك ملكيت ګڼل كيږي او كه نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** جوماتونه د الله تعالى د بندګۍ او عبادت لپاره جوړيږي. په كومې زمكې باندې د باقاعده جومات د جوړيدو نه وروسته هغه د الله تعالى ملكيت ګرځي نو ځكه نوموړې موقوفه زمكه د هيچا په ملكيت كښې هم نه شي راتلى.

لما قال في الهندية: و عندهما حبس العين على مِلكِ الله تعالى على وجه تعود منفعة الى العباد فيلزم و لا يباع و لا يوهب و لا يورث. (الفتاوى الهندية ج۲، ص ۳۵۰، كتاب الوقف)

و قال العلامة ابن عابدين رحمه الله: و عندهما حبسهما على حكم مِلك الله تعالى و صرف منفعتها على من احب و عليه الفتوىٰ قوله على حكم مِلك الله تعالى قدر لفظ الحكم ليفيد ان المراد لم يبق على مِلك الواقف و لو انتقل إلى



ملك غيره و قوله و عليه الفتوىٰ اى على قولهما يلزمه. (رد المحتار ج٤، ص۳۳۸، كتاب الوقف) و مثله في البحر الرائق ج۵، ص۱۸۷، كتاب الوقف)

## په موقوفه زمكې كښې د بيت الخلاء د جوړولو حكم

**سوال:** د جومات په احاطه كښې چه كوم ځاى د لمانځه لپاره تاكل شوى نه وي بلكه د څپليو، بوټانو او استنجا خانو او داسې نورو لپاره تاكل شوى وي نو په داسې ځاى كښې بيت الخلاء جوړول شرعا جائز دي او كه نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د جومات په احاطه كښې كوم ځاى چه د لمانځه لپاره متعين نه وي بلكه د څپليو، بوټانو او استنجا خانو او غسل خانو او داسې نورو لپاره تاكل شوى وي په هغه باندې بيت الخلاء جوړول جائز دي.

لما قال العلامة شهاب الدين احمد رحمه الله: لو جعل تحته حانوتا و جعله وقفاً على المسجد قيل لا يستحب ذٰلك و لكنه لو جعل في الابتداء هٰكذا صار مسجداً وقفاً عليه و يجوز المسجد و الوقف الذى تحتهٗ. (شلبى على هامش تبيين الحقائق ج۳، ص ۳۳۰، كتاب الوقف)

لما قال العلامة ابن نجيم المصرى رحمه الله: و بما ذكرناه علم انهٗ لو بنى بيتاً على سطح المسجد لسكنى الامام فانه لا يضر في كونه مسجداً لانه من صالح المسجد...... اذا بنى مسجدا و بنى غرفة و هو في يده فلهٗ ذٰلك و ان كان حين بناه خلى بينه و بين الناس ثم جاء بعد ذٰلك يبنى لا يتركه و في جامع الفتاوىٰ اذا قال عنيت ذٰلك فانه لا يصدق. (البحر الرائق ج۵، ص ۲۵۱، الوقف، فصل في احكام المسجد) ومثله في تبيين الحقائق ج۳، ص ۳۳۰، كتاب الوقف)

## په موقوفه زمكې باندې د وراثت د نه جاري كيدو حكم

**سوال:** يوه سړي د خپلې زمكې څه حصه د كلي والو او د هغو د ضرورياتو لپاره وقف كړې وه او يوه سړي ته ئې سپارلې وه. نو آيا د واقف له وفات نه وروسته ئې وارثان نوموړې زمكه واپس اخيستلى شي او كه نه؟ په داسې حال كښې چه متولى ئې هم وفات شوى دى او كلي وال هم نوموړې زمكې ته ضرورت لري؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د وقف د تام والي نه وروسته د واقف او يا د متولي د وفات له وجهې په وقف باندې هيڅ اثر نه پريوزي تر څو پورې چه د كلي خلك ضرورت ورته ولري تر هغو پورې به د واقف د فيصلې رعايت كيږي او دا خبره دې هم واضحه وي چه په موقوفه زمكې باندې ارث نه جاري كيږي.

لما قال العلامة علاؤ الدين الحصكفى رحمه الله: فلا يجوز له ابطاله و لا يورث عنه و عليه الفتوىٰ ابن الكمال و ابن الشمنه. (الدر المختار على هامش رد المحتار ج۳، ص۳۹۲، كتاب الوقف)

و قال في الهندية: و كذٰلك اذا جعل داره في ثغر مسكنا للغزاة او المرابطين و دافعها الى وال يقوم عليها فليس لهٗ ان يرجع فيها و ان مات لم تكن ميراثاً عنه و ان لم يسكنها احد. (الفتاوى الهندية ج۲، ص٤٦٦، الباب الثانى عشر في الرباطات) و مثله في البحر الرائق ج۵، ص۲۰٦، كتاب الوقف)

## د متروکه جائداد په وقف باندې د اقرار حکم

**سوال:** یو سړی مړ شو او څه جائداد ئې په ترکه کښې پاتې شو. په وارثانو کښې ئې یو زوی دا اقرار کوي چه زما والد صاحب دا زمکه په باقاعده توګه وقف کړې وه او حال دا چه پاتې وارثان ئې دا خبره نه مني. نو اوس په داسې حالت کښې به ټول جائداد وقف ګڼل کیږي او که یوازې به د مقر حصه وقف ګڼل کیږي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په نوموړي صورت کښې اقرار حجت قاصره هم دی او په نورو باندې اقرار هم دی کوم چه صحیح نه دی. نو ځکه د مقر د وقف اقرار به یوازې د هغه تر حصې پورې محدود وي او په نورو وارثانو باندې ئې اقرار حجت نه شي جوړیدلی. یوازې هغه حصه به وقف وي کومه چه د مقر په برخه کښې راځي.

لما قال قال فی الهندیة: و لو اقرّ با لوقف الی....... و ان کان مع المقر وارث آخر یجحد ذٰلك کان نصیب الجاحد من هٰذه الارض للجاهد یفعل ما یشآء و نصیب المقرّ یکون وقفاً علی ما اقرّ به. (الفتاوی الهندیة ج۲، ص۴۴۲، الوقف، الباب الثامن فی الاقرار)

و قال العلامة عالم بن العلاء الانصاری رحمه اللّٰه: و اما اذا کان ثمة وارث آخر فان اقر الآخر بجمیع ما اقر به هٰذا الوارث کان الجواب کما قلنا و ان انکر الواقف کان نصیب المنکر ملکاً له ینصرف فیه بما شاء و نصیب المقر وقفٌ. (الفتاوی التاتار خانیة ج۵، ص۷۳۴، کتاب الوقف، الاقرار با لوقف) و مثله فی خلاصة الفتاویٰ ج۴، ص۴۲۰، کتاب الوقف، قبل الفصل الرابع فی المسجد)



# باب المساجد

## (په جوماتونو کښې د وقف احکام او مسئلې)

## د وقف د په یاد پاتې کیدو لپاره د هغه د لیکلو حکم

**سوال:** یوه سړي د جومات لپاره د یوې ټکړې زمکې وقف کول غواړي نو که چیرته هغه د یاد داشت لپاره ولیکي چه زما د زمکې دا ټکړه د جومات لپاره وقف کړه نو د اسې کول شرعاً جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** کومه واقعه تر لیکلو لاندې راوستل د دوام او استحکام دلیل دی. په عرف کښې هم چه کومه واقعه تر لیکلو لاندې راوستل شي او په حکومتي اسنادو کښې درج کړی شي نو هغه ډېر قوي ګڼل کیږي. نو له دې وجهې د وقف د یاد ساتنې لپاره لیکل او حکومتي اسنادو ته ئې انتقالول یوازې جائز نه بلکه یو مستحسن اقدام دی. تر څو چه وروسته بیا هیڅ یوه وارث ته د انکار موقع پاتې نه شي.

ولما قال العلامة حافظ عماد الدین رحمه اللّٰه: هٰذا ارشاد منه تعالیٰ لعباده المؤمنین اذا تعاملوا بمعاملات مؤجلة ان یکتبوها لیکون ذٰلك احفظ لمقدارها و میقاتها و اضبط للشاهد فیها و قد نبه علی هذا فی آخر الآية. (تفسیر ابن کثیر ج۱، ص۳۵۸، سورة البقرة، پاره ۳)

و قال العلامة اشرف علی تهانوی رحمه اللّٰه: د معاملې لیکل د جمهورو علماوو په نزد مستحب دي. (بیان القرآن ج۱، ص۱۶۸، سورة البقرة، آیت ۲۸۲) و مثله فی تفسیر فتح القدیر ج۱، ص۳۰۰، سورة البقرة)

## د جومات لپاره په موقوفه زمکې باندې د دوکانونو د جوړولو حکم

**سوال:** د کلي څو معززو کسانو تقریباً شپږ جریبه زمکه د جامع جومات لپاره وقف کړه چه په هغې باندې یو جامع جومات جوړ شو او د جومات له تعمیر نه پاتې زمکه غیر آباده پاتې ده کومه چه خلك ئې د عیدینو د لمانځه لپاره استعمالوي. اوس نوموړي معززو کسانو او مشرانو فیصله کړې ده چه په دې غیر آبادې زمکې باندې دوکانونه یا کورونه جوړ وو او له هغو څخه حاصلیدونکې ګټه به په جومات باندې مصرفوو نو آیا د شریعت له مخې د اسې کول جواز لري او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د ذکر شوې ټکړې زمکې چه په کومې حصې باندې باقاعده جومات جوړ شوی دی اګر که دا جومات پوره جوړ شوی وي او یا د چوترې په شکل کښې په هغه باندې لمونځ کول جاري شوی وي او یا همداسې خلاص ځای وي او لمونځونه پرې کیږي نو په داسې ځای باندې د دوکانونو جوړول او یا له جومات پرته د نورو مقاصدو لپاره ئې استعمالول جائز نه دی. البته د جومات لپاره چه کومه زمکه وقف شوې وي او په هغې کښې څه حصه غیر آباده

پاتې شوې وي او تر اوسه پورې په هغې باندې څه آبادي او د اسې نور نه وي جوړ شوي نو بیا ئې له جومات نه پرته د نوموړي مقاصدو لپاره په استعمالولو کښې څه حرج نشته۔

لما قال فی الهندیة: قیم المسجد لا یجوز له ان یبنی حوانیت فی المسجد اوفی فنائه لان المسجد اذا جعل حانوتا و مسکنا تسقط حرمته و هٰذا لا یجوز و الفناء تبع المسجد فیکون حکمه حکم المسجد. (الفتاوی الهندیة ج۲، ص۶۴۲، کتاب الوقف، الفصل الثانی فی الوقف علی المسجد و تصرف القیم و غیره فی مال الوقف علیه)

و قال العلامة ابن الهمامؒ: قیم المسجد اذا اراد ان یبنی حوانیت المسجد او فی فنائه لا یجوز لهٗ ان یفعل لانه اذا جعل المسجد سکناً تسقط حرمة المسجد. و اما الفناء فلانه تبع للمسجد. (فتح القدیر ج۵، ص۴۴۶، کتاب الوقف، الفصل الاول فی المتولّی) و مثله فی التاتارخانیة ج۵، ص۸۶۰، کتاب الوقف، الفصل الحادی و العشرون فی المساجد)

## د هندوانو په متروکه زمکه کښې د جومات د جوړولو حکم

**سوال:** د پاکستان له جوړېدو نه وروسته دلته د هندوانو څه جائدادونه پاتې شوي دي چه ځینې خلك پرې قابض دي۔ د ځینو خلکو خو قبضه قانوني ده او ځینې بیا په غیر قانوني ډول سره محض د متو په زور پرې قابض دي۔ نو آیا په د اسې متروکه جائداد باندې د جومات جوړول جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په صورت مسئوله کښې چه حکومت په قانوني توګه د کومو قبضه کوونکو حق تسلیم کړی وي او هغو ته ئې مالکانه حقوق ورکړي وي نو هغه جائز مالك ګڼل کیږي او وقف ئې صحیح دی لیکن په کوم جائداد باندې چه په غصب باندې قبضه شوې وي نو د مغصوبه جائداد د وقف د عدم صحت له مخې پرې جوړ شوی جومات شرعي جومات نه بلل کیږي مګر دا چه حکومت باقاعده اجازه ورکړې وي۔

لما قال العلامة ابن نجیم رحمه اللّٰه: من شرائطه الملك وقت الوقف حتٰی لو غصب ارضاً فوقفها.......... لا تکون وقفاً. (البحر الرائق ج۵، ص۱۸۸، کتاب الوقف)

و قال فی الهندیة: (و منها) الملك وقت الوقف حتٰی لو غصب ارضا فوقفها....... لا تکون وقفاً. (الفتاوی الهندیة ج۲، ص۳۵۳، کتاب الوقف، مطلب فی وقف الذی) و مثله فی رد المحتار ج۴، ص۳۸۱، کتاب الوقف.

## د جومات د زمکې څخه د مِلك د زائل کیدلو حکم

**سوال:** د جومات د زمکې څخه د مالك مِلکیت په څه وخت کښې زائلیږي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د جومات له زمکې څخه د مالك مِلکیت یو ائحې د لمانځه په اجازه یا د همدې الفاظو په معنٰی باندې زایلیږي۔ دا د امام ابویوسفؒ قول دی او د قضاء په باب او وقف کښې د ده قول راجح او معتبر وي۔

و قال العلامة ابن نجیم رحمه اللّٰه: و قال ابو یوسفؒ یزول مِلکه بقوله جعلته مسجداً لان التسلیم عنده لیس بشرط لانه اسقاط لملك العبد فیصیر خالصاً للّٰه تعالٰی بسقوط حق العبد و صار کا لاعتاق. (البحر الرائق ج۵، ص۲۴۸،



کتاب الوقف، فصل فی احکام المساجد)

و قال العلامة طاهر بن عبد الرشید البخاریؒ: و عند ابی یوسفؒ یزول بمجرد قول الواقف و لا یجوز بیعه و لو مات لا یورث. (خلاصة الفتاوٰی ج۴، ص۴۰۷، کتاب الوقف الاوّل) ومثله فی بدائع الصنائع ج۶، ص۲۲۰، کتاب الوقف و الصدقة.

## د ړنګ جومات د تبدیلۍ حکم

**سوال:** یو جومات په څه وجهې سره شهید شوی دی او اوس کلي وال غواړي چه په بدل کښې ئې بل ځای جومات جوړ کړي او د همدې جومات سامان، زمکه او د اسې نور وپلوري نو آیا په شریعت کښې د ړنګ جومات سامان، زمکه او د اسې نورو پلورل جائز دي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** کومه زمکه چه د جومات لپاره وقف وي او په هغې باندې جومات هم جوړ شوی وي نو بیا به تر قیامته پورې جومات وي۔ تبدیلي یې په یوه صورت کښې هم جائز نه دی۔

لما قال العلامة المرغینانیؒ: و اذ صح الوقف لم یجز بیعه و لا تملیکه. (الهدایة ج۲، ص۲۴۰، کتاب الوقف)

و قال العلامة التمرتاشیؒ: فاذا تم و لزم (ای الوقف) لا یملك و لا یعار و لا یرهن ای لا یقبل التملیك بغیره با لبیع. (تنویر الابصار علی هامش رد المحتار ج۴، ص۳۵۲، کتاب الوقف) و مثله فی بدائع الصنائع ج۶، ص۲۲۰، کتاب الوقف.

## په مغصوبه زمکې باندې د جومات د جوړولو حکم

**سوال:** یوه سړي غیر مملوکه زمکه د جومات لپاره وقف کړه او خلکو پکښې تقریبا اته یا نهه کاله لمونځونه هم وکړل۔ له اتو یا نهو کلونو نه وروسته د زمکې اصل مالك دعوی وکړه چه دا ز مکه زما ده او ما دا زمکه د جومات لپاره نه ده وقف کړې۔ خلکو ورته وویل چه ته د دې په عوض او بدله کښې له مونږ نه بل ځای واخله او جومات پخپل ځای پرېږده لیکن هغه نه منل۔ نو اوس په شریعت کښې د دې جومات څه حکم دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د وقف لپاره په باقاعده توګه د مِلك تاموالی شرط دی۔ که چېرته د بل چا زمکه د هغه له اجازې نه پرته د جومات په توګه استعمال شي نو هغه دشرعي جومات په حکم کښې نه راځي۔ نو ځکه که مالك وغواړي وقف کولی ئې شي او که نه نو د جومات ړنګول او د زمکې فارغول د مالك حق دی۔

لما فی الهندیة: (و منها) الملك وقت الوقف حتٰی لو غصب ارضاً فوقفها ثم اشتراها من مالکها و دفع الثمن الیه او صالح علی مال دفعه الیه لا تکون وقفاً. (الفتاوی الهندی ج۲، ص۳۵۳، کتاب الوقف، مطلب فی الوقف الذی)

و قال العلامة ابن نجیمؒ: من شرائطه الملك وقت الوقف حتٰی لو غصب ارضاً فوقفها....... لا تکون وقفاً. (البحر الرائق ج۵، ص۱۸۸، کتاب الوقف) و مثله فی رد المحتار ج۴، ص۳۸۱، کتاب الوقف.

## موقوفه زمکه د جومات په مصالحو کښې د استعمالولو حکم

**سوال:** یوه سړي د جومات لپاره زمکه وقف کړه کوم چه تر اوسه پکښې لمونځونه نه دي شوي نو آیا دا زمکه د جومات د مصالحو لکه دوکانونه او د اسې نورو لپاره استعمالولی شي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** کومه زمکه چه د جومات لپاره وقف شوې وي او تر اوسه پرې لمونځونه نه وي شوي نو د جومات د مصالحو لپاره ئې استعمال په شریعت کښې جائز دی۔

لما قال فی الهندیة: و الاصح ما قال الامام ظهیر الدینؒ ان الوقف علی عمارة المسجد و علی مصالح المسجد سواءٌ. (الفتاویٰ الهندیة ج۵، ص ۴۵۰، کتاب الوقف، الفصل الاول فی المتولی)

و قال العلامة ابن الهمامؒ: ان الوقف علی عمارة المسجد و مصالح المسجد سواء. (فتح القدیر ج۵، ص ۴۵۰، کتاب الوقف) و مثله فی رد المحتار ج۳، ص ۴۱۲، کتاب الوقف.

## د جومات په زمکې باندې د کور د جوړولو حکم

**سوال:** یوه سړي د جومات لپاره څه زمکه وقف کړه او په هغې باندې جومات هم جوړ کړ لیکن اوس نوموړی جومات د کلي والو لپاره کافي نه دی۔ د ځینو خلکو خیال دا دی چه د دې جومات په بدل کښې په بل ځای کښې چه د جومات ټول متعلقات او سهولتونه هم ورسره جوړ شي وقف کړ او د زوړ جومات په ځای کښې ئې کور جوړ کړ نو په شریعت کښې د اسې کول جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په یوه ځای کښې چه یو واري جومات جوړ شي او په هغه کښې لمونځ هم وشي نو بیا د شرعي جومات په حکم کښې راغی او د نورو مقاصدو لپاره ئې استعمال جائز نه دی۔ بلکه هغه به پخپل اصلي حالت باندې د جومات په حیثیت باندې پرېښودل کیږي۔

لما قال العلامة الحصکفیؒ: یبقٰی مسجداً ابداً الی قیام الساعة و بهٖ یفتٰی. و قال ابن عابدینؒ فلا یعود میراثاً و لا یجوز نقله و نقل ماله الٰی مسجد آخر سواء کانوا یصلون فیه او لا و هو الفتویٰ. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۴، ص۳۵۸، کتاب الوقف، مطلب فیما لو خرب المسجد او غیره)

و قال العلامة ابو بکر الکاسانیؒ: و اما الذی یرجع الی نفس الوقف فهو النابید و هو ان یکون مؤبداً حتٰی لو وقف لم یجز لانه ازالة الملك لا الی حد. (بدائع الصنائع ج۶، ص ۲۲۰، کتاب الوقف و الصدقة، فصل و اما شرائط الجواز) و مثله فی الهدایة ج۲، ص ۶۳۹، کتاب الوقف.

## له جومات څخه د مرغیو د ځالو د لرې کولو حکم

**سوال:** په ځینو ځایونو کښې مارغان په جوماتونو کښې د اوسیدنې ځالې جوړوي او هګۍ هم پکښې کوي او بچیان هم زیږوي کوم چه له مخې ئې په جومات کښې ګندګي خپریږي۔ آیا په شریعت کښې د دوی د ځالو لرې کول او غورځول جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا۔



**الجواب باسم ملهم الصواب:** چونکه د مرغانو د ځالو په وجه په جوماتونو کښې ګند زیاتیږي او خیرنیږي او لمونځ کوونکي هم ترې په تکلیف وي نو له دې وجهې له جوماتونو څخه د مرغانو د ځالو لرې کول مرخص دي۔

لما قال فی الهندیة: و لو کان فی المسجد عش خطاف او خفاش یقذر المسجد لا باس برمیه فما فیه من الفراخ. (الفتاوی الهندیة ج۵، ص ۳۲۱، کتاب الکراهیة، الباب الخامس)

و قال العلامة الحصکفیؒ: و لا باس برمی عش خفاش و حمام لتنقیتهٖ. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۱، ص ۶۶۳، کتاب الصلوٰة، مطلب فیمن سبقت... الخ) و مثله فی البزازیة علی هامش الهندیة ج۶، ص ۳۷۲، کتاب الکراهیة، الفصل التاسع فی المتفرقات.

## په جومات کښې په جهر سره د ذکر کولو حکم

**سوال:** ځینې خلك د جُمعې په شپه کښې سره یو ځای کیږي او په جومات کښې په جهر سره د ذکر کولو سره سره ټوپونه هم وهي او سره ښکته پورته کیږي هم کوم چه له وجهې ئې لمونځ کوونکو ته ډیر تکلیف وي نو آیا نوموړو خلکو ته د اسې عمل شرعا صحیح دی او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** جومات د مسلمانانو په شریکه د عبادت ځای دی نو څکه په هغه کښې د ذکر تر نامه لاندې په مذکوره طرز او طریقې باندې ټوپونه او هنګامي صورت اختیارول په شریعت کښې ناجائز او ممنوع دی۔ البته که چېرته ذاکرین د اسې طریقه غوره کړي چه لمونځ کوونکو ته تکلیف نه وي نو بیا پکښې څه حرج نشته۔

لما قال العلامة ابن عابدین رحمه اللّٰه: و فی الملتقٰی و عن النبیﷺ انه کره رفع الصوت عند قرأة القرآن و الجنازة فما ظنّك بهٖ عند الغناء الذی یسمونه وجد او محبة فانه مکروه لا اصل لهٗ فی الدین و زاد فی الجوهرة النیرة و ما یفعله متصوفة فی زماننا حرام لا یجوز القصد و الجلوس الیه. (رد المحتار ج۶، ص ۳۴۹، کتاب الحظر و الاباحة، قبل فصل فی اللبس)

و قال العلامة حموی رحمه اللّٰه: و اجمع العلماء سلفاً و خلفاً علی استحباب ذکر اللّٰه تعالی جماعة فی المساجد و غیرها من غیر نکیر الا ان یشوش جهرهم با لذکر علی نائم او مصل او قاری کما هو مقرر فی کتب الفقه. (عیون البصائر حاشیة الاشباه و النظائر ج۴، ص ۶۱، القول فی احکام المسجد) و مثله فی التاتارخانیة ج۵، ص ۲۲۴، کتاب السیر، الفصل الاول فی بیان صفة الجهاد.

## د جومات په ټولو امورو کښې د جومات باني تر نورو خلکو زیات د تصـــــرف حق لري

**سوال:** یوه سړي په موقوفه زمکې باندې پخپلو روپو باندې جومات جوړ کړ او وروسته ځینې خلك له بل ځایه راغلل او دلته ئې نژدې له جومات سره کورونه جوړ کړل او وروسته د جومات د باني او کلي والو تر منځ اختلاف پیدا شو۔ اوس پوښتنه دا ده چه د جومات په ټولو امورو

کښې د تصرف کولو زیات حقدار څوك دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د جومات جوړوونکی د کلي د خلکو په نسبت د جومات په ټولو امورو کښې په تصرف کولو کښې له ټولو نه مقدم دی له دې وجهې د جومات باني ته د جومات په جوړولو کښې د رڼایي او اوبو په اخراجاتو کښې او د امام او مؤذن په ټاکلو کښې تر نورو کلیوالو نه وړاندې والی حاصل دی۔

لما قال العلامة ابراهیم الحلبی رحمه الله: رجلٌ بنی مسجدا و جعله لله فهو احق بمرمته و عمارته و بسط البواری و الحصیر و القنادیل و الآذان و الاقامة و الامامة فیه ان کان اهلاً لذٰلك و ان لم یکن فا لرأی فی ذٰلك الیه و کذا ولد البانی و عشیرته من بعده اولی من غیرهم. (حلبی کبیر ص۶۱۵، فصل فی احکام المسجد)

و قال العلامة ابن نجیم المصری رحمه الله: فیکون اولی بولایة کمن اتخذ مسجداً یکون اولی بعمارته و نصب المؤذن فیه. (البحر الرائق ج۵، ص۲۲۶، کتاب الوقف) و مثله فی الاشباه و النظائر ج۲، ص۲۳۳، کتاب الوقف.

## د غیر آباد یعنې ړنګ جومات زمکه د کرونده لپاره استعمالول جائز نه دي

**سوال:** خدای مکړه که چېرته کوم جومات غیر آباد شي او خلك پکښې د لمونځونو ادا کول پرېږدي نو زمکه ئې د زراعت (کروندې) لپاره استعمالول په شریعت کښې جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په کومې زمکې باندې چه یو ځل جومات جوړ شي نو هغه به تر قیامته پورې جومات وي او په هغې باندې د هر ډول فصل کرل او یا د نورو دنیوي کارونو لپاره ئې استعمالول جائز نه دي اګر که ړنګ هم وي۔

لما قال العلامة الحصکفیؒ: یبقٰی مسجدا ابداً الٰی یوم القیٰمة و بهٖ یفتٰی. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۴، ص۳۵۸، کتاب الوقف، مطلب فیما لو خرب المسجد)

و قال العلامة الکاسانیؒ: و اما الذی یرجع الٰی نفس الوقف فهو التابید و هو ان یکون مؤبداً حتّٰی لو وقت لم یجز لانهٗ ازالة المِلك لا الی حد. (بدائع الصنائع ج۶، ص۲۲۰، کتاب الوقف و الصدقة، الفصل و اما شرائط الجواز) و مثله فی الهدایة ج۳، ص۶۳۹، کتاب الوقف.

## د جومات لپاره په موقوفه کـــــــــــورونو کښې د تبلیغي حضراتو لپـــــاره د مکان یا کور د وقف کولو حکم

**سوال:** د کوم جامع جومات د جوړولو په وخت کښې ئې د جومات لاندې څه کوټې جوړې کړې او بیائې په کرایه باندې ورکړې کوم چه منافع ئې په جومات باندې مصرف کیدل۔ اوس د جومات موجوده منتظمینو دا فیصله کړې ده چه له دغو کوټو څخه یوه کوټه د تبلیغي حضراتو لپاره وقف کړی نو آیا د شریعت له مخې به دا وقف جائز وي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په صورت مسئوله کښې که چېرته لومړني واقفینو د کوټو په اړه څه



تصریح نه وي کړې بلکه مطلق ئې وقف کړي وي نو د متولي او د اهل حل و عقد لپاره د اسې کول جائز دي او نوموړې کوټه د تبلیغي حضراتو د استوګنې لپاره استعمالولی شي او که نه وي نو بیا د واقفینو د شرائطو پابندي ضروري دی۔

لما قال العلامة عالم بن العلاء الانصاریؒ: قال و اذا اراد القیم ان یبنی فیها قریة لاکرتها و حفاظها فیحرز فیها الغلة لحاجته الی ذٰلك کان لهٗ ان یفعل ذٰلك. (الفتاوی التاتارخانیة ج۵، ص۷۴۵، کتاب الوقف، الفصل السابع فی تصرف القیم..... الخ)

و قال العلامة فخر الدین الرازی الشهیر بقاضی خانؒ: و کذا لو کان الوقف خانا علی الفقراء و احتاج الی خادم یکسح الخان و یقوم و یفتح بابه و سده فسلم بعض البیوت الی رجل اجرة له لیقوم بذلك کان لهٗ ذٰلك. (فتاوی قاضی خان علی هامش الهندیة ج۳، ص۳۰۰، کتاب الوقف، باب الرجل یجعل داره مسجدا) و مثله فی الهندیة ج۲، ص۴۶۱، کتاب الوقف، الفصل الثانی فی الوقف علی المسجد...... فی مال الوقف.

## د جومات لپاره وقف شوې ګړۍ د هیچا په ملکیت کښې نه راځي

**سوال:** په یوه ځای کښې د فوج دوه ټولۍ اوسیدلې او هلته یو جومات هم موجود وو۔ کوم چه فوجیانو د نوموړي جومات لپاره په ګډه چنده وکړه او د جومات لپاره ئې ګړۍ (ساعت) واخیسته او وقف ئې کړه۔ د څه وخت له تیریدو نه وروسته یوه ټولۍ فوجیان له هغه ځایه ولاړه او ویل ئې چه مونږ دا وقف شوې ګړۍ له ځان سره وړو۔ اوس پوښتنه دا ده چه د نوموړي ټولۍ فوجیان مذکوره ګړۍ له ځان سره شرعا وړلی شي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د صورت مذکوه مطابق دغه ګړۍ چونکه د جومات لپاره وقف شوې ده او د وقف له تام والي نه وروسته د ټولو له ملکیت څخه وتلې ده لهذا دا موقوفه ګړۍ د هیڅ یوې ټولۍ والاله ځان سره نه شي وړلی۔

لما قال العلامة برهان الدین المرغینانیؒ: اذا صح الوقف لم یجز بیعه و لا تملیکه. (الهدایة ج۲، ص۲۴۰، کتاب الوقف)

و قال العلامة التمرتاشیؒ: فاذا تم و لزم (ای الوقف) لا یملك و لا یعار و لا یرهن ای لا یقبل التملیك لغیره با لبیع. (تنویر الابصار علی صدر رد المحتار ج۴، ص۳۵۷، کتاب الوقف) و مثله فی بدائع الصنائع ج۶، ص۲۲۰، کتاب الوقف، فصل و اما الذی یرجع الی الموقوف فانواع.

## د قبرستان لپاره په وقف شوې زمکې باندې د جنازه ګاه د جوړولو حکم

**سوال:** یوه سړي د قبرستان لپاه زمکه وقف کړه او چونکه دقبرستان لپاره د جنازه ګاه هم اشد ضرورت وو۔ نو آیا د واقف په اجازې سره په دغې وقف شوې زمکې کښې د جنازه ګاه جوړول شرعا جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** فقهاء کرامو دا تصریح فرمایلې ده چه په وقف کښې به د واقف نیت معتبر وي۔ لهذا د هغه لپاره د معصیت نه پرته هر ډول تصرفات جائز دي۔ او په نوموړي صورت کښې جنازه ګاه چونکه د مقبرې له ضروریاتو څخه ده او د واقف اجازه هم شته نو د جنازه ګاه په جوړولو کښې شرعا څه قباحت نشته۔

لما قال العلامة ابن عابدین رحمه الله: فان شرائط الواقف معتبرة اذا لم تخالف الشرع و هو مالك فله ان یجعل ماله حیث شاء ما لم یکن معصیة و لهٗ ان یخصّ صنفاً من الفقراء. (رد المحتار ج٤، ص٣٤٣، مطلب شرائط الوقف المعتبرة)

و قال العلامة ابن نجیمؒ: شرط الواقف کنص الشارع یجب اتباعه لقولهم شرط الواقف کنص الشارع. (الاشباه و النظائر ج٢، ص٢٢٨، کتاب الوقف) و مثله فی تنقیح الحامدیة ج١، ص١٢٦، کتاب الوقف.

## د جومات لپـــــاره د وقف شوې زمکې منافع د جومات په مصالحو باندې مصرفول

**سوال:** یو سړي خپله زمکه د جومات لپاره وقف کړه او بیا ئې په کرایه باندې ورکړه چه کافي گټه ترې لاس ته راوړل کیږي. اوس پوښتنه دا ده چه د دغې موقوفه زمکې منافع د جومات په مصالحو کښې مصرفول د شریعت له مخې جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** کومه زمکه چه د جومات لپاره وقف شوې وي او له هغې څخه گټه هم تر لاسه کیدله نو د متولي لپاره د غه گټه د جومات په مصالحو باندې مصرفول جائز دي.

لما فی الهندیة: مسجد له مستغلات و اوقاف اراد المتولی ان یشتری من غلة الوقف للمسجد دهناً او حصیراً او حشیشا....... تفعل ما تری من مصلحة المسجد کان لهٗ ان یشتری للمسجد ما شآء و ان لم یوسع. (الفتاوی الهندیة ج٢، ص٤٦١، کتاب الوقف، الفصل الثانی...... فی مال الوقف)

و قال العلامة ابن عابدینؒ: و الذی یبدأ به ارتفاع الوقف ای من غلته عمارته شرط الواقف اولا ثم ما هو اقرب الی العمارة و اعم للمصلحة کالامام المسجد....... ثم السراج و السباط الی آخر المصالح. (رد المحتار ج٤، ص١٦٧، کتاب الوقف) و مثله فی الخانیة علی هامش الهندیة ج٣، ص٢٩٧، کتاب الوقف، باب الرجل یجعل داره مسجداً.

## د جومات لپاره د موقوفه زمکې د ونو حکم

**سوال:** یو سړي څه زمکه د جومات د جوړولو لپاره وقف کړه او د جومات د دیوال سره لگیدلی د واقف کور دی. د واقف د وقف شوي جومات په صحن کښې د زړ الو ونې لگول شوي دي. اوس هغه وایي چه د ونو میوه یوائې زما حق دی او حال دا چه کلي وال ئې ترې منع کوي او د ټول کلي حق ئې بولي. شرعاً د دې میوې څه حکم دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** فقهاء کرامو تصریح کړې ده چه په وقف کښې به د واقف قول ته اعتبار ورکول کیږي. په نوموړي صورت کښې که چېرته واقف د وقف په وخت کښې تصریح کړې وي چه ما دغه ونې هم وقف کړې دي او یا ئې هیڅ هم نه وي ویلي نو په دواړو صورتونو کښې به ونې وقف وي. البته که چېرته د وقف په وخت کښې واقف د دغو ونو استثناء کړې وي بیا نو په دې صورت کښې به د واقف د قول اعتبار وي او ونې به وقف نه گڼل کیږي بلکه د واقف به خپل ملکیت گڼل کیږي.

لما قال العلامة ابن عابدینؒ: قال فی الاسعاف و یدخل فی وقف الارض ما فیها من الشجر و البناء دون الزرع.



(رد المحتار ج٤، ص٣٦١، مطلب فی وقف المنقول تبعاً للعقار)

و قال العلامة ابن نجیمؒ: و الحاصل ان الوقف کالبیع لا یدخل فیها الزرع و الثمر الا بالذکر. (البحر الرائق ج٥، ص٢٠١، کتاب الوقف) و مثله فی خلاصة الفتاوٰی ج٤، ص٤١٩، کتاب الوقف، الفصل الثالث.

## په زاړه قبرستان کښې د جومات د جوړولو حکم

**سوال:** د یوه جومات سره لگیدلی یو زوړ قبرستان دی کوم چه له دوو کلونو راهیسې چا یو مړی هم نه دی پکښې ښخ کړی او د کلي والو غوښتنه دا ده چه جومات پراخ کړي او د قبرستان څه حصه په جومات کښې گډه کړي. نو آیا د کلي والو دا اقدام شرعاً صحیح دی او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** مذکوره قبرستان که چېرته موقوفه وي او د مړیو اجساد په غالب گمان سره خاورې شوي وي او کلي والو د خپلو مړو ښخول پکښې پریښي وي نو بیا د غه قبرستان په جومات کښې گډول د اعتراض قابله خبره نه ده.

لما قال فی الهندیة: لو بلی المیت و صار تراباً جاز دفن غیره فی قبره و زرعه و البناء علیه. (الفتاوی الهندیة ج١، ص١٦٧، الباب الحادی و العشرون فی الجنائز)

و قال العلامة ابن عابدینؒ: و لو بلی المیت و صار تراباً جاز دفن غیره فی قبره و زرعه و البناء علیه. (رد المحتار ج١، ص٦٥٩، کتاب الجنائز) و مثله فی الهندیة ج٢، ص٤٦١، الباب الحادی و العشرون فی الجنائز، الفصل السادس.

## د جومات د متولي د معزولولو حکم

**سوال:** آیا کلي وال او یا د وخت حاکم د جومات متولي معزولولی شي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د جومات متولي او همدا ډول د جومات امام د خیانت کولو نه پرته هیڅوک نه شي معزولولی. او که چېرته شرعي جرم پرې ثابت شي نو بیا د جومات د امام او متولي کلیوالو او قاضي ته د معزولولو مجاز شته یعنې معزول کولی ئې شي.

لما قال فی الهندیة: و لو ان الواقف شرط الولایة لنفسه و کان الواقف غیر مامون علی الوقف فللقاضی ان ینزعها من یده. (الفتاوی الهندیة ج٢، ص٤٠٩، کتاب الوقف، الباب الخامس فی ولایة الوقف)

و لما قال العلامة ابن عابدین رحمه الله: لا یصح عزل صاحب وظیفة بلا جنحة او عدم اهلیة. قال فی البحر و استفید من عدم عزل الناظر بلا جنحة عدمها لصاحب وظیفة فی وقف بغیر جنحة و عدم اهلیة. (رد المحتار ج٤، ص٣٨٢، کتاب الوقف) و مثله فی الهدایة ج٣، ص٦٤٣، کتاب الوقف.

## عـــــامه لار په جومات کښې د ورگډولو حکم

**سوال:** یو سړي د جومات لپاره زمکه وقف کړه کومه چه د عامې لارې سره لگیدلې ده. د څه وخت له تیریدو څخه وروسته په نوموړي جومات کښې لمونځ کوونکي نه ځاییږي او د کلي والو اراده ده چه د عامې لارې څه حصه د جومات د پراخې او آزادوالي لپاره په جومات کښې

شامله کړي نو آیا په شریعت کښې د اسې کول جواز لري او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته د لارې د څه حصې په جومات کښې له ګډولو څخه لار نه تنګیدله او خلکو ته په تګ او راتګ کښې تکلیف نه جوړیده نو د اسې کول شرعا مرخص دي او که نه وي نو بیا نه دی جائز۔

لما قال العلامة فخر الدین عثمان الزیلعیؒ: اذا بنی قوم مسجدا و احتاجوا الی مکان لیتسع فادخلوا شیئا من الطریق فی المسجد و کان ذٰلك لا یضرّ باصحاب الطریق جاز ذٰلك. (تبیین الحقائق ج۳، ص ۳۳۱، کتاب الوقف، فصل و من بنی مسجداً الخ.)

لما قال العلامة شهاب الدین احمد شلبیؒ: طریق للعامة و هی واسعة فبنی فیه اهل المحلة مسجداً للعامة و لا یضرّ ذٰلك با لطریق قالوا لا بأس به قوم بنوا مسجداً و احتاجوا الی مکان لیتسع المسجد فخذوا من الطریق فادخلوه فی المسجد اذا کان ذٰلك یضر باصحاب الطریق لا یجوز و الا فلا بأس به. (شبلی علی هامش تبیین الحقائق ج۳، ص ۳۳۱، کتاب الوقف) و مثله فی البحر الرائق ج۵، ص۲۵۶، کتاب الوقف.

## د جومات په زمکه کښې د ډاکخانې د جوړولو حکم

**سوال:** یوه سړي د جومات لپاره څه زمکه وقف کړې ده او وقف تام شوی هم دی او حکومت د دې جومات د زمکې په یوه کُنج کښې د ډاکخانې د جوړولو اراده لري کوم چه منافع ئې جومات ته ورکول کیږي لیکن ملکیت به د حکومت وي۔ اوس پوښتنه دا ده چه د جومات لپاره په وقف شوې زمکې کښې د حکومت د اغراضو او مقاصدو د استعمالولو لپاره د دغې زمکې ورکول او په هغې باندې د ډاکخانې جوړول په شریعت کښې صحیح دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** کومه زمکه چه د جومات لپاره یو ځل وقف شي نو په هغې کښې د جومات له متعلقه امورو نه علاوه لکه دوکان او ډاکخانه او د اسې نور جوړول جائز نه دي ځکه چه د واقف د نیت څخه مخالفت راځي او د واقف د نیت خلاف ورزي کول شرعا جائز نه دي۔

لما قال العلامة الحصکفیؒ: ما خالف شرط الواقف فهو مخالف للنص و الحکم به حکم بلا دلیل. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۳، ص ۴۹۷، کتاب الوقف)

و قال العلامة ابن عابدینؒ: و ما خالف شرط الواقف فهو مخالف للنص و هو حکم بلا دلیل ای لا دلیل علیه سواء کان نصهٗ فی الوقف نصاً او ظاهراً و هٰذا موافق لقول مشائخنا کغیرهم شرط الواقف کنص الشارع فیجب اتباعه کما صرح به فی شرح المجمع. (رد المحتار ج۳، ص ۳۴۴، کتاب الوقف) و مثله فی الاشباه و النظائر ج۲، ص۲۲۸، کتاب الوقف.

## په جومات کښې د خیاطي (کالي ګنډلو) حکم

**سوال:** په جومات کښې خیاطي یعنې د کالي ګنډل د شریعت له مخې جائز دي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** خیاطي چونکه له دنیاوي امورو سره اړه لري او په جومات کښې له دنیاوي کارونو څخه ځان ساتل ضروري دي۔ له دې وجهې په جومات کښې د خیاطي کسب



کول شرعا مکروه دي۔ البته که چېرته څوك د جومات د حفاظت لپاره په جومات کښې د کالي ګنډلو کار وکړي نو بیا پکښې څه حرج نشته۔

لما قال الشیخ ابراهیم الحلبی رحمه اللّٰه: و الخیاطة فیه تکره الا اذا کان لضرورة حفظه عن الصبیان و نحوهم. (حلبی کبیر ص ۶۱۱، کتاب الصلٰوة، فصل فی احکام المسجد)

و قال العلامة حافظ الدین محمد بن محمد البزاز رحمه اللّٰه: و الخیاطة فیه تکره الا اذا کان لحفظ المسجد عن الصبیان و خاط و کذا الکاتب. (البزازیة علی هامش الهندیة ج۴، ص۸۲، کتاب الصلٰوة، الفصل السادس و العشرون) و مثله فی الاشباه و النظائر ج۴، ص۵۶، القول فی احکام المسجد.

## د جومـــــات د متولي او د کلي والو له اجازې پرته د جومـــــات په جوړولو کښې د تصرف حکم

**سوال:** یوه سړي زمکه واخیستله او په هغې باندې ئې جومات جوړ کړ او وروسته د نوموړي جومات متولي جوړ شو۔ اوس د بل کلي یو سړی د دغه جومات دوباره جوړول غواړي په داسې حال کښې چه متولي اجازه نه ورکوي نو آیا په شریعت کښې د متولي انکار جائز دی او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په صورت مسئوله کښې د جومات د متولي او کلیوالو له اجازې پرته د بل کلي خلکو ته د دغه جومات په رنګولو او جوړولو کښې تصرف جائز نه دی۔ د داسې معاملو اختیارات یوائې د کلي خلکو او متولي ته حاصل دی نه کوم غیر متعلقه سړي ته۔

لما قال العلامة ابن نجیم المصری رحمه اللّٰه: ارادو نقض المسجد و بنائه و احکم من الاول ان لم یکن البانی من اهل المحلة لیس لهم ذٰلك و ان کان من اهل المحلة لهم ذٰلك. (البحر الرائق ج۵، ص ۲۵۱، کتاب الوقف، فصل فی احکام المسجد)

و قال فی الهندیة: و فی الکبرٰی مسجد مبنی اراد رجل ان ینقضه و یبنیه ثانیاً احکم من البناء الاول لیس لهٗ ذٰلك لانه لا ولایة کذا فی المضمرات. (الفتاوی الهندیة ج۲، ص۴۵۷، کتاب الوقف، الباب الحادی عشر) و مثله فی البزازیة علی هامش الهندیة ج۶، ص۲۶۸، کتاب الوقف، باب الرابع فی المسجد.

## د جومات د باني لپاره خلك له جومات څخه د منع کولو حکم

**سوال:** د یوه جومات لپاره څه زمکه وقف وه او یو چا پخپل مصرف سره جومات پرې جوړ کړ او د جومات په آبادۍ کښې هیچا هم له هغه سره امداد او تعاون نه دی کړی۔ اوس د جومات له نوموړي باني سره د کلي د خلکو او امام خفګان پیدا شوی دی په داسې حال کښې چه د جومات باني دا غواړي چه د کلي خلك او امام جومات ته له تلو او راتلو څخه منع کړي نو آیا په شریعت کښې د اسې کول جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته رښتیا هم داسې وي نو د جومات د باني لپاره د ملا امام او کلي وال له جومات څخه منع کول شرعا حرام دي۔

لما قال الله تبارك و تعالى: وَمَنْ اَظْلَمُ مِمَّنْ مَّنَعَ مَسٰجِدَ اللّٰهِ اَنْ يُّذْكَرَ فِيْهَا اسْمُهٗ. (سورة البقرة، آيت ١١٤)

و قال العلامة بيضاوى رحمه الله: عام لكل من خرّب مسجدا او سعى فى تعطيل مكان مرشح للصلوٰة. (تفسير بيضاوى ج١، ص١٠٤، سورة البقرة) و مثله فى تفسير ابن كثير ج١، ص١٥٦، سورة البقرة.

## د يوه جومات چنده په بل جومات کښې د مصرف کولو حکم

**سوال:** د يوه جومات چنده په بل جومات باندې مصرفول شرعا جائز دي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د يوه جومات چنده په بل جومات کښې مصرفول په هغه وخت کښې روا کيږي چه دغه جومات ته ئې ضرورت نه وي ليکن دا خبره په زړه لرې چه کــــــه چېرته في الحال د دغې چندې نوموړي جومات ته ضرورت نه وي او په راتلونکي کښې ئې د ضرورت د پيښيدلو امکان وي نو بيا هم په بل جومات کښې د چندې مصرفول صحيح نه دي۔ بيا هم کــــــه چېرته چنده ورکوونکي اجازه کړې وي نو په بل جومات کښې ئې په مصرفولو کښې څه حرج نشته۔

لما قال العلامة الحصكفىؒ: و عن الثانى ينقل الى مسجد آخر باذن القاضى...... حشيش المسجد و حصره مع الاستغناء عنهما و كذا الرباط و البئر اذا لم ينتفع بهما فيصرف فى وقف المسجد و الرباط و البئر و الحوض الى اقرب مسجد او رباط او حوضٍ. (الدر المختار على هامش رد المحتار ج٤، ص٣٥٩، كتاب الوقف)

و قال العلامة عالم بن العلاء الانصارىؒ: و سئل شمس الائمة الحلوانى عن مسجد او حوضٍ خرب و لا يحتاج اليه لتفرق الناس هل للقاضى ان يصرف اوقافه الى مسجد آخر او حوض آخر؟ قال نعم. (الفتاوى التاتارخانية ج٥، ص٥٧٧، كتاب الوقف) و مثله فى الخانية على هامش الهندية ج٣، ص٢٩٣.

## د جومات د چت او بام د زړو چادرونو حکم

**سوال:** يو جومات کوم چه په ۱۹۰۵ء کښې جوړ شوى وو او چت ئې له چادر څخه جوړ شوى وو۔ وروسته د توسيع او فراخوالي په خاطر شهيد کړى شو او ورسره څنګ ته کلي وال د ملا امام لپاره د يوه کور جوړول هم غواړي نو اوس که چېرته د جومات زاړه چادر د امام صاحب په کور کښې استعمال کړي نو په شريعت کښې د اسې کول جائز دي او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته دغه چادر په جومات کښې نه استعماليده او د هغه د ضائع کيدلو خطره وه نو پلورل او يا ئې د امام صاحب په کور باندې لګول د شريعت له مخې مرخص دي او همدارنګه د هغه پلورل او روپۍ ئې د جومات په نوي تعمير کښې مصرفول هم جائز دي۔

لما قال العلامة عالم بن العلاء الانصارىؒ: سئل ابو بكر عن حشيش المسجد يخجر عن المسجد ايام الربيع؟ قال ان لم يكن لهٗ قيمة فلا بأس بطرحه خارج المسجد و لا بأس برفعه و الانتفاع به. (فتاوى تاتارخانية ج٥، ص٨٥٠، كتاب الوقف، الفصل الحادى و العشرون فى المساجد)

و قال العلامة طاهر بن عبد الرشيد البخارىؒ: حشيش المسجد اذا خرج من المسجد ايام الربيع ان لم يكن لهٗ



قيمة لا بأس بطرحه خارج المسجد و لا بأس بدفعه و الانتفاع به. (خلاصة الفتاوٰى ج٤، ص٤٢٥، كتاب الوقف، الفصل الرابع) و مثله فى الهندية ج٢، ص٤٥٩، كتاب الوقف، الباب الحادى عشر.

## د جومات د متولي تر وفات وروسته د جومات د اختياراتو حکم

**سوال:** يو سړى کوم چه د جومات باني وو او د جومات ټول اختيارات ورسره وو نو آيا د هغه له وفات څخه وروسته نوموړي اختيارات ئې اولاد ته منتقل کيدلى شي او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د جومات باني او متولي ته د جومات ټول اختيارات شرعا حاصل وي او د جومات لپاره د مؤذن، امام، خطيب او د اسې نور مقررول د ده حق وي۔ لهذا د هغه له وفات څخه وروسته ټول اختيارات د هغه اولاد ته نسلاً بعد النسل منتقل کيږي او هغوى پخپله خوښه د جومات په امورو کښې د جائزو او مناسبو تصرفاتو حق لري۔

لما قال العلامة ابن نجيم المصرى رحمه الله: و البانى احق با لامامة و الآذان و ولده من بعده و عشيرته اولى بذٰلك من غيرهم و فى المجرد عن ابى حنيفةؒ ان البانى اولى بجميع مصالح المسجد و نصب الامام و المؤذن اذا تأهل للامامة. (البحر الرائق ج٥، ص٢٤٩، كتاب الوقف)

و قال الشيخ ابراهيم الحلبى رحمه الله: و كذا ولد البانى و عشيرته من بعده اولى من غيرهم. (حلبى كبير ص٦١٥، فصل فى احكام المسجد) و مثله فى خلاصة الفتاوٰى ٤، ص٤٢١، كتاب الفصل، الباب الرابع.

## د جومات د پنکي (ببوزي) په کور کښې د استعمالولو حکم

**سوال:** يوه سړي د جومات لپاره پنکى واخيست او وقف ئې کړ نو آيا نوموړى پنکى د جومات امام پخپل کور کښې استعمالولى شي او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د صورت مسئوله مطابق که چېرته دغه پنکى په رښتيا هم د جومات لپاره وقف شوى وي نو د جومات امام لپاره ئې په کور کښې استعمال شرعا جائز نه دى۔ اګر که د پيش امام وجود د جومات له مصالحو څخه وي۔ بيا هم که چېرته واقف علي الاطلاق نيت کړى وي نو بيا پکښې څه حرج نشته۔

لما قال فى الهندية: متولى المسجد ليس لهٗ ان يحمل سراج المسجد الى بيته و لهٗ ان يحمله من البيت الى المسجد. (الفتاوى الهندية ج٢، ص٤٦٢، كتاب الوقف)

و قال العلامة طاهر بن عبد الرشيد البخارى رحمه الله: متولى المسجد ليس لهٗ ان يحمل سراج المسجد الى بيته و لهٗ ان يحمل من البيت الى المسجد. (خلاصة الفتاوٰى ج٤، ص٤٢٣، كتاب الوقف، الفصل الرابع) و مثله فى التاتارخانية ج٥، ص٨٥١، كتاب الوقف، الفصل الحادى و العشرون.

## په جومات کښې د نکاح د تړلو حکم

**سوال:** ځينې خلك په جومات کښې د نکاح تړل سنت ګڼي آيا په رښتيا هم په جومات کښې د نکاح تړل سنت دي او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د نکاح تړل او لوستل پخپله یو سنت عمل دی کوم چه د عباد اتو یوه حصه او شعبه ده نو ځکه په جومات کښې د نکاح په ایجاب او قبول کښې شرعا څه حرج نشته. بیا هم په دا ډول محفلونو کښې له د اسې حرکت کولو څخه چه د جومات له آد ابو سره ټکروي اجتناب کول ډیر ضروري دی۔

لما ورد فی الحدیث: عن عائشة رضی الله عنها قالت قال رسول اللهﷺ اعلنوا هٰذا النکاح و اجعلوه فی المساجد و اضربوا علیه با لدفوف. (مشکوٰة ج۲، ص۲۷۲، کتاب النکاح)

و قال فی الهندیة: مباشرة عقد النکاح فی المساجد مُستحبٌ. (الفتاوی الهندیة ج۵، ص۳۲۱، کتاب الکراهیة، الباب الخامس) و مثله فی رد المحتار ج۲، ص۲۸۴، کتاب النکاح.

## په ذکر و اذکار او په لمانځه کښې مشغولو خلکو ته د سلام اچولو حکم

**سوال:** په جومات کښې خلک عموما ذکر او اذکار او په لمانځه باندې مصروف او مشغول وي نو په د اسې حالت کښې جومات ته د اخلیدونکو خلکو په هغو باندې سلام اچول جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په جومات کښې د لمانځه په انتظار کښې ناست خلک هم حکما ذاکرین دي۔ لکه څنګه چه له روایاتو څخه ثابت دي نو له دې وجهې ناستو خلکو باندې هم سلام اچول جائز نه دي۔ بیا هم که چېرته د لمانځه نه وروسته یو سړی فارغ ناست وي نو په هغه باندې په سلام اچولو کښې څه حرج نشته۔

لما ورد فی الحدیث: قال رسول اللهﷺ من جلس مجلس ینتظر الصلوٰة فهو فی الصلوٰة. (ترمذی ج۱، ص۱۱۱، ابواب الجمعة)

و قال فی الهندیة: و یکره السلام عن قرأة القرآن جهراً و کذا عند مذاکرة العلم و عند الآذان و الاقامة و الصحیح انهٗ لا یرد فی هٰذه المواضع ایضاً. (الفتاوی الهندیة ج۵، ص۳۲۵، کتاب الکراهیة، الباب السابع) و مثله فی رد المحتار ج۱، ص۴۵۶، باب ما یفسد الطلاق، مطلب المواضع التی یکره فیها السلام.

## په جومات کښې د لاړې د توکلو حکم

**سوال:** اوریدلي مې دي چه د انسان د خولې لاړې پاکې دي نو آیا د لاړو د پاکوالي په صورت کښې په جومات کښې د لاړو توکل د شریعت له مخې جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** جوماتونه د خدای کورونه او د مسلمانانو عبادت ځایونه دي نو ځکه د هغو عزت او عظمت ساتل په هر مسلمان باندې ضروري دي او د هر مسلمان ذمه واري ده چه د اسې کار چه په هغه کښې د حقارت معمولي غوندې شک او شائبه هم وي له هغه څخه به هم جوماتونه پاک ساتي۔ د مسلمانانو لاړې اګرکه په اتفاق سره پاکې دي لیکن د جومات عظمت، شان او آد ابو ته په نظر کولو سره په جومات کښې د لاړې توکل جائز نه دي۔

لما قال العلامة ابراهیم الحلبی رحمه الله: و لا یبزق علی حیطان المسجد و لا علی ارضه و لا علی البواری و



کذا المخاط لکن یأخذه بطرف ثوبه و یدلك بعضه ببعض. (کبیری ص۶۱۲، فصل فی احکام المسجد)

لما ورد فی الحدیث: قال النبیﷺ البزاق فی المسجد خطیئة و کفارتها دفنها. (ابو داؤد ج۱، ص۶۸، باب کراهیة البزاق فی المسجد) و مثله فی الهندیة ج۵، ص۳۲۱، کتاب الکراهیة، الباب الخامس.

## د جومات لپاره په موقوفه زمکې باندې د امام د تصرف کولو حکم

**سوال:** د جومات سره لګیدلې زمکه د جومات د مصارفو لپاره وقف شوې وه. په دې زمکې باندې د جومات امام د خپل ځان لپاره څه شی کړل. له څه وخت نه وروسته امام صاحب په پټه د جومات له منتظمینو او یا نورو څخه له پوښتنې پرته دا زمکه په حکومتي کاغذاتو کښې پخپل نامه باندې اړولې وه یعني سندونه ئې پخپل نامه جوړ کړي وو۔ نو د امام دا ډول عمل د شریعت له مخې څه حکم لري او آیا دا زمکه د امام ملکیت ګرځي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** چونکه نوموړې زمکه د جومات او د جومات د مصالحو لپاره وقف شوې ده کوم چه د امام لپاره ذاتي هیڅ د خل نشته۔ لهذا د جومات د مصارفو لپاره چه کوم شی وقف شي هغه د جومات حق دی او د امام صاحب قبضه او پخپل نامه باندې د سندونو جوړول او انتقالول شرعا درست نه دی۔ نو ځکه به د امام دا عمل د شریعت خلاف وي او د دې زمکې مالك به نه ګڼل کیږي۔

لما قال فی الهندیة: ارض وقف علی مسجد صارت بحالٍ لا تزرع فجعلها رجل حوضاً للعامة لا یجوز للمسلمین انتفاع عاد ذٰلك الحوض. (الفتاوی الهندیة ج۲، ص۴۶۴، کتاب الوقف، الفصل الثانی)

## د یوه جومات په شتون کښې د بل جومات جوړول

**سوال:** د یوه لوی جومات د شتون باوجود ځینې خلك له امام سره د اختلاف په بهانه بل جومات جوړوي نو آیا د اسې کول په شریعت کښې جواز لري او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د ذاتي اغراضو د تکمیل لپاره او یا غیر شرعي امورو په وجه سره په قوم کښې بې اتفاقي او اختلاف پید ا کول پخپله هم ګناه ده او بیا د دې ګناه له ارتکاب څخه وروسته په مسلمانانو کښې بې اتفاقي او اختلاف پید ا کول د ا دوهم لوی جرم دی۔ په د اسې صورت کښې د بل جومات د جوړولو ضرورت نشته۔ بیا هم د نوموړو واقعاتو سره سره که یو سړی باقاعده زمکه وقف کړي او جومات پرې جوړ کړي نو هغه به هم شرعي جومات بلل کیږي۔ او د ده د ذاتي اغراضو معامله به د ده او د الله تعالی په منځ کښې وي۔ البته د ضرورت په وخت کښې له خپل منځي اختلافاتو څخه د ځان ژغورلو لپاره د بل جومات جوړول یوائې جائز نه بلکه یو ښه کار هم دی۔

قال ابن نجیمؒ: و اذا قسم المحلّة المسجد و ضربوا فیه حائطا و لکل منهم امام علی حدة و مؤذنهم واحد لا بأس به.
(البحر الرائق ج۲، ص۳۵، باب ما یفسد الصلوٰة و ما یکره فیها)

## د جومات ځینې برخې په سړك كښې د شاملولو حكم

**سوال:** زمونږ په کلي کښې يو جومات دی چه د خپلې رقبې په لحاظ سره د لمونځ کوونکو په مقابله کښې ښه پراخ دی. او له جومات سره لګیدلی یو سړك هم جوړیږي. د ځینو خلکو دا خیال دی چه د جومات څه حصه په دې سړك کښې ګډه کړی شي تر څو چه سړك ښه پراخ شي او خلکو ته پکښې سهولت جوړ شي. نو اوس پوښتنه دا ده چه په کوم ځای کښې یو ځل جومات جوړ شي نو بیا هغه څه برخه د خلکو د فائدې او افادې لپاره په سړك کښې شاملیدلی شي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په کوم ځای کښې چه یو ځل جومات جوړ شي نو هغه به تر قیامته پورې جومات وي. د هغه د بلې فائدې لپاره استعمالول جائز نه دي. اګر که فائدې پکښې ډیرې هم وي. لهذا د جومات هیڅ یوه برخه هم په سړك کښې شاملول جائز نه دي.

قال العلامة الحصكفیؒ: (جعل شی) ای جعل البانی شیئاً (من الطریق مسجداً) لضیقه و لم یضر با لمارین (جاز) لانهما للمسلمین (كعكسه) ای كجواز عكسه و هو ما اذاجعل فی المسجد ممرّ لتعارف اهل الامصار فی الجوامع و جاز لكل احد ان یمرّ فیه حتی الكافر الا الجنب و الحائض و الدواب زیلعی (كما جاز جعل) الامام (الطریق مسجداً لا عكسه جواز الصلٰوة فی الطریق لا المرور فی المسجد. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج٤، ص٣٧٧، احكام المساجد، كتاب الوقف)

و فی الهندية: ان ارادوا ان یجعلوا شیئاً من المسجد طریقاً للمسلمین فقد قیل لیس لهم ذٰلك و انهٗ صحیح كذا فی المحیط. (الفتاوی الهندية ج٢، ص٤٥٧، كتاب الوقف) و مثله فی البحر الرائق ج٥، ص٢٥٥، كتاب الوقف.

## پــــه جوماتونو کښې په جګ آواز ســــره د نعتونو د ویلو او تقریرونو د کولو حكم

**سوال:** په جوماتونو کښې په جګ آواز سره نعت خواني یا تقریرونه کول لکه چه نن صبا په جلسو کښې کیږي شرعاً جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په جومات کښې په جګ آواز سره تقریر او همدارنګه نعت خواني کول که چېرته د لمونځ کوونکو په لمانځه کښې د خلل او تشویش باعث نه وي نو جائز دی لیکن که چېرته د لمونځ کوونکو په لمونځونو کښې د خلل د واقع کیدو ذریعه وي نو مکروه دی.

قال العلامة الحصكفیؒ: انشاد ضالة او شعرا لا ما فیه ذكر و رفع صوت بذكر الا للمتفقهة

قال ابن عابدینؒ: تحت هٰذا القول و فی حاشیة الحموی عن الامام الشعرانی اجمع العلماء سلفاً و خلفاً علی استحباب ذكر الجماعة فی المساجد و غیرها الا ان یشوش جهرهم علی نائم او مصل او قاری الخ. (رد المحتار ج١، ص٦٦٠، احكام المساجد، كتاب الصلٰوة)

فی الصحیح البخاریؒ: عن السائب بن یزید قال: كنتُ قائماً فی المسجد فحصبنی رجلٌ فنظرت الیه فاذا عمر



بن الخطابؓ اذهب فأتنی بهٰذین فجئتهٗ بهما فقال ممن انتما او من این انتما قال من اهل الطائف قال لو كنتما من اهل البلد لأوجعتكما ترفعان اصواتكما فی مسجد رسول اللهﷺ. (الصحیح البخاری ج١، ص٦٧، باب رفع الصوت فی المسجد) و مثله فی الطحطاوی حاشیة مراقی الفلاح ص٢٠٤، كتاب الصلٰوة.

## په حکومتي زمکې باندې د حکومت له اجازې پرته د جومات د جوړولو حكم

**سوال:** په یوه ځای کښې ځینې خلك د حکومت په زمکې باندې جبراً قبضه وکړه او جومات ئې پکښې جوړ کړ او حکومت هغو ته د جومات د جوړولو اجازه نه وه ورکړې. اوس حکومت په هغه ځای باندې د خپلې نقشې مطابق د ښار جوړول غواړي. نو اوس پوښتنه دا ده چه آیا په داسې غصبې شوې زمکې باندې جوړ شوی جومات د شرعي جومات په حکم کښې دی او که نه؟ او آیا حکومت ئې بیرته ړنګولی او پخپل مصرف کښې راوستلی شي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د جومات لپاره د زمکې د وقف کولو لپاره دا شرط دی چه د واقف به تام ملکیت وي او حال دا چه نوموړې زمکه ده د حکومت زمکه ده کوم چه عوامو ته د حکومت له اجازې پرته د جومات جوړول جائز نه دي. په کومې زمکې باندې جبراً قبضه کول او په هغې باندې جومات جوړول شرعي جومات نه بلل کیږي. له دې وجهې که چېرته حکومت داسې جومات ړنګ کړي او په ځای ئې بل شی جوړ کړي نو جائز دی. بیا هم که چېرته ضروري نه وي نو په دغې زمکې باندې نوموړی جومات آباد پریښودل بهتر دي.

قال ابن عابدینؒ: افاد ان الواقف لا بدّ ان یكون مالكاً له وقت الوقف ملكا باتا و لو بسبب و ان لا یكون محجوراً عن التصرف حتی لو وقف الغاصب المغصوب لم یصح و ان ملكه بعد بشراء او صلح و لو جاز المالك وقف الفضولی جاز. (ردّ المحتار علی الدر المختار ج٤، ص٣٤٠، كتاب الوقف، مطلب قد یثبت الوقف با لضرورة)

قال ابن نجیمؒ: الخامس من شرائط الملك وقت الوقف حتی لو غصب ارضاً فوقفها ثمّ اشتراها من مالكها و دفع الثمن الیه او صالح علی مال دفعه الیه لا تكونو وقفاً. (البحر الرائق ج٥، ص١٨٨، كتاب الوقف) و مثله فی الهندية ج٢، ص٣٥٣، كتاب الوقف.

## د جومات د مسبع والي حكم

**سوال:** یو جومات چه د خلکو په امداد او تعاون سره جوړ شوی دی لیکن د ښائست او نقشې له لحاظه مسبع ده په داسې حال کښې چه نور جوماتونه د مربع او مستطیل په شکل کښې دي او د امت د فقهاوو له اقوالو څخه هم د دغو فضیلت معلومیږي. نو اوس پوښتنه دا ده چه آیا د نوموړي جومات ړنګول او په جدیدې طریقې سره ئې جوړول جائز دي او که نه؟ په داسې حال کښې چه د دې جومات جوړښت او نقش و نګار د ځینې غیر مسلمو له عبادت خانو سره هم مشابه دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** جوماتونه د مسلمانانو د عبادت ځایونه او د الله تعالی له شعائرو څخه دي چه مقصد ئې د الله تعالی یادونه او لمونځونه او اذکار دي۔ د جوماتونو دا حیثیت تر هغه وخته برقرار پاتې کیدلی شي چه تر څو پورې د اسلامي جوماتونو د هیئت او شکل و صورت غوندې وي او د ځینې غیر مسلمو د عبادت خانو سره هم شکله نه وي۔ بیا هم که چېرته د تشبه له نیت څخه پرته یوائې د ځای د تنګوالي له وجهې د اسې نقشه اختیار شوې وي نو بیا ئې په شرعي حیثیت باندې نوموړې نقشه اثر نه شي اچولی۔

وَلَا تَرْكَنُوْٓا اِلَى الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا فَتَمَسَّكُمُ النَّارُ وَمَا لَكُمْ مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ مِنْ اَوْلِيَآءَ ثُمَّ لَا تُنْصَرُوْنَ☆ (سورة هود، رکوع ۱۰)

عن ابن عمر رضی الله عنهما قال قال رسول اللهﷺ من تشبّه بقوم فهو منهم. رواه احمد و ابو داؤد. (مشکٰوة ج۲، ص۳۷۵، کتاب اللباس) و مثله فی ابی داؤد ج۲، ص۲۰۳، کتاب اللباس، باب القمیص.

## په جومات کښې د ورك شوي شیانو د اعلان حکم

**سوال:** په لاوډ سپیکر کښې عموما د ورك شوي شیانو او د جلسو اعلانونه په جوماتونو کښې کیږي آیا په شریعت کښې دا اعلانونه جائز دي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** جومات د عبادت ځای دی نو ځکه چه کوم شی له جومات څخه د باندې ورك شوي وي د هغه اعلان په جومات کښې شرعا جواز نه لري۔ البته که چېرته یو شی په جومات کښې ورك شوی وي نو د هغه اعلان په جومات کښې د ننه هم مرخص دی او همد ارنګه په جومات کښې د ورك شوي بچي اعلان د انساني عظمت او شرافت له مخې جائز دی۔

لما قال العلامة الحصکفیؒ: یکره انشاد الضالة) قال السید احمد الطحطاوی فی حاشیة علی الدر المختار تحت قوله و انشاد الضالة لقوله علیه السلام اذا رأیتم من ینشد الضالة فی المسجد فقولوا لا ردها الله علیك قوله الا ما فیه ذکر نحوه الموعظة لانه کان ینشد الشعر بین یدیهﷺ و هو فی المسجد و یأمر حسانا بذٰلك. (الطحطاوی علی الدر المختار ج۱، ص۲۷۸، مکروهات الصلٰوة، فصل فی احکام المساجد)

لما قال العلامة محمد یوسف البنوریؒ: و اما انشاد الضالة فلها صورتان احدهما و هی اقبح و اشنع بان یضل شیء خارج المسجد ثم ینشد فی المسجد لاجل اجتماع الناس فیه. و الثانیة ان یضل فی المسجد نفسه فینشده فیه و هٰذا یجوز اذا کان من غیر لغط و شغب. (معارف السنن ج۳، ص۳۱۳، باب ما جاء فی کراهیة البیع و الشراء........ و الشعراء فی المسجد) و مثله فی رد المحتار ج۱، ص۶۶۰، مطلب فی افضل المساجد، کتاب الصلٰوة.

## د جومات په موقوفه جائداد باندې د ارث دعوٰی

**سوال:** یوه ټکړه زمکه او یو کور یوه سړي د جومات د ضروریاتو لپاره وقف کړل او د جومات امام ته ئې په وقف شوي کور کښې کښې د استوګنې اجازه ورکړه نو تر څو پورې چه نوموړی د جومات امام وو په نوموړي کور باندې هیڅ تعرض و نه شو لیکن کله چه امام مړ شو نو وارثان ئې په کور باندې قبضه وکړه او د مالکانه حقوقو دعوی ئې وکړه۔ نو آیا د جومات په موقوفه



جائداد باندې د چا د ارث دعوی صحیح ده او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته کور او زمکه د جومات د ضروریاتو لپاره وقف وي نو د امام صاحب وارثان د وراثت په توګه پرې قبضه نه شي کولی ځکه چه د جومات لپاره وقف شوی شی د چا ملك نه شي جوړیدلی بلکه هغه به د تل لپاره د جومات د ضروریاتو لپاره وي او یوائې د جومات په مصالحو کښې به استعمالیږي۔

قال العلامة المرغینانیؒ: و من اتخذ ارضه مسجداً لم یکن لهٗ ان یرجع فیه و لا یبیعه و لا یورث عنه لانه یحرز عن حق العباد و صار خالصاً لله تعالٰی و هٰذا لان الاشیاء کلها لله تعالٰی. (الهدایة ج۲، ص۶۰۸، کتاب الوقف، فصل فی المسجد)

و فی الهندیة: اما حکمه عندهما زوال العین عن ملکه الی الله تعالٰی و عند ابی حنیفة رحمه الله تعالٰی حکمه صیرورة العین محبوسة علی ملکه بحیث لا تقبل النقل عن ملك الی ملك و التصدق با لغلة المعدومة متی صح الوقف بان قال جعلت ارضی هٰذه صدقة موقوفة مؤبدة او اوصیت بها بعد موتی فانه یصح حتٰی لا یملك بیعه و لا یورث عنه لکن ینظر ان خرج من الثلث یجوز. (الفتاوی الهندیة ج۲، ص۳۵۲، الباب الاول فی تعریف الوقف، کتاب الوقف) و مثله فی رد المحتار ج۴، ص۳۵۲/۳۵۱، کتاب الوقف.

## په جومات کښې د خوراك او څښاك حکم

**سوال:** جوماتونه خو د الله تعالی د عبادت لپاره جوړیږي نو په هغو کښې د خوراك او څښاك د کولو څه حکم دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په جومات کښې خوراك او څښاك یوائې د معتکف لپاره جائز دي او د نورو لپاره نه۔ البته غیر معتکف او یا مقیم او د اسې نور که چېرته له کومې وجهې په جومات کښې خوراك وکړي نو د اعتکاف له نیت څخه پرته مکروه دی۔ لهذا په جومات کښې د ډوډۍ د خوړلو په وخت کښې د اعتکاف نیت وکړی او له جومات سره په لګیدلې زمکې او یا کوټې کښې د خوراك پریښودل او د ضد له مخې په جومات کښې خوراك کول ښه خبره نه ده۔

و فی الهندیة: و یکره النوم و الاکل لغیر المعتکف و اذا اراد ان یفعل ذٰلك ینبغی ان ینوی الاعتکاف فیدخل فیه و یذکر الله تعالی بقدر ما نوی او یصلی ما شاء کذا فی السراجیة. (الفتاوی الهندیة ج۵، ص۳۲۱، کتاب الکراهیة، الباب الخامس فی آداب المسجد)

قال قاضی خانؒ: و یباح للمعتکف الاکل و الشرب فی معتکفه. (ل۱، ص۲۳۲، باب الاعتکاف، قاضیخان علی هامش الهندیة) و مثله فی رد المحتار ج۱، ص۶۶۱، احکام المساجد.

## مدرس ته د جومات له روپو څخه تنخواه ورکول

**سوال:** په جومات کښې د هلکانو تعلیم ورکوونکي استاذ ته د جومات له فنډ او روپو څخه اجرت ورکول جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** مدرس ته د جومات لپاره له جمع شوي روپو څخه تنخواه ورکول جائز

نه دي ځکه چه مدرس د جومات له مصارفو څخه نه ګڼل کیږي۔ نو له دې وجهې د مدرس د تنخواه انتظام له بلې خوا وکړی۔ البته که چېرته جمع شوې چنده د جومات له ضروریاتو څخه زیات وي نو بیائې چیرته د بل جومات په ضروریاتو کښې مصرفولی شی کوم چه اقرب الاقرب وي یعنې د غه جومات ته تر ټولو نژدې جومات وي۔

قال العلامة الحصکفیؒ: حشیش المسجد و حصره مع الاستغناء عنهما (و) کذا الرباط و البئر اذا لم ینتفع بهما فیصرف وقف المسجد و الرباط و البئر) و الحوض (الی اقرب مسجد او رباط او بئر) و حوض (الیه) (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج٤، ص٣٥٩، کتاب الوقف)

البته که چېرته واقف د مال ورکولو په وخت کښې د ا نیت کړی وي چه له دې مال څخه جومات او له هغه سره اړوند د امام، مؤذن او مدرس تنخواه ورکوم نو جائز دی۔

و فی الهندیة: و اذا اراد ان یصرف شیئاً من ذٰلك الی امام المسجد و الی مؤذن المسجد لیس لهٗ ذٰلك الا ان کان الواقف شرط ذٰلك فی الوقف. (الفتاوی الهندیة ج٢، ص٤٦٣، کتاب الوقف، الباب الحادی عشر فی المسجد، الفصل الثانی)

## پــــــه جومات کښې د اوسیدونکو طـــــالبانو لپاره د جومات د شیانو د استعمال حکم

**سوال:** په جومات کښې اوسیدونکي طالبان کوم چه دیني تعلیم حاصلوي نو آیا هغوی د جومات شیان لکه بجلي، لرګي، درې او د اسې نور شیان استعمالولی شي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د جومات د موقوفه شیانو استعمال طالبانو ته جائز نه دي ځکه چه طلباء کرام د جومات له مصالحو سره تعلق نه لري۔ البته که چېرته واقف د ا نیت کړی وي نو د امام او مؤذن غوندې ئې د طالبانو لپاره هم استعمال جائز دی۔

قال ابن عابدینؒ: (قوله اتخذ الواقف و الجهة) بان وقف وقفین علی المسجد احدهما علی العمارة و الآخر الی امامه او مؤذنه و الامام و المؤذن لا یستقر لقلة المرسوم للحاکم الدین ان یصرف من فاضل وقف المصالح و العمارة الی الامام و المؤذن باستصواب اهل الصلاح من اهل المحلة. (رد المحتار ج٣، ص٣٦٠، کتاب الوقف)

و فی الهندیة: و اذا اراد ان یصرف شیئاً من ذٰلك الی امام المسجد او الی مؤذن المسجد فلیس لهٗ ذٰلك الا ان کان الواقف شرط ذٰلك فی الوقف کذا فی الذخیرة. (الفتاوی الهندیة ج٢، س٤٦٣، کتاب الوقف) و مثله فی خلاصة الفتاوٰی ج٤، ص٤٢٦.

## عارضي جومات د شرعي جومات په حکم کښې نه راځي

**سوال:** مونږ په یو سرکاري ځای یا کالونۍ کښې اوسیږو په د اسې حال کښې چه په نوموړي ځای کښې هیڅ یو جومات هم نشته او حکومت له مونږ سره وعده کړې ده چه زمونږ د نقشې مطابق به تاسو ته یو جومات درکوو او په کالونۍ کښې دوه دوکانونه او یوه برنډه هم شته نو آیا فی الحال په عارضي توګه مونږ د دغو دوو دوکانونو هیئت بدلولی شو او جومات ترې جوړولی



شو لکه د هغه په منځ کښې محراب جوړ کړو په د اسې حال کښې چه د ا دوکانونه هم د حکومت په ملکیت کښې دي او وروسته بیا د حکومت لخوا د جومات لپاره زمکه وقف کیږي او بیا پکښې مستقل جومات جوړیږي۔ نو آیا له دغو دوه دوکانونه څخه چه په هغو کښې په عارضي توګه جومات جوړ کړو او وروسته بیا ترې د دوکانونو کار واخلو د شریعت له مخې د اسې کولی شو او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په کومه زمکه چه په عارضي توګه جومات جوړ شي او یا په مغصوبه زمکې باندې جومات جوړ شي نو د ا به د شرعي جومات په حکم کښې نه وي۔ د ضرورت له ختم کیدو نه وروسته ئې مالك د خپلو ذاتي ضروریاتو لپاره هم استعمالولی شي۔ چونکه نوموړي دوه دوکانونه هم د مالك له اجازې پرته د جومات لپاره استعمال شوي دي نو ځکه د شرعي جومات په حکم کښې نه دي بلکه وروسته ئې مالك یعنې حکومت د خپلو ذاتي مقاصدو لپاره استعمالولی شي۔

قال ابن عابدینؒ: افاد ان الواقف لا بدّ ان یکون مالکا له وقت الوقف ملکا باتا و لو بسبب فاسد و ان لا یکون محجوراً عن التصرف حتٰی لو وقف الغاصب المغصوب لم یصح و ان ملکه بعد بشراء او صلح و لو جاز المالك وقف الفضولی جاز. (رد المحتار علی الدر المختار ج٤، ص٣٤٠، کتاب الوقف، مطلب قد یثبت الوقف با لضرورة)

قال ابن نجیمؒ: الخامس من شرائطه الملك وقت الوقف حتٰی لو غصب ارضاً فوقفها ثم اشتراها من مالکها و دفع الثمن الیه او صالح علی مال دفعه الیه لا تکون وقفاً. (البحر الرائق ج٢، ص٣٥٣، کتاب الوقف) و مثله فی الهندیة ج٢، ص٣٥٣، کتاب الوقف.

## د معتکف په جومات کښې د هوا خارجول

**سوال:** په رمضان المبارك کښې د اعتکاف په دوران کښې په جومات کښې د ریح (انساني باد) وتل څه حکم لري؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د بدبویی له وجهې په جومات کښې د هوا خارجول مکروه تحریمي دي۔ له دې څخه جومات پاك وساتی چونکه د معتکف لپاره په جومات کښې د خوب اجازه شته نو ځکه له خوب سره چه کوم لوازمات دي هغه جائز دي لیکن بهتر نه دي۔

و فی الهندیة: اختلف فی الذی یفسوا فی المسجد فلم یر بعضهم باسا و بعضهم قالوا لا یفسوا و یخرج اذا احتاج الیه و هو الاصح و لا بأس للمحدث ان یدخل المسجد فی اصح القولین و یکره النوم و الاکل فیه لغیر المعتکف. (الفتاوی الهندیة ج٥، ص٣٢١، کتاب الکراهیة،الباب الخامس)

قال ابن عابدینؒ: و کذا لا یخرج فیه الریح من الدُّبر کما فی الاشباه و اختلف فیه السلف فقیل لا بأس و قیل یخرج اذا احتاج الیه هو الاصح حموی عن شرح الجامع الصغیر للتمرتاشی. (رد المحتار علی الدر المختار ج١، ص٤٨٦، احکام المساجد) و مثله فی الاشباه و النظائر ج٤، ص٦٢، کتاب الوقف.

## د جومات اوبو کور ته راوړل

**سوال:** په ځینو علاقو کښې اکثره خلك کورونو ته د جومات اوبو وړي نو آيا د جومات اوبه کور ته وړل شرعا جائز دي او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** دغه اوبه که چېرته یو ائخې د جومات لپاره وقف وي نو بيا به د جومات تر ضروریاتو پورې محدود وي او کور ته راوړل ئې جائز نه دي او البته که چېرته واقف د اوبو د وقف کولو په وخت کښې د دې اجازه ورکړې وي نو بيا پکښې څه حرج نشته۔ ليکن اول به د جومات ضروریات پوره کيږي او بيا به کور ته وړل کيږي۔ او که چېرته واقف کوهی د جومات او همدارنګه د نورو ضروریاتو لپاره وقف کړې وي ليکن اوبه ئې د برق يا نورو مشيني آلاتو باندې ايستل کيدلې نو بيا به هم د چنده ورکوونکو نيتونه پکښې ضرورې دي۔

قال ابن نجيمؒ: التوضى من السقاية اذا اتخذها للشرب اختلف المشائخ ولو اتخذها للتوضؤ لا يجوز الشرب منه با لاجماع. (البحر الرائق ج٥، ص٢٥٥، كتاب الوقف)

قال ابو الليث السمرقندیؒ: يبدأ بثمنه فى مسجد آخر فى موضع ماء لعمارة المسجد او فى الظرف للشرب لا يجوز التوضى به الا اذا كان كثيراً و كذا لا يجوز دفع الجمر من السقاية. (الفتاوى النوازل ص٢٤٣، كتاب الوقف) و مثله فى الهندية ج٢، ص٤٦٥، كتاب الوقف.

## د جومات له پيسو څخه امام ته تنخواه ورکول

**سوال:** يوه سړي څه زمکه د جومات لپاره وقف کړې وه چه په هغې کښې ئې د اتعين هم وکړ چه نيمه زمکه به خرڅوم او په پيسو به ئې جومات جوړوم۔ اوس چه زمکه له کوم مزارع (دهقان) سره ده هغه د منافع له ورکولو نه انکار کوي او د اتعين ئې هم کړی دی چه له دغو منافعو څخه به د امام تنخواه هم ورکوم۔ نو اوس په داسې معامله کښې د جومات له پيسو څخه د امام تنخواه ورکول جائز دي او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** داسې پيسې کوم چه د جومات د جوړولو لپاره خاص کړی شوې وي له هغو څخه د امام تنخواه ورکول نه دي صحيح۔ او که چېرته واقف دا نيت وکړي نو په دې صورت کښې ئې ورکول جائز دي ځکه چه دا هم د جومات له ضروریاتو څخه ده۔

قال ابن عابدينؒ: (قوله اتخذ الواقف و الجهة) ان وقف وقفين على المسجد احدهما على العمارة و الآخر الى امامه او مؤذنه و الامام و المؤذن لا يستقر لقلة المرسوم للحاكم الدين و ان يصرف من فاضل وقف المصالح و العمارة الى الامام و المؤذن باستصواب اهل الصلاح من اهل المحلة. (رد المحتار على الدر المختار ج٤، ص٣٦٠، كتاب الوقف، مطلب فى نقل انقاض المسجد و نحوه)

قال طاهر بن عبد الرشيد البخاریؒ: و لو شرط الواقف فى الوقف الصرف الى امام المسجد و بيّن قدره يصرّف اليه ان كان فقيراً و ان كان غنيا لا يحل له و كذا الوقف على الفقهاء و المؤذنين. (خلاصة الفتاوى ج٤، ص٤٢٦، كتاب الوقف) و مثله فى الفتاوى الهندية ج٢، ص٤٦٣، الباب الحادى عشر فى المسجد و الفصل الثانى فى الوقف على المسجد.



## د جومات په پيسو باندې د جومات د امام لپاره کور جوړول

16

**سوال:** زمونږ په کلي کښې يو جومات دی چه ورسره لګيدلې رقبه د جومات لپاره وقف دی۔ په دې کښې د ځينو کليوالو اراده ده چه د امام صاحب لپاره مکان جوړ کړي ليکن د کور د جوړولو لپاره ئې مستقله او ځانته چنده نه ده کړې نو آيا د شريعت له مخې د جومات له فنډ څخه د امام صاحب لپاره کور جوړيدلی شي او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په صورت مسئوله کښې د کور جوړول د جومات د فنډ له مصارفو څخه نه دی۔ البته که چېرته واقف دا نيت کړی وي چه له دې فنډ څخه دې د امام لپاره کور هم جوړ کړی شي نو بيا شرعا جائز دی۔

قال ابن عابدينؒ: (قوله اتخذ الواقف و الجهة) بان وقف وقفين على المسجد احدهما على العمارة و الآخر الى امامه او مؤذنه و الامام و المؤذن لا يستقر بقلة المرسوم للحاكم الدين ان يصرف من فاضل وقف المصالح و العمارة الى الامام و المؤذن باستصواب اهل الصلاح من اهل المحلة. (ردالمحتار على الدر المختار ج٤، ص٣٦٠، كتاب الوقف)

و فى الهندية: و اذا اراد ان يصرّف شيئاً من ذٰلك الى امام المسجد او الى مؤذن المسجد فليس لهٗ ذٰلك الا ان كان الواقف شرط ذٰلك فى الوقف كذا فى الذخيرة. (الفتاوى الهندية ج٢، ص٤٦٣، كتاب الوقف، الباب الحادى عشر فى المسجد، الفصل الثانى) و مثله فى خلاصة الفتاوىٰ ج٤، ص٤٢٦، كتاب الوقف.

## د دوو جوماتونو له يو بل سره د ډير نژدې والي حکم

**سوال:** زمونږ له جومات څخه تقريبا ۵۵ ګزه لرې يوه چوتره ده او زمونږ په کلي کښې د عقائدو له لحاظه ډير اختلاف موجود دی کوم چه له وجهې ئې خلك يو په بل پسې لمونځونه نه کوي۔ په داسې حالاتو کښې هرې ډلې د خپل ځان لپاره بيل بيل جوماتونه جوړ کړي دي ليکن دواړه جوماتونه دومره سره نژدې دي چه ډېر ځله د يوه او بل د تکبيرونو او قرائتونو آواز اوريدل کيږي۔ نو آيا دومره نژدې نژدې جوماتونه جوړول جائز دي او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته په کلي کښې د کومې مسئلې په سر اختلاف پيدا شي نو بهتره دا ده چه په منځ کښې صلح وشي او اختلاف رفع کړی شي او که چېرته اختلاف رفع کيدی نه شو نو د فساد د دفع کولو لپاره د جومات ويشل هم جائز دي او نژدې جومات جوړول خو په طريقه اولې سره جائز دي۔

قال ابن نجيمؒ: و اذا قسم اهل المحلة المسجد و ضربوا فيه حائطاً و لكل منهم امام على حدة و مؤذنهم واهد لا بأس به. (البحر الرائق ج٢، ص٣٥، باب ما يفسد الصلٰوة و ما يكره فيها)

قال العلامة الحصكفیؒ: و جعل المسجدين واحد او عكسه لصلٰوة. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج١، ص٦٦٣، احكام المساجد) و مثله فى الهندية ج٥، ص٣٢٠، كتاب الكراهية.

## جومات ته د راتګ څخه څوك منع کول

**سوال:** له یوه جومات څخه د خلکو د تګ او راتګ منع کول په شریعت کښې څه حکم لري؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** جومات د چا شخصي ملکیت نه دی۔ دا یو عبادت ځای دی چه هر مسلمان د تګ او راتګ حق ورته لري تر څو لمونځ، تلاوت او ذکر پکښې وکړي۔ وَاَنَّ الْمَسَاجِدَ لِلّٰهِ فَلَا تَدْعُوا مَعَ اللّٰهِ اَحَداً☆(سورة الجن آیت ۱۸)

نو ځکه جوماتونو ته له راتلو څخه منع کول عظیمه ګناه ده۔ په قرآن کریم کښې د منع کوونکي لپاره سخت وعیدونه راغلي دي۔ ارشاد رباني دی چه: وَمَنْ اَظْلَمُ مِمَّنْ مَّنَعَ مَسَاجِدَ اللّٰهِ اَنْ يُّذْكَرَ فِيْهَا اسْمُهٗ وَسَعٰى فِيْ خَرَابِهَا. (البقرة، آیت ۱۱۴)

البته که چېرته جومات تنګ وي نو د خپل ضرورت په لحاظ سره نور خلك له جومات څخه منع کولی شي۔

قال ابن عابدینؒ: قال فی القنیة و کذا لاهل المحلة ان یمنعوا من لیس منهم عن الصلٰوة فیه اذا ضاق بهم مسجد. (رد المحتار ج۱، ص۶۶۲، کتاب الصلٰوة)

قال ابن نجیمؒ: و کذا لاهل المحلة ان یمنعوا من لیس منهم عن الصلٰوة فیه اذا ضاق بهم المسجد. (البحر الرائق ج۵، ص۲۵۰، کتاب الوقف) و مثله فی الهندیة ج۵، ص۳۲۲، کتاب الکراهیة.

## په جومات کښې د خوشایۍ یا سرې د استعمالولو حکم

**سوال:** په جومات کښې د سرې استعمال څنګه ده لکه څرنګه چه په ځینو جوماتونو کښې اور پرې بلوي او یا ئې د جومات د ګِل لپاره په خټه کښې ګډوي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په جومات کښې د سرې استعمالول جائز نه دي۔ البته ضرورت له دې حکم څخه مستثنیٰ دی۔ البته که چېرته له سرې پرته په کوم بل شي باندې ضرورت پوره کیده نو بهتره دا ده چه هغه بل شی د سرې په ځای استعمال کړی شي۔

قال ابن عابدینؒ: (و لا تطیینه بنجس) فی الفتاوی الهندیة یکره ان یطین المسجد بطین قد بل بماء نجس بخلاف السرقین اذا جعل فیه الطین لان فی ذٰلك ضرورة و هو تحصیل غرض لا یحصل الا به کذا فی السراجیة. (رد المحتار ج۱، ص۶۵۶، احکام المساجد)

قال ابن نجیمؒ: اذا نزح الماء النجس من البئر کره له ان یبل به الطین فیطین به المسجد علی قول من اعتبر نجاسة الطین. (البحر الرائق ج۲، ص۳۵، باب ما یفسد الصلٰوة) و مثله فی الهندیة ج۵، ص۳۱۷، کتاب الکراهیة، الباب الخامس فی آداب المسجد.

## د رنګ جومات حکم

**سوال:** زمونږ په کلي کښې یو زوړ جومات چه مخکښې جوړ وو لیکن اوس خلك پکښې لمونځونه نه کوي او ځینې خلك پکښې څناور هم تړي په داسې حال کښې چه د ځینو خلکو



اراده ده چه نوموړی رنګ او زوړ جومات په جنازه ګاه باندې بدل کړي نو آیا په شریعت کښې د اسې کول جواز لري او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** کله چه یو ځل په یوه ځای کښې جومات جوړ شي او لمونځ هم پکښې وشي نو بیا د رنګیدو نه وروسته ئې هم د بل مقصد لپاره استعمال جائز نه دی او تر قیامته پورې به جومات وي۔ له دې وجهې نوموړی رنګ جومات په جنازه ګاه یا په بل شي باندې شریعت د بدلولو اجازه نه ورکوي بلکه که چېرته ئې امکان وي نو همدا جومات دې له سره جوړ کړی شي۔

قال الحصکفیؒ: و لو خرب ما حوله و استغنی عنه یبقی مسجدا عند الامام و الثانی) ابدا الی قیام الساعة (و به یفتی) حاوی القدسی.

قال ابن عابدینؒ: (عند الامام و الثانی) فلا یعود میراثاً و لا یجوز نقله و نقل ماله الی مسجد آخر سواء کان یصلون فیه اولا و هو الفتویٰ حاوی القدسی و اکثر المشائخ علیه مجتبی و هو الاوجه. (رد المحتار ج۴، ص۳۵۸، کتاب الوقف، مطلب فیما لو خرب المسجد او غیره)

قال طاهر البخاریؒ: اذا خرب المسجد و فی الفتاویٰ اذا خربت القریة فیها المسجد و جعلت مزارع و خرب المسجد و لا یصلی فیه احد فلا بأس بان یاخذه صاحبه و بیعه و هو قول محمدؒ و عن ابی یوسفؒ لا یعود الی ملك البانی و لا الی ملك ورثته و هو مسجدا ابداً. (خلاصة الفتاویٰ ج۴، ص۴۲۴، کتاب الوقف، الفصل الرابع فی المسد و اوقافه) و مثله فی الهدایة ج۲، ص۴۶۵، کتاب الوقف، فصل فی المسجد.

## د شرعي جومات تبادله

**سوال:** زید د جومات لپاره یو ځای ورکړی وو او په باقاعده توګه سره د کلي خلکو پرې جومات جوړ کړی وو او لمونځ ئې هم پکښې شروع کړی وو۔ اوس نوموړی وایي چه دغه زمکه ما ته بیرته راکړی زه به تاسو ته د دې په بدله کښې بل ځای درکړم۔ نو آیا د اسې کول شرعا جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** کومه زمکه چه یو ځل د جومات لپاره وقف شي او په باقاعده توګه جومات هم پرې جوړ شي او لمونځ هم پکښې وشي نو دا ځای به د همیشه لپاره جومات وي۔ او د هغه رنګول او په بدله کښې ئې د بل جومات جوړول او یا د ځای بدلول ئې د شریعت له مخې جواز نه لري۔

قال العلامة الحصکفیؒ: و لو خرب ماحوله و استغنی عنه یبقٰی مسجدا عند الامام و الثانی) ابداً الی قیام الساعة (و به یفتٰی) حاوی القدسی.

قال ابن عابدینؒ: (عند الامام و الثانی) فلا یعود میراثاً و لا یجوز نقله و نقل ماله الی مسجد آخر سواء کان یصلون فیه او لا و هو الفتویٰ حاوی القدسی و اکثر المشائخ علیه مجتبٰی و هو الاوجه. (رد المحتار ج۴، ص۳۵۸، باب الوقف، مطلب فیما لو ضرب المسجد وغیره)

و فی خلاصة الفتاوىٰ: اذا خرب المسجد و فی الفتاوىٰ اذا خربت القرية التی فیها المسجد و جعلت مزارع و خرب المسجد و لا يصلّی فیه احد فلا بأس بان یاخذه صاحبه و یبیعه و هو قول محمدؒ و عن ابی یوسفؒ لا یعود الی ملك البانی و لا الی ملك ورثته و هو مسجد ابداً. (ج ٤، ص ٤٢٤، کتاب الوقف، الفصل الرابع فی المسجد و غیره) و مثله فی الهدایة ج ۲، ص ٤٦٥، کتاب الوقف، فصل فی المسجد.

## په جومات کښې د چا لپاره د ځای معین کول

**سوال:** ځینې خلك په جومات کښې د ننه د خپل ملګري لپاره د ناستې ځایونه ټاکي او له پاسه پرې څادر یا جای نماز غوړوي تر څو نور خلك پرې کښېنه نې په د اسې حال کښې چه په دې وخت کښې په جومات کښې خلك هم ډېر نه وي۔ نو آیا په دې ډول سره په جومات کښې د ځای معین کول شرعا جائز دي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په جومات کښې د غائبینو لپاره د ځای نیول خصوصا د جُمعې په ورځ کښې د اسې کول ښه کار نه دی او ناجائز بلل شوی دی ځکه چه جومات د چا شخصي مِلك نه دی۔ دا حق یو اځې د هغو خلکو دی چه څوك مخکښې جومات ته راغلی وي او له دوی نه د وروسته راتلونکي خلکو لپاره کوم چه د خلکو په سرونو باندې تیرېږي او د نورو مسلمانانو د ایذا او تکلیف سبب ګرځي د اسې عمل شرعا ممنوع دی۔

عن ابی سعیدؓ و ابی هریرةؓ قال قال رسول اللّٰه: من اغتسل یوم الجمعة و لبس من احسن ثیابه و مس من طیب ان کان عنده ثم اتی الجمعة فلم یتخطّ اعناق الناس ثم ما کتب اللّٰه لهٗ ثم انصت اذا خرج امامه حتٰی یفرغ من صلٰوته کانت کفارة لما بینها وبین جمعة التی قبلها رواه ابو داؤد. (مشکٰوة ج ۱، ص ۱۲۲، باب التنظیف و التکبیر، الفصل الثانی)

حدثنا هارون بن معروف حدثنا بشر بن السری حدثنا معاویة بن صالح عن الزاهدیة قال کُنّا مع عبد اللّٰه بن بسر صاحب النبیﷺ یوم الجمعة فجاء رجل یتخطی رقاب الناس فقال عبد اللّٰه بن بسر جاء رجل یتخطی رقاب الناس یوم الجمعة و النبیﷺ یخطب فقال له النبیﷺ اجلس فقد اذیت. (ابو داؤد ج ۱، ص ۱۵۹، باب تخطی رقاب الناس یوم الجمعة) و مثله فی الجامع الترمذی ج ۱، ص ٦۷، باب فی کراهیة التخطی یوم الجمعة.

## د جومات په باغیچه باندې چت اچول

**سوال:** د جومات سره د جومات په صحن کښې یوه باغیچه ده او د ځینو کلیوالو اراده ده چه په دغې باغیچې باندې چت واچوي تر څو طلباء کرام پکښې دیني تعلیم حاصل کړي او یا ئې چیرته په نورو مصالحو کښې استعمال کړي نو آیا د شریعت له مخې د اسې کول جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته د جومات دغه باغیچه د جومات په حدودو کښې داخل وه او په هغې کښې په مستقله توګه د کوم وخت لمونځ ادا شوی وو نو له هغه وروسته به تر قیامته پورې جومات وي او د بل شي لپاره استعمال ئې د شریعت له مخې جائز نه دی۔ د دې



لپاره جومات یا د هغه کوم کونج د مدرسې په توګه استعمالول مرخص دی لیکن د نورو مصالحو لپاره ئې استعمال جواز نه لري۔

لما روی ابو هریرةؓ قال سمعت رسول اللّٰهﷺ یقول من جاء مسجدی لم یأت الا الخیر لتعلمه او یعلمه فهو بمنزلة المجاهد فی سبیل اللّٰه الخ. قال الملا علی القاریؒ فیه دلالة علٰی جواز التدریس فی المسجد. (المرقات شرح مشکٰوة ج ۲، ۲۲۱، باب المساجد، الفصل الثالث، کتاب الصلٰوة)

و فی الهندیة: یجوز الدرس فی المسجد و ان کان فیه استعمال اللبود و البواری المسبلة لاجل المسجد. (الفتاوی الهندیة ج ۵، ص ۳۲۰، الباب الخامس فی آداب المسجد) و مثله فی امداد المفتیین المعروف بفتاوىٰ دار العلوم دیوبند ج ۲، ص ۸۱۲.

## د جومات د متولي لپاره د چنده ورکوونکو له اجازې پرته اجرت اخیستل

**سوال:** کلي والو د خپل جومات لپاره یو متولي مقرر کړ لیکن د هغه لپاره کلیوالو څه اجرت نه دی مقرر کړی نو آیا متولي د کلیوالو له اجازې پرته له فنډ څخه یعنې د جومات له روپو څخه اجرت اخیستلی شي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د چندې پیسې امانتې دي او د وقف عرفي په حکم کښې راځي نه د وقف شرعي په حکم کښې۔ لهذا د داسې امورو لپاره د واقفینو څخه دا اجازه اخیستل ضروري دي۔ او اجازې بغیر متولي ته د جومات له پیسو څخه تنخواه اخیستل جائز نه دي۔

و فی الهندیة: لو وقف دراهم او مکیلاً او ثیاباً لم یجز و قیل فی موضع تعارفوا ذٰلك یعنی با لجواز قیل کیف الدراهم تقرج للفقراء ثم یقبضهااو تدفع مضاربة و یتصدق با لربح و الحنطة تقرض للفقراء یذرعون ثم تؤخذ منهم و الثیاب الاکسیة تعطی للفقراء لیلبسوها عند هاجتهم ثم تؤخذ کذ فی الفتاوىٰ العتابیة. (الفتاوی الهندیة ج ۲، ص ۳٦۲، کتاب الوقف، الباب الثانی فیما یجوز وقفه الخ)

فهو فی الشرع عند ابی حنیفة رحمه اللّٰه تعالٰی حبس العین علی ملك الواقف و التصدق با لمنفعة علی الفقراء او علی وجه من وجووه الخیر بمنزلة العواری کذ فی الکافی فلا یکون لازماً و له ان یرجع و یبیع کذا فی المضمرات و لا یلزم الا بطریقین احدهما قضاء القاضی بلزومه و الثانی ان یخرج مخرج الوصیة......... و عندهما حبس العین علٰی حکم ملك اللّٰه تعالٰی علی وجه لقود منفعة الی العباد فیلزم و لا یباع و لایوهب و لا یورث کذا فی الهدایة الی العیون التیمة ان الفتوىٰ علی قولهما کذا فی شرح الشیخ ابی المکارم للنقایة. (فتاوی الهندیة ج ۲، ص ۳۵۰، کتاب الوقف، الباب الاوّل فی تعریفه الخ)

قال العلامة الحصکفیؒ: (حبس العین علٰی) حکم (ملك الوقف و التصدق با لمنفعة) و لو فی الجملة و الاصح انه (عنده) جائز غیر لازم کا لعاریة (و عندهما هو حبسها علٰی حکم (ملك اللّٰه تعالٰی و صرف منفعتها علی من احب. (در مختار ج ۳، ص ۳۵۷، کتاب الوقف)

قال العلامة المرغینانیؒ: لا یزول ملك الواقف الا ان یحکم به الحاکم او بعلة بموته فیقول اذا مِتُّ نفذ وقفت

داری علی کذا و قال ابو یوسفؒ یزول ملکه بمجرد القول و قال محمدؒ لا یزول حتیٰ یجعل للوقف. (الهدایة ج۲، ص۶۳۷، کتاب الوقف)

## جومات ته د ټیپ د راوړلو حکم

**سوال:** ځیني خلك جومات ته ټیپونه راوړي او په تقریرونه او تلاوتونه پرې غږوي او یا ئې پرې ثبتوي۔ نو آیا دوی دا عمل شرعاً جائز دی او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** ټیپ پخپل ذات کښې یوه آله ده کوم چه په ښو او بدو کارونو په دواړو کښې استعمالیدلی شي مثلاً قرآن تلاوت ټیپ کول، تقریرونه ټیپ کول۔ نو که چېرته په دغه نیت باندې ئې څوك جومات ته راوړي نو هیڅ ګناه پکښې نشته۔ البته که چېرته ټیپونه د سندرو او سازونو او سرودونو لپاره استعمال شي نو په جومات او د جومات نه د باندې په دواړو ځایونو کښې ناروا او مطلق ناجائز دي۔

قال طاهر بن عبد الرشیدؒ: و فی الفتاویٰ استماع صوت الملاهی کا لضرب با لقصب وغیره حرام لانه من الملاهی و قال علیه الصلوٰة و السلام استماع الملاهی معصیة و الجلوس علیها فسوق و التلذذ بها من الکفر هٰذا علی وجه التحدید و لکن وجب علیه ان یجتهد حتیٰ لا یسمع لما روی عن النبی ﷺ انه ادخل اصبعه فی اذنه منذ ذکر اشعار العرب ان کان فیها ذکر الفسق کره هم با لمعصیة ان عزم علیه الاثم. (خلاصة الفتاویٰ ج۴، ص۳۴۵، کتاب الکراهیة، الفصل الثالث فیما یتعلق با لمعاصی)

قال العلامة الحصکفیؒ: (و) کره (کل لهو) لقوله علیه الصلوٰة و السلام کل لهو المسلم حرام الا ثلاثة ملاعبته اهله و تادیبه لفرسه و مناصلته بقوسه. (در مختار ج۵، ص۲۵۳، کتاب الکراهیة فصل فی البیع) و مثله فی الفتاویٰ الهندیة ج۵، ص۳۵۱، کتاب الکراهیة.

## د ضرورت په وخت کښې د جومات د متولي له اجازې پرته د جومات بیا جوړول

**سوال:** که چېرته د جومات د رنګولو خطره وي نو د بل کلي یوه سړي لپاره د متولي یا د کلي والو له اجازې پرته د جومات شهیدول او په ځای ئې نوی جومات جوړول شرعاً جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** ډیر څله د داسې بې له اجازې تصرفاتو څخه ډیرې خرابۍ او توانونه منځ ته راځي چه له مخې ئې د جوماتونو انتظام ډیر بد متاثر کیږي۔ نو په جوماتونو کښې تول تصرفات به د جومات باني، متولي او یا د کلیوالو په اجازې پورې موقوف وي او له هغه نه وروسته به د یوه ضدي او حاسد متولي جابرانه رویه به هیڅ اعتبار نه لري۔

قال العلامة ابن نجیمؒ: البانی اولیٰ بنصب الامام و المؤذن و ولد البانی و عشیرته اولیٰ من غیرهم بنی مسجدا فی محلة تنازعه بعض اهل المحلة فی العمارة فا لبانی اولیٰ مطلقاً. (الاشباه و النظائر ج۲، ص۲۳۲، کتاب الوقف)

قال طاهر بن عبد الرشیدؒ: رجل بنی مسجداً فی سکه فنازعه بعض اهل السکة فی عمارته او نصب المؤذن و



الامام فا لمختار ان البانی اولیٰ و فی العمارة اولیٰ با لاتفاق. (خلاصة الفتاویٰ ج۴، ص۴۲۱، کتاب الوقف، الفصل الرابع فی المسجد) و مثله فی البحر الرائق ج۵، ص۲۴۹، کتاب احکام المساجد، کتاب الوقف.

## د جومات لپاره په باقاعده وقف سره د ملکیت زائلیدل

**سوال:** یوه سړي د جومات لپاره زمکه وقف کړې ده۔ د دې زمکې څخه د نوموړي شخصي ملکیت په کوم وخت کښې زائلیږي نو آیا له وقف نه وروسته ده ته د مالکانه تصرفاتو حق حاصل وي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د جومات لپاره د زمکې وقف په باقاعده اجازې سره یو ځل په جمعې سره د لمانځه له ادا کولو څخه ملکیت زائلیږي۔ البته د امام ابو یوسفؒ په نزد د لمانځه ادا کول هم ضروري نه دي بلکه یوازې د مالك په قول سره ملکیت زائلیږي۔ له باقاعده وقف څخه وروسته واقف ته د مالکانه تصرفاتو حق حاصل نه دی۔

قال العلامة الحصکفیؒ: (یزول ملکه عن المسجد و المصلّی) با لفعل (بقوله جعلته مسجداً) عند الثانی (و شرط محمدؒ) و الامام (الصلاة فیه) بجماعة و قیل یکفی واحد و جعله فی الخانیة ظاهر الروایة. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۳، ص۳۶۹، کتاب الوقف)

و اذا بنی مسجدا لم یزل ملکه عنه حتیٰ یفرده عن ملکه بطریقة و یأذن للناس با لصلوٰة فیه فاذا صلّی فیه واحد زال عن ابی حنیفةؒ عن ملکه و قال ابو یوسفؒ یزول ملکه بقوله جعلته مسجداً. (الهدایة ج۲، ص۶۴۴، کتاب الوقف، تصلّ فی المسجد) و مثله فی خلاصة الفتاویٰ ج۴، ص۴۰۸، کتاب الوقف، الفصل الاوّل.

## د ښځو لپاره جومات ته د تللو حکم

**سوال:** زمونږ په ښار برما کښې یو نوی جومات جوړ شوی دی او د نوموړي ځای خلك دا خواهش لري چه که چېرته په شریعت کښې جومات ته د ښځو د راتللو اجازه وي نو یو ځای دې ورته وټاکل شي تر څو ښځې لمونځونه هم پکښې وکړي او د وعظ او نصیحت په مجالسو کښې هم شاملې شي نو آیا په دې زمانه کښې د اسې کول جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په قرون اولیٰ کښې اګر که جومات ته د ښځو د راتللو اجازه وه لیکن په دې دور کښې د فتنې او فساد له وجهې فقهاوو دوی جوماتونو ته له تلو څخه منع کړې دي ځکه د ښځو جومات ته په حاضریدلو کښې دومره فائده نشته لکه څومره ئې چه نقصان دی او نقصانات ئې یقیني دي۔ لهٰذا د زمانې د فساد له مخې د ښځو جوماتونو ته تلل ښه نه دي۔

قال العلامة الحصکفیؒ: (و یکره حضورهنّ الجماعة) و لو لجمعة و عیدٍ و وعظٍ (مطلقا) و لو عجوزاً لیلاً (علی المذهب) المفتی به لفساد الزمان. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۱، ص۴۱۸، باب الامامة)

قال طاهرؒ: اما اذا ام الرجل النساء فی مسجد بجماعة لیس معهن رجلٌ لا بأس به و فی غیر المسجد من البیوت و نحوها یکره الا ان یکون معه ذات رحم محرم و تخرج الی العید و الجمعة و فی الفجر و العشاء دون الظهر و العصر و

المغرب مختلف فا لحال ان فی المغرب اختلاف الروایة و عندهما تخرج الٰی جمیع الصلٰوة هٰذا جواب الاصل و قال فی الفتاوٰی لا تخرج العجائز فی زماننا الی الجماعات. (خلاصة الفتاوٰی ج۱، ص۱۵۵، کتاب الصلٰوة) و مثله فی الاختیار لتعلیل المختار ج۱، ص۵۹، فصل فی الجماعة.

## د جومات د متولي د معزولولو حکم

**سوال:** ځیني خلك غواړي چه د جومات متولي معزول کړي لیکن اکثره خلکو ته د ده د معزول والي د اسبابو د نه ښکاریدو له مخې په دې خبره کښې کاز نه لري. آیا کلیوال او یا حاکم د کوم جومات متولي معزولولی شي او هغه کوم وجوهات دي چه له مخې ئې متولي معزول کیدلی شي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** کلي وال یا حاکم چه د کومو شرعي امورو په لحاظ ساتلو سره یو څوك متولي جوړ کړی وي که چېرته نوموړی متولي د هغو شرعي امورو لحاظ نه ساته بلکه د خیانت ارتکاب ترې کیده او د وقف شیان په غیر شرعي توګه استعمالولو او همدارنګه د داسې نورو کارونو ارتکاب ئې کاوه چه د هغو له وجهې کلي وال ترې تنګ او ناراضه وو. نو د مذکوره فسقیه امورو په وجه سره متولي معزول کولی شي بلکه که واقف پخپله هم د داسې امورو مرتکب وي نو هغه هم معزول کیدلی شي.

قال العلامة الحصکفیؒ: (جعل الواقف الولایة لنفسه جاز) و کذا لو لم یشترط لاحد فا لولایة له عند الثانی و هو ظاهر المذهب نهر خلافاً لما نقله المصنف ثم لوصیه ان کان و الا فللحاکم فتاوٰی ابن نجیمؒ قاری الهدایة و سیجیء (و ینزع وجوباً بزازیة و لو) الواقف ردد فغیره با لاولٰی (غیر مامون) او عاجز او ظهر به فسق کشرب خمر و نحوه فتح او کان یصرف ماله فی الکیمیا نهر بحثاً (و ان شرط عدم نزعه) (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۳، ص۳۸۴، کتاب الوقف)

و فی الهندیة: و لو ان الواقف شرط الولایة لنفسه و کان الواقف غیر مامون علی الوقف فللقاضی ان ینزعها من یده کذا فی الهدایة. (ج۳، ص۴۰۹، کتاب الوقف) و مثله فی الهدایة ج۲، ص۶۴۳، کتاب الوقف.

## د جومات د مصالحو لپاره د موقوفه زمکې حکم

**سوال:** د اکبر او ریحان پلرونو او نیکونو په جومات کښې د اوبو د ایستلو انتظام جوړ کړی وو او چه کوم ارهټ یا څرخ ئې لګولی وو د هغه د اخراجاتو لپاره ئې پنځه جریبه زمکه وقف کړې وه کوم چه اسناد ئې هم موجود دي. او اوس په جومات کښې د برق یو پمپ هم موجود دی او د لرګي د توربین په ځای د اوسپنې توربین لګیدلی دی. لهذا د دغې زمکې څخه چه کوم مصارف د مخکښیني توربین پوره کیده اوس ئې ضرورت نشته او اوس کلیوال د اراده کړې ده چه نوموړې زمکه کومه چه د اوبو د انتظام لپاره وقف شوې وه اوس دې د جومات د نورو مصارفو لپاره ولګول شي مثلا په اجاره دې ورکړله شي او یا چه د چا په قبضه کښې ده له هغه څخه دې نیمه نفعه واخیستله شي او د جومات په نورو مصالحو کښې دې ولګول شي لیکن



اکبر او ریحان نوموړې د جومات زمکه له خپلې قبضې څخه د ایستلو لپاره تیار نه دي او وایي چه مونږ یوائې د رهټ ذمه وار وو کوم چه اوس دا زمکه ترې مستغني ګرځیدلې ده لهذا اوس دا زمکه زمونږ ده او مونږ ئې پخپل مصرف کښې لګوو. آیا د دوی دا ډول عمل جائز دی او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** عرف ته په کتو سره دا خبره معلومیږي چه دا معامله د وقف ده لهذا چا چه د خپلې زمکې منافع د جومات لپاره معین کړي وي نو هغه زمکه هم وقف ګڼل کیږي نو له دې وجهې ریحان او اکبر ته په دې زمکې باندې د قبضې کولو حق حاصل نه دی بلکه د نوموړې زمکې منافع به په پمپ او یا د جومات په نورو مصالحو باندې لګول کیږي.

و نظیره قال ابن نجیمؒ: اشتروا من غلة داری هٰذه کل شهر بعشرة دراهم خبزاً و فرقوه علی المساکین صارت دار وقفاً. (البحر الرائق ج۹، ص۱، کتاب الوقف)

و فی الهندیة: رجل قال فی مرضه اشتروا عن غلة داری هٰذه کل شهر بعشرة دراهم خبزاً و فرقوا علی المساکین صارت الدار وقفاً. (الفتاوی الهندیة ج۲، ص۳۵۹، کتاب الوقف، فصل فی الالفاظ التی یتم بها الوقف) و مثله فی رد المحتار ج۳، ص۳۵۹، کتاب الوقف.

## د جومات لپاره د چندې د ټولولو حکم

**سوال:** د جوماتونو لپاره د چندې د ټولولو حکم څه دی خصوصا چه په جومات کښې د ننه چنده ټولیږي؟ په دې زمانه کښې خو په جوماتونو کښې چندې ټولیږي که چېرته کلي وال د یوه کچه جومات د جوړولو طاقت ولري او هغوی د پاخه جومات د جوړولو لپاره چندې کوي نو آیا شرعا داسې کول جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د جوماتونو جوړول په اصل کښې د وخت د بادشاه ذمه واري ده. قال ابن عابدینؒ: فانه یجب ان یتخذ الامام للمسلمین مسجداً من بیت المال و من مالهم ان لم یکن لهم بیت المال کذا فی الفتح القدیر. (رد المحتار ج۳، ص۳۵۸، کتاب الوقف)

په داسې حال کښې چه په دې زمانې کښې بادشاهان د جوماتونو جوړولو ته توجه نه کوي نو عوام دا حق لري چه هغوی د مساجدو د تعمیر لپاره چندې وکړي اګر که هغه چندې په جوماتونو کښې د ننه کوي او که له جوماتونو څخه د باندې ئې کوي. ځکه چه له ځینو روایتونو څخه د دې ثبوت هم شوی دی.

عن جریرؓ قال کنا فی صدر النهار عن رسول اللهﷺ فجاء قوم عراة محتابی النمار او العباء متقلدی السیوف عامتهم من مضر بل کلهم من مضر فتعمّر وجه رسول الله لما رای بهم من الفاقة فدخل ثم خرج فامر بلالاً فاذن و اقام فصلّٰی ثم خطب فقال يَاأَيُّهَا النَّاسُ اتَّقُوا رَبَّكُمُ الَّذِي خَلَقَكُمْ مِنْ نَفْسٍ وَاحِدَةٍ. الٰی آخر الآیة. إِنَّ اللَّهَ كَانَ عَلَيْكُمْ رَقِيبًا. الآیة. التی فی البحر اتَّقُوا اللَّهَ وَلْتَنْظُرْ نَفْسٌ مَا قَدَّمَتْ لِغَدٍ. تصدق رجل من دیناره من درهمه من ثوبه من صاع بره من صاع تمرة حتٰی قال و لو بشق تمرة الٰی آخر. (مشکٰوة ج۱، ص۳۳، کتاب العلم)

و في المسلم: عن جريرؓ قال خطب رسول اللهﷺ فحث على الصدقة بمعنى حديث جرير. (صحيح مسلم ج۲، ص۳۴۱، كتاب العلم، باب من سن سنة حسنة الخ)

## د جومات د شتون تر څنګ په مندر کښې د لمانځه ادا کول

**سوال:** زمونږ په ځای کښې اکثره مهاجرين اوسيږي. کله چه مونږ د هندوستان څخه هجرت وکړ او راغلو نو په دې علاقه کښې په يوه ځای کښې هم جومات نه وو. البته د هندوانو يو مندر وو چه هغه مونږ د خپلو لمونځونو لپاره غوره کړ او تر يو څه وخته پورې مو په دې مندر کښې باقاعده لمونځونه وکړل او وروسته مو له حکومت څخه منظوري واخيسته او يو ځای مو د جومات لپاره وټاکه او جومات مو پرې جوړ کړ. ليکن ځينې خلك اوس هم د دغه جومات له موجودګۍ سره سره په مندر کښې لمونځونه کوي نو آيا د جومات د موجودوالي سره سره په نوموړي مندر کښې د لمانځه ادا کول جائز دي او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** له مذکوره سوال څخه د مندر دوه صورتونه معلوميږي.

﴿۱﴾ دا چه که چېرته دغه مندر په مستقله توګه د جومات په شکل او صورت جوړ شوی وي او د هغه په لومړني شکل کښې بدلون راغلی وي نو بيا ئې حکم د جومات غوندې دی لهذا نوموړی مندر هم جومات ګڼل کيږي.

﴿۲﴾ البته که چېرته د مندر صورت بدل کړی شوی نه وي او پخپل اصلي حالت کښې پاتې وي او نه ئې د مستقل جومات د جوړولو نيت ورته کړی وي نو بيا د جومات په حکم کښې نه دی او د لمونځونو ادا کول پکښې د تشبه با لکفار له وجهې مکروه تحريمي دی او له کفار سره په تشبه باندې ډېر دليلونه موجود دي.

كما قال الله تعالى: لَا تَرْكَنُوْا اِلَى الَّذِيْنَ ظَلَمُوا فَتَمَسَّكُمُ النَّارُ. قال النبيﷺ من تشبّه بقوم فهو منهم. (ابو داؤد ج۲، ص۵۵۹، كتاب اللباس، باب لبس الشهرة)

و عن ابن عمرؓ قال قال رسول اللهﷺ من تشبّه بقوم فهو منهم. قال الملا على القارى اى من تشبه نفسه با لكفار مثلا في اللباس وغيره...... فهو منهم اىّ في الاثم (مرقاة ج۸، ص۲۵۵، كتاب اللباس، الفصل الثانى) و مثله في جواهر الفقه ج۱، ص۲۲۱، د جوماتونو نوي شكلونه او د هغو مقاصد)

## د زوړ جومات په ځای په نوي جومات کښې د لمانځه ادا کول

**سوال:** زمونږ په ښار کښې يو جومات تقريبا يو نيم سل کاله سابقه لري کوم چه عمارت ئې زوړ شوی دی او هر وخت ئې د ړنګيدلو خطره وي. که چېرته يو سړی دا جومات پريږدي او په بل نوي جومات کښې چه له نوموړي جومات څخه په لرې فاصلې باندې وي لمونځ وکړي نو شرعا څه حکم لري. او که وروسته يو څوك دغه زوړ جومات شهيد کړي او له سره ئې جوړ کړي نو په دې صورت کښې په دغه زوړ جومات کښې د لمانځه ادا کول بهتر دي او که په نوي جومات کښې؟



**الجواب باسم ملهم الصواب:** په يوه ځای کښې چه يو ځل جومات جوړ شي نو هغه به د تل لپاره جومات وي. لهذا زوړ جومات چه بيرته له سره نوی جوړ شي نو د نژدې والي له وجهې ئې حقوق په نسبت د بل جومات ډېر دي. له دې وجهې همدا زوړ جومات آباد کړی. په هر حال په نوي جومات کښې هم د لمانځه ادا کول جائز دي ليکن بهتر نه دي.

قال ابن عابدينؒ: و مسجد حية و ان نقل جمعه افضل من الجامع و ان كثر جمعه. (رد المحتار ج۱، ص۴۸۸، باب ما يفسد الصلوٰة)

و في الخلاصة ان نسخه القاضى للامام رجل يصلّى في الجامع لكثرة الجمع و لا يصلى في الجامع لكثرة الجمع و لا يصلى في مسجد حيه فانه يصلى في مسجد منزله و ان كان قومه اقل و ان لم يكن لمسجد منزله مؤذن فانه يؤذن و يصلّى و ان كان هناك واحد. (ج۱، ص۲۲۸، الفصل السادس و العشرون في المسجد بنقل به) و مثله في الفاوى الهندية ج۱، ص۸۳، باب الامامة.

## په جومات کښې د حوض د جوړولو حکم

**سوال:** زمونږ په کلي کښې يو جومات دی چه پکښې د لمونځ کوونکو د سهولت لپاره خلك د يوه حوض د جوړولو اراده لري. ليکن که چېرته دغه حوض په کامله توګه جوړ شي نو د جومات څه حصه بيا پکښې شامليږي او جومات هم د خپلې پراخۍ له لحاظه دومره پراخ دی چه په حوض کښې ئې د څه حصې له شاملولو څخه په صفونو کښې څه نقصان نه راځي نو په داسې صورت کښې آيا د جومات څه حصه په حوض کښې شامليدلی شي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** جومات چه يو ځل جوړ شي نو بيا ئې د بل مقصد لپاره استعمال نه دی جائز او تر قيامته پورې به جومات وي. نو له دې وجهې د جومات يوه حصه هم په حوض کښې راوستل او حوض پرې جوړول جائز نه دي.

قال العلامة الحصكفيؒ: لانه مسجد الى عنان السماء و في رد المحتار و كذا الىٰ تحت الثرى. (الدر المختار على هامش رد المحتار ج۱، ص۴۸۵، كتاب الصلوٰة في الكعبة)

سربيره پر دې فقهاء کرامو په جومات کښې مضمضه (د خولې پريمينځل) او استنشاق (د پزې پريمينځل) مکروه بللي دي نو له دې وجهې هم د جومات په کومې حصې باندې د حوض په جوړولو سره د کراهيت ارتکاب لازميږي. البته که چېرته د جومات د جوړولو په ابتداء کښې يو ځای د حوض او د اودسو لپاره مقرر شوی وي نو بيا په دې کښې څه حرج نشته.

و في الخلاصة و يكره التوضى و المضمضة في المسجد الاّ ان يكون فيه موضع اتخذ للوضوء و لا يصلّى فيه. (ج۱، ص۲۲۹، الفصل السادس و العشرون و ما يتصل به)

قال ابن نجيمؒ: و في الخلاصة و غيرها و يكره الوضوء و المضمضه في المسجد الاّ ان يكون موضع فيه اتخذ للوضوء و لا يصلى فيه. (البحر الرائق ج۲، ص۳۴، فصل مما فرغ من بيان الكراهة في الصلوٰة) و مثل في الهندية ج۱، ص۱۱۰، الفصل الثانى فيما يكره في الصلوٰة و ما لا يكره.

## په دوکانونو باندې برسيره د جومات جوړولو حکم

**سوال:** زمونږ په منطقه کښې يو جومات دی کوم چه د دوکانونو له پاسه جوړ دی او باقاعده په هغه کښې آذان او جمع هم کيږي په د اسې حال کښې چه نوموړي دوکانونه خپل خپل مالکان لري۔ نو آيا په د اسې جومات کښې د لمانځه اداکول جائز دي او آيا د اسې جومات ته د شرعي جومات درجه حاصله ده او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د دوکانونو د پاسه د مالك په اجازه د جومات په جوړولو کښې هيڅ حرج نشته۔ په د اسې جومات کښې لمونځ له کراهيت پرته جائز دی او که چېرته د مالك له اجازې پرته جوړ شي نو بيا پکښې لمونځ مکروه دی۔ البته د اسې جومات د شرعي جومات په حکم کښې نه راځي بلکه د عرفي جومات په حکم کښې راځي۔ په دې جومات باندې د شرعي جومات حکم په هغه وخت کښې جاري کيږي چه دوکانونه هم د جومات په ملکيت کښې راشي۔

قال ابن عابدينؒ: و فی القهستانی و لا بد من افرازه ای تميزه عن ملکه من جميع الوجوه فلو کان العلو مسجد او السفل حوانيت او با لعکس لا يزول ملکه لتعلق حق العبد به کما فی الکافی. (رد المحتار علی الدر المختار ج۳، ۳۷۰، کتاب الوقف)

من بنی مسجداً لم يزل ملکه عنه حتیٰ يفرزه عن مِلکه بطريقه و يأذن با لصلوٰة فيه فاذا صلّٰی فيه واحد زال مِلکه. (البحر الرائق ج۵، ص۲۴۸، کتاب الوقف)

و ايضاً قال ابن نجيمؒ: و حاصله ان شرط کونه مسجداً ان يکون سفله و علوه مسجداً لينقطع حق العبد عنه لقوله تعالیٰ وَاَنَّ الْمَسَاجِدَ لِلّٰهِ. (البحر الرائق ج۵، ص۲۵۱، کتاب الوقف) و مثله فی الهداية ج۲، ص۶۲۴، کتاب الوقف)

## د جومات د متولي شرعي حيثيت

**سوال:** آيا د جومات په تولیت کښې ارث جاري کيدلی شي او که نه او همدارنګه د جومات د متولي ذمه واري او فرائض څه دي؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** متولي نسلاً په نسلاً کيدلی شي خو په دې شرط سره چه په وارث کښې صلاحيت موجود وي۔ امام او مؤذن او د جومات د نورو ضرورياتو اهتمام د متولي له منصبي فرائضو څخه دي۔

قال ابن نجيمؒ: البانی اولیٰ بنصب الامام و المؤذن و ولد البانی وغيره اولیٰ من غيرهم بنی مسجداً فی محله فنازعه بعض اهل المحلة فی عمارته فا لبانی اولیٰ مطلقاً. (الاشباه و النظائر ج۲، ص۳۳۲، کتاب الوقف)

و فی الهندية: قال فی الجامع الفصولين لو شرط الواقف ان يکون المتولّی من اولاده و اولاد اولاده هل للقاضی ان يولی غيره بلا خيانة لو ولاه هل يکون متولاً قال الشيخ الاسلام برهان الدين فی فوائده لا کذا فی النهر الفائق. (الفتاوی الهندية ج۲، ص۴۱۲، کتاب الوقف) و مثله فی خلاصة الفتاویٰ ج۴، ص۴۱۰، کتاب الوقف.



## د کعبې مبارکې د اسې تصويرونه چه له هغه سره د انسانانو تصويرونه هم وي په جومات کښې د زوړندولو حکم

**سوال:** په جومات کښې د خانۀ کعبې د اسې تصويرونو زوړندول چه په هغو کښې د کعبې له تصويرونو برسيره انساني تصويرونه هم د طواف په هيئت کښې پکښې ښکاريږي نو آيا د اسې تصاوير په جومات کښې زوړندول جائز دي او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** بيت الله شريف يو د احترام وړ ځای دی او همدارنګه په دې وجه چه هغه غير ذي روح دی نو ځکه ئې تصوير په جوماتونو کښې زوړندول جائز دي۔ البته د کعبة الله د اسې تصويرونه زوړندول چه په هغو کښې خلك د طواف په حالت کښې پکښې معلوميږي او د اشخاصو معرفت هم پکښې ښه کيږي په دې صورت کښې بيا شرعاً ناجائز دي او بيا له ناجائز والي برسيره د اسې تصويرونه په جومات کښې زوړندول په ګناه باندې لا زياتوالی دی۔ لهذا له دې څخه اجتناب ضروري دی۔ نو لکه څرنګه چه په جوماتونو کښې د عکسونو زوړندول جائز نه دی همدارنګه په جوماتونو کښې د عکسونو اخيستل هم د جومات له عظمت سره ټکر دی۔

عن عائشةؓ عن النبیﷺ قال اشد الناس عذاباً يوم القيامه الذين يضاهئون بخلق الله. متفقٌ عليه. (مشکوٰة ج۲، ص۳۸۵، باب التصاوير)

عن عائشةؓ تقول دخل عَلَیَّ رسول اللهﷺ.... يا عائشةُ اشد الناس عذاباً عند الله يوم القيٰمة الذين يضاهئون بخلق الله.

عن عبد الله بن مسعودؓ يقول قال رسول اللهﷺ اشدّ الناس عذاباً يوم القيٰمة المصوّرون. (مسلم ج۲، ص۲۰۱، باب تحريم تصوير صورة الحيوان و تحريم الخ)

## په جومات باندې د قبضې د کولو شرعي حيثيت

**سوال:** د دوو قومونو په يوې ټکړې زمکې باندې معامله وه۔ يوه قوم د بل قوم په املاکو باندې حمله وکړه او جبراً ئې د هغوی زمکې قبض کړې او ټول اوسيدونکي ئې له هغه ځايه څخه ايستلو ته اړ کړل۔ په دغو زمکو کښې له کورونو او زمکو نه پرته جوماتونه هم وو کوم چه په دغو باندې هم غاصبانه قبضه شوې ده نو آيا په دې صورت کښې په دغو جوماتونو کښې د لمانځه اداکول جائز دي او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په نوموړي کلي کښې چه کوم جوماتونه دي هغوی د غصب څخه مخکښې جوړ شوي دي کوم چه د هيڅ مِلك هم نه دی او غاصبين هم مسلمانان دي کوم چه د هغو په نزد هم د جوماتونو احترام ملحوظ دی۔ نو په د اسې جوماتونو کښې د لمانځه په کولو کښې هيڅ کراهيت نشته او په هغو جوماتونو باندې د دوی د قبضې لره هيڅ اعتبار نشته۔ بلکه څوك له جومات څخه منع کول عظيم ظلم دی۔

و فی الهندية: قال ابو يوسف رحمه الله تعالیٰ اذا غصب ارضاً فبنی فيها مسجداً او حماماً او حانوتاً فلا بأس با

لصلوٰة فى المسجد. (ج۵، ص ۳۲۰، كتاب الكراهية)

قال فى الينابيع اذا غصب ارضاً فبناها مسجدا او حماما فلا بأس بدخول المسجد للصلوٰة. (الجوهرة النيرة ج۲، ص۲۵، كتاب الوقف)

قال قاضيخانؒ: عن ابى يوسفؒ ذكره الناطفى رحمه الله تعالىٰ فى الواقعات اذا بنى فى ارض الغصب مسجداً او حماماً او حانوت لا بأس با لصلوٰة فى المسجد. (الفتاوى قاضى خان على هامش الهندية ج۱، ص۶۶، فصل فى المسجد)

## د جومات د جوړولو په وخت كښې د جومات په منځ كښې د قبر د راتللو حكم

**سوال:** زمونږ په كلي كښې يو جومات دى چه د لمونځ كوونكو د ډير والي له وجهې تنګ شوى دى او ورته نژدې يو خالى ځاى هم واقع دى په د اسې حال كښې چه د جومات او د خالي ځاى تر منځ يو قبر دى كوم چه د جومات په دروازه كښې راځي چه له وجهې ئې د جومات بنايست خرابيږي او كه چېرته د ا دروازه بنده شي نو د بلې دروازې په پرېښودو سره د جومات بنايست او د جوړښت ترتيب له منځه ځي نو آيا مونږ له نوموړي قبر سره څه وكړو؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** كله چه د جومات پراخوالى ضروري وي نو د قبر په منځ كښې د راتلو په صورت كښې كه چېرته قبر دومره زوړ وي چه انساني اندامونه پكښې زاړه شوي وي نو بيا قبر رنګ كړى او ځاى ئې له جومات سره ګډ كړى. او كه چېرته قبر جديد يعني نوى وي نو بيا د قبر د تعين لپاره يو ديوال واړوى او په دوهمې حصې كښې ئې جومات جوړ كړى. بيا هم د دې خبرې خيال وساتى چه د جومات وضع او جوړښت د اسې نه شي چه د خلكو توجه قبر ته پاتې شي تر څو چه د قبر پرستى شبهه پاتې نه شي. په دې حالت كښې د جومات د بنايست مسئله كوم اثر نه اچوي.

لما قال العلامة فخر الدين الزيلعىؒ: و لو بلى الميت و صار تراباً جاز دفن غيره و زراعة و البناء عليه. (تبيين الحقائق ج۱، ص۲۴۶، باب الجنائز)

قال الطحطاوىؒ: و فى القهستانى عن جنائز المضمرات لا تكره الصلوٰة الى جهة القبر الا اذا كان بين يديه بحيث لو صلى صلوٰة خاشعين دفع بصره عليه. (طحطاوى حاشية مراقى الفلاح ص ۱۶۱، مكروهات الصلوٰة)

لما فى الهندية: و لو بلى الميت و صار تراباً جاز دفن غيره فى قبره و زرعه و البناء عليه. (الفتاوى الهندية ج۱، ص۱۶۷، كتاب الجنائز، الفصل السادس فى القبر و الدفن) و مثله فى البحر الرائق ج۲، ص۱۹۵، كتاب الجنائز.

## د جومات په دوكان باندې د مدرسې جوړول

**سوال:** د جومات په غسلخانو يعني حمامونو او دوكانونو باندې د ديني مدرسې جوړول جائز دي او كه نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د جومات حمامونه او دوكانونه اګر كه د جومات لپاره وقف وي ليكن احكامو په اعتبار سره من كل وجوه يو دي. له دې وجهې كله چه جومات پخپله د ديني



علومو لپاره استعمالول جائز دي نو په نوموړيو ځايونو باندې د مدرسې جوړول خو به په درجهٔ اولى جائز وي.

و فى الخلاصة: اما المعلم الذى يُعلّم الصبيان باجرٍ اذا جلس فى المسجد يعلّم الصبيان لضرورة الحرّ وغيره لا يكره. (ج۱، ص۲۲۹، كتاب الصلوٰة)

قال ابن نجيمؒ: لان المسجد ما بُنى الا لها من صلوٰة و اعتكاف و ذكر شرعى و تعليم علم و تعلمه و قراة قرآن. (البحر الرائق ج۲، ص۳۴) و مثله فى الفتاوى الهندية ج۱، ص ۱۱۰، كتاب الصلوٰة)

## په جومات كښې د رقص او سرود حكم

**سوال:** په جومات كښې د رقص او سرود څه حكم دى؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** ناچ يعني رقص او سرود د شريعت له مخې يو ناجائز او حرام عمل دى. جوماتونه خو پرېږده په هيڅ يوه ځاى كښې هم د داسې كارونو اهتمام او په داسې محفلونو كښې ګډون كول الٰهي عذاب ته دعوت وركول دي.

و فى الهندية: قال رحمه الله تعالىٰ و القول و الرقص الذى يفعله المتصوفة فى زماننا حرام لا يجوز القصد اليه و الجلوس عليه. (الفتاوى الهندية ج۵، ص۳۵۲، كتاب الكراهية، الباب السابع عشر فى الغناء و اللهو)

قال العلامة المرغينانىؒ: ان الملاهى كلها حرام حتىٰ التغنى بضرب القضيب و كذا قول ابى حنيفةؒ. (الهداية ج۳، ص۴۵۳، كتاب الكراهية، فصل الاكل و الشرب) و مثله فى الدر المختار على صدر رد المحتار ج۶، ص۳۹۵، كتاب الكراهية، فصل فى البيع.

## په عيدګاه كښې جومات جوړول

**سوال:** يوه سړي د عيدګاه لپاره زمكه وقف كړه او خلك پكښې د اختر لمونځونه كوي. آيا شرعاً د نوموړي عيدګاه په شاوخوا كښې جومات جوړيدلى شي او كه نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** كه چېرته كومه ټكړه زمكه يوازې د اختر د لمانځه لپاره وقف شوې وي نو د واقف له اجازې پرته په هغې باندې د جومات جوړول جائز نه دي ځكه چه په شريعت كښې به د واقف د شرائطو لحاظ كيږي خو چه د شريعت د اصولو موافق وي. او كله چه واقف اجازه وركړي نو بيا ئې په جوړولو كښې څه حرج نشته. البته كه چېرته دا ټكړه زمكه قانوني وقف وي او شرعي وقف نه وي نو بيائې اخيستل او پلورل هم جائز دي.

قال ابن نجيم المصرىؒ: شرط الواقف يجب اتباعه لقولهم شرط الواقف كنص الشارع اى فى وجوب العمل به و فى المفهوم و الدلالة كما بيناه فى شرح الكنز الا فى مسائل. (الاشباه و النظائر ج۲، ص۲۲۸، كتاب الوقف)

قال ابن عابدينؒ: فا شرائط الواقف معتبرة اذا لم تخالف الشرع و هو مالك فلهٗ ان يجعل ما لم حيث شاء ما لم يكن معصية و له ان يخص صنفا من الفقراء و لو كان الوضع فى كلهم قربة. (رد المحتار ج۴، ص۳۴۳، كتاب الوقف، مطلب شرائط الواقف معتبرة.... الخ)

## په جومات کښې د سوال کولو حکم

**سوال:** عموماسوال کوونکي په جومات کښې د خلکو حضور غنیمت ګڼي او سوال کوي۔ نو آیا د هغوی دا عمل څنګه دی او د داسې سائلینو سره د مالي تعاون شرعا څه حکم دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په جومات کښې سوال کول مکروه تحریمي دي او هغوی سره په مالي تعاون کښې دوه قوله دي۔ ځینې علماء ئې د مطلق کراهیت قائل دي او ځینې علماء فرمايي چه که چېرته د لمونځ کوونکو له رعایت کولو سره سوال کوونکی سوال کوي نو بیا مالي تعاون ورسره جائز دی او که نه وي نو مکروه دی۔

قال ابن عابدینؒ: تحت هٰذا القول (و یحرمه فیه السوال و یکره الاعطاء مطلقاً و قیل ان تخطی) ای هو الذی اقتصر علیه الشارح فی الخطر حیث قال فرع یکره اعطاء سائل المسجد الا اذا لم یتخط رقاب الناس فی المختار لان علیّا تصدق بخاتمه فی الصلٰوة فمدحه اللّٰه تعالٰی بقوله وَیُؤْتُوْنَ الزَّکٰوةَ وَهُمْ رَاکِعُوْنَ. (رد المحتار ج۱، ص۶۵۹، فی افضل المساجد)

اعطاء سوال المسجد انه اذا کانوا لا یتخطون رقاب الناس و لا یمرون بین یدی المصلین یسئلون ما لا بد لهم منه و لا یلحون فی السوال فلا بأس و لا با لمطانة. (فتاویٰ غیاثیة ص ۲۱)

## د جوماتونو د داسې ښائسته جوړولو حکم چه د خلکو توجه خرابوي

**سوال:** په جوماتونو کښې د آرائش او ښائست داسې نقش او نګار جوړول، منظرې او یا د خطونو لیکل کوم چه د لمونځ کوونکو لپاره د تشویش او خلل باعث ګرځي نو آیا د جومات داسې ښائسته کول شرعا جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** جومات یو عبادت ګاه دی او جوړول ئې یوائې د عبادت او د خدای د یادولو لپاره وي۔ نو که چېرته په دې کښې داسې نقشې کوم چه نن صبا په مروجو تعمیراتو کښې اچول کیږي جوړې شي نو د دې له وجهې نه د جومات د جوړولو اصل مقصد فوت کیږي بلکه د جدیدو عمارتونو په قطار کښې دا هم د سیل او تفریح ځایونه جوړیږي او بیا پکښې د لمونځ کوونکو توجه، سوچ او فکر په مکمله توګه په لمانځه کښې نه وي۔ لهذا جومات ته به دومره ښایست ورکول کیږي چه له مخې ئې جومات صفا پاك او ستره معلومیږي او له ضرورت څخه زیاتې پیسې د جومات په ښایست کښې لګول مکروه دي۔

قال العلامة الحصکفیؒ: (و لا بأس بنقشه خلا محرابه) فانه یکره لانه یلهی المصلّی و یکره التکلّف بدقائق النقوش و نحوها خصوصاً فی جدار القبلة. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۱، ص۶۵۸، احکام المساجد)

و فی الهندیة: اما المتولی یفعل من مال الوقف ما یرجع الی احکام البناء دون ما یرجع الی النقش حتیٰ لو فعل یضمن کذا فی الهدایة. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۰۹، الفصل الثانی فیما یکره فی الصلٰوة و ما لا یکره) و مثله فی الهدایة ج۱، ص۱۴۴، باب ما یفسد الصلٰوة و ما یکره فیها.



## د جومات د ونو او میوو حکم

**سوال:** زمونږ د جومات په صحن کښې میوه لرونکي ونې دي۔ آیا شرعا د دغو ونو میوې پخپل استعمال کښې د راوړلو جواز شته او که د خرڅولو په صورت کښې ئې قیمت په جومات باندې مصرفیږي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په جومات کښې میوه لرونکې ونې که چېرته د جومات لپاره وقف وې نو بیا ئې استعمال او د میوو خوړل جائز نه دي۔ البته که چېرته واقف له اوله دا شرط لګولی وي نو بیا جائز دی۔ لیکن ښه او بهتره خبره دا ده چه د جومات میوې وپلورل شي او قیمت ئې د جومات په کارونو او ضرورتونو کښې ولګول شي۔

قال ابن نجیمؒ: و فی الحاوی و ما غرس فی المساجد من الاشجار المثمرة ان غرس للسبیل و هو الواقف علی العامة کان لکل من دخل المسجد من المسلمین ان یأکل منها و ان غرس للمسجد لا یجوز صرفها الا الی مصالح المسجد الاهم فا لاهم کسائر الوقوف. (البحر الرائق ج۵، ص۲۰۵، کتاب الوقف)

قال العلامة طاهر بن احمد بن عبد الرشید البخاریؒ: و سئل ابو بکر عمن وقف شجرة اصلها و الشجرة فیما ینتفع باوراقها و بثمرها. قال فا لوقف جائز و ینتفع بثمرها و لا یقطع اصلها الآ ان یفسد اغصانها فان لم ینتفع باوراقها و بثمرها فانها تقطع و تصرف ثمنها علی سبیله فان نبت ثانیاً و الا غرس مکانها. (خلاصة الفتاویٰ ج۴، ص۴۱۹، کتاب الوقف، نوع منه) و مثله فی الفتاوی الهندیة ج۲، ص۴۷۷، کتاب الوقف.

## د امام لپاره جومات پخپلو شخصي اغراضو کښې د استعمالولو حکم

**سوال:** د جومات په صحن او یا برنډې کښې کوم چه په باقاعده توګه لمونځ هم پکښې ادا کیږي۔ آیا په کوم وخت کښې ئې د حالاتو له وجهې څوك او یا د جومات امام پخپل ذاتي استعمال کښې راوستلی شي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د جومات برنډه او یا ئې صحن کله چه د جومات په باقاعده توګه حصه ګرځیدلې وي نو یو ځل د جومات له جوړیدو نه وروسته به هغه تر قیامته پورې جومات وي او په نورو امورو کښې ئې استعمالول جائز نه دي۔ بیا هم که چېرته نوموړې برنډه د جومات لپاره وقف وي او تر اوسه لمونځ پکښې نه وي شوی نو په دې صورت کښې ئې جومات ته په وقف کولو سره د واقف او یا متولي د صوابدید له مخې امام پخپلو ذاتي اغراضو کښې استعمالولی شي۔

قال العلامة الحصکفیؒ: و لو خرب ماحوله و استغنی عنه یبقی مسجدا عند الامام (و الثانی) ابداً الیٰ قیام الساعة (و به یفتیٰ). قال ابن عابدینؒ (تحت قوله عند الامام و الثانی) فلا یعود میراثاً و لا یجوز نقله و نقل ماله الیٰ مسجد آخر سواء کان یصلون فیه لو لا و هو الفتویٰ حاوی القدسی و اکثر المشائخ علیه مجتبیٰ و هو الاجه فتح. (رد المحتار ج۴، ص۳۵۸، مطلب فیما لو خرب المسجد).

قال العلامة طاهر بن عبد الرشيد البخاريؒ: و فى الفتاوىٰ اذا خربت القرية التى فيها المسجد و جعلت مزارع و خرب المسجد و لا يصلى فيه احدٌ فلا بأس بان ياخذه صاحبه و يبيعه و هو قول محمدؒ و عن ابى يوسفؒ لا يعود الى مِلك البانى و لا الى ملك ورثته و هو مسجدا ابداً. (خلاصة الفتاوىٰ ج ٤، ص ٤٢٤، كتاب الوقف، الفصل الرابع فى المسجد و اوقافه الخ) و مثله ف الهداية ج ٢، ص ٦٤٥، كتاب الوقف، فصل فى المسجد.

## د جومات د جوړولو په ارادې سره هغه ځای شرعي جومات نه ګڼل کیږي

**سوال:** کلي والو يو ځای سره معلوم کړل او د جومات د جوړولو اراده ئې پرې وکړه او ډبرې او داسې نور ئې جمع کړل۔ د ځینو وجوهاتو له مخې په دې ځای کښې جومات موزون ښکاره نه شو۔ اوس په يوه بل ځای کښې د جومات د جوړولو اراده شوې ده۔ آيا دا تبادله جائزه ده او که په هغه ځای کښې کوم چه کليوالو اوله اراده ورته کړې وه جومات جوړ کړی شي؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** يوازې د ارادې په کولو سره نوموړی ځای د شرعي جومات حکم نه شي پيدا کولی۔ بلکه د جومات لپاره له وقف برسيره باقاعده پګښې د لمانځه ادا کول ضروري دي۔ د وقف تام د نشت والي په وجه د دې په ځای په بل ځای کښې د جومات جوړول جائز دي او لومړنی ځای پخپل ذاتي استعمال کښې هم راوستلی شي۔

قال العلامة المرغينانيؒ: و ذا بنى مسجداً لم يزل مِلكه عنه حتى يفرزه عن ملكه بطريقه و ياذن للناس با لصلوٰة فيه فاذا صلّى فيه واحدٌ زال عند ابى حنيفةؒ عن ملكه و قال ابو يوسفؒ يزول مِلكه بقول جعلته مسجداً. (الهداية ج ٢، ص ٦٢٤، كتاب الوقف، فصل فى المسجد)

قال طاهر بن عبد الرشيدؒ: و لو جعل داره مسجداً يجوز با لاجماع و لا يجوز مشاعاً و انما يجوز اذا سلمه و التسليم ان يصلى فيه بجماعة باذان و اقامة باذنه عند ابى حنيفةؒ و محمدؒ. (خلاصة الفتاوىٰ ج ٤، ص ٤٠٨، كتاب الوقف، الفصل الاول)

## د جومات له ضرورت څخه د زياتو شيانو د پلورلو حکم

**سوال:** د يوه زاړه جومات ځينې سامان لکه تيران او داسې نور له ضرورت څخه زيات دي او دغسې پراته دي او که چېرته و نه پلورل شي نو د ضائع کېدو خطره ئې هم وي۔ آيا د جومات له ضرورت څخه د زياتو شيانو د پلورلو جواز شته او که نه؟ په داسې حال کښې چه قيمت ئې بيرته په جومات کښې مصرف کړی شي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د جومات د مالونو دوه صورتونه دي۔ اول صورت ئې دا ده چه کوم منقول شی وي يعنې د جومات په جزئيت کښې داخل نه وي لکه درۍ او داسې نور۔ که چېرته ئې ضرورت نه وي نو که مالك او يا د مالك له فوت کيدو نه وروسته ئې وارثان موجود وي نو د مالك او يا د وارثانو په اجازې سره ئې پلورل جائز دي او که چېرته په هغو کښې هيڅوك هم نه وي نو بيا د کلي والو په اتفاق او يا د قاضي او حاکم په اجازې سره ئې پلورل جائز دي۔

په بل صورت کښې که چېرته دا شيان په باقاعده توګه د جومات جزئيت يعنې حصه جوړه شوې وي او په جدا کولو کښې ئې جومات ته نقصان نه وي ليکن په کوم وخت کښې د تعمير په نيت سره نوموړي شيان بيل شوي وي نو بيا ئې هم د کلي والو او د قاضي او يا حاکم په اجازې سره پلورل جائز دي۔

و فى الهندية: ذکر ابو الليث فى نوازله حصير المسجد اذا صار خلقاً و استغنى اهل المسجد عنه و قد طرحه انسان ان کان الطارح حيا فهو له و ان کا ميتاً و لم يدع له وارثاً ارجو ان لا بأس بان يدفع اهل المسجد الى فقير و ينتفعوا به فى شراء حصير آخر المسجد و المختار انه لا يجوز لهم ان يفعلوا ذٰلك بغير امر القاضى کذا فى محيط السرخسيؒ. (الفتاوى الهندية ج ٢، ص ٤٥٨، کتاب الوقف)

قال ابن عابدينؒ: (حشيش المسجد) اى الحشيش الذى يفرش بدل الحصر کما يفعل فى بعض البلاد کبلاد الصعيد کما اخبرنى به بعضهم قال الزيلعى و علىٰ هٰذا حصير المسجد و حشيشه اذا استغنى عنهما يرجع الى مالکه عند محمدؒ و عند ابى يوسفؒ ينقل الىٰ مسجد آخر......... و صرح فى الخانية بان الفتوىٰ على قول محمدؒ قال فى البحر و به علم ان الفتوىٰ على قول محمدؒ فى الآلات المسجد. (رد المحتار ج ٤، ص ٣٥٩، کتاب الوقف، مطلب فيما لو خرب المسجد) و مثله فى البحر الرائق ج ٥، ص ٢٥٢، کتاب الوقف.

## د جومات چنده له کوم شرط سره تړل

**سوال:** آيا د جومات چنده له کوم شرط سره د تړلو په صورت کښې ورکول کيدلی شي لکه د نيلام په صورت کښې يو سړی دا ووايي چه که چيرته زما بولۍ پوره وخيژي نو زه به ۹۰۰ روپۍ جومات ته چنده ورکوم۔ اوس ئې بولۍ پوره خيژي او او دی ۹۰۰ روپۍ د جومات لپاره چنده ورکوي نو يو بل سړی د ده په بولۍ باندې بولۍ ورکوي او له چندې ورکولو څخه انکاري دی او بيرته ئې غواړي نو آيا دغه سړی د چندې د بيرته اخيستلو حقدار دی او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د جومات چنده يوه صدقه ده چه مقصد ترې د الله تعالى رضا ده۔ که چيرته له کوم شرط سره معلق کړی شي نو شرط باطل ګرځي او صدقه جائزه ګرځي او وروسته ورته له هغې څخه د رجوع حق حاصل نه وي۔ لهذا نوموړی سړی د متولي له قبضې نه وروسته له خپلې صدقې څخه رجوع نه شي کولی۔

و فى الهندية: و ما لا يبطل با لشروط الفاسدة ستة و عشرون) القرض و الهبة و الصدقة. (ج ٤، ص ٣٩٦، کتاب الهبة) الصدقة بمنزلة الهبة فى المشاع و حاجتها الى القبض الا انهٗ لا رجوع فى الصدقة. (الفتاوى الهندية ج ٤، ص ٤٠٦، الباب الثانى عشر فى الصدقة)

قال العلامة الحصکفىؒ: (و) حکها انها (لا تبطل با لشروط الفاسدة) فهبة عبد علىٰ ان يعتقه تصح و يبطل الشرط. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج ٥، ص ٦٨٨، کتاب الهبة)

(و الصدقة کا لهبة) بجامع التبرع و حينئذ (لا تصح غير مقبوضة و لا فى مشاع يقسم و لا رجوع فيها). (الدر المختار على صدر رد المحتار ج ٥، ص ٧٠٩، کتاب الهبة)

## د جومات لاندې دوکانونه جوړول

**سوال:** د سکانو په دور کښې په بازار کښې یو خالي ځای مسلمانانو د جومات لپاره متعین کړ او په هغه کښې ئې لمونځونه کول. کله چه د دغې زمکې پلورل شروع شو نو سکانو غوښتل چه وائې خلي لیکن مسلمانانو په هغې باندې یوه کوټه هم جوړه کړه او وروسته ئې بیا دوهم منزل پرې جوړ کړ او باقاعده ئې پنځه وخته لمونځونه پکښې شروع کړل ان تر دې پورې چه د جُمعې او اختر لمونځونه ئې هم پکښې شروع کړل. اوس د دې جومات په فنډ کښې د کثرت له وجهې د ځینو خلکو خیال دی چه د جومات په لاندیني حصې کښې دوکانونه جوړ کړې او پورتنی حصه ئې په مستقله توګه جومات شي په داسې حال کښې چه متولي وایي چه کله مونږ د جومات دوهم منزل جوړ اوه نو زمونږ خیال دا وو چه که چېرته مونږ پیسې پیدا کړې نو په لاندینی برخه کښې به ئې دوکانونه جوړوو. نو آیا په داسې صورت کښې د جومات لاندې د دوکانونو جوړول جائز دي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د ذکر شوي بیان څخه دا اندازه لګیږي چه دا رقیه او احاطه مسلمانانو په مشترکه توګه د جومات لپاره متعین کړې ده او د وخت د حکومت له خوا څخه پرې د مسلسلې خاموشی اختیارول د جومات د جوړولو دلالتاً اجازه ده. لهذا جومات چه یو ځل جومات شي نو بیا ئې څوك نه شي بدلولی نو ځکه د جومات په لاندینی برخه کښې د دوکانونو جوړول اګر که د جومات له مصالحو څخه ده لیکن بیا هم جائز نه دي. البته که چا په شروع کښې لاندې دوکانونه جوړ کړي وي او پورته ئې جومات جوړ کړی وي او دوکانونه هم د جومات د مصالحو لپاره وه نو بیا جائز دي.

و فی الهندیة: قیم المسجد لا یجوز لهٗ ان یبنی حوانیت فی حد المسجد او فی فنائه لان المسجد اذا جعل حانوتا او مسکنا تسقط حرمته و هٰذا لا یجوز و الفناء تبع المسجد فیکون حکمه حکم المسجد کذا فی محیط السرخسی. (الفتاوی الهندیة ج۲، ص۴۶۲، کتاب الوقف، الفصل الثانی الوقف فی المسجد)

قال ابن نجیمؒ: فی المجتبٰی لا یجوز قیم المسجد ان یبنی حوانیت فی حد المسجد او فنائه. (البحر الرائق ج۵، ص۲۴۹، کتاب الوقف)

## منبر د محراب کینې خواته جوړول

**سوال:** په پخوا زمانه کښې به منبر عموما د محراب ښی خواته وو او په موجوده زمانه کښې کینې خواته جوړیږي. آیا د محراب ښی خواته د منبر لګول ضروري دي او که ښی خوا یوائې د عرف خبره ده.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د حضورﷺ په مبارکه زمانه کښې منبر به د مصلی ښی خواته کیښودل کیده لهذا سنت دادی چه منبر د مصلی او محراب ښی خواته کیښودل شي.



کان سنة رسول اللّٰهﷺ عن یمین المحراب اذا استقبلت القبلة. (بذل المجهود ج۲، ص۱۷۸، باب موضع المنبر)

و قال النوویؒ: فی مناسکه ما لفظه و فی احیاء علوم الدین انه. ای المصلّی یجعل عود المنبر حذا منکبه الایمن و یستقبل الساریة التی الٰی جانبها الصندوق و تکون الدائرة التی فی قبلة المسجد بین عینیه فذٰلك موقف رسول اللّٰهﷺ. (وفاء الوفاء ج۱، ص۳۷۲، محراب المسجد النبی و متی)

## د جومات په آمدني باندې د تجارت حکم

**سوال:** آیا د جومات په منافعو باندې تجارت کول جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د جومات متولي د جومات د ښه والي او بهتری لپاره پخپل صوابدید باندې د جومات په چندې کښې تصرفات کولی شي. که چېرته په تجارت کښې د جومات فائده وي نو متولي ته دا حق حاصل دی چه تجارت پرې وکړي لیکن بیا هم د چنده ورکوونکو نه د اجازې اخیستل ښه کار دی.

و فی الهندیة: القیم اذا اشترٰی من غلة المسجد حانوتاً او دارا ان یستغل و یباع عند الحاجة جاز ان کان له ولایة الشراء و اذا جاز له ان یبیعه کذا فی السراجیة. (الفتاوی الهندیة ج۲، ص۴۶۲، کتاب الوقف)

قال ابن نجیمؒ: قیم یبیح فناء المسجد لیتجر فیه القوم او یضع فیه سرراً اجرها لیتجرّ فیها الناس فلا بأس اذا کان لصلاح المسجد و یعذر المستاجر ان شاء اللّٰه تعالٰی اذا لم یکن ممر العامة. (البحر الرائق ج۵، ص۲۴۹، کتاب الوقف) و مثله فی خلاصة الفتاوٰی ج۴، ص۴۲۳، کتاب الوقف، الفصل الرابع فی المسجد.

## د جومات د ونو د ملکیت حکم

**سوال:** د جومات په صحن کښې امام صاحب میوه لرونکې ونې لګولي دي. اوس چه کله هغه ونې ورسیدې او په قیمتي ونو کښې شمار شوې نو نوموړی امام د دغو ونو د ملکیت دعوه کوي. آیا د شریعت له مخې د دغو ونو مالك امام صاحب دی او که جومات؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د کرنې په وخت کښې ئې که چېرته د ذاتي اغراضو نیت نه وي کړی لکه څرنګه چه له عامو مسلمانانو څخه دا توقع کیږي نو دا ونې به د جومات ملکیت ګڼل کیږي.

و فی الهندیة: سئل نجم لدین عن رجل غرس تالة فی مسجد فکبرت بعد سنین فاراد متولی المسجد ان یصرف هٰذه الشجرة الٰی عمارة بئر فی هٰذا السکة و الغارس یقول هی لی فانی ما وقفتها علی المسجد قال الظاهر ان الغارس جعلها للمسجد فلا یجوز صرفها ای البئر و لا یجوز للغارس صرفها الی حاجة نفسه کذا فی محیط. (الفتاوی الهندیة ج۲، ص۴۷۷، کتاب الوقف)

قال ابن نجیمؒ: و فی المحیط رجل غرس فی المسجد یکون للمسجد لانه بمنزلة البناء با لمسجد. (البحر الرائق ج۵، ص۲۰۴، کتاب الوقف) و مثله فی خلاصة الفتاوٰی ج۴، ص۴۲۰، کتاب الوقف، الفصل الثالث فی صحة الوقف.

## په جومات کښې د تعویذ خرڅولو حکم

**سوال:** ځینې خلك په جوماتونو کښې په مستقله توګه تعویذونه پلوري کوم چه نامحرمې ښځې هم جومات ته راځي۔ او عین ممکنه ده چه په دغو کښې ځینې ښځې داسې هم وي چه د طبعي مریضۍ له وجې جوماتونو ته له داخلیدو څخه شرعا منع وي۔ نو آیا په جومات کښې د تعویذونو کول جائز دي او که نه؟ او که جائز وي نو بیا په داسې حالت کښې شرعا د ښځو لپاره جومات ته د داخلیدو ګنجائش شته او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** جومات ته د ښځو في نفسه دخول جائز دی لیکن د زمانې د اهل د فساد له وجې هغوی په جومات کښې د لمانځه له اداکولو څخه منع کړی شوي دي۔ نو د تعویذ لپاره به څنګه اجازه ورکول کیږي او په خاصه توګه چه په هغو کښې ډیرې ښځې د ناپاکۍ په حالت کښې هم وي کوم چه په دې حالت کښې جومات ته د اخلیدل جائز نه دي۔ بیا هم که چېرته پاکې وي نو د حدودو په رعایت کولو سره تعویذ اخیستلی شي لیکن په جومات کښې د تعویذ فروشۍ کاروبار بالکل جائز نه دی۔

قال ابن عابدینؒ: (و) یمنع حل (دخول مسجد) ای و لو مسجد مدرسة او دار لا یمنع اهلها الناس من الصلٰوة فیه. (ردّ المحتار ج۱، ص۲۹۱، باب الحیض)

و فی الهندیة: (و منها) انه یحرم علیهما و علی الجنب الدخول فی المسجد سواء کان للجلوس او للعبور هٰکذا فی منیة المصلی. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۳۸، الفصل الرابع فی احکام الحیض)

رجل یبع التعویذ فی المسجد الجامع و یکتب فی التعویذ التورٰة و الانجیل و الفرقان و یاخذ علیه المال و یقول ادفع الی الهدایة لا یحل لهٗ ذٰلك. (الفتاوی الهندیة ج۵، ص۳۲۱، کتاب الکراهیة، الباب الخامس فی آداب المسجد) و مثله فی البحر الرائق ج۱، ص۳۸، باب الحیض.

## د جومات سره په لګیدلو کوټو کښې د خوب کولو حکم

**سوال:** د جومات سره لګیدلي چه کوم اُطاقونه دي په هغو کښې د خوب د کولو څه حکم دی او آیا د نورو اطاقونو او د جومات یو حکم دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د جومات سره لګیدلي اطاقونه که چېرته له ابتداء څخه د جومات د باندې جوړ شوي وي نو بیا خوب پکښې له کراهیت پرته جائز دی او که چېرته په ابتداء کښې دا اطاقونه په جومات کښې داخل وي او وروسته ئې له جومات څخه ایستلي وي او د کوم عذر له وجې ئې اطاقونه جوړ کړي وي نو بیا د دغو اطاقونو او د جومات حکم یو دی کوم چه له ضرورت پرته خوب پکښې مکروه دی۔

و فی الهندیة: و یکره النوم و الاکل فیه لغیر المعتکف و اذا اراد ان یفعل ذٰلك ینبغی ان ینوی الاعتکاف فیدخل فیه و یذکر الله تعالٰی بقدر ما نوی او یصلی ثم یفعل ما شاء کذا فی السراجیة و لا بأس للغریب و لصاحب الدار ان ینام فی



المسجد فی الصحیح من المذهب و الاحسن ان یتورع فلا ینام کذا فی خزانة الفتاوٰی. (الفتاوی الهندیة ج۵، ص۳۲۱، کتاب الکراهیة)

قال العلامة القاضی خانؒ: و قیل لاباس للغریب ان ینام فی المسجد. (فتاوٰی قاضی خان علی هامش الفتاوی الهندیة ج۱، ص۶۶) و مثله فی ردّ المحتار علی الدر المختار ج۱، ص۶۶۱، مکروهات الصلٰوة، مطلب احکام المسجد.

## د قبلې تحقیق

**سوال:** زمونږ په علاقه کښې د یو سلو شلو کلونو څخه یو زوړ جومات وجود لري او د وروست والي له وجې شهید کړی شو او له سره ئې چه کله د نوي جوړولو د بنیادونو د کینښودلو وخت راغی نو مستري وویل چه زه د قطب د ستوري ماهر یم او د قطب د ستوري له مخې د دې جومات د قبلې طرف صحیح نه دی یعنې محراب ئې له قبلې څخه کوږ دی۔ نو اوس که چېرته د دې جومات په تهذاب یعنې بنیاد کښې بدلون وشي څو شرعي مفاسد منځ ته راځي مثلا د جومات ځینې حصې په لاره کښې شاملیدل او داسې نور کوم چه شرعا جواز نه لري۔ نو آیا په دې صورت کښې په مستري باندې اعتماد کول او د جومات په بنیادونو کښې د قبلې د طرف د تعین لپاره تبدیلي کول جائز دي او که به جومات پخپل زوړ حال پرېښودل کیږي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په دې مسئله کښې د ټولو فقهاوو اتفاق دی چه په لمانځه کښې استقبال قبله فرض دی۔ البته د دې په تفصیل کښې اختلاف دی۔ د احنافو علماوو د عوامو د آسانتیا لپاره دا حکم ایستلی دی چه لمونځ کوونکی که چېرته د لمانځه په حالت کښې مابین المغربین ته مخامخ وو نو استقبال قبله کیدلی شي یعنې د ګرمي او ژمي په موسم کښې چه لمر ډوبیږي د دواړو تر منځ چه راشي نو بیا صحیح دی اګر که د دواړو ترمنځ څه فاصله وي او له عین قبلې څخه څه اندازه انحراف هم پکښې وي۔ البته د مستري دا خبره چه زه د قطبي ستوري ماهر یم نو دا د هغه یوه دعوه ده که چېرته دی پخپلې دعوې رښتینی وي او په دې کښې شهرت ولري نو بیا به اعتماد پرې کیږي او که نه وي نو نه به پرې کیږي۔ په هر حال تحقیق بیا هم ضروري دی۔

قال ابن عابدینؒ: و قال فی شرح زاد الفقیر و فی بعض الکتب المعتمدة فی استقبال القبلة الی الجهة اقاویل کثیرة و اقربها الی الصواب قولان. الاوّل ان ینظر فی مغرب الصیف فی اطول ایامه و مغرب الشتاء فی اقصر ایامه فلیدع الثلثین فی الاجانب الایمن و الثلث فی الایسر و القبلة عند ذٰلك و لو یم یفعل هٰکذا و صلّی فیما بین المغربین یجوز و اذا دفع خارجا منها لا یجوز با لاتفاق. (رد المحتارعلی الدر المختار ج۱، ص۴۳۰، مبحث فی استقبال القبلة)

قال ابن عابدینؒ: (قوله کا لقطب) هو اقوی الادلة و هو نجم صغیر فی بنات الصغرٰی بین الفرقدین و الجدی اذا جعله الواقف خلف اذنه الیمنٰی کان مستقبلا القبلة. (رد المحتار ج۱، ص۴۳۰، مبحث فی استقبال القبلة)

قال ابو اللیثؒ: و قبلة اهل خراسان ما بین مغیب الصیف و الشتاء قال ابو منصور قبلة ما وراء النهر هو ان یترك الثلثین من یمین المصلی و الثلث من یساره من المغربین. (فتاوٰی نوازل ص۳۷، فصل فی شروط الصلوٰة)

و فی الطحطاوی اصابه جهتها (فا لمغرب قبلة لاهل المشرق با لعکس. (ص۱۱۵، باب شروط الصلوٰة)

اما فی البحار فدلیل القبلة النجوم و قدر روی عن عمر رضی الله عنه انه قال تعلموا من النجوم ما فا هتدوا به الی القبلة آه. و ذٰلك کا لقطب. (طحطاوی ص ۱۷۱)

## د جومات په بام باندې د بیت الخلاء جوړول

**سوال:** د جومات له پاسه که چېرته د لارې خوا ته بیت الخلاء جوړه شي نو آیا په شرعي کښې د دې ګنجائش شته او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د جومات په حدودو کښې د بیت الخلاء جوړول شرعا جائز نه دي اګر که د جومات په بام باندې هم وي او لاره ئې هم بېله وي۔ البته د جومات لاندې له ابتداء څخه د واقف په نیت سره د بیت الخلاء او غسلخانې جوړول جائز دي۔

قال العلامة الحصکفیؒ: (و) کره تحریما (عنان لوطؤ فوقه و البول و التغوط) لانه مسجد الی عنان السماء. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۱، ص۶۵۶، احکام المسجد)

قال ابن نجیمؒ: (و الوطؤ فوقه و البول و الدخلی) ای کره الوطؤ فوق المسجد و کذا البول و التغوط لان سطح المسجد له حکم المسجد. (البحر الرائق باب ما یفسد الصلوٰة و ما یکره فیها) و مثله فی الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۰۹، فصل فی غلق باب المسجد.

## د جومات لاندې تهه خانه کښې د آتش خانې جوړول

**سوال:** د جومات په تهه خانه کښې د ژمي په موسم کښې د ضرورت په وخت د اور د بلولو لپاره د ځای جوړول جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په نفس جوماتونو کښې د اور وړل او بلول پخپل ذات کښې ممنوع نه دي البته د مجوسیانو غونډې له اور څخه معبدګاه جوړول جائز نه دي۔ که چېرته دا اور د جومات د مصالحو په خاطر بل شي لکه د اوبو د ګرمولو او یا د جومات د ګرمولو لپاره لکه چه په ځینو ممالکو کښې تر نظر لاندې راځي نو بیا څه پروا نه لري۔

قال ابن عابدینؒ: (و اذا جعل تحته سردا با لمصالحه) ای المسجد (جاز) کمسجد القدس اذا کان السرداب و العلو موقوفاً لمصالح المسجد فهو کسرداب بیت المقدس هذا هو ظاهر الروایة و هناك روایات ضعیفة مذکورة فی الهدایة. (رد المحتار ج۴، ص۳۵۸، کتاب الوقف، مطلب فی احکام المساجد)

و فی الهندیة: و من جعل مسجداً تحته سرداب او فوقه بیت و جعل باب المسجد الی الطریق و عزله فله ان یبیعه و ان مات یورث عنه و لو کان السرداب لمصالح المسجد جاز کما فی مسجد بیت المقدس کذا فی الهدایة. (الفتاوی الهندیة ج۲، ص۴۵۵، کتاب الوقف) و مثله فی الهدایة ج۲، ص۶۴۴، کتاب الوقف.



## د جومات سره لګېدلې غسلخانه جوړول

**سوال:** یوه سړي د جومات له دیوال سره لګېدلې یوه غسلخانه جوړه کړې ده او د غسلخانې په چاردیوالیو کښې ئې یو دیوال د جومات دی نو آیا شرعا جومات سره دومره لګېدلې د غسلخانې جوړول جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** غسلخانه د جومات په ننه کښې جوړول جائز نه دي۔ البته واقف د جومات د مصالحو د رعایت په خاطر د جومات لاندې چه غسلخانه او بیت الخلاء جوړه کړې نو جائز دي۔ په هر حال که چېرته چا د جومات له دیوال سره لګېدلې غسلخانه جوړه کړه او د جومات دیوال ئې یواځې د پردې په توګه پکښې استعمال کړ نو جائز دي او څه قباحت پکښې نشته لیکن د بهترۍ خلاف دی۔ مګر د دې خبرې رعایت به ضرور ساتل کېږي چه له دې څخه جومات ته په راتلونکي کښې هیڅ ډول نقصان نه وي او د صبا لپاره محض د پردې په استفادې سره د دغه دیوال د ملکیت دعوٰی و نه کړي۔

قال ابن عابدینؒ: لو جعل الواقف تحته بیتاً للخلاء هل یجوز کما فی مسجد محلة الشحم فی دمشق؟ لم اکره صریحا نعم سیأتی متنا فی کتاب الوقف انه لو جعل تحته سرداباً. لمصالحه جاز تامل. (رد المحتار ج۱، ص۶۵۶، مکروهات الصلوٰة، مطلب احکام المسجد)

و فی الهندیة: و من جعل مسجداً تحته سرداب او فوقه بیت و جعل باب المسجد الی الطریق و عزله فله ان یبیعه و ان مات یورث عنه و لو کان السرداب لمصالح المسجد جاز کما فی مسجد بیت المقدس کذا فی الهدایة ج۲، ص۶۵۵، کتاب الوقف) و مثله فی الهدایة ج۲، ص۶۴۴، کتاب الوقف، فصل فی وقف المسجد.

## د جومات د منافعو لپاره په بانك کښې د شمیرې خلاصول

**سوال:** آیا امام او یا د جومات خزانچي د جومات روپۍ پخپل نامه په بانك کښې جمع کولی شي او که نه؟ او آیا د دغه روپۍ پخپلو ذاتي اغراضو کښې استعمالولی شي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د جومات پیسې له مصرف کولو څخه مخکښې وقف شرعي نه وي بلکه وقف عرفي وي۔ امام ته دا حق حاصل نه دی چه هغه د چنده ورکوونکو له اجازې پرته د جومات پیسې په بانك کښې داخلې کړي او یا ئې پخپلو ذاتي اغراضو کښې استعمال کړي۔ البته که چېرته چنده ورکوونکي اجازه ورکړي نو بیا ئې پخپلو ذاتي اغراضو کښې استعمالولی شي او په بانك کښې ئې جمع کول له اضطراري حالت څخه پرته ښه نه دي اګر که له سوده پاکه کاته کښې هم وي۔

و فی الهندیة: لو وقف دراهم او مکیلا او ثیاباً لم یجز و قیل فی موضع تعارفوا ذٰلك یفتی با لجواز قیل کیف قال الدراهم تقرض للفقراء یزرعون ثم تؤخذ منهم و الثیاب و الاکسیة تعطی للفقراء لیلبسوها عند حاجتهم ثم تؤخذ کذا فی الفتاوی العتابیة. (الفتاوی الهندیة ج۲، ص۳۶۲، کتاب الوقف)

قال العلامة الحصكفيؒ: (حبس العين على) حكم (ملك الواقف و التصدّق) با لمنفعة) و لو فى الجملة و الاصح انه (عنده) جائز غير لازم كا لعارية او عندهما هو حبسها على حكم ملك الله تعالىٰ و صرف منفعتها عى من احب. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج۲، ص۶۵۵، كتاب الوقف) و مثله فى الهداية ج۲، ص۶۴۴، كتاب الوقف، فصل فى وقف المسجد.

قال العلامة المرغينانيؒ: قال ابو حنيفةؒ لا يزول مِلك الواقف عن الوقف الا ان يحكم به الحاكم او يعلقه بموته فيقول اذا مت فقد وقفت دارى على كذا. و قال ابو يوسفؒ يزول ملكه بمجرد القول. و قال محمدؒ لا يزول حتىٰ يجعل للوقف متولياً و يسلمه اليه. (الهداية ج۲، ص۶۱۶، كتاب الوقف)

## جومات ته د وقف شوي مال بيرته اخيستل

**سوال:** يوه سړي د جومات د تعمير لپاره يو زر روپۍ چنده وركړه او په دې كښې ئې ځينې د جومات په تعمير باندې مصرف كړې په داسې حال كښې چه اوس ئې دا غوښتنه ده چه ما كومې پيسې وركړې وې هغه ما ته بيرته راكړى زه دا روپۍ د بل جومات په جوړولو كښې وركوم او حقيقت دا دى چه نوموړى تولې روپۍ د بل جومات په جوړولو كښې نه وركوي بلكه نيمې ئې خپله ور اخلي او نيمې په جومات كښې استعمالوي. نو آيا نوموړي ته جائز دي چه خپلې وقف شوې روپۍ بيرته واخلي؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** مدرسو او جوماتونو ته چه كومه چنده وركول كيږي هغه صدقه وي او صدقه چه كله د صدقه كوونكي له لاسه ووځي او د اخيستونكي لاس ته ولويږي نو بيا ترې رجوع كول صحيح نه دي.

چونكه د فقهاوو د عباراتو په رنا كښې د جومات لپاره تمليك درست دى. له تمليك څخه وروسته چنده د وركوونكي له مِلك نه باهر ګڼل كيږي. لهذا په ديني مدرسو يا جوماتونو كښې د چندې له وركولو نه وروسته چنده وركوونكي ته د رجوع حق حاصل نه دى.

لما قال فى الهندية: رجل اعطى درهماً فى عمارة المسجد او نفقه المسجد او مصالح المسجد صحّ لانه و ان كان لا يمكن تصحيحه وقفاً يمكن تصحيحه تمليكاً للمسجد فاثبات المِلك للمسجد على هٰذا الوجه صحيح قيّم با لقبض...... كما لو قال وقفتُ هٰذه المائة للمسجد يصح بطريق التمليك اذا سلمه للقيّم. (الفتاوى الهندية ج۲، ص۴۶۰، كتاب الوقف، الفصل الثانى فى الوقف على المسجد و تصرف القيم...... الخ)

و ايضاً قال العلامة برهان الدين المرغينانيؒ: الصدقة كا لهبة لا تصح الا با لقبض و لا رجوع فى الصدقة لان المقصود و هو الثواب و قد حصل. (الهداية ج۳، ص۲۹۳، كتاب الهبة، فصل فى الصدقة)

لما قال الشيخ ظفر احمد العثمانيؒ: التمليك للمسجد صحيح قلت فى الحديث دليل لما قال علماؤنا من ان التمليك للمسجد صحيح فى الهندية...... الخ. (اعلاء السنن ج۱۳، ص۱۹۸، باب الوقف على المصالح المسجد و حكم ما يهدى اليه من الاموال)

لمـــا قال العلامة ابو بكر بن على الحداد اليمنى: الصدقة كا لهبة لا تصحّ الا با لقبض لانهـــا تبرع



كا لهبة...... و لا تصح الرجوع فى الصدقة بعد القبض لانه قد كمـــل فيها الثواب من الله تعالىٰ: (الجوهرة النيرة ج۲، ص۱۹، كتاب الهبة)

## جومات ته خرابو او مردارو اوبو د اخلول

**سوال:** جومات ته د خرابو او ګنده اوبو د اخلول او همدارنګه جومات ته د چارديوالي انتظام نه كول د شريعت له مخې څنګه دي؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** جومات ته د خرابو اوبو د اخلول او په جومات كښې د خرابو اوبو وياله تيرول د شريعت له مخې جائز نه دي ځكه چه د جوماتونو د پاك ساتلو حكم وركړ شوى دى او د جومات چارديوالي د جومات له پيسو څخه جوړيږي. كه چېرته د جومات فنډ دومره نه وي چه په هغه باندې د جومات چارديوالي جوړه شي او كلي وال هم سره د دې چه د جوړولو قدرت ئې لري او نه ئې جوړوي كوم چه له وجهې ئې د جومات د املاكو او يا د جومات د خرابيدلو خطره وي نو كلي وال به د خداى په نزد ګنهګار وي.

قوله تعالىٰ: طَهِّرْ بَيْتِىَ لِلطَّآئِفِيْنَ وَ الْعَاكِفِيْنَ وَ الرُّكَّعِ السُّجُوْد. (سورة البقرة)

قال ابن عابدينؒ: (قولهٗ و ادخال نجاسة فيه) عبارة الاشباه و ادخال نجاسة فيه يخاف منها التلويث آه. و مفاده الجواز لو جافة لكن فى الفتاوى الهندية لا يدخل المسجد من على بدنه نجاسة. (رد المحتار على الدر المختار ج۱، ص۶۵۶، مطلب فى احكام المسجد) و مثله فى قاضيخان على هامش الهندية ج۱، ص۶۴، فصل فى المسجد.

## د جومـــات سره لګيدلې زمكه په زوره د جومات لپاره د اخيستلو حكم

**سوال:** زمونږ په ځاى كښې د جومات سره لګيدلې يوه ټكړه زمكه ده او ملكيت ئې د حكومت دى. د دې زمكې د جومات د تنګ والي له وجهې جومات ته سخت ضرورت دى او حال دا چه حكومت دا زمكه د جومات لپاره نه وركوي. نو آيا د جومات د ضرورت په خاطر جبراً نوموړې زمكه په جومات كښې څوك شاملولى شي او كه نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د جومات سره لګيدلې د زمكې دوه صورتونه دي. يو صورت ئې دا چه دغه متصله او لګيدلې زمكه يا خو عامه لاړ ده او يا كوم كور يا دوكان دى. كه چېرته لاره وي نو د خلكو مصلحت ته په كتو سره دې دا زمكه په جومات كښې شامل كړى شي. البته كه چېرته د دغې زمكې په جومات كښې د شامليدو له وجهې خلكو ته تكليف وي نو بيا ئې شاملول جائز نه دي. او د مكان او دوكان په جومات كښې د شاملولو لپاره دې قاضي ته رجوع وكړى شي.

و فى الهندية: قوم بنوا مسجدا و احتاجوا الى مكان ليتسع المسجد و اخذوا من الطريق و ادخلوه فى المسجد ان كان يضرّ باصحاب الطريق لا يجوز و ان كان لا يضرّ بهم رجوتُ ان لا يكون به بأس كذا فى المضمرات...... ايضاً فيه ارض وقف على مسجد و الارض بجنب ذٰلك المسجد و ارادوا ان يزيدوا فى المسجد شيئاً من الارض جاز لكن

يرفعون الى القاضى لياذن لهم و مستغل الوقف كالدار و الحانوت على هٰذا كذا فى الخلاصة. (الفتاوى الهندية ج۲، ص۴۵۶، كتاب الوقف.

او بيا هم كه چېرته د جومات سره لګيدلې زمكه وي او حكومت ئې د جومات لپاره نه وركوي نو د جومات ضروورياتو ته په كتو سره جبراً قيمتاً (په زوره د قيمت په وركولو سره) دا زمكه د جومات لپاره لاندې كيدلى شي۔

و لو ضاق المسجد على الناس و بجنبه ارض لرجل تؤخذ ارضه با لقيمة كرها كذا فى فتاوىٰ قاضى خان. (الفتاوى الهندية ج۲، ص۴۵۶، كتاب الوقف)

قال العلامة الحصكفىؒ: (تؤخذ ارض) و دار و حانوت (بجنب مسجد ضاق على الناس با لقيمة كرها) (الدر المختار على صدر ردّ المحتار ج۴، ص۳۷۹، كتاب الوقف) و مثله فى البحر الرائق ج۵، ص۲۵۶، كتاب الوقف.

## د كوم برش استعمال په جومات كښې جائز دى؟

**سوال:** نن صبا چه د صفايي لپاره كوم برشونه رائج دي كوم چه اكثره پكښې د خنزير ويښتان استعمال شوي دي او دغه برش خلك پخپلو كورونو كښې هم استعمالوي او په ځينو جوماتونو كښې هم ليدل شوي دي۔ نو آيا د اسې برشونو استعمال په جومات كښې شرعا جائز دى او كه نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** جوماتونه د خداى كورونه دي او له نجاست او مرداري څخه ئې پاك ساتل انتهايي ضروري دي۔ چونكه د خنزير هره حصه نجس العين دى نو ځكه له هغه څخه په هيڅ صورت كښې هم نفع اخيستل جائز نه دي۔ لهذا د اسې برش چه له نجاست سره مخلوط وي جوماتونه بايد ترې پاك وساتل شي ليكن له تحقيق څخه پرته د يوه شي په باره كښې د نجس والي حكم صادرول د دانشمندۍ او عقلمندۍ تقاضا نه دى۔

قوله تعالى: طَهِّرَا بَيْتِىَ لِلطَّآئِفِيْنَ وَ الْعَاكِفِيْنَ وَ الرُّكَّعِ السُّجُوْدِ. (سورة البقرة)

قال العلامة فخر الدينؒ: و لا يبزق فى المسجد لا فوق البوارى و لا تحت الحصير لانا امرنا بتعظيم المسجد و صونه عن النجاسة فياخذ النخامة بثوبه و لا يلقيها فى المسجد. (فتاوىٰ قاضى خان على هامش الهندية ج۱، ص۶۴، فصل فى المسجد)

قال العلامة ابن عابدينؒ: (قوله و ادخال نجاسة فيه) عبارة الاشباه و ادخال نجاسة فيه يخاف منها التلويث آه. و مفاده الجواز لو جافة لكن فى الفتاوى الهندية لا يدخل المسجد من على بدنه نجاسة. (رد المحتار على الدر المختار ج۱، ص۶۵۶، مطلب احكام المسجد) و مثله فى الفتاوى الهندية ج۱، ص۱۱۰، فصل غلق المسجد.

## د عوامو د ضرورت په خاطر د جومات رنګول

**سوال:** زمونږ په ځاى كښې له ډيره وخته څخه يو جومات جوړ دى چه په هغه كښې نژدې د څلورو خواوو خلك لمونځونه كوي او دا جومات سړك او دوكانونو ته نژدې واقع دى۔ ځينو دوكاندارانو حكومت ته دا عريضه كړې ده چه دا جومات رنګ كړي ځكه چه زمونږ د دوكانونو مخ ته پروت دى كوم چه زمونږ د دوكانونو مخه ئې بنده كړې ده۔ آيا په د اسې صورت كښې د كوم جومات رنګول د ضرورت په وخت كښې جائز دى او كه نه؟ بينوا توجروا۔



**الجواب باسم ملهم الصواب:** د مسلمه امت په دې باندې اتفاق او اجماع ده چه په كوم ځاى باندې چه كله جومات جوړ شي نو هغه به د قيامت تر ورځې پورې جومات وي۔ رنګول او يا د بل شي لپاره استعمال شرعا جائز نه دى او كومو خلكو چه د جومات د رنګولو عريضه وركړې ده هغو ته په كار دي چه توبه وباسي ځكه چه له يوه مسلمان يا مؤمن څخه د د اسې عريضې توقع نه شي كيدلى۔

قال العلامة الحصكفىؒ: و لو خرب ماحوله و استغنى عنه يبقى مسجداً عند الامام. (و الثانى) ابداً الى قيام الساعة (و به يفتى) حاوى القدسى.

قال ابن عابدينؒ: (عند الامام و الثانى فلا يعود ميراثاً و لا يجوز نقله و نقل ماله الى مسجد آخر سواء كان يصلون فيه اولاً و هو الفتوىٰ حاوى القدسى و اكثر المشائخ عليه مجتبى و هو الاوجه. (رد المحتار ج۴، ص۳۵۸، باب الوقف، مطلب فيما لو خرب المسجد)

قال طاهر بن عبد الرشيد البخارىؒ: اذا خرب المسجد و فى الفتاوى اذا خرب القرية التى فيها المسجد و جعلت مزارع و خرب المسجد و لا يصلى فيه احد فلا بأس بان ياخذه صاحبه و يبيعه و هو قول محمدؒ و عن ابى يوسفؒ لا يعود الى ملك البانى و لا الى ملك ورثته و هو مسجد ابداً. (خلاصة الفتاوى ج۴، ص۴۲۴، كتاب الوقف، الفصل الرابع فى المسجد)

## د جومات لپاره د زمكې د وركولو وعده

**سوال:** كه چېرته يو سړى د جذباتي فيصلې لاندې د جومات لپاره د زمكې د وركولو وعده وكړي ليكن وروسته بيا په هغې وعدې باندې و نه دريږي يعنې خپله وعده پوره نه كړي نو آيا د وعده مطابق د نوموړې زمكې جومات ووركول پرې ضروري دي او كه نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د جومات لپاره د زمكې د وركولو په وعدې سره وقف تام نه ګرځي بلكه د وقف لپاره دا شرط دى چه لومړى زمكه له خپل ملكيت څخه خارجه كړي او باقاعده خلكو ته په هغې باندې د لمانځه د اداكولو اجازه وركړي۔ له دې وجهې يوائې په وعدې باندې وقف تام نه شو۔ ليكن بيا هم د وعدې خلاف ورزي ګناه ده۔

و فى الهندية: من بنى المسجد لم يزل ملكه عنه حتىٰ يفرزه عن ملكه بطريقه و يأذن با لصلٰوة فيه اما الافراز فلانه لا يخلص اللّٰه تعالىٰ الا به كذا فى الهداية. (الفتاوى الهندية ج۲، ص۴۵۴، كتاب الوقف)

قال العلامة برهان الدين المرغينانىؒ: و اذا بُنى مسجداً لم يزل ملكه عنه حتىٰ يفرزه عن مِلكه بطريقه و يأذن للناس با لصلٰوة فيه فاذا صلى فيه واحد زال عند ابى حنيفة رحمه اللّٰه عن مِلكه اما الافراز فلانه لا يخلص اللّٰه تعالىٰ الا به. (الهداية ج۲، ص۶۲۴، كتاب الوقف، فصل فى المسجد) و مثله فى كنز الدقائق على هامش البحر الرائق ج۵، ص۲۴۸، كتاب الوقف.

## په جومات کښې په چارپایي یا کټ باندې څملاستل

**سوال:** آیا په جومات کښې خوب جائز دی په داسې حال کښې چه ځینې خلك خپل کټ په جومات کښې د ننه ردي او بیا پرې څملي۔ نو د دې په باره کښې د شرعې څه حکم دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په جومات کښې له شرعي عذر څخه پرته څملاستل مکروه دي۔ البته که شرعي عذر وي لکه معتکف یا مسافر او داسې نور وي نو بیا په جومات کښې څملاستل ورته جائز دي۔ او لکه څنګه چه په جومات کښې د ضرورت په وخت له کټ پرته څملاستل جائز دي همداړګنه په کټ باندې برسیره هم جائز دي۔

و فی الهندیة: و یکره النوم و الاکل فیه لغیر المعتکف و اذا اراد ان یفعل ذٰلك ینبغی ان ینوی الاعتکاف فیدخل فیه و یذکر اللّٰه تعالٰی بقدر ما نوی او یصلّی یفعل ما شاء کذا فی السراجیة و لا بأس للغریب و لصاحب الدارا ان ینام فی المسجد فی الصحیح من المذهب و الاحسن ان یتورع فلا ینام کذا فی خزانة الفتاوٰی. (الفتاوی الهندیة ج۵، ص ۳۲۱، کتاب الکراهیة)

عن ابن عمرؓ ان رسول اللّٰهﷺ کان اذا اعتکف طرح له فراشه او یوضع لهٗ سریراً وراء اسطوانة التوبة. (ابن ماجة ص۱۲۷، باب فی المعتکف یلزم مکانا من المسجد) و مثله فی ردّ المحتار علی الدر المختار ج۱، ص۶۶۱، مکروهات الصلوٰة، مطلب احکام المسجد.

البته که چېرته کوم غیر معذور سړی هم د اعتکاف په نیت سره په جومات کښې څملي نو جائز دی۔

## د جومات لپاره د شرعي او عرفي وقف شرعي حیثیت

**سوال:** د ځینو جوماتونو سره موقوفه زمکه وي چه له هغې څخه امام او خطیب استفاده کوي لیکن نوموړې زمکه په مستقله توګه د جومات لپاره وقف وي۔ امام یوائې د امامت او خطابت د منصب له وجهې له دې څخه د استفادې حقدار وي۔ له دې نه پرته ځینې نور داسې جائدادونه هم وي کوم چه امام ته په شخصي توګه ورکول کیږي لیکن په دې کښې هم د امام د موجوده منصب امامت دخل هم ضرور وي چه له مخې ئې هغه د زمکې د ورکولو ترجیح ورکړ شوې وي۔ په دغو دواړو صورتونو کښې امام د غه ځای پخپل نامه باندې کولی شي او که نه؟ او د امام له وفات څخه وروسته ئې که چېرته اولاد په امامت باندې مامور نه وي د نوموړې زمکې حقدار ګرځیدلی شي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** تر کومه ځایه پورې د لومړي ډول زمکې تعلق دی هغه خو د جومات لپاره وقف دی او هغه ځای د هیڅ یوه سړي له ذات سره تعلق نه لري او نه ارث پکښې جاري کیدلی شي۔ که هر څوك هم د امامت په منصب باندې فائز وي هغه له هغې څخه استفاده کولی شي او کله چه د امامت له منصب څخه لرې شي نو بیا ترې د استفادې کولو حقدار نه شي



پاتې کیدلی او د تقسیم او خرید و فروخت اختیار ورته حاصل نه دی۔

قال العلامة المرغینانیؒ: و من اتخذ ارضه مسجداً لم یکن له ان یرجع فیه و لا یبیعه و لا یورث عنه لانه یحرز عن حق العباد و صار خالصاً للّٰه تعالٰی و هٰذا لان الاشیاء کلها للّٰه تعالٰی. (الهدایة ج۲، ص۶۲۵، باب الوقف)

و فی الهندیة: و اما حکمه فعندهما زوال العین عن ملکه الی اللّٰه تعالٰی و عند ابی حنیفةؒ حکمه صیرورة العین محبوسة علٰی مِلکه بحیث لا تقبل النقل....... فانهٗ یصح حتٰی لا یملكُ بیعه و لا یورث عنده لکن ینظر ان خرج من الثلث یجوز. (الهندیة ج۲، ص۳۵۲، کتاب الوقف)

قال ابن نجیمؒ: (قوله و لا یملك الوقف) باجماع الفقهاء کما نقله فی فتح القدیر و لقوله علیه السلام لعمر رضی اللّٰه عنه تصدق باصلها لا تباع و لا تورث و لانه با للزوم خرج عن ملك الواقف و بلا ملك لا یتمکن من البیع. (البحر الرائق ج۵، ص۲۰۵، کتاب الوقف)

قال العلامة المرغینانیؒ: و اذا صح الوقف لم یجز بیعه و لا تملیکه الا ان یکون مشاعا عند ابی یوسفؒ فیطلب الشریك القسمة فیصح مقاسمة. (الهدایة ج۲، ص۶۲۰، کتاب الوقف)

البته د دوهم ډول جائداد په باره کښې له یادونې څخه دا اندازه لګیږي چه دا د موهوب له مِلکیت دی ځکه چه دغه جائداد هغه ته په ذاتي توګه ورکول کیږي او په هغه باندې د جومات د وقف هیڅ اثر پروت نه وي۔ او یوائې د امام او خطیب د منصب د تعظیم له وجهې د یوه شي په ورکولو سره د جومات وقف نه ګڼل کیږي۔ لهذا په دې صورت کښې د جومات امام ته په نوموړي جائداد باندې د ټولو تصرفاتو حق حاصل دی۔ په وخت د ژوند کښې ئې اخیستل او پلورل ورته جائز دي۔ او له خپل منصب څخه د معزولی نه وروسته به هم نوموړی جائداد د هغه وي او له مرګ نه وروسته به ئې په وارثانو باندې د شرعي قاعدې مطابق ویشل کیږي۔

## د کافرو مالونه په زور او جبر سره په جومات باندې د مصرف کولو حکم

**سوال:** په یوه ځای کښې د جومات د تعمیر لپاره د پیسو او مال ضرورت وو او ځینو خلکو له غیر مسلمو یعنې کافرو څخه مال او روپۍ جبراً وصولولې او د جومات په جوړولو کښې ئې مصرف کولې۔ آیا له کافرو څخه جبراً پیسې اخیستل او د جومات په جوړولو کښې ئې لګول جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په دار الاسلام کښې غیر مسلم په څو قسمونو دی۔ یو هغه غیر مسلم یعنې کافر وي چه مستامن یا ذمي وي د معاملاتو په احکامو کښې مسلمان، ذمي او مستامن سره برابر دي د هغوی مالونه په زوره اخیستل او په جومات کښې ئې مصرفول جائز نه دي۔ ځکه چه دوی د احکامو په لحاظ سره د مسلمانانو په شان دي۔ البته کوم کافر چه حربي وي او دار الاسلام ته له امان څخه پرته داخل شوی وي د هغوی مال د فیء او غنیمت مال دی۔ د هغوی مال په زور او جبر سره د جومات لپاره اخیستل کیدلی شي۔

قال العلامة الحصكفیؒ: لا یمكن حربی مستامن فینا سنة و قیل لهٗ ان قمت سنة و وضعنا علیك الجزیة فان مكث سنة فهو ذمی و لا جزیة علیه فی حول المكث الا بشرط اخذها منه فیه و یجری القصاص بینه و بین المسلم و یضمن المسلم قیمة خمره و خنزیره اذا اتلفه و تجب الدیة علیه اذا قتله خطاء و یجب كف الاذی عنه.

قال ابن عابدینؒ: (قوله لا یمكن حربی مستأمن) قید با لمستأمن لانه لو دخل دارنا بلا امان كان و ما معه فیئاً و لو قال دخلت بامان الا ان یثبت. (رد المحتار ج ٤، ص ١٦٨، فصل فی استمأن الكافر، كتاب الجهاد)

بیا هم د حرام مال مصرفول په جومات باندې جائز نه دي۔

قال ابن عابدینؒ تحت هذا القول (قوله و لو بماله الحلال) قال تاج الشریعة اما لو انفق فی ذٰلك مالاً خبیثاً و لا سببه الخبیث و الطیب فیكره لان الله تعالٰی لا یقبل الا الطیّب فیكره تلویث بیته ما لا یقبله. (رد المحتار علی الدر المختار ج ١، ص ٤٥٨، باب الامامة، مطلب كلمة لا باس دلیل علی انه المستحب)

عن ابی هریرةؓ قال قال رسول اللّٰهﷺ من تصدق بعدل تمرة من كسب طیّب و لا یقبل اللّٰه الا الطیّب فان اللّٰه یتقبلها بیمینه ثم یربیها لصاحبها كما یربی احدكم فلوّه حتی تكون مثل الجبل. متفقٌ علیه. (مشكوٰة ج ١، ص ١٦٧، باب فضل الصدقة) و مثله فی البخاری ج ١، ص ١٥٩، كتاب الزكوٰة.

او په حرام مال سره جوړ شوي جوماتونه د شرعي جوماتونو په حکم کښې نه دي۔ لهذا په داسې جوماتونو کښې د لمانځه له اداکولو څخه اجتناب وکړی۔ البته د ادا شوي لمونځونه راګرځول واجب نه دي۔

## د ضرورت په وخت کښې د وقف تبادله جـــائزه ده

**سوال:** د جومات ځینې دوکانونه په داسې ځای کښې واقع دي چه له جومات څخه لرې دي۔ آیا د جومات په قرب او جوار کښې له واقع ځینو دوکانونو سره ئې تبادله جائزه ده او که نه؟ په داسې حال کښې د دوکانونو په باره کښې دا احتمال هم شته چه کله کیدی شي د جومات په پراخولو کښې هم په کار راشي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د جومات لپاره د داسې فائدې په توقع کښې د وقف استبدال او مبادله جائزه ده۔ لهذا د دغو دوکانونو په تبادلې کښې هیڅ حرج نشته۔

و فی الهندیة: مبادلة دار الوقف بدار اخری انما تجوز اذا كانت فی محـــلة واحدة تكون المحلة المملوكة خیراً من محلة الموقوفة و علی عكسه لا یجوز. (الفتاوی الهندیة ج ٢، ص ٤٠٠، كتاب الوقف، الباب الرابع فیما یتعلق با لشرط فی الوقف)

قال ابن نجیمؒ: و فی القنیة مبادلة دار الوقف بدار اُخرٰی انما یجوز اذا كانتا فی محلة واحدة او تكون المحلة المملوكة خیراً من المحلة الموقوفة و علی عكسه لا یجوز. (البحر الرائق ج ٥، ص ٢٢٣، كتاب الوقف) و مثله فی ردّ المحتار علی الدر المختار ج ٤، ص ٣٨٦، كتاب الوقف، مطلب فی شروط الاستبدال.



18

## په نوي قبرستـــــان کښې د جومات جوړول

**سوال:** یو قبرستان کوم چه اوس هم مړي پکښې ښخیږي۔ آیا کوم کلي ته د جومات د ضرورت په صورت کښې چه قبرستان هوار کړی شي او د جومات جوړول پرې جائز دي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په کوم قبرستان کښې چه اوس هم مړي پکښې ښخول کیږي د هغه استعمال د جومات لپاره جائز نه دی۔ البته کوم قبرستان چه زوړ شوی وي او په هغه کښې د مړیو جسدونه خاورې شوي وي او ښې نښانې ئې ختمې شوي وي نو بیا د داسې قبرستان هوارول او جومات پرې جوړول جائز دي او که چیرته دا زمکه مملوکه وي نو بیا ئې له مالك څخه د اجازې اخیستل ضروري دي۔

قال ابن عابدینؒ: و قال الزیلعیؒ: و لو بلی المیّت و صار تراباً جاز دفن غیره فی قبره و زرعه و البناء علیه. (رد المحتار ج ٢، ص ٢٣٢، مطلب فی دفن المیت، كتاب الجنائز)

و فی الهندیة: و لو بلی المیت و صار تراباً جاز دفن غیره فی قبره و زرعه و البناء علیه. (الفتاوی الهندیة ج ١، ص ١٦٧، الفصل السادس فی القبر و الدفن و النقل من مكان الی آخر) و مثله فی البحر الرائق ج ٢، ص ١٩٥، كتاب الجنائز

## له مندر څخه د جومات د جوړولو حکم

**سوال:** د هند د تقسیم په وخت کښې کوم هندوان او سکان چه له پاکستان څخه لاړل د هغو مندرونه مسلمانان په جوماتونو بدلولی شي او که نه؟ او که چیرته ئې بدلولی شي نو بیا به تغیر پکښې کوي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د هندوانو او سکانو معبدونه په جوماتونو بدلول شرعا جائز دي خو په دې شرط سره چه د هغو د عبادت ښې او نښانې ختمې کړی شي او تغیر پکښې وشي۔ مثلا قبلې ته ئې مخامخ کول او د محراب پکښې جوړول یا په مستقله توګه رنګول او له سر نه ئې جوړول او داسې نور۔

عن طلق بن علی قال خرجنا وفداً الی رسول اللّٰهﷺ فبایعناه و صلّینا معه و اخبرناه ان بارضنا بیعةً لنا فاستوهبناه من فضل طهوره فدعا بماءٍ فتوضاء و تمضمض ثم صبّه لنا فی اداوة و امرنا فقال اخرجوا فاذا اتیتم ارضكم فاكسروا بیعتكم و انضحوا مكانها بهٰذا الماء و اتخذوها مسجداً قلنا ان البلد بعید و الحرّ شدید و الماء ینشف فقال مُدّوه من الماء فانه لا یزیده الا طیباً. رواه النسائی. (مشكوٰة ج ١، ص ٦٩، باب المساجد)

و فی حاشیته فاكسروا الخ غیروا محرابها و حولوه الی الكعبة و قیل خربوه.

عن ابیه طلق بن علی قال خرجنا وفداً الی رسول اللّٰهﷺ فبایعناه و صلّینا معه و اخبرناه ان بارضنا بیعةً لنا فاستوهبناه من فضل طهوره فدعا بماءٍ فتوضاء و تمضمض ثم صبّه لنا فی اداوة و امرنا فقال اخرجوا فاذا اتیتم ارضكم فاكسروا بیعتكم و انضحوا مكانها بهٰذا الماء و اتخذوها مسجداً قلنا ان البلد بعید و الحرّ شدید و الماء ینشف فقال مُدّوه من الماء فانه لا یزید الا طیباً فخرجنا حتٰی قدمنا بلدنا فكسرنا بیعتها ثم نضحنا مكانها فاتخذنٰها مسجداً فنادینا فیه با لأذان...... الخ. (سنن النساء ج ١، ص ١١٤، باب اتخذ البیع مساجد)

## جومات ته له راتلو څخه څوك منع كول

**سوال:** ځيني خلك د جومات لپاره چنده جمع كوي او د جومات د جوړولو اراده ئې كړې ده۔ ليكن يو سړى د دې جومات له جوړولو څخه ممانعت كوي او غير اخلاقي الفاظ استعمالوي او همدارنګه يو بل سړى د جومات لاره بندوي چه له وجهې ئې جومات خرابيږي او جومات ته تلونكي خلك له تكليف سره مخامخ كيږي۔ نو د داسې سړي په باره كښې د شريعت حكم څه دى؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د جومات له تعمير څخه منع كول او همدارنګه د جومات لاره بندول په شريعت كښې ناجائز دي۔ دا يو د فسق كار دى او داسې سړى د تعذير قابل دى۔ البته كه چېرته نوموړې لار د جومات لاره نه وي بلكه د ده خپل ملكيت وي نو بيا په دې كښې څه حرج نشته او استعمال ئې د مالك تر اجازې پورې اړه لري۔

قال الله تبارك و تعالىٰ: وَمَنْ اَظْلَمُ مِمَّنْ مَّنَعَ مَسَاجِدَ اللّٰهِ اَنْ يُّذْكَرَ فِيْهَا اسْمُهٗ وَ سَعٰى فِىْ خَرَابِهَا. (الآية)

قال الله تبارك و تعالىٰ: اِنَّمَا يَعْمُرُ مَسَاجِدَ اللّٰهِ مَنْ اٰمَنَ بِاللّٰهِ وَ الْيَوْمِ الْاٰخِرِ. (الآية) (مشكٰوة، ج۱، ص۶۹، باب المساجد، الفصل الثانى)

## د جومات شيان د عاريه په توګه د استعمالولو حكم

**سوال:** د جومات شيان په عاريت سره يو څوك پخپل استعمال كښې راوستلى شي او كه نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د جومات شيان د جومات لپاره وقف وي او پخپلو ذاتي اغراضو كښې ئې استعمالول جائز نه دي۔ البته كه چېرته واقف دا نيت پكښې كړى وي نو بيا ئې د استعمال ګنجائش شته۔

قال العلامة الحصكفىؒ: فاذا تم و لزم الوقف و لا يملك و لا يعار و لا يرهن. قال ابن عابدينؒ و لا يعار و لا يرهن لاقتضائهما الملك. (رد المحتار على الدر المختار ج۴، ص۳۵۱، كتاب الوقف، مطلب فى شروط واقف الكتب الخ)

قال فى الهندية: و لا يحمل القيم سراج المسجد الى بيته و يحمله من بيته الى المسجد و لا بأس ان يترك سراج المسجد الى ثلث الليل و لا يترك اكثر من ذٰلك الا اذا شرط الواقف ذٰلك او كان ذٰلك معتاداً ذٰلك الموضع. (الفتاوى الهندية ج۱، س۰۶۱، هل فى كره غلق باب المسجد) و مثله فى خلاصة الفتاوىٰ ج۴، ص۴۲۳، كتاب الوقف، الفصل الرابع فى المسجد.

## د جومات د ځمكې تبادله

**سوال:** زمونږ والد صاحب يوه ټكړه ځمكه د جومات لپاره وقف كړې وه او باقاعده ئې د هغې حدود معلوم كړي وو او د شكرانې نفلونه ئې هم پرې ادا كړي وو۔ اوس زمونږ والد صاحب وفات شوى دى او مونږ غواړو چه د دې ځمكې په بدل كښې بله ځمكه د جومات لپاره وقف كړو



او لومړنى ځمكه د ځان په استعمال كښې راولو نو آيا په شريعت كښې داسې كول جائز دي؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** كله چه يو څوك پخپل ژوند كښې خپله مملوكه ځمكه وقف كړي او له خپلې ځاني حصې څخه ئې بيله كړي نو له هغه وروسته د هغې ځمكې مالكانه تعلق ختم كيږي۔ همدا وجه ده چه د واقف له مړينې وروسته په دې موقوفه ځمكې كښې د وارثانو د وراثت حق ثابت نه دى او نه ئې بيع جائزه ده۔ تر كومه ځايه پورې ئې چه د استعمال تعلق دى نو دا هم څو صورتونه لري۔

﴿۱﴾ دا چه واقف د خپل ځان او يا د خپل وارث لپاره د استبدال شرط كښېښودي۔

﴿۲﴾ كه چېرته ئې شرط نه وي اېښى ليكن د دې ځاى څخه انتفاع ختم شوې وي نو په دې صورت كښې د قاضي يا د حاكم په اجازې سره د اصح قول مطابق استبدال صحيح دى۔ چونكه په صورت مسئوله كښې د دواړو وجود مفقود دى نو ځكه مذكوره ځمكه به د جومات وي او په بلې ځمكې باندې ئې بدلول جائز نه دي۔

لما قال العلامة ابن الهمامؒ: و قوله و لو شرط ان يستبدل بها ارضا اخرىٰ تكون وقفاً مكانه فهو جائز عند ابى يوسفؒ و هلال و الخصاف و هو استحسان و كذا لو قال على ان ابيعها و اشترىٰ بثمنها اخرى مكانا و كذا ليس للقيم الاستبدال الا ان ينص لهٗ بذٰلك....... و لو قيد شرط الاستبدال للقيم بحياة الواقف ليس له ان يستبدل بعد موته. و فى فتاوىٰ قاضيخان قول هلال و ابى يوسفؒ هو الصحيح........ و كذا ارض الوقف اذا قل نزلها بحيث لا تحتمل الزراعة و لا تفضل غلتها عن مونتها و يكون صلاح الارض فى الاستبدال بارض اخرى و فى نحو هٰذا عن الانصارى صحة الشرط لٰكن لا يبيعها الا باذن الحاكم و ينبغى للحاكم اذا رفع اليه و لا منفعة فى الوقف ان يأذن فى بيعها اذا رأه انظر لاهل الوقف. (فتح القدير ج۵، ص۴۳۹، كتاب الوقف)

لما قال العلامة ابن عابدينؒ: اعلم ان الاستبدال على ثلاثة. وجوه الاوّل: ان يشرطه الواقف لنفسه او لغيره او لنفسه و غيره فا لاستبدال فيه جائز على الصحيح و قيل اتفاقاً. و الثانى: ان لا يشرطه سواء شرط عدمه او سكت لٰكن صار بحيث لا ينتفع به با لكلية بان لا يحصل منه شىء اصلاً او لا يفى بمؤنة فهو ايضاً جائز على الاصح اذا كان باذن القاضى و رأيه المصلحة فيه. و الثالث: ان لا يشرطه ايضاً و لٰكن فيه نفع فى الجملة و بدله خير منه ربعا و نفعا و هٰذا لا يجوز استبداله على الاصح المختار. (رد المحتار ج۴، ص۳۸۴، كتاب الوقف، مطلب فى استبدال الوقف و شروطه) و مثله فى امداد المفتين الشهير بفتاوىٰ دار العلوم ديوبند ج۲، ص۷۴۹.

## په جوماتونو كښې د سكولونو يا مكتبونو د خلاصولو حكم

**سوال:** نن صبا د حكومت له خوا څخه په جوماتونو كښې د مكتب تر نامه لاندې ابتدايي مكتبونه خلاصيږي او استاذانو ئې باقاعده په جوماتونو كښې چوكۍ او كرسۍ اېښي وي او د عامو ابتدايي مكتبونو غوندې د بې اعتدالۍ او بې احتياطۍ نه كار اخلي۔ آيا په شريعت كښې داسې كول جائز دي؟ په داسې حال كښې چه د دې جومات تقدس هم تر پښو لاندې كيږي

او د جومات حالت د یوې عامې حجرې غوندې ګرځي۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د مذکوره حالاتو په رڼا کښې عموما دا معلوم شوي دي چه د دې په وجه سره د جومات تقدس او عظمت باقي نه پاتې کیږي چه له مخې دا خطره او اندیښنه نوره هم قوي کیږي چه آیا د دغې خیراخواهۍ په جامه کښې د شعائر الله د توهین منظم پروګرام نه دی؟ نو ځکه د تعلیم دا سلسله چیرته په بل ځای کښې باید جاري وساتل شي او جوماتونه د لمانځه، ذکر الله او د قرآن او د حدیث تر تعظیم پورې محدود وساتي۔

لما قال الشیخ احمد الحمویؒ: فی شرح الجامع الصغیر للتمرتاشی و لا یجوز تعلیم الصبیان القرآن فی المسجد للمروی جنبوا صبیانکم المساجد انتهٰی. و هو صریح فی عدم الجواز سواء کان باجرة ام لا. (الاشباه و النظائر ج۴، ص۵۶، القول فی احکام المسجد)

قال العلامة ابن عابدینؒ: لما اخرجه المنذری: مرفوعاً جنّبوا مساجدکم صبیانکم و مجانینکم و بیعکم وشرائکم و رفع اصواتکم الٰی اخره. (رد المحتار ج۱، ص۶۵۶، احکام المسجد) و مثله فی الهندیة ج۵، ص۳۲۱، کتاب الکراهیة، الباب الخامس فی آداب المسجد.

## د جومات په تعمیر کښې د قادیانیانو شرکت

**سوال:** د کوم جومات د تعمیر لپاره یوه قادیاني دوه زره خښتې ورکړي دي نو آیا په شریعت کښې دا خښتې په جومات کښې څوك استعمالولی شي؟ بینوا توجرا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** قادیاني اګر که خپل ځان مسلمان او اهل قبله بولي لیکن د ختم نبوت له عقیدې څخه د انکار او د دین د نورو ضروریاتو څخه د انکار او په هغو کښې د تاویل کولو په وجه په مرتدینو کښې داخل دی۔ په دې صورت کښې به د دوی هبه موقوفه وي که چیرته دوی اسلام قبول کړ نو د دوی هبه به نافذه وي او که چېرته پخپل ارتداد باندې قائم پاتې شول نو د مرتدوالي له وجهې به د دوی هبه باطله وي۔ د قادیانیانو د مالونو د قبلولو یو نقصان دا هم دی چه د دوی د کفر په باره کښې د ټول امت مسلمه چه کومه عقیده ده هغه خامخا متاثر کیږي نو ځکه د هغوی هبه به په یوه صورت کښې هم نه قبلوی۔

قال ابن نجیم المصریؒ: توقف مبایعته و عتقه و هبته فان من نفذ و ان هلك بطل. (البحر الرائق ج۵، ص۱۳۳، باب المرتد)

قال العلامة الحصکفیؒ: یتوقف منه عند الامام و ینفذ عندهما کل ما کان مبادلة مال بمال او عقد تبرع (کالمبایعة) و الصرف و السلم و العتق و التدبیر و الکتابة و الهبة. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۳، ص۲۵۰، باب المرتد، قریب من مطلب المعصیة، تبقی بعد الردّة) و مثله فی الجوهرة النیرة ج۲، ص۳۷۹، کتاب السیر.

## د جومات لپاره د موقوفه زمکې پلورل

**سوال:** آیا د جومات انتظامیه کمیټې ته دا حق حاصل دی چه د جومات لپاره موقوفه زمکه وپلوري او یا ئې په اجاره باندې ورکړي او یا هغه د بل مصرف لپاره په استعمال کښې راولي؟ بینواتوجروا۔



**الجواب باسم ملهم الصواب:** د جومات لپاره د موقوفه زمکې پلورل شرعا جائز نه دي۔ البته د زمکې د تبادلې جواز د فقهې په کتابونو کښې شته۔ او تبادله هم په هغه صورت کښې جائزه ده چه په د جومات فائده پکښې وي او همدا ډول د جومات د نفع په خاطر په اجاره باندې ورکول ئې هم جائز دي۔

و فـــــی الهندیة: مبادلة دار الوقف بدار اخرٰی انما تجوز اذا کانتا فی محلة واحـــــدة تکون المحلة المملوکة خیراً من محلة الموقوفة و علی ملکـــــه لا یجوز. (الفتاوی الهندیة ج۲، ص۴۰۰، کتاب الوقف، الباب الرابع فیما یتعلق با لشرط فی الوقف)

قال ابن عابدینؒ: قال و فی القنیة مبادلة دار الوقف بدار اخرٰی انما یجوز اذا کانتا فی محلة واحدة او محلة الاخرٰی خیراً و با لعکس لا یجوز و ان کانت المملوکة اکثر مساحة و قیمة أُجرة لاحتمال خرابها فی ادون المحلتین لدنأتها و قلة الرغبة فیها. (رد المحتار علی الدر المختار ج۴، ص۳۸۶، کتاب الوقف، مطلب فی شروط الاستبدال) و مثله فی البحر الرائق ج۵، ص۲۲۳، کتاب الوقف.

## د کوم جومات زمکه چه په صحیح توګه وقف نه وي نو هغه شرعي جومات نه دی

**سوال:** څه فرمایي د دین علماء د دې مسئلې په باره کښې چه په انګلینډ کښې کورونه په دوه قسمه دي۔ یو فري هولډ او دوهم لیس فري هولډ۔ په اول ډول کښې زمکه او عمارت د مکان د مالك ملکیت وي او په دوهم ډول کښې یوازې په کور باندې د مالك ملکیت حق وي په داسې حال کښې چه زمکه د اجارې د خاوند وي۔ لیکن دا فرق هم یوازې امتیازي وي۔ د دواړو قسمونو په صورت کښې حکومت ته پوره اختیار حاصل وي۔ ځکه چه د نوموړي دواړو صورتونو لپاره د حکومت له خوا یوه نیټه ټاکلې وي۔ که چېرته له ټاکلي مودې څخه حکومت ته د دې زمکې ضرورت پیدا شي نو حکومت دا ټاکل شوې موده منسوخوي او دا زمکه پخپل مصرف کښې راوستلی شي۔ په دې کښې هیچا ته هم د حکومت د دې فیصلې په خلاف د کومې کاروایی حق حاصل نه دی۔

آیا د داسې زمکه چه په هغې باندې مالك ته پوره د ملکیت حق حاصل نه وي که چېرته په هغې باندې جومات جوړ کړی شي او باقاعده په هغه کښې آذان او جماعت هم وشي لیکن دا زمکه کومه چه جومات پرې جوړ شوی دی حکومت ته ئې ضرورت پیښ شي او حکومت د ضرورت په خاطر د دې زمکې پخپل مصرف کښې د راوستلو اراده وکړي او مالك ته له خپلې خوا څخه د دې عمارت عوض او بدل ورکړي نو په داسې زمکې باندې جومات جوړول د شرعي جومات په حکم کښې راتلی شي او آیا اخیستل او پلورل او تغیر او تبدل پکښې جائز دی او که نه؟ او همدارنګه د جومات شهید کول او زمکه ئې په بل مصرف کښې استعمالول څنګه دي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د اهل علم د تحقیق مطابق د شرعي جومات لپاره زمکه او مکان دواړه باید وقف مؤبد وي یعنې د وقف مؤبد والی ورته شرط دی۔ او حال دا چه په دې مسئله

کنبې د ا شرط محقق نه دی او د اهل علمو په نزد د جومات په معامله کنبې که چېرته یو د اسې شرط ولګول شي چه له وجهې ئې په وقف مؤبد کنبې فرق راتلو نو هغه شرط به باطل وي او وقف به مطلق او مؤبد وي۔

قال ابن عابدينؒ: تحت هٰذا القول (قوله و لا ذكر معه اشتراط بيعه الخ) في الخصاف لو قال على ان لي اخراجها من الوقف الى غيره او على ان اهبها و اتصدّق بثمنها او على ان اهبها لمن شئت او على ان ارهنها متى بدالي و اخرجها عن الوقف بطل الوقف ثم ذكر ان هٰذا في غير المسجد اما المسجد لو اشترط ابطاله او بيعه صح و بطل الشرط. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج۳، ص۳۴۲، كتاب الوقف، قبل مطلب في وقف المرتد و الكافر)

په کوم ملك کنبې چه پخپله مالك ته په کومې زمکې او یا مکان باندې مِلك مؤبد حاصل نه وي او هغه ته په هغې زمکې کنبې تصرف من کل الوجوه حاصل نه وي نو هغه به څنګه کولی شي چه وقف مؤبد وکړي۔ او څنګه د اسې جومات ته سړی شرعي جومات ویلی شي؟ نو له دې وجهې د اسې جوماتونه به شرعي جوماتونه نه وي۔

قال العلامة ابن عابدينؒ: افاد ان الواقف لا بد ان يكون مالكه وقت الوقف ملكاً باتا و لو بسبب فاسدٍ و ان لا يكون محجوراً عن التصرف حتى لو وقف المغصوب لم يصح و ان ملكه بعد بشراء او صلح و لو اجاز المالك وقف فضولي جاز. (رد المحتار على الدر المختار ج۴، ص۳۴۰، كتاب الوقف، مطلب قد يثبت الوقف با لضرورة)

قال ابن نجيمؒ: من شرائط الملك وقت الوقف حتى لو غصب ارضاً فوقفها ثمّ اشتراها من مالكها او دفع الثمن اليه او صالح على مال دفعه اليه لا تكون وقفاً. (البحر الرائق ج۵، ص۱۸۸، كتاب الوقف) و مثله في الهندية ج۲، ص۳۵۳، كتاب الوقف.

## جومـــــات د چا شخصي او ذاتي مِلکیت نه دی

**سوال:** یوه سړي په کلي کنبې یو جومات جوړ کړی دی او خلکو ته ئې پکنبې د لمانځه عامه اجازه کړې ده۔ له څه وخت څخه وروسته هغه دعوی وکړه چه دا جومات زما ملکیت دی لهذا په دې کنبې به تول تصرف زما وي۔ نو اوس پوښتنه دا ده چه آیا جومات د چا په شخصي ملکیت کنبې راتلی شي یعنې جومات د چا شخصي ملکیت کیدلی شي په د اسې حال کنبې چه جومات ئې پخپله جوړ کړی وي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** کله چه جومات یو ځل جومات شي او هغه کنبې خلکو ته د لمانځه عامه اجازه وشي نو بیا هیڅ کله د چا ملکیت پاتې کیږي۔ البته باني ته د تولیت حق حاصل وي۔

قال العلامة الحصكفيؒ: اراد اهل المحلة نقض المسجد و بنائه احكم من الاول ان الباني من اهل المحلة لهم ذلك الا لا. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج۴، ص۳۵۷، كتاب الوقف، احكام المساجد)

قال طاهر بن عبد الرشيد البخاريؒ: رجل بنى مسجدا في سكة فنازعه بعض اهل السكة في عمارته او نصب المؤذن و الامام فا لمختار ان الباني اولى و في العمارة اولى باتفاق. (خلاصة الفتاوى ج۴، ص۴۲۱، الفصل الرابع في المسجد و اوقافه الخ) و مثله في الاشباه و النظائر ج۲، ص۲۳۲، كتاب الوقف.



## د جومات له فنډ څخه د معاوضې د ورکولو حکم

**سوال:** زمونږ په کلي کنبې د جومات له محراب سره څه دوکانونه وو کله چه جومات شهید کړی شو او له سر نه ئې د تعمیر اراده وشوه نو نومورې دوکانونه هم ړنګ شول۔ حکومت د دوکاند ارانو په درخواست باندې دوی ته په بدله کنبې بل ځای ورکړ۔ او دوی دا هم ورته وایي چه څومره ورځې د ړنګید و په وجه زمونږ په کاروبار کنبې څنډ راغلی دی د هغو معاوضه هم راکړې او هر یو دوکاندار پنځه زره روپۍ له حکومت څخه غواړي چه تولې شل زره روپۍ جوړیږي په د اسې حال کنبې چه جومات هم ښه ډیر فنډ لري نو آیا د دوکاند ارانو په غوښتنې باندې د جومات له فنډ څخه هغوی ته د معاوضې ورکول جائز دي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په نومورې صورت کنبې د دوکاند ارانو دا غوښتنه چه د جومات د تعمیر له وجهې د دوی د څومره ورځو کاروبار متاثر شوی وي د هغو معاوضه او بدله مونږ ته راکړی غیر شرعي ده ځکه چه د مکان په مالك باندې د کاروبار د متاثر کیدو ذمه واري نه راځي۔ بیا هم د دغو ورځو کرایه به له دوی څخه نه اخیستل کیږي۔ نو ځکه د اسې غیر شرعي مصرف د جومات له فنډ څخه شرعا نه شي اد اکیدلی۔ بیا هم که چېرته د شر او فساد خطره وي نو بیا د شر د دفع کولو لپاره د څه پیسو ورکول مرخص دي۔ لیکن د دوکاند ارانو ورونو لپاره ئې اخیستل ناجائز او حرام دي۔

قال ابن عابدينؒ: الثالث اخذ المال يسوى امره عند السلطان دفعاً للضرر او جلباً للنفع و هو حرام على الاخذ. (رد المحتار على الدر المختار ج۴، ص۳۰۳، كتاب ادب القاضى، مطلب في الكلام على الرشوة و الهدية)

قال العلامة ابن نجيمؒ: و منها اذا دفع الرشوة يسوّى امره عند السلطان حل له الدفع و لا يحل للآخذ ان يأخذ. (البحر الرائق ج۶، ص۲۶۲، كتاب ادب القاضى) و مثله في فتح القدير على الهداية ج۶، ص۳۵۹، كتاب ادب القاضى.

## د جومات د اخیستلو او پلورلو د عدم جواز حکم

**سوال:** د پاکستان د جوړیدو په وخت کنبې هندوان او سکان له پاکستان څخه هندوستان ته لاړل او د دوی کورونه، زمکې او جائد ادونه پاتې شول بیا د مهاجرینو د یوې ډلې خلك یو ځای غوره کړل او باقاعده ئې له ډپټي کمیشنر څخه اجازه واخیسته او نقشه ئې منظوره کړه او جومات ئې جوړ کړل۔ وروسته له دې چه حکومت د متروکه زمکو قیمتونه وصول کړل نو حکومت د دې ځای د قیمت له لاس ته راوړلو څخه مخکنبې جومات پخپل تحویل او سرپرستي کنبې واخیست او تقریبا تر اتلسو کلونو پورې ئې پخپلې سرپرستۍ کنبې جومات وساته او د جومات لپاره د موقوفه دوکانونو منافع او کرایې هم حکومت وصولولې۔ نو اوس چه کله حکومت د نومورې جومات له سرپرستۍ څخه لاس اخلي نو د نومورې ځای قیمت هم غواړي۔ حالانکه مونږ دا جومات د حکومت په اجازه جوړ کړی وو۔ په دې صورت کنبې د جومات د قیمت ادا

کول ضروري دي او آیا دا جومات د شرعي جومات په حکم کښې راځي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د مستفتي له بیان څخه معلومیږي چه دا جومات د حکومت په اجازه جوړ شوی دی لهذا که چېرته په حکومتي ځای باندې د قیمت د ادا کولو نه پرته د حکومت په اجازه جومات جوړ شي نو په دې سره هغه جومات شرعي جومات جوړیږي ځکه چه د جوماتونو اهتمام کول د اسلامي حکومت ذمه واري ده۔

قال ابن عابدینؒ: فانهٗ یجب ان یتخذ الامام للمسلمین مسجداً من بیت المال او من مالهم ان لم یکن لهم بیت المال. (رد المحتار علی الدر المختار ج٤، ص٣٣٩، کتاب الوقف، مطلب لو وقف علی الاغنیاء وحدهم لم یجز)

او د حکومت د نقشې منظورول باقاعده د اجازې ښکارندوی دی او د باقاعده جومات جوړولو نه ورسته د هغه اخیستل او پلورل جائز نه دي۔

قال العلامة المرغینانیؒ: و من اتخذ ارضه مسجداً لم یکن له ان یرجع فیه و لا بیعه و لا یورث عنه لانه یحرز عن حق العباد و صار خالصاً لله تعالٰی و هٰذا لان الاشیاء کلها لله تعالٰی. (الهدایة ج٢، ص٦٤٤، باب الوقف، فصل فی وقف المسجد)

و فی الهندیة: اما حکمه عندهما زوال العین عن ملکه الی الله و عند ابی حنیفةؒ حکمه صیرورة العین محبوسة عن ملکه بحیث لا تقبل النقل عن مِلك الی ملك و التصدق با لعلة المعدومة متٰی صح الوقف بان قال جعلت ارضی هٰذه صدقة موقوفة مؤبدة او اوصیت بها بعد مَوتی فانه یصح حتٰی لا یملك بیعه و لا یورث عنه لٰکن ینظر ان خرج من الثلث یجوز. (الفتاوی الهندیة ج٢، ص٣٥٢، کتاب الوقف) و مثله فی البحر الرائق ج٥، ص١٩١، کتاب الوقف.

## په عیدګاه کښې لوبې کول او همدارنګه له هغې څخه د لارې د جوړولو حکم

**سوال:** زمونږ په کلي کښې یوې مسئلې سخت شدت پیدا کړی دی او هغه دا چه د کلي یوه وقف شوې عیدګاه ده او د کلي هلکان له بوټونو سره په هغې کښې لوبې کوي او د دغې عیدګاه دوه دروازې دي چه یوه دروازه د کلي او بله ئې د سړك په طرف ده او د کلي له طرفه چه کومه دروازه ده په هغې باندې خلك عیدګاه ته ور ننوځي او د سړك له طرفه په دروازې باندې بیرته سړك ته ووځي چه له مخې ئې کله کله د حائضه او نفساء ښځه هم پرې تیریږي۔ اوس یو چا د عیدګاه د حرمت او عزت د ساتلو لپاره یوه دروازه بنده کړې ده لیکن د کلي خلکو خصوصاً عیدګاه ته نژدې خلك دا سړی له دې عمل څخه منع کوي او په دې باندې سخت ناراض هم دي۔ اوس پوښتنه دا ده چه له عیدګاه څخه ګذرګاه (د تیریدلو لار) جوړول او په عیدګاه کښې ګرځیدل او لوبې کول جائز دي او که نه؟ او آیا عیدګاه د شرعي جومات په حکم کښې دی او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د عیدګاه او جنازه ګاه اګر که دا خبره د فقهاوو په نزد مختلف فیه ده چه آیا د شرعي جومات په حکم کښې دی او که نه لیکن راجح مذهب دا دی چه عیدګاه د شرعي جومات په حکم کښې دی۔



کما قال العلامة قاضی خانؒ: مسجد اتخذ لصلٰوة الجنازة او لصلٰوة العید هل یکون لهٗ حکم المسجد اختلف المشائخ فیه قال بعضهم یکون مسجد حتٰی لو مات الواقف لا یورث. (فتاوٰی قاضی خان علی هامش الهندیة ج٣، ص٢٩٠، کتاب الوقف)

و قال العلامة ابن عابدینؒ: المتخذ لصلٰوة الجنازة و العید فهو مسجد فی جواز الاقتداء و ان انفصل الصفوف رفقا با لناس لا فی حق غیره به یفتی نهایة آه. و عبارة النهایة و المختار للفتوٰی انه مسجد فی حق جواز الاقتداء...... فان الباقی لم یعده لذٰلك فینبغی ان لا یجوز...... و ما صححه تاج الشریعة ان مصلی العید لهٗ حکم المساجد و تمامه فی الشرنبلالیة. (رد المحتار ج١، ص٤٤٢، کتاب الوقف)

و في احسن الفتاوٰی: په ټولو احکامو کښې عیدګاه د جومات په حکم کښې کیدل مختلف فیه ده۔ له شامیه څخه دا چه په ټولو احکامو کښې د جومات په حکم کښې دی راجح معلومیږي۔ (احسن الفتاوٰی ج٦، ص٤٢٨، کتاب الوقف)

نو ځکه په عیدګاه کښې هر هغه عمل چه له مخې ئې د هغې بې حرمتي او بې عزتي کیږي ناجائز او حرام دی لکه په عیدګاه کښې د لارې جوړول او بیا پرې د هر ډول خلکو (حائضه، نفاسه، جنوب) او د اسې نورو تیریدل او یا په هغې کښې لوبې کول او یا ئې بې حرمتي او بې ادبي کول او د اسې نور۔

کما قال العلامة ابن نجیمؒ: و قال بعضهم له حکم المسجد حال اداء الصلٰوة لا غیر و هو و الجنانة سواءٌ و یجتنب هٰذا المکان عما یجتنب المسجد احتیاطاً. (البحر الرائق ج٥، ص٢٤٨، کتاب الوقف)

و في کفایت المفتي: د عیدګاه په احاطه کښې د کارخانې خلاصول کوم چه په هغې کښې هر ډول خلك کار کوي جائز نه دي۔ (کفایت المفتي ج٧، ص١١٤)

و في امداد المفتین: او احتیاطاً په تعظیم او حرمت کښې هم فقهاوو عیدګاه د جومات په مثل ګرځولی دی او زراعت د دې برخلاف دی۔ (فتاوٰی دار العلوم دیوبند ج٢، ص٨١٥)

و في احسن الفتاوٰی: د عیدګاه احترام په هر حال واجب دی اګر که ئې په جومات والي کښې اختلاف دی۔ لیکن له بې حرمتۍ څخه ئې حفاظت په هر حال کښې ضروري دی۔ لهذا په مسئوله امورو کښې لکه د لوبې کول او د دعوت او د اسې نورو انتظام په عیدګاه کښې تر سره کولو اجازه نشته۔ (احسن الفتاوٰی ج٦، ص٤٢٨، کتاب الوقف)

او په عیدګاه کښې نومووړي امور ځکه هم ناجائز دي چه واقف دا زمکه د نومووړي امورو لپاره نه وي وقف کړې بلکه د دې زمکې وقف یوائځې او یوائځې تر عیدګاه پورې موقوف وي او د واقف د نیت معتبرول ضروري دی۔ په شامي کښې راغلي دي چه: نیة الواقف کنص الشارع. (رد المحتار ج٤، ص٤٣٣، کتاب الوقف)

او بیا چه کله د عیدګاه سره بله متبادله لار موجوده وي سره له دې هم په عیدګاه کښې د لارې جوړول په جومات کښې د لارې له جوړولو سره برابر دی۔ په د اسې حال کښې چه رسول

اللهﷺ له دې څخه منع فرمايلې ده او ويلي ئې دي چه: لا تجعلوا المساجد ممرا. (الحديث) "يعني له جومات څخه لار مه جوړوی"

نو د دې لپاره د شريعت د تقاضاوو د پوره کولو لپاره د عيدګاه حفاظت ضروري دی تر څو چه په دې کښې لار نه شي جوړه او په مسلمانانو باندې لازم دي چه له هغه سرې سره امداد وکړي څوك چه د عيدګاه حفاظت کوي۔ له عيدګاه څخه د لوبو ميدان جوړول او يا په هغې کښې د لارې له جوړولو څخه په منع کوونکی سړي باندې هيڅ ته هم د اعتراض کولو شرعا حق حاصل نه دی۔ دا ځای يوائې د اخترونو د لمونځونو او د نورو ديني مقاصدو لپاره استعماليدلی شي۔ له دې پرته د لارې په توګه او يا د لوبې د ميدان او د اسې نورو د شرعي خلاف کارونو کښې ئې استعمالول جائز نه دي۔ و الله اعلم

## د جنوبي افريقې د مخکښينې جوماتونو، مدارسو او د اسې نورو حکم

**سوال:** څه فرمايي د دين علماء او د شرع متين مفتيان د لاندينې سوالونو په باره کښې چه:

﴿۱﴾ جنوبي افريقه يو د اسې ملك دی چه هيڅ کله اسلامي حکومت پکښې قائم شوی نه دی او په حقيقت کښې دا ملك غير آباده وو۔ له ټولو نه مخکښې د هالينډ ډچ قوم له جاوا څخه دړې سره کاله مخکښې راغلی وو۔ او همدا ډچ قوم تقريبا يونيم سل ملائي مسلمانان کوم چه سياسي بنديان وو له ځان سره راوستلي وو۔ او بيا انګريزان راغلل او هغوی له هندوستان څخه هندوستانيان د کاروبار لپاره راوبلل۔ کله چه د هندوستانيانو وخت پوره شو نو ځينې ئې واپس هندوستان ته لاړل او ځينې ئې په زراعت مشغول شول۔ په دې ملك کښې سپين پوستان ۳۵ لکه، حبشيان ۱۵۷ لکه، ايشيايي قوم ۵ لکه، خالص حبشيان يو کروړ او شل لکه او مسلمانان تقريبا يولکو ته ورسيدل۔ او په دې ملك کښې حکومت د سپين پوستو عيسويانو دی۔ مسلمان د لمانځه، آذان، قرباني، حج او د اسې نورو په ادا کولو کښې آزاد دي۔ د مسلمانانو جوماتونه او مدرسې هم خلاصې او آزادې دي۔ اوس حکومت د نسلي امتياز قانون جوړ کړی دی چه بنياد ئې په رنګ باندې دی او مذهب باندې نه دی۔ د دې قانون له مخې به هر قوم په بيلو بيلو ځايونو کښې اوسيږي۔ اوس کومې منطقې چه د سپين پوستانو لپاره ځانګړې شوي دي له هغو څخه هندوستانيان باسي او هغو ته د هغو د کورونو او جائدادونو په معمولي قيمت ورکولو سره له خپلو ځايونو په زور ايستل کيږي او جائدادونه ئې په زبردستی ترې اخيستل کيږي۔

نو اوس پوښتنه دا ده چه آيا دا ملك دار حرب دی او که نه؟ او که چېرته دار الحرب وي نو بيا مسلمانانو ته له دې ځای څخه هجرت کول په کار دي او که همدلته اوسيدل ورته ضروري دي؟

﴿۲﴾ کومه علاقه چه د سپين پوستانو لپاره ځانګړې شوي دي په هغو ځايونو کښې چه کوم



جوماتونه دي د هغو پلورل او قيمت اخيستل ئې جائز دي او که نه او که له قيمت اخيستلو پرته پريښودل شي او حال دا چه نن صبا ئې قيمتونه له لکونو پونډو څخه هم پورته دي۔ کله چه په دغو علاقو کښې مسلمانان نه اوسيږي نو دا جوماتونه غير آباده او شهيدان کيږي۔ اوس له تاسو څخه دا التجاء چه د دې ملك شمار په کومو ملکونو کښې راځي او کوم جوماتونه چه د سپين پوستانو تر ولکې لاندې راغلي د هغو په باره کښې مسلمانانو ته څه کول په کار دي د مقدس شريعت په رڼا کښې د دې مسئلې حل مطلوب دی؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** محترمو ستاسو د سوالونو جوابونه د مقدس شريعت په رڼا کښې په لاندې ډول دي۔

﴿۱﴾ په فقهي عبارتونو باندې د نظر له اچولو څخه دا معلوميږي چه ستاسو ملك يعني جنوبي افريقه ستاسو لپاره نه دار الحرب دی چه هجرت ترې لازم شي او نه پوره دار الاسلام دی بلکه دار الامن او دار العهد که ورته وويل شي نو بې ځايه خبره به نه وي۔ د دې په باره کښې د فقهاء کرامو څو عبارتونه مطالعه کړی۔

﴿الف﴾ په فتاوٰی عالمګيري کښې دي چه: اعلم ان دار الحرب تصير دار الاسلام بشرط واحد و هو اظهار حکم الاسلام فيها قال محمدؒ فی الزيادات انما تصير دار الاسلام دار الحرب عند ابی حنيفةؒ بشروط ثلاثة احدها اجراء احکام الکفار علی سبيل الاشتهار و ان لا يحکم فيها بحکم الاسلام و الثانی ان تکون متصلة بدار الحرب، لا يتخلل بينهما بلد من بلاد الاسلام. و الثالث ان لا يبقٰی فيها مؤمن و لا ذمی آمنا بامان. الاوّ الذی کان ثابتاً قبل استيلا و الکفار للمسلم باسلامه و الذمی لعقد الذمة. و قال ابو يوسفؒ بشرط واحد لا غير و هو اظهار حکم الکفر و هو القياس. (ج۲، ص ۳۶۰)

﴿ب﴾ په خزانه المفتين کښې دي چه: دار الاسلام لا لقيد دار الحرب الا باجراء احکام الشرك فيها و ان يکون متصلاً بدار الحرب لا يکون بينها و بين دار الحرب مصر آخر للمسلمين و ان لا يبقٰی فيها مسلم و ذمی با لامان الاوّل فما لم توجد هٰذه الشرائط لقيد دار الحرب و قالا اذا اجدوا فيها احکام الشرك فانها لقيد دار الحرب سواء کانت متصلة بدار الحرب او لم تکن بقی فيها مسلم او ذمی آمنا با لامان الاوّل او لم يبق.

﴿ج﴾ په فتاوٰی بزازيه کښې دي چه: قال السيد الامام و البلاد التی فی ايدی الکفرة اليوم لا شك انها بلاد الاسلام بعد اتصالها ببلاد دار الحرب و لم فيها احکام الکفر بل القضاة مسلمون اما البلاد التی عليها. قال مسلم جهتهم فيجوز فيها اقامة الجمع و الاعياد و اخذ الخراج و تقليد القضاة و تذويج الايام و الارامل لايتلاء المسلم عليه اما البلاد و التی عليها ولاة کفار فيجوز فيها ايضاً اقامة الجمع و الاعياد و القاضی قاضٍ بترضی المسلمين الخ. و ذکر الحلوائی انه انما لقيد دار الحرب باجراء احکام الکفر و ان لا يحکم فيها بحکم من احکام الاسلام و ان يتصل بدار الحرب و ان لا يبقٰی فيها مسلم و لا ذمی آمنا با لاوّل فاذا وجدت الشرائط کلها صارت دار الحرب و عند تعارض الدلائل و الشرائط يبقٰی ما کان او يترجح جانب الاسلام احتياطاً انتهٰی ملخصاً.

﴿د﴾ په شرح الزيادات کښې دي چه: دار الاسلام انما لقيد دار الحرب بثلاث شرائط احدها اجراء احکام الکفار علی سبيل الاشتهار. و الثانی ان تکون متصلا بدار الحرب ای متصلّة لا يتخلل بينهما بلدة من بلاد المسلمين. و

الثالث ان لا یبقٰی فیها مسلم او ذمّی آمناً با لامان الاوّل فشرط هٰذه الشرائط لا یکون علماً علی تمام القهر و الاستیلاء اذا دار الاسلام یحتاط لاثبات لها و عندهماؒ یصیر دار الاسلام دار الحرب باجراء احکام الکفر فیها. انتهٰی

﴿ز﴾ او په طحطاوي شرح در مختار کښې دي چه: قوله باجراء احکام الشرك ای علی الاشتهار و ان لا یحکم فیها بحکم اهل الاسلام هندیة. و ظاهره انه لو باجریت احکام المسلمین و احکام اهل الشرك لا تکون دار الحرب. انتهٰی.

له دغو مجموعي عبارتونو او د دوی له امثالو نه ښکاریږي چه له دار الاسلام څخه د دار الحرب د جوړیدو شرط دا دی چه د کفر احکام علی سبیل الاشتهار جاري وي او د اسلام احکام بالکلیه یعني یو مخ ودرول شي او د اسلام په شعائرو او د دین په ضروریاتو کښې کفار مداخلت وکړي او دا شرط اتفاقي دی. او امام ابو حنیفه رحمه الله له دې پرته دوه نور شرطونه هم زیات کړي دي یو شرط دا چه په دغو بلادو کښې او په دار الحرب کښې هیڅ یو بنده د اهل اسلام له مملکت څخه باقي پاتې نه شي. دوهم د اچه اول امان مرتفع شي او د کفارو د امان وخت راغلی وي. او له دار الحرب څخه د دار الاسلام د جوړیدو یو شرط دی او هغه د اسلام د احکامو اظهار دی.

د دې ټول تفصیل په رڼا کښې کله چه د جنوبي افریقې په ملك باندې نظر واچول شي نو مونږ دې نتیجې ته رسیدلی شو چه د مذکوره شرائطو له مخې دار الحرب نه دی. او دا په دې وجه چه هلته د اسلام په شعائرو کښې تر اوسه پورې د حکامو له خوا څخه مداخلت او ممانعت نه دی شوی. لکه څنګه چه ستاسو له سوال څخه معلومیږي چه حکومت د سپین پوستو عیسویانو دی او مسلمانان کوم چه تقریبا یو لکو نفرو ته رسیږي د آذان، لمانځه، قرباني، حج او د اسې نورو د اسلام د شعائرو په ادا کولو کښې آزاد دي. نو ځکه نوموړي ملك ته نه دار الحرب ویل کیدی شي او نه دار الاسلام ځکه چه سلطنت د مسلمانانو نه دی او نه مخکښې چیرته اسلامي حکومت پکښې قائم شوی دی. لکه څرنګه چه ستاسو له سوال څخه معلومیږي چه په دې ملك کښې هیڅ کله اسلامي حکومت نه دی قائم شوی بلکه دا ملك یو غیر آباد ځای وو او له ټولو نه مخکښې د یوه ډچ کافر قوم حکومت پرې قائم شوی وو. او بیا د انګریزانو حکومت راغی او اوس د سپین پوستو عیسایانو حکومت دی. غرض دا چه د مسلمینو احکام او د شرك احکام دواړه په دې کښې جاري دي. لهذا دا هم نه شو کولی چه د اسلام طرف ته ترجیح ورکړو او دار الاسلام ورته ووایو او البته یو درمیاني او منځنی صورت دی کوم چه دار الامن او دار العهد ورته ویلی شو. ځکه چه یا به ستاسو له سپین پوستو عیسایانو سره باقاعده معاهده وي او که چیرته باقاعده معاهده نه وي نو ستاسو د ملك په حالاتو باندې په نظر اچولو سره عملي معاهده تر سترګو کیږي چه د دې معاهدې لاندې تاسو په امن او سکون سره ژوند تیرولی شي او تاسو خپل د نصفیې طلب معاملات هغو عدالتونو ته وروړی



او په ځاني او مالي امورو کښې د هغوی د امداد غوښتنه کوی او په نورو معاملاتو کښې هم تاسو د هغو خوا ته رجوع کوی. او دا خبره هم ښکاره ده چه تاسو دا معاهده ماته کړې نه ده ځکه چه تاسو هیڅ کوم قومي تحریك هم نه دی شروع کړی چه له مخې ئې وهل تکول، شور او غوغا او د اسې نورو عوامي نافرمانیو ته وخت رسیدلی وي نو ځکه عهد هم قائم دی او امن هم قائم دی. پس ستاسو ملك دار الامن او دار العهد دی. هذا ما ظهر لی و ان لم یشرح به القلب و لم تطمئن به النفس فان للمقال فیه مجالاً. و الله اعلم

﴿۲﴾ کوم جوماتونه چه د سپین پوستانو تر ولکې لاندې راغلي دي د مجبوریت او ضرورت له مخې ئې تاسو بدل او عوض اخیستلی شی. او د هغو پلورل، قیمت ئې اخیستل او بیائې په بدل کښې پخپلو علاقو کښې د جوماتونو جوړول صحیح او درست دي. د فقهې له کتابونو څخه یو څو عبارتونه د دې مدعی د ثبوت لپاره درج کیږي چه په لاندې ډول دي.

و فی الخانیة: رباط بعید استغنٰی عنه المارة و بجنسه رباط آخر قال السید الامام ابو شجاع تصرف غلته الی الرباط الثانی کا لمسجد اذا خرب و استغنٰی عنه اهل القریة نرفع ذٰلك الی القاضی فباع الخشب و صرف الثمن الی مسجد آخر جاز.

و فی الفتاوٰی النسفی: سئل شیخ الاسلام عن اهل القریة رحلوا و تدٰعٰی مسجدها الی الخراب و بعض المتغلبة لیستولون علی خشبهٖ و ینقلونه الی دورهم هل الواحد من اهل المحلة ان یبیع الخشب بامر القاضی و یمسك الثمن لیصرفه الٰی بعض المساجد او الٰی هٰذا المسجد قال نعم آه. (شامی ج۳، ص۵۱۴)

د دغې فتوٰی په تائید کښې علامه شاميؒ دا دلیل بیان کړی دی: فان المسجد او غیره من رباط او حوضٍ اذا لم ینقل یاخذ انقاضه اللصوص و المتغلبون کما هو مشاهد.

هو کــــه چیرته له هغو سره د دې خبرې معاهده وي چه هغوی به د مسلمانانو د دین شعائر پخپل حال پریږدي او ړنګوي او بربادوي به ئې نه نو په دې صورت کښـــــې اصل حکم دا دی چه دا جوماتونه به پخپــــــل حالت پاتې کیږي او نه به خرڅول کیږي لکه څرنګه چه امام ابویوسف رحمه الله فرمایلي دي: انه لا یعود الٰی ملك مالك ابداً کذا فی المضمرات.

(فتاوٰی عالمگیری ج۲، ص۴۴۵)

فقط و الله اعلم

19

## کـــــتاب الحدود و التعزيرات

## (د حدودو او تعزیراتو احکام او مسئلې)

## د حدودو جـــــاري کول د حاکمانو حق دی

**سوال:** یوه مجرم ته د کوړو (دُرو) او یا قصاص د سزا ورکولو استحقاق یوائې حاکم ته دی او که عوامي جرګه او کمیټه ئې هم جاري کولی شي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د حدودو جاري کول د حُکامو او د هغوی لخوا ټاکل شوي قاضیانو او د اسې نورو حق دی۔ بل چا ته د حدودو د جاري کولو اختیار نشته۔

و فی الهندية: و ركنه (الحد) اقامة الامام او نائبه فی الاقامة. (الفتاوى الهندية ج۳، ص۱۴۳، کتاب الحدود)

و قال العلامة علاؤ الدين ابی بکر ابن مسعود الکاسانیؒ: و اما شرائط جواز اقامتها فمنها ما یعم الحدود کلها و منها ما یخص البعض دون البعض اما الذی یعم الحدود کلها فهو الامامة و هو ان یکون المقیم للحد هو الامام او من ولاه الامام و هذا عندنا. (بدائع الصنائع فی ترتیب الشرائع ج۷، ص۵۷، کتاب الحدود) و مثله فی کتاب الفقه علی مذاهب الاربعة ج۵، ص۲۴۹، کتاب الحدود.

## د کوړې (دُرې) د جوړښت په باره کښې وضاحت

**سوال:** په اسلامي قانون کښې په حدودو او تعزیراتو کښې چه کومې کوړې استعمالیږي د هغې د جوړښت په باره کښې دا وضاحت وکړی چه جوړښت به ئې څنګه وي او له کوم شي څخه به جوړیږي، اوږدوالی او پلنوالی به ئې څومره وي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په حدودو او تعزیراتو کښې د استعمالیدونکي دُرې (کوړې) په جوړښت کښې ضروري خبره دا ده چه دُره که له هر شي څخه جوړه شي باید چه متوسطه وي۔ بیا هم که چېرته د لرګي وي نو په کار دی چه نرمه لښته وي۔ په حدودو او تعزیراتو کښې د کلک لرګي یعنې ډنډې استعمال جائز نه دی۔

قال العلامة ابن نجيم المصریؒ: (بسوط لا ثمرة لهٗ متوسطاً) ای لا عقدة لهٗ لان علیا فی اللّٰه عنه لما اراد ان یقیم الحد کسر ثمرته و المتوسط بین المبرح و هو الجارح و غیر المؤلم لا فضاء الاول الی الهلاك و خلو الثانی عن المقصود و هو الانزجار کذا فی الهدایة و حاصله انه المؤلم غیر الجارح. (البحر الرائق ج۵، ص۹، کتاب الحدود)

قال العلامة الزیلعیؒ: بسوط لا ثمرة متوسطاً ان یضرب بسوط لا عقدة لهٗ ضربا متوسطاً....... و عن علی رضی اللّٰه عنه انه کسر ثمرته و لو لم یکسر الثمرة بعد کل ضربة بضربتین........ و الضرب المتوسط هو المؤید غیر الجارح لان الجارح یفضی الی التلف او یبقی فی جسده اثر یشینه و لهذا یکسر عقدته و غیر المؤید لا یفید و الواجب التادیب دون الهلاك. (تبیین الحقائق ج۳، ص۱۷۰، کتاب الحدود)



## د زنا د جــــــرم په ثبوت باندې د حد د جاري کولو حکم

**سوال:** یوه بالغ هلك له بالغې نجلۍ سره زنا وکړه نو آیا په دواړو باندې به حد جاري کیږي او که نه؟ او که هغوی دواړه له مخکښیني او راتلونکي تولو ګناهونو څخه توبه وایستله نو آیا حد به ترې ساقطیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په اسلامي قانون کښې د زنا سزا د محصن (شادي شده) نر او ښځې دواړو لره د زنا په ثبوت باندې رجم دی او د غیر محصن (غیر شادي شده) لپاره سل دُرې دي۔

قال العلامة برهان الدين المرغينانیؒ: و اذا وجب الحدود کان الزانی محصنا رجمه با لحجارة حتی یموت آه. و ان لم یکن محصناً و کان حرا فحده مائة جلدة. (الهداية ج۲، ص۵۰۱، کتاب الحدود)

بیا هم د اسلامي حکومت د نشت والي له وجهې د حدودو څه معقول نظام نه وي نو که چېرته زنا کار سړی او زناکاره ښځه توبه وکړي نو امید دی چه الله تعالی ئې ګناه معاف کړي۔ علامه عبد الحی لکهنوي رحمه الله د دې توبه د اسې بیان کړې ده چه ښه اودس وکړي او دوه رکعته نفل لمونځ په خشوع او خضوع سره ادا کړي او بیا په ډیر آه او زارۍ سره اوښکې تویې کړي او د اسې عاجزي دې ښکاره کړي لکه چه یو مجرم غلام له خپل بادار څخه د خپل قصور معاف کول غواړي۔ د مغفرت دعاګانې دې وغواړي او په زړه کښې له شوې ګناه څخه ندامت او پښیمانتیا ښکاره کړي او دا قصد او محکمه اراده وکړي چه په راتلونکي کښې به هیڅکله دا حرکت نه کوي نو الله تعالی ئې ګناه معاف کوي او همدارنګه د هغې ښځې له چا سره ئې چه زنا کړې وي لپاره هم د مغفرت دعاګانې وکړي۔ او که چېرته په ابتداء کښې هغه ښځه پرې راضي نه وه نو له هغې څخه دې هم د خپل قصور معافي وغواړي تر څو چه په آخرت کښې ئې تر ګریوانه و نه نیسي۔ (مجموعه الفتاوٰی ج۳، ص۳۵۷، کتاب الحدود)

قال العلامة ابو البرکات عبد اللّٰه بن احمد بن محمود النسفیؒ: فان کان محصنا رجمه فی قضاء حتی یموت آه. و لو غیر محصن جلده مائة. (کنز الدقائق ص۱۸۱، کتاب الحدود) و مثله فی الهندية ج۲، ص۱۴۵/۱۴۶، الباب الثالث فی کیفیة الحد و اقامته.

## له نابالغې نجلۍ سره د زنا بالجبر حکم

**سوال:** څه فرمایي د دین علماء د دې مسئلې په باره کښې چه یو عاقل او بالغ هلك د نابالغې نجلۍ سره په زور او جبر سره زنا وکړي او جرم ئې ثابت هم شي نو آیا په نوموړې نابالغې نجلۍ باندې به حد جاري کیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته کوم بالغ او عاقل هلك د د اسې نابالغې نجلۍ سره زنا وکړي چه د هغې له مثل سره زنا کیدلی شي او د قاضي په نزد ئې ثبوت هم وشي نو په بالغ هلك باندې به حد جاري کیږي او په نجلۍ باندې به د هغې د نه بلوغ له وجهې حد نه جاري کیږي۔

قال العلامة الحصكفي: (اولا) حد (بزنى غير مكلف بمكلفة مطلقاً) لا عليه و لا عليها (و فى عكسه حد) فقط. (الدر المختار على هامش رد المحتار ج۳، ص ۱۵۶/۱۵۷، الباب الوطى الذى يوجب الحد و الذى لا يوجبه)

قال العلامة فخر الدين عثمان بن على الزيلعي: (قوله و بزنا صبى او مجنون بمكلفة بخلاف عكسه) اى لا يجب الحد اذا زنى البالغ العاقل بصبية او مجنونة حيث يجب الحد على الرجل. (تبيين الحقائق ج۲، ص۱۴۹، الباب الرابع فى الوطى الذى يوجب الحد و الذى لا يوجبه.

## د خپلې حقيقي لور سره د زنا کولو سـزاء

**سوال:** يوه سړي له خپلې لور سره زنا وکړه چه په نتيجه کښې ئې لور حامله هم شوه او د يو ناجائز بچي مور شوه او بې له کوم زور او جبر سره ئې خپل زوی د خپل پلار خوا ته منسوب کړه او پلار ئې بې له کوم جبر او اکراه له خپلې لور سره د زنا اقرار وکړ۔ نو په مقدس شريعت کښې د دغو دواړو يعنې لور او پلار په باره کښې څه حکم دی؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** زنا په اسلام کښې يو قبيح او ډير بد عمل دی او له هرې ښځې سره زنا کول حرام دي۔ لور خور له محرماتو څخه دي او له دوی سره زنا کول خو نور هم ډير سخت جرم دی۔ د زنا حلال ګڼل د کفر موجب دی۔ ګاونډيان دې د داسې سړي سره تعلقات پرې کړي او د وخت حکومت دې بايد په دوی باندې د زنا حد جاري کړي۔

قال العلامة ابن نجيم: من استحل ما حرمه الله تعالى على وجه الظن لا يكفر و انما يكفر اذا اعتقد الحرام حلالاً. (البحر الرائق ج۶، ص۱۶، باب المرتد)

قال العلامة ابن عابدين: من استحل ما حرمه الله على وجه الظن لا يكفر و انما يكفر اذا اعتقد الحرام حلالاً. (رد المحتار ج۳، ص ۱۵۴، باب المرتد)

## په پاک لمنې ښځې باندې د زنا د تهمت لګولو حکم

**سوال:** که چېرته يو څوک په پاکې (عفيفې) ښځې باندې د زنا تهمت ولګوي او ګواهان ئې نه شو وړاندې کولی نو د نوموړي به شرعاً څه سزا وي؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** هر څوک چه په کومې آزادې، مسلمانې، مکلفې او پاک لمنې ښځې باندې د زنا تهمت ولګوي او بيا څلور ګواهان وړاندې نه کړی شي نو په دار الاسلام کښې نوموړي اتيا دُرې وهل کيږي او په شريعت کښې دې ته حد قذف ويل کيږي خو په دې شرط چه قاذف (تهمت لګوونکی) آزاد وي۔ او که چېرته قاذف (تهمت لګوونکی) غلام وي نو هغه ته نيمه سزا يعنې څلويښت دُرې به وهل کيږي۔ البته چه اسلامي حکومت نه وي نو بيا دې قاذف توبه وباسي او د مقذوف (په چائې چه تهمت لګولی وي) نه دې معافي وغواړي۔

لما فى الهندية: اذا قذف الرجل رجلاً محصنا او امرأة محصنة بصريح الزنى بان قال زنيت او يا زانى و طالب المقذوف با لحد حده الحاكم ثمانين سوطاً ان كان القاذف حرّا و ان كان عبدا حده اربعين سوطاً كذا فى فتح القدير. (الفتاوى الهندية ج۲، ص ۱۶۰، الباب السابع فى حد القذف)

قال العلامة برهان الدين المرغيناني: و اذا قذف الرجل رجلا محصنا او امرأة محصنة بصريح الزنا و طالب



المقذوف با لحد حده الحاكم ثمانين سوطاً ان كان حرّا لقوله تعالى: وَ الَّذِيْنَ يَرْمُوْنَ الْمُحْصَنٰتِ الى ان قال فاجلدوهم ثمانين جلدة و المراد الرمى با لزنا با لاجماع و ان كان القاذف عبدا جلد اربعين سوطاً. (الهداية ج۲، ص۵۲۹، كتاب الحدود، باب حد القذف)

## د قابل تعزير سرقې (غلا) مقدار

**سوال:** هغه غلا چه د تعزير وړ دی نصاب ئې لس درهمه دی نو د نن صبا د روپو په حساب سره ئې نصاب څومره دی؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د "اوزان شرعيه" په کتاب کښې ئې ليکلي دي چه يو درهم درې نيمې ماشې دی۔ نو په دې اعتبار سره لس درهمه او يا پنځه ديرش ماشې سپين زر يا د هغه قيمت د سرقې يا غلا نصاب جوړيږي او دا خبره خو مسلمه ده چه د سرقې د حد مقدار لس درهمه ده لهذا د موجوده روپو په اعتبار سره څومره قيمت چه د پنځه ديرشو ماشو سپينو زورو جوړيږي نو سرقه يا غلا لازميږي۔

و فى الهندية: اق. النصاب فى السرقة عشرة دارهم مضروبة بوزن سبعة جياد كذا فى العناية. (الفتاوى الهندية ج۲، ص ۱۷۰، كتاب السرقة)

قال العلامة الحصكفى رحمه الله: (هى) الخ (عشرة دراهم) الخ (جياد او مقدارها) (الدر المختار على هامش رد المحتار ج۳، ص۱۹۲، كتاب السرقة) و مثله فى كنز الدقائق ص۱۷۷، كتاب السرقة.

## د سـارق (غل) د لاس د دوباره جوړولو حکم

**سوال:** که چېرته د سارق لاس د حد په توګه پرې کړی شي نو د حد له اجراء وروسته ئې دوباره لاس جوړول شرعاً صحيح دی او که نه؟ بينوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب:** سارق ته د سرقې په جرم کښې يوائې سزا ورکول کافي نه دي بلکه اصل مقصد ئې هغه له يو لاس څخه محروممول دي تر څو چه په راتلونکي کښې دا کار و نه کړی شي او خلك ترې عبرت واخلي نو له دې وجهې د سارق د پرې شوي لاس دوباره جوړول شرعاً صحيح نه دي۔

و فى الهندية: و تقطع يمين السارق من الزند و تحسم و ثمن الذيت و كلفة الحم على السارق عندنا. (الفتاوى الهندية ج۲، ص ۱۸۲، الباب الثانى فيما يقطع فيه و ما لا يقطع، الفصل الثالث)

قال العلامة ابو البركات النسفى رحمه الله: و تقطع يمين السارق من الزند و تحسم. (كنز الدقائق ص۱۹۵، كتاب الحدود، باب حد السرقة) و مثله فى الدر المختار على هامش رد المحتار ج۳، ص۲۰۶، باب كيفية القطع اثباته.

## له مـزاراتو يا زيارتونو څخه د قيمتي شيانو د غلا کولو حکم

**سوال:** نن صبا ځينې خلك د اولياوو په مزارونو باندې قيمتي شيان او غلافونه اچوي او له دې برسيره په زيارتونو روپۍ او نور قيمتي شيان هم ږدي۔ که چېرته يو څوک دغه شيان پټ کړي نو

په هغه باندې به د سرقې حد جاري کیږي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** اګر که د دې شیانو غلا کول جائز خو نه دي لیکن بیا هم د دغو شیانو په غلا کولو سره د سرقې حد نه واجبیږي- او د دغو شیانو مالك به هغه څوك وي چا چه دا شیان په مزاراتو باندې ایښي وي-

و فی الهندیة: و لو سرق من القبر دراهم او دنانیر او شیئاً غیر الکفن لم یقطع با لاجماع اختلف مشائخنا رحمهم الله تعالی فیما اذا کان القبر فی بیت مقفل الاصح انهٗ لا یقطع سواء نبش الکفن او سرق مالاً آخر من ذٰلك البیت و کذا اذا سرق الکفن من تابوت فی القافلة لا یقطع فی الاصح کذا فی الکافی. (الفتاوی الهندیة ج۲، ص۱۷۸، الباب الثانی فیما یقطع فیه و ما لا یقطع فیه)

قال العلامة علاؤ الدین الحصکفی رحمه اللّٰه: (و نبش) لقبور (و لو کان القبر فی بیت مقفل فی الاصح) (او کان (الثوب غیر الکفن) و کذا لو سرقه من بیت فیه قبر او میت لتأوُّلهٖ بزیادة القبر او التجهیز. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۳، ص۲۰۰، کتاب السرقة، مطلب فی ضمان الساعی) و مثله فی بدائع الصنائع فی ترتیب الشرائع ج۷، ص۷۶، کتاب السرقة.

## د لارو هونکي د قتل حکم

**سوال:** آیا لارو هونکی او هر هغه سړی چه فساد ئې ښکاره او عام وي د وخت حاکم یا قاضي ئې تعزیراً او سیاستاً قتل کولی شي او که عوام ئې هم د فساد د دفع لپاره په قتلولو کښې شرعا اختیار لري؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** اګر که د فساد د دفع کولو لپاره د وخت د حاکم او قاضي دا ذمه واري ده چه د اسې ډول خلك قتل کړي لیکن بیا هم که چېرته عوام هم لارو هونکي د لارې د وهلو په وخت کښې قتل کړي نو په دې کښې څه حرج نشته۔

قال العلامة الحصکفیؒ: (و علی هذا) القیاس (المکابر با لظلم و قطاع الطریق و صاحب المکس و جمیع الظلمة آه) و افتی الناصحی بوجوب قتل کل مؤذ و فی رد المحتار ج۳، ص۱۸۰ لعل الوجوب با لنظر للامام دانوا به و الاباحة با لنظر لغیرهم. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۳، ص۱۸۰، مطلب و یکون التعزیر با لقتل)

قال العلامة ابن نجیم المصریؒ: و علی هٰذا القیاس المکابرة با لظلم و قطاع الطریق...... فیباح قتل الکل و یثاب قاتلهم. (البحر الرائق ج۵، ص۴۲، باب حد القذف، فصل فی التعزیر) و مثله فی الفتاوی الهندیة ج۲، ص۱۶۷، الباب السابع فی حد القذف و التعزیر، فصل فی التعزیر.

## مفسد ته د سزا ورکولو حکم

**سوال:** که چېرته یو سړی په خلکو کښې فساد پیدا کوي نو شرعا د هغه سره به څه سلوك کیږي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د وخت حاکم ته په کار دي چه په هرې ممکنې طریقې سره د اسې خلك



له فساد څخه منع کړي او تعزیراً سزا ورکړي او عوامو ته هم په کار دي چه هغوی له د اسې خلکو سره تعلقات او موالات پرې کړي ترڅو چه هغوی له خپل دغه بد عمل څخه منع شي۔

قال العلامة الحصکفیؒ: (و علی هذا) القیاس (المکابر با لظلم و قطاع الطریق و صاحب المکس و جمیع الظلمة بادنٰی شیء لهٗ قیمة. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۳، ص۱۸۰، مطلب و یکون التعزیر با لقتل)

قال العلامة ابن نجیم المصریؒ: و علی هذا القیاس المکابرة با لظلم و قطاع الطریق و جمیع الظلمة بادنٰی شیء له قیمة و جمیع الکبائر و الاعونة و الظلمة و السعاة فیباح قتل الکل و یثاب قاتلهم. (البحر الرائق ج۵، ص۴۲، باب حد القذف، فصل فی التعزیر) و مثله فی الهندیة ج۲، ص۱۶۷، الباب السابع فی حد القذف و التعزیر، فصل فی التعزیر.

## لـــــه څناور سره په بد فعلي باندې د تعزیر حکم

**سوال:** یوه سړي له ووزې سره بد فعلي وکړه نو د هغه لپاره شرعا څه حکم دی او حال دا چه د هغه دا فعل د ګواهانو په ذریعه ثابت شوی هم دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته رښتیا هم همد اسې وي نو له څناور سره په بد فعلي کوونکي باندې تعزیر دی کوم چه د حاکم او قاضي په صوابدید پورې اړه لري۔ بیا هم د ډُرو د سزا په صورت که به له څلویښتو څخه کمې ډُرې وهل کیږي۔ له ډُرو څخه پرته بله سزا هم ورکول کیدی شي په دې شرط چه د ځان ضائع کیدو ته ئې و نه رسیږي۔ البته هغه څناور کوم چه بدفعلي ورسره شوې ده هغه به حلالوي او سوځوي به ئې او تاوان ئې د بد فعلي کوونکي په غاړې دی۔

قال العلامة طاهر بن عبد الرشید البخاریؒ: و فی شرح الطحاوی رجل وطی بهیمة یعزر فان کانت البهیمة له تذبح و لا توکل و عن عمرؓ انه امر با لبهیمة حتٰی احرقت با لنار. و فی الفتاوٰی الصغرٰی فی الذی یوکل و یذبح و یوکل عند ابی حنیفةؒ و لا یحرق و عند ابی یوسفؒ لا یوکل و یحرق با لنار الخ. (خلاصة الفتاوٰی ج۴، ص۴۴۵/۴۴۶، کتاب الحدود، الفصل الثانی فی الزنا)

قال العلامة الحصکفیؒ: (و) لا یجد بوطأ (بهیمة) بل یعزر و تذبح ثم تحرق و یکره الانتفاع بهامیة و میتة و فی النهر الظاهر انهٗ یطالب ندباً لقولهم تضمن با لقیمة. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۳، ص۱۵۵، مطلب فی وطی الدابة) و مثله فی تبیین الحقائق ج۳، ص۱۸۱، باب الوطی الذی یوجب الحد و الذی لا یوجبه.

## خپله ښځه په وطی علی الدبر باندې د مجبورولو حکم

**سوال:** د یوې ښځې دعوه ده چه میړه ئې هغې لره د شا له خوا په وطی باندې مجبوروي نو شرعا د دې سړي سزا څه ده؟ او د دې ښځې والدین دې ښځې لره خپل کور ته د راوستلو حقدار دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په صورت مسئوله کښې ښځه او د ښځې د قریبانو لپاره ضروري دي چه هغوی ئې میړه د د اسې قبیح او بدل عمل څخه منع کړي او که نه وي نو حاکم دې تعزیرا

سزا ورکړي او که چېرته له دې عمل سره عادي شوی وي نو د وخت حاکم ئې قتل کولی هم شي۔

قال العلامة الحصکفیؒ: او (بوطأ دبر) و قالا ان فعل فی الاجانب حد و ان فی عبده و امته او زوجته فلا حد اجماعاً بل یعزر قال فی الدرر الاحراق با لنار. (الدر المختار علی هامش ردّ المحتار ج۳، ص۱۵۵، باب التعزیر، مطلب فیمن وطی......)

قال العلامة برهان الدین المرغینانیؒ: ومن اتی امرأة فی الموضع المکروه او عمل عمل قوم لوط فلا حدّ علیه عند ابی حنیفةؒ و یعزر و قال فی الجامع الصغیر و یودع فی السجن و قالا هو کا لزنا فیحد. (الهدایة ج۲، ص۵۱۶، باب الوطی الذی یوجب الحد و الذی لا یوجبه) و مثله فی الهندیة ج۲، ص۱۵۰، الباب الرابع فی الوطی الذی یوجب الحد و الذی لا یوجبه.

## د جادوګر د سزا حکم

**سوال:** که چېرته یو څوک په چا باندې جادو وکړي او د هغه دا عمل په ګواهي سره ثابت شي نو شرعاً به ده ته څه ډول سزا ورکول کیږي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** جادوګر چونکه په زمکه کښې فساد کوونکی وي نو ځکه که چېرته جادوګر جادو کوي او پخپله اقرار هم پرې کوي او یا ئې په ګواهي سره د جادو عمل ثابت شي نو د وخت حاکم او قاضي ئې قتل کولی شي۔ بیا هم که چېرته له نیول کېدو څخه مخکښې د زړه له کومې توبه وباسي نو توبه به ئې مقبوله وي او له توبې ایستلو وروسته به نه قتل کیږي۔

قال العلامة علاؤ الدین الطرابلسیؒ: قال فی النوازل الخناق و الساحر یقتلان اذا اقرا لانهما ساعیان فی الارض با لفساد فان تابا ان کان قبل الظهور بهما قبلت توبتهما و بعد ما اخذا لا و یقتلان کما قطاع الطریق. (معین الحکام ص۲۲۹)

قال العلامة ابن عابدینؒ: قال ابو حنیفةؒ الساحر اذا اقرا بسحره اثبت یقتل و لا یستتاب منه الخ. (رد المحتار ج۳، ص۲۹۵، "قوله و الکافر بسبب اعتقاد السحر"، با المرتد) و مثله فی تبیین الحقائق شرح کنز الدقائق للزیلعیؒ ج۳، ص۲۹۲، باب المرتدین.

## له فاسق سره د ترک موالاتو حکم

**سوال:** یوه سړي خپلې ښځې ته درې طلاقونه ورکړي دي۔ له طلاق څخه وروسته علماوو نوموړي ته وویل چه د شرعي حلالې پرته دا ښځه ستا لپاره جائزه نه ده لیکن له دې سره سره هغه خپله مطلقه ښځه له ځان سره ساتلې ده نو د اسې ښکاره فاسق او فاجر شرعاً حکم څه دی؟ آیا هغه او د هغه پلار له جومات څخه منع کولی شو او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** له خپلې غلیظې مطلقې ښځې سره له شرعي حلالې څخه پرته د ازدواجي تعلقاتو قائم ساتل صریحه زنا ده۔ د اسې سړی د سزا مستحق دی لیکن پخپله دی یا ئې پلار له جومات څخه او یا د جمعې له مانځه څخه منع کول صحیح نه دي۔ بیا هم د هغه خپلوانو او نورو مسلمانانو ته په کار دي چه له هغه سره ترک موالات وکړي یعنې دوستي او



ناسته ولاړه ورسره پرې کړي۔

و نهی رسو اللہﷺ المسلمین عن کلامنا الخ و اما انا فکنا اشب القوم و اجلدهم فکنت اخرج فاشهد الصلوٰة و اطوف فی الاسواق و لا یکلمنی احد و آتی رسول اللہﷺ فاسلم علیه و هو فی مجلسه بعد الصلوٰة الخ. (الصحیح المسلم ج۲، ص۳۶۱، باب حدیث توبة کعب بن مالکؓ)

قال المفتی علاؤ الدین الطرابلسی الحنفیؒ: و التعزیر لا یختص بفعل معین و لا قول معین فقد عزر رسول اللہﷺ با لهجر و ذٰلک فی حق الثلاثة الذین ذکرهم اللہ تعالی فی القرآن العظیم فهجروا خمسین یوماً لا یکلّمهم احدٌ و قصّتهم مشهورة فی الصّحاح. (معین الحکام ص۲۳۱، باب التعزیر) و مثله فی شرح الصحیح المسلم للنوویؒ ج۲، ص۳۶۳، باب حدیث توبة کعب بن مالکؓ.

## د لواطت سزا

**سوال:** جناب مفتي صاحب! د لواطت شرعي سزا څه ده؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** اغلام بازي (لواطت) ډېر قبیح او خبیث عمل دی۔ شریعت د اسې عمل لپاره کومه باضابطه او باقاعده سزا مقرره کړې نه ده او د دې بد او قبیح عمل سزا ئې د حاکم د صوابدید پورې موقوفه کړې ده۔ که حاکم وغواړي د د اسې بد عمل مرتکب سوځوي او ختموي ئې نو سوځولي ئې شي او که وغواړي چه له غره څخه ئې ورغړوي نو رغړولی ئې شي او که وغواړي چه له پاسه پرې ډېره واچوي تر څو چه مړ شي نو کولی ئې شي او که وغواړي چه دیوال پرې ړنګ کړي نو ړنګولی ئې شي او که تر دغو سخته سزا ورکړي نو هم ورته جائز دي او که بندي کوي ئې تر څو چه توبه وباسي او یا په بندي خانې کښې مړ شي نو د اسې هم کولی شي۔

قال العلامة الحصکفیؒ: و لا یحد بوطء دبر و قالا ان فعل فی الاجانب حد و ان فی عبده او امته او زوجته فلا حد اجماعاً بل یعذر. قال فی الدرر بنحو الاحراق با لنار و هدم الجدار و التنکیس من محل مرتفع باتباع الاحجار. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۳، ص۱۶۰، کتاب الحدود)

لما قال المفتی محمد شفیعؒ: د دې قبیح او بد فعل لپاره د کوم تاکلې حد په مقررولو کښې د فقهاوو تر منځ اختلاف دی چه تفصیل ئې د فقهي په کتابونو کښې موجود دی۔ البته د دې فعل لپاره له سخت څخه سختې سزاګانې منقولې دي لکه په اور کښې سوځول، دیوال پرې ړنګول، له جګ ځای څخه را غورځول او بیا سنګسارول او په توره باندې ئې سر پرې کول او د اسې نور۔ (معارف القرآن ج۲، ص۳۴۰، سورة النسآء)

## د مړې ښځې وطی کول د تعزیر موجب دی

**سوال:** که چېرته یو څوک له مړې ښځې سره زنا وکړي نو آیا هغه به د حد مستحق وي او که نه؟ او که یوازې به د تعزیر مستحق وي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** له مړې ښځې سره په زنا کوونکي باندې د زنا حد نه لازمیږي او د

تعزیر مستحق خامخا دی۔

و فی الهندیة: رجـــل زنی بامرأة میتة اختلفوا فیه قال اهل المدینة حد وقال اهل البصرة یعزر و لا یحد و قال ابو اللیث رحمه اللّٰـــه تعالٰی و به ناخذ. (الفتاوی الهندیة ج۲، ص ۱۵۰، الباب الرابع فی الوطی الذی یوجب الحد و الذی لا یوجبه)

قال العلامة طاهر بن عبد الرشید البخاریؒ: و فی الفتاوٰی رجل زنی بامرأة میتة لا حدّ علیه و لکن یعزر. (خلاصة الفتاوٰی ج ٤، ص ٤٤٥، کتاب الحدود، الفصل الثانی فی الزنا) و مثله فی فتاوی قاضی خان ج ٤، ص ٤٠٦، کتاب الحدود)

## له والدینو سره د بې ادبي کوونکي سزا

**سوال:** یو سړي هر وخت له خپل پلار سره بد چلن کوي او ښکنځل او د اسې نور هم ورته کوي او له دې پرته کله کله خپل پلار په د اسې بې رحمانه توګه وهي چه سخت زخمي کیږي نو د داسې سړي په باره کښې د شریعت څه حکم دی؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د والدینو په وهلو او بد رد ویلو باندې شرعا څه حد نه دی ټاکل شوی او د داسې سړي سزا د هغه وخت حاکم او قاضي ته حواله شوې ده کوم چه د جرم د نوعیت مطابق به سزا ورکوي۔ او که چېرته د ذُرې د وهلو سزا ورکوي نو بیا به له ۳۹ دُرو څخه زیات او له دریو دُرو څخه به کمه نه وي او یا به تر هغه وخته پورې جیل ته اچول کیږي تر څو پورې ئې چه له خپل جرم څخه توبه نه وي ایستلې۔

قال العلامة علاؤ الدین الحصکفیؒ: و من یتهم با لقتل و السرقة و ضرب الناس احبسه و اخلده فی السجن حتٰی یتوب. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۳، ص۱۸۸، مطلب فی تعزیر المتهم)

و فی الهندیة: من یتهم با لقتل و السرقة و ضرب الناس یحبس الناس و یخلد فی السجن الٰی ان تظهر التوبة. (الفتاوی الهندیة ج۲، ص۱٦۹، الباب السابع فی حد القذف و التعزیر، فصل فی التعزیر) و مثله فی البحر الرائق ج٦، ص٤۲، کتاب الحدود، فصل فی التعزیر.

## نابالـــغ قاتل ته تعزیراً د سزا ورکولو حکم

**سوال:** آیا حکومت کوم نابالغ قاتل د تعزیر په توګه قتل کولی شي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په کومو عظیمو جرائمو کښې چه حد او قصاص د خارجي عوارضو په وجه ساقط شوي وي نو په هغو کښې د مصلحت په بنا تعزیراً سزا ورکول جائز دي اګر که دا تعزیر د مرګ تر سزا پورې ورسیږي او اګر که مجرم دې نابالغ ولې نه وي۔

قال العلامة ابن عابدینؒ: رأیت فی الصارم المسلول للحافظ ابن تیمیةؒ ان من اصول الحنفیة ان ما لا قتل فیه عندهم مثل القتل با لمثقل و الجماع فی غیر القبل اذا تکرّد فللامام ان یقتله فاعله الخ و یسمونه القتل سیاسة و فیه ایضاً. و من ذٰلک ما سیذکره المصنف من ان للامام قتل السارق سیاسة ایُ عن تکرر منه و فیه. و ان الحد لا یجب علی الصبی و التعزیر شرع علیه (رد المحتار ج۳، ص۱۷۷، باب التعزیر، قوله و یکون التعزیر با لقتل)



## شاګـــــرد ته د سزا او تعزیر د ورکولو حکم

**سوال:** په دیني مدارسو او مکتبونو کښې شاګردانو ته د هغوی د شرارت او شیطانۍ او یا د سبق د نه زده کولو له وجهې د تنبیه او تادیب په توګه سزا ګانې ورکول کیږي نو آیا استاد خپل شاګرد ته شرعا سزا ورکولی شي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** استاد شاګـــــر ته د تعزیر ورکولو حق لري اګر که هغه بالغ هم وي ځکه چه د نابالغ والي په صورت کښې خو معلم د هغه د اولیاوو لـــــه خوا د تادیب ورکولو مالك جوړ شوی وي او بالغ پخپله معلم ته د تعزیر د ورکولو اختیار ورکړی وي لیکن دا احتیاط پکښې شته چه د اسې تعزیر به نه ورکول کیږي چه له وجهې ئې طالب العلم په بدني او یا ذهني توګه مفلوج شي۔

قال العلامة ابن عابدینؒ: (قوله و فی القنیة الخ) و فیها عن الروضة و لو امر غیره بضرب عبده حلَّ للمامور ضربه بخلاف الحر فهٰذا تنصیص علی عدم جواز الضرب ولد الآمر بامره بخلاف المعلم لان المامور یضربه نیابة من الابّ لمصلحة و المعلّم یضربه بحکم الملك بتملیك ابیه لمصلحة الولد آه و هٰذا اذا لم یکن الضرب فاحشا. (رد المحتار ج۳، ص۱۸۹، باب التعزیر)

قال العلامة ابن نجیمؒ: و لو امر غیره بضرب عبده حلَّ للمامور ضربه بخلاف الحر قال رضی اللّٰه عنه فهٰذا تنصیص علی عدم جواز ضرب ولد الأمر بامره بخلاف المعلّم لان المامور یضربه نیابة من الابّ لمصلحة و المعلّم یضربه بحکم الملك بتملیك ابیه لمصلحة الولد آه. (البحر الرائق ج٥، ص٤۹، فصل فی التعزیر)

## خپله ښځه د بد فعلۍ په تور د قتل کولو حکـــــم

**سوال:** که چېرته د یوه چا پوخ یقین وي چه ښځه ئې بدکرداره (زانیه) ده او په همدې بناء خپله ښځه مړه کړي نو د نوموړي دا اقدام د شریعت له مخې صحیح دی او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته میړه د زنا په دوران کښې خپله ښځه مړه کړي نو مجرم به نه وي او په بل صورت کښې د ښځې قتل کول د مؤاخذې وړ جرم دی۔

و فی الهندیة: و ان طاوعته المرأة حلّ لهٗ قتلها ایضاً کذا فی النهایة و فیها ایضاً ج۲، ص۱٦۷. قالوا لکلّ مسلم اقامة التعزیر حال مباشرة المعصیة و اما بعد المباشرة فلیس ذٰلک لغیر الحاکم. (الفتاوی الهندیة ج۲، ص۱٦۷، الباب السابع فی حد القذف و التعزیر، فصل فی التعزیر)

قال العلامة ابن نجیم المصریؒ: سئل الهندوانی عن رجل وجد رجلاً مع امرأته أیحل له قتله قال ان کان یعلم انه ینزجر با لصیاح و الضرب بما دون السلاح لا و ان کان یعلم انه لا ینزجر الا با لقتل حلَّ له القتل و ان طاوعته المرأة حلّ له قتلها ایضاً و فی المنیة رأی رجلا مع امرأته و هو یزنی بها او مع محرمه و هما مطاوعتان قتل الرجل و المرأة جمیعاً. (البحر الرائق ج٥، ص٤۱، ایضاً قالوا لکل مسلم اقامته حال مباشرة المعصیة و اما بعد الفراغ منها فلیس ذٰلک لغیر الحاکم. (البحر الرائق ج٥، ص٤۲، باب حد القذف، فصل فی التعزیر) و مثله فی شرح النقایة ج۲، ص۳۹۷، فصل فی التعزیر.

## له ځنګل څخه د څناورو د غــــلا کولو په صورت کښې د حد حکم

**سوال:** زمونږ کلي ته نژدې يو ځنګل دی چه مونږ ورته بيله وايو- د کلي خلك دې ته خپل مالونه د څرولو لپاره بيايي او هلته ئې پرېږدي او حال دا چه هغه ځای غير محفوظ دی- نو اوس که چېرته يو څوك له نومورې ځنګل څخه کوم څناور پټ کړي نو آيا د هغه لاس به پرې کيږي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د لاس پرې کولو د سزا لپاره دا ضروري ده چه غلا له يوه د اسې ځای څخه وشي چه هغه ځای محفوظ وي او که چيرته غل له يوه غير محفوظ ځاي څخه غلا وکړي نو د سرقې د شرائطو د نه پوره کيدو له وجهې له مجرم څخه د سرقې حد ساقط ګرځي ليکن له تعزير څخه نه شي بچ کيدلی يعنې تعزير به ورکول کيږي-

لما قال العلامة ابن البزازؒ: و منها ان يكون المال الماخوذ محرزاً اما با لمكان للحفظ كا لدور و الدكان الخ. (البزازية على هامش الهندية ج٦، ص ٤٣١. كتاب السرقة)

و فى الهندية: و هى فى الشرع اخذ العاقل البالغ نصابا محرزاً........ على وجه الخفية. (الفتاوى الهندية ج٢، ص ١٧٠، كتاب السرقة) و مثله فى الهداية ج٢، ص ٢٣١، كتاب السرقة.

## په مکتبونو او پوهنتونونو کښې د طلباوو د جريمه کولو حکم

**سوال:** په اوسنی دور کښې د مکتبونو او پوهنتونونو د منتظمينو يو دستور دی چه کله کوم طالب علم غير حاضري وکړي او يا د کوم بل جرم مرتکب شي نو د استاذانو او يا د اداري له خوا څخه ترې مالي جرمانه اخيستل کيږي کوم چه په اصل کښې د هغو له والدينو څخه وصوليږي- نو آيا شرعاً د دغو جرمانو اخيستل جائز دي او که نه؟ بينوا توجروا-

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د کوم طالب علم د مدرسې د انتظاميې له اجازې پرته په کثرت سره غير حاضري کول او يا د اخلاقي جرم ارتکاب کول اګر که د سزا موجب دی ليکن دا سزا به يوائې تر جسماني سزا پورې محدوده وي- مالي جرمانه د شريعت له مخې صحيح نه ده او بله خبره دا ده چه جرم طالب علم کوي او د سزا په توګه مالي جرمانه ئې له مور او پلار څخه اخيستل کيږي چه دا خبره هم مناسبه نه ده-

لما قال العلامة اشرف على التهانوى رحمه الله: مالي تعزير يعنې جرمانه د حنفيه ووؒ په نزد جائز نه دی او د لا يحل مال امرىء مسلم الا بطيب نفس منه حديث هم د دې خبرې تائيد کوي- پس د جرمانې په توګه خو ئې اخيستل صحيح نه دي- (امداد الفتاوىٰ ج٢، ص٥٤٣، كتاب الحدود، د طالب علم په غير حاضرى باندى د جرمانى حکم)

قال المفتى محمود الحسنؒ: (الجواب) مالي جــــرمانه د امام ابو حنيفةؒ په نزد جائزه نه ده او منسوخه ده- که چېرته چــــا اخيستې وي نو بيرته ورکول ئې لازم دي- (فتاوىٰ ...يه ج٥، ص١٨٤، كتاب الحدود) و مثله فى كفايت المفتى ج٢، ص ١٦٥، كتاب الحدود.



## فصل ته د نقصان په رسولو باندې د جرمانې حکم

**سوال:** که چېرته يو څناور د بل چا زمکې ته ولاړ شي او فصل ته ئې نقصان ورسوي نو شرعاً د څناور مالك ته څه سزا ورکول کيدی شي او که نه؟ بينوا توجروا-

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته له څناور سره مالك پخپله موجود وي او د هغه په موجودګي کښې ئې څناور د بل چا فصل ته نقصان ورسوي نو شرعاً يوائې د نقصان مطابق د روپو وصولول ترې جائز دي او له نقصان څخه د زياتو پيسو اخيستل ترې جائز نه دي- او که چېرته له څناور سره څوك نه وي او فصل ته نقصان ورسوي نو په دې صورت کښې د جرمانې اخيستل صحيح نه دي-

لما قال الشيخ اشرف علي تهانويؒ: (الجواب) که چېرته له څناور سره څوك نه وي نو په دې صورت کښې دا جرمانه ناجائزه ده او که چېرته څوك ورسره وي نو چه څومره نقصان شوی وي د هغه په اندازه پيسې ورنه اخيستل صحيح دي ليکن دا به د زمکې د مالك حق وي- (امداد الفتاوىٰ ج٢، ص٥٤٣، كتاب الحدود)

قال العلامة قاضى خان رحمه الله: و لو انه قال لصاحب الدابة ان دابتك فى الزرع و لم يقل اخرجها فاخرجها صاحبها فافسدت شيئاً فى اخراجها كان ضامناً........ و لو ان دابة رجل انفلتت ليلاً او نهاراً من غير ارسال فافسدت زرع انسان لا يجب الضمان على صاحبها لان فعل العجماء هدر. (الخانية على هامش الهندية ج٣، ص٤٥٧، باب جناية البهائم) و مثله فى شرح المجلة ج١، ص ٢٥٩، كتاب الجناية.

## د حفاظت په نيت سره د چا د مال په اخيستلو باندې د سزا حکم

**سوال:** يوه سړي په بل باندې د خپل مال د پټولو دعوه وکړه ليکن مدعي عليه وايي چه ما د دې سړي مال د غلا په نيت نه بلکه د حفاظت په نيت را اخيستی دی او ما ده ته اطلاع هم ورکړې ده نو آيا په مدعي عليه باندې به د غلا سزا نافذ کيږي او که نه؟ بينوا توجروا-

**الجواب باسم ملهم الصواب:** له صورت مسئوله څخه معلوميږي چه په کوم چا باندې د غلا دعوىٰ شوې ده هغه سړي دغه مال له غير محفوظ ځای څخه اخيستی دی او د مال مالك ته ئې اطلاع هم ورکړې ده او بلې خوا ته ملزم د امانت په توګه د مال د اخيستلو مدعي هم دی نو ځکه د دغو حالاتو په نظر کښې نيولو سره ملزم ته به د غلا سزا نه ورکول کيږي يعنې لاس به ئې نه پرې کيږي- بيا هم که چېرته مدعي په شرعي ګواهانو سره دا خبره ثابته کړي چه دا مال په محفوظ ځای کښې وو نو بيا په دې صورت کښې د جرم د اثبات لاندې مجرم ته به د غلا سزا ورکول کيږي-

قال العلامة الحصكفيؒ: و يقطع لو سرق من السطح نصاباً لانه حرز شرح وهبانية او من المسجد اراد به كل مكان ليس بحرز فعم الطريق و الصحراء و رب المتاع عنده اى بحيث يراه و لو الحافظ نائما فى الاصح. (الدر المختار على هامش رد المحتار ج٣، ص ٢٢٢، كتاب السرقة)

قال العلامة وهبة الزحيلي: الاصل فى اشتراط هٰذا الشرط المتفق عليه قوله عليه السلام لا قطع فى ثمرة و لاكثر حتى يؤويه الجرين فاذا اواه الجرين ففيه القطع و فى رواية فاذا اواه المراح او الجرين و الحرز لغة. الموضوع الذى يحرز فيه الشئ و شرعا هو ما نصب عادةً لحفظ اموال الناس كا لدار و الحانوت و الخيمة و الشخص الخ. (الفقه الاسلامى و ادلتهٗ ج٦، ص١٠٧، الفصل الثالث فى حد السرقة)

## له ځناور سره د بد فعلي ســـــزا

**سوال:** که چېرته يو څوك له كوم حيوان سره بدفعلي وکړي او بيا ونيول شي او په ده باندې د دغې بد فعلی ګواهان هم موجود وي نو په مقدس شريعت کښې د داسې سړي لپاره څه سزا ده؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** له كوم حيوان سره بدفعلي کول اګر که حرام او غير فطري عمل دی ليکن په مقدس شريعت کښې د داسې سړي لپاره کومه تاکل شوې سزا نشته۔ البته د دې بد فعل مرتکب سړي ته تعزيرا سزا ورکول کيدی شي کوم چه د وخت د حاکم او قاضي په صوابديد باندې منحصره ده۔ دوی چه څومره مناسب وګني هغومره سزا مجرم ته ورکولی شي۔

قال العلامة ابن عابدين رحمه اللّٰه: تحت قوله (و لا عند وطى بهيمة) و فى القنية مر فى اجناس الناطفى فرج البهيمة كفيها لا غسل فيه بغير انزال و يعزر و تذبح البهيمة و تحرق على وجه الاستحباب و لا يحرم اكل لحمها به. (رد المحتار ج١، ص١٢٢، باب الغسل)

قال الشيخ علامة شمس الحق افغانى رحمه اللّٰه: واطىء البهيمة يعزر فان كانت البهيمة للواطى ففى شرح الطحاوى و حدود الاصل تذبح و لا تؤكل. و فى فتاوى الصغرىٰ انها تؤكل و افتى ابو سعيد بهٰذا و قال صدر الشهيد الاعتماد علىٰ رواية شرح الطحاوى. (معين القضاة و المفتيين ص٩٤، مادة ٥٤٤) و مثله فى الفقه الاسلامى و ادلتهٗ ج٦، ص٦٦، كتاب الحدود.

## د برق د غلا کولو ســـــزا

**سوال:** که چېرته يو څوك برق پټوي او ککړ لاسونه ونيول شي او د ګواهانو په ذريعه ئې جرم ثابت شي نو آيا د داسې سړي لاس به پرې کيږي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د يوه جرم د سزا لپاره دا ضروري ده چه شرائط ئې ټول مکمل موجود وي۔ که چېرته د هغو له جملې څخه يو شرط هم مفقود وي يعنې نه وي نو سزا نه جاري کيږي۔ د غلا د سزا په معامله کښې دا ضروري دي چه مال له محفوظ ځای څخه واخيستل شي نو بيا به سزا نافذه کيږي او که نه وي نو بيا سزا نه نافذيږي۔ په صورت مسئوله کښې چونکه د دې باوجود چه برق مال دی ليکن غير محفوظ دی نو ځکه حد پرې نه نافذ کيږي۔ بيا هم تعزيرا به سزا خامخا ورکول کيږي۔

قال العلامة الحصكفىؒ: و يقطع لو سرق من السطح نصاباً لانه حرز شرح وهبانية او من المسجد اراد به كل



مكان ليس بحرز فعم الطريق و الصحراء و ربّ المتاع عنده اى بحيث يراه و لو الحافظ نائماً فى الاصح. (الدر المختار على هامش رد المحتار ج٣، ص٢٢٢، كتاب السرقة)

قال العلامة طاهر بن عبد الرشيد البخارىؒ: و منها ن يكون الماخوذ منه محرزا و انما يصير المكان حرزا باحد الامرين اما ان يكون معدّا لحفظ الاموال كا لدور و الدكاكين و الخانات و الاخبية و الفساطيط او با لحافظ حتى لوسرق شيئاً من الصحراء و له حافظ بان سرق شيئاً من تحت رأسه و هو نائم فى الصحراء او فى المسجد يقطع و لو كان المال موضوعا بين يديه اختلف المشائخ. قال الامام سرخسىؒ انه محرز. (خلاصة الفتاوىٰ ج٤، ص٤٤٧، كتاب السرقة) و مثله فى الفتاوى التاتارخانية ج٥، ص١٦٨، كتاب السرقة.

## د مـــــريضی په حالت کښې د حد د جـــــاري کولو حکم

**سوال:** که چېرته په کوم سړي باندې د زنا جرم په شرعي توګه ثابت شي او هغه د زړه مرض هم ولري۔ نو که چېرته په هغه باندې حد جاري کيږي نو مړ کيږي۔ په دې صورت کښې شرعا په ده باندې بايد څه وشي آيا حد پرې جاري کيږي او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته د حدود مجرم په يوه داسې خطرناك مرض کښې مبتلا وي چه د حد د جاري کولو په صورت کښې ئې د هلاکت خطر وي نو د مرض تر ختم کيدو پورې به حد موقوف کيږي او مجرم به په جيل کښې ساتل کيږي۔

قال العلامة الحصكفىؒ: تقطع يمين السارق من زنده هو تحسم الا فى حر و برد شديدين فلا تقطع لان الحد زاجر لا متلف و يحبس ليتوسط الامر. قال العلامة ابن عابدينؒ (قوله الا فى حر و برد شديدين) و الا فى حال مرض مفتاح و قيده فى البناية با لمرض الشديد افاده عن الحموى. (رد المحتار ج٣، ص٢٢٦، كتاب السرقة، باب كيفية القطع و اثباته)

قال العلامة عالم بن العلاء الانصارىؒ: و شرط اصحابنا لقطع اليد اليمنىٰ ان تكون اليد اليسرىٰ و الرجل اليمنىٰ صحيحتين حتى انه اذا كانت يده اليسرىٰ بحيث لا ينفع بها لا تقطع يده اليمنىٰ و كذٰلك اذا كانت اليد اليسرىٰ صحيحة الا ان الرجل اليمنى مقطوعة او هى شلاء او بها عرج يمعن المشى عليها تقطع اليمنىٰ. (الفتاوى التاتارخانية ج٥، ص١٦٠، كتاب السرقة، الفصل الاول فى بيانها) و مثله فى فتح القدير ج ص١٥٦، كتاب السرقة، فصل فى كيفية قطع و اثباته.

## د زنا بالرضا او په زنا بالجبر کښې د تفريق تحقيق

**سوال:** د دين علماء کرام د دې مسئلې په باره کښې څه فرمايي چه زنا کوم چه حرام قطعي ده او د دې حرمت قطعي ته په نظر کولو سره په صوبايي اسمبلي (ولايتي شوریٰ) کښې ځينې اسلام خوښوونکي غړي له حکومت څخه مطالبه وکړه چه چونکه زمونږ دا ملك يو اسلامي ملك دی نو له دې وجهې به شادي شده سړي او ښځې ته به د قرآني هدايت په مطابق د زنا د جرم په ثبوت سره رجم کول يعنې په ډبرو باندې ويشتل په کار دي او غير شادي شده نر او ښځې ته د سلو سلو دُرو سزا ورکول په کار دي۔ د دې په ځای چه حکومت دا جائزه او اسلامي غوښتنه منظوره کړې وی د حکومت اکثريتي ډلې زنا په دوو ډولونو وويشله او زنا بالرضاء ئې جائزه وګرځوله۔

نو اوس د غور خبره دا ده چه یو طرف ته په حکومتي سطح اکثریتي ډلې د قرآن کریم د قطعي نصوصو صریحه خلاف ورزي وکړه او یو حرام فعل ئې د قانون په مدد سره جائز وګرځولو او بلې خوا ته ئې د اسلام د حرمت له عمومي حکم څخه ئې زنا بالرضا مستثنیٰ کړه او د زنا بالاختیار او زنا بالجبر په منځ کښې ئې د حکم په لحاظ سره تفریق او جلا والی وکړ. نو آیا د شریعت له مخې طی شوی کوم حرام فعل ته د جواز ورکولو اختیار یوه سړي یا یوې ادارې ته حاصل دی او که نه؟ او که چېرته نه وي نو په اسلامي شریعت کښې د دې حکم څه دی؟ او آیا د زنا په باره کښې د قرآن کریم د تاکل شوي سزاګانو څخه با لرضاء مستثنیٰ کیدای شي؟ دا مسئله د قرآن او حدیث او د امت د فقهاوو د فیصلو په رڼا کښې واضحه کړې؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د سوال په مضمون باندې د غور له مخې لاندینی درې خبرې د بحث لاندې راولو.

﴿۱﴾ آیا د قانوني سزا په باره کښې اسلامي شریعت د زنا بالرضاء او زنا بالجبر ترمنځ د تفریق قائل دی؟

﴿۲﴾ که چېرته قایل نه وي نو بیا آیا یوه با اختیاره اداره او مقتدره ډله د دا حق لري چه د شریعت له قانوني سزا څخه زنا بالاختیار مستثنیٰ کړي؟

﴿۳﴾ قطعي حرام چه څوک جائز او حلال وبولي آیا هغه څوک مسلمان پاتې کیدلی شي او که نه؟

په لاندې سطورو کښې د دریواړو اجزاوو احکام د کتاب الله او سنت رسول ﷺ او د فقهاء اسلام د قطعي فیصلو په رڼا کښې وړاندې کیږي.

**د لومړي جزء جواب:** د زنا لپاره چه اسلامي شریعت کومه سزا تاکلې ده په هغې کښې شریعت د زنا د دواړو ډولونو ترمنځ د فرق او امتیاز لحاظ نه دی کړی او نه د د اسې ډول جلاوالي او تفریق قائل دی او همدا رنګه د قرآن او سنت د واضحو احکامو په رڼا کښې فقهاء اسلام هم په دې خبرې باندې متفق دي چه د زنا په دواړو ډولونو باندې به د زنا حد جاري کیږي. البته ښځه به د زنا بالجبر په صورت کښې له قانوني سزا څخه مستثنیٰ وي او د اختیاري زنا په صورت کښې هغه هم د سړي غوندې د سزا مستحقه ګرځي او شرعي حد به پرې جاري کیږي. د پورته ذکر شوي دعوې تفصیلي ثبوت د قرآن، حدیث او د فقهاء کرامو د فیصلو په رڼا کښې وړاندې کیږي.

**زنا د قرآن په نظر کښې:** قرآن کریم چه د زنا لپاره کومې سزاګانې تاکلې دي په هغو کښې هیڅ چېرته هم دا ذکر نشته چه دا سزاګانې د جبري زنا لپاره دي او په اختیاري زنا کښې دا سزاګانې نه نافذ کیږي بلکه په قرآن کریم کښې چه چېرته هم د اسزاګانې بیان شوي دي هلته د مطلق زنا ذکر شوی دی او د زنا بالجبر یا بالرضا نوم هم نه دی اخیستل شوی. له دې څخه معلومیږي چه زنا که بالجبر وي او که بالرضا وي د قرآني قانون په نظر کښې یو ډول جرم دی او په دواړو کښې دغه قانوني سزاګانې نافذ کیږي. د اختیاري او جبري زنا دا فرق که چېرته په مغربي او عیسائي شریعت کښې وي نو وي به لیکن په اسلامي شریعت کښې د دې فرق نوم او نشان هم



نشته. هغه قرآني آیتونه چه په هغو کښې د زنا لپاره قانوني احکام بیان کړی شوي دي په لاندې ډول دي.

**زنا یو قبیح عمل دی:** وَلَا تَقْرَبُوا الزِّنَا إِنَّهُ كَانَ فَاحِشَةً وَسَاءَ سَبِيلًا☆ (بنی اسرائیل)

"او زنا ته ور نږدې کیږی هم مه ځکه چه دا یو ډیر قبیح او بد عمل دی"

په دې آیت کښې مطلق زنا ذکر شوې ده او د خاصې زنا یعنې زنا بالجبر او زنا بالرضا هیڅ یادونه پکښې نه ده شوې بلکه مطلق زنائې یو قبیح فعل بللی دی او مسلمانان ئې زنا ته له نږدې ورتلو څخه هم منع کړي دي. کوم خلک چه دا ډول بد او قبیحو اعمالو ته د فروغ او ترقی د ورکولو خواهشمند دي او غواړي چه دا بې حیایي په خلکو کښې خپره شي نو قرآن کریم په صریحو الفاظو سره د ا اعلان کړی دی.

إِنَّ الَّذِينَ يُحِبُّونَ أَن تَشِيعَ الْفَاحِشَةُ فِي الَّذِينَ آمَنُوا لَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ وَاللَّهُ يَعْلَمُ وَأَنتُمْ لَا تَعْلَمُونَ☆ (النور، آیت۱۹)

"کوم خلک چه په مسلمانانو او مسلمانه معاشره کښې بې حیایي او د قبیحو اعمالو خپرول غواړي نو د هغوی لپاره دردناك عذاب دی په دنیا او آخرت کښې او خدای پاك ښه پوهیږي او تاسو نه پوهیږی".

له دغو دواړو آیتونو څخه دا معلومیږي چه د مسلمانانو دا شان نه دی چه هغوی پخپله د زنا غوندې په قبیح او بد فعل کښې ځانونه ملوث کړي او یا په نورو مسلمانانو کښې د دې بې حیایي د خپرولو له ادنیٰ څخه ادنیٰ خواهش ښکاره کړي.

**د زنا د چور دروازې:** اسلام په اسلامي معاشره کښې د زنا او حرام کاریو د پوره مخنیوي لپاره تر دې پورې انتظام کړی دی چه کوم امور د دې قبیح او بد فعل لپاره د مبادي او ذرایعو حیثیت لري او کوم چه د دې لپاره د چور دروازې په برابر دي قرآن کریم هغو ته قفل لګولی دی او د تل لپاره ئې بندې کړي دي. او په صریحه توګه ئې ممنوع ګرځولي ده. چنانچه د "سد أللباب" په توګه اسلام په نرو او ښځو باندې د اسې بندیزونه لګولي دي چه په هغو باندې په عمل کولو سره په مسلمه معاشره کښې زنا هیڅکله هم نه شي واقع کیدلی. په دې سلسله کښې قرآن کریم له ټولو نه مخکښې په ښځو باندې دا بندیز لګولی دی چه هغوی دې د اجنبي او نامحرمو سړو په مخکښې د بې پردګۍ په حالت کښې نه راځي او نه دې د جاهلیت د دور د تبرج او ګرځید انقالي کوي. قرآني ارشاد دی چه:

وَقَرْنَ فِي بُيُوتِكُنَّ وَلَا تَبَرَّجْنَ تَبَرُّجَ الْجَاهِلِيَّةِ الْأُولَىٰ وَأَقِمْنَ الصَّلَاةَ وَآتِينَ الزَّكَاةَ وَأَطِعْنَ اللَّهَ وَرَسُولَهُ. (الاحزاب، آیت۳۳)

"یعنې پخپلو کورونو کښې په عزت او وقار سره او وسیږی او د جاهلیت د زمانې د ګرځیدو غوندې مه ګرځی، لمونځونه قائموی، زکاتونه ورکوی او د الله تعالی او د هغه د رسول ﷺ اطاعت کوی".

لیکن کله کله له کورونو ښځه د باندې د وتلو هم ضرورت وړاندې کیږي نو د دې لپاره دا حکم ورکړ شوی دی چه بیا بې پرده مه را ووځی بلکه لوی لوی څادرونه پخپلو ځانونو باندې واچوی تر څو چه یوې خوا ته ستاسو زینت، حسن او جمال د نورو لپاره د فتنې سبب و نه ګرځي او بلې خوا ته ستاسو په اړه دا معلومات وشي چه دا ښځې شریفې او با حیاء ښځې دي کومې چه د شریفو او معززو کورنیو سره تعلق لري او بد کرداره سړی له تاسو سره د خبرو او بدو اعمالو جرئت و نه کړی شي او نه څوك بد اخلاقه خلك تاسو ته ضرر در ورسولی شي- قرآني ارشاد دی چه:

يٰاَيُّهَا النَّبِىُّ قُلْ لِّاَزْوَاجِكَ وَ بَنٰتِكَ وَ نِسَآءِ الْمُؤْمِنِيْنَ يُدْنِيْنَ عَلَيْهِنَّ مِنْ جَلَا بِيْبِهِنَّ ذٰلِكَ اَدْنٰى اَنْ يُّعْرَفْنَ فَلَا يُؤْذَيْنَ (الاحزاب، آیت ۵۹)

"ای پیغمبره خپلو بیبیانو او لوڼو او ټولو مسلمانانو ښځو ته حکم وکړه چه له کورونو څخه د وتلو په وخت کښې دې پخپلو ځانونو باندې لوی لوی څادرونه او داسې نور اچوي او بیا به ووځي. په دې سره په آسانه توګه د دوی پیژندګلوی کیدلی شي او هغوی ته هیڅوك ضرر نه شي رسولی"-

په یوه بل ځای کښې مکملې معاشرې ته چه نر او ښځې ټول پکښې شامل دي دا حکم ورکړ شوی دی چه له شرعي حجاب څخه پرته له یوه او بل سره آزادانه اختلاط او ګډون مه کوی او مه یوه بل ته د شهوت په نظر سره ګوری بلکه د دواړه یعنې نر او ښځې دې په "غض بصر" (سترګې ښتکه اچولو) باندې عمل وکړي ځکه چه په دې سره ستاسو عفت او پاکد امنې محفوظه پاتې کیدلی شي او د زنا غوندې په قبیح او بد عمل کښې له ملوث کیدو څخه هم بچ کیدلی شی- د الله تعالی ارشاد دی چه:

قُلْ لِّلْمُؤْمِنِيْنَ يَغُضُّوْا مِنْ اَبْصَارِهِمْ وَ يَحْفَظُوْا فُرُوْجَهُمْ..... وَ قُلْ لِّلْمُؤْمِنٰتِ يَغْضُضْنَ مِنْ اَبْصَارِهِنَّ وَ يَحْفَظْنَ فُرُوْجَهُنَّ وَ لَا يُبْدِيْنَ زِيْنَتَهُنَّ اِلَّا لِبُعُوْلَتِهِنَّ. (سورة النور، آیت ۳۱/۳۰)

"او مسلمانانو نرو او ښځو ته حکم وکړه چه خپل نظرونه لاندې واچوي او د خپلو فروجو (شرمګاهو) حفاظت وکړي پرته له خپلو میړونو او محارمو څخه دې ښځې خپل زینت د نورو خلکو په وړاندې نه ښکاره کوي"-

په دې مبارك آیت کښـــــــې نر او ښځو دواړو ته دا حکم شوی دی چه یوه او بل ته دې د شهوت په نګاه سره هیڅ کله نه ګوري او له زنا څخه دې د خپلو فروجو حفاظت وکړي لیکن "حفاظت" ئې په "غض بصر" باندې په مقدم کـــــولو سره د دې خبرې خوا ته اشاره شوې ده چه یوه او بل ته د شهوت په نظر سره په کتو باندې د زنا غوندې په قبیح فعل کښې د ملوث کیدو قوي ذریعه ده- لهذا یو او بل ګوری هـــــم مه- تر څو چه زنا ته خبره و نه رسیږي- او په دې باندې هر سړی پوهیږي چه دا ټولې مقدمې او کاروایی د زنا د مخنیوي لپاره د تدابیرو حیثیت لري- اوس کـــــه چېرته د اسلام له نظره یوائې زنا بالجبر ممنوع وی



او اختیاري زنا ممنوع نه وای نو د "غض بصر" حکم به ئې یوائې سړو ته متوجه وای تر څو چه د هغوی په زړونو کښې په شهوت سره ښځو ته د کتلو له وجهې ناجائز میلان نه پیدا کیدای او وخت نا وخت جبراً له کومې ښځې سره د زنا مرتکب نه ګرځیدلی او ښځې به هیڅکله د دې حکم لاندې نه وای راغلي ځکـــــــه چه د هغو له خوا خو د زنا بالجبر سوال هم نه پیدا کیږي- لیکن مونږ وینو چه په دې آیت کښې فریقینو یعنې نر او ښځو دواړو ته یو شان د "غض بصر" حکم ورکړ شوی دی- له دې څخه واضح معلومیږي چه د قرآن پـــــه نظر کښې زنا بالاختیار هم لکه د زنا بالجبر سخت جرم دی- او چونکه زنا بالرضاء د ښځې او نر د دواړو یوه او بل ته د نظر له کولو څخـــــــه منځ ته راځي نو ځکه ئې دواړو ته د "غض بصر" حکم ورکړی دی او د زنا بالاختیار دروازه ئې هم د تل لپاره بنده کړې ده-

**قانوني سزا ګانې:** په قرآن کریم کښې چه د زنا لپاره کومې قانوني سزا ګانې ټاکل شوي دي په هغو کښې د زنا بالاختیار او زنا بالجبر ترمنځ هیڅ توپیر نشته بلکه د غور له کولو وروسته معلومیږي چه دا سزا ګانې د زنا د دواړو ډولونو لپاره ټاکل شوي دي- او زنا بالاختیار ترې مستثنیٰ نه ده- د الله تعالی ارشاد دی:

اَلزَّانِيَةُ وَ الزَّانِىْ فَاجْلِدُوْا كُلَّ وَاحِدٍ مِّنْهُمَا مِائَةَ جَلْدَةٍ وَّ لَا تَاْخُذْكُمْ بِهِمَا رَاْفَةٌ فِىْ دِيْنِ اللّٰهِ اِنْ كُنْتُمْ تُؤْمِنُوْنَ بِاللّٰهِ وَ الْيَوْمِ الْاٰخِرِ وَ الْيَشْهَدْ عَذَابَهُمَا طَآئِفَةٌ مِّنَ الْمُؤْمِنِيْنَ☆ (النور، آیت ۲)

"زنا کوونکې ښځې او زنا کوونکي سړي له دواړو څخه هر یو سل سل دُرې ووهی او ستاسو ترس دې د الله تعالی د حکم په نافذیدو سره په هغو باندې نه راځي که چېرته ستاسو په الله او د آخرت په ورځ باندې یقین وي او و دې ګوري د اسزا ځینې له مسلمانانو څخه"

په دې آیت کښې د دُرې چه کومه سزا بیان شوې ده تاسو وینی چه د زاني سړي او زانیې ښځې دواړو لپاره بیان کړل شوې ده بلکه زانیه ښځه ئې تر نر مقدم کړې ده کوم چه اشاره ئې دې ته ده چه ښځه د دې سزا ډیره مستحقه ده حالانکه د زنا بالجبر په صورت کښې پوره ملت په دې باندې متفق دی چه ښځه نه د سزا مستحقه ده او نه به په هغې باندې کوم حد جاري کیږي- پس معلومه شوه چه په دې آیت کښې کومه سزا چه بیان شوې ده هغه د اختیاري زنا سزا ده نه د جبري زنا- لیکن چونکه د الفاظو په عموم کښې دواړه ډوله زنا داخل دي له دې وجهې د سړي سزا به په دواړو ډولو د زنا کښې برقراره وي او ښځه په جبري زنا کښې چونکه مجرمه نه وي نو ځکه به د سزا مستحقه هم نه وي لکه څرنګه چه په روایتونو کښې مخکښې د دې خبرې تصریح راغلې- اوس د قرآنکریم د دې صریحې او واضحې فیصلې نه وروسته که چېرته یو څوك او اراده زنا بالاختیار ترې مستثنیٰ کړي نو د هغه متعلق له دې پرته بل څه نه شي ویل کیدلی چه هغه په دانسته یا نادانسته توګه د قرآنکریم په صریحو فیصلو کښې تحریف کول غواړي-

**د نبوت په زمانې کښې دا قانوني سزا ګانې:** د زنا په باره کښې د قرانکریم نه وروسته کله چه مونږ د رسول اللهﷺ احادیثو ته رجوع وکړو نو هلته هم په صفا توګه د نبوت د زمانې د اسې صریحې فیصلې پیدا کیږي چه په هغو کښې د زنا بالاختیار په صورت کښې په نر او ښځو دواړو باندې همدا قانوني سزا ګانې جاري شوي دي او د دې خبرې لپاره د نبوت په زمانه کښې یو مثال هم د اسې نه شي وړاندې کیدلی چه دا ترې ښکاره کړی شي چه د زنا بالاختیار په صورت کښې د جرم له ثبوت څخه وروسته دې په نر او ښځې باندې قانوني سزا نه وي نافذه شوې بلکه د نبوت د زمانې پوره تاریخ ګواه دی چه په زنا بالاختیار کښې په زانیه ښځې او زاني سړي په دواړو باندې د دُرو سزا هم په اعلانیه توګه جاري شوې ده او د رجم سزا هم۔

**د رجم سزا:** لکه څرنګه چه مشهور صحابي حضرت ماعز رضی الله عنه د زنا په جرم کښې سنګسار کړی شو په د اسې حال کښې چه اختیاري زنا وه نه جبري۔ د حضرت ماعز رضی الله عنه د سنګسارۍ د هیبتناکې واقعې څخه وروسته حضرت غامدیه رضی الله عنها هم د حضرت ماعزؓ غوندې رجم کړی شوه په د اسې حال کښې چه د حضرت غامدیهؓ په اړه هیڅ هم د اسې نه وو ویلي چه له هغې سره جبراً زنا شوې وه۔ ځکه چه د زنا بالجبر په صورت کښې ښځه د قانون له مخې مجرمه نه ده او نه د سزا مستحقه ده۔

**د دُرو سزا:** له دې نه علاوه د دُرې سزاوې هم د نبوت په زمانه کښې نرو او ښځو دواړو ته په یوه ډول ورکړل شوي دي په د اسې حال کښې چه په ښځې باندې د جبري زنا په صورت کښې د دُرې سزا هم نه شي جاري کیدلی۔ لاندې ذوه یا درې واقعې د اسې وړاندې کیږي چه دا ترې ثابتیږي چه د حضورﷺ په مبارکه زمانه کښې په اختیاري زنا کښې په نرو او ښځو باندې نوموړې قانوني سزا ګانې جاري شوي دي۔

## د زنا جرم د راضي نامه قابل نه دی

عن ابی هریرة رضی الله عنه ان رجلین اختصما الـــــی النبیﷺ فقال احدهما ان ابنی کان علی هٰذا فزنٰی بامرأته فـــــاخبرونی ان علی ابنی الرجم فافتدیت منه بمائة شاةٍ و بجاریة لی ثم انی سئلت اهـــــل العلم فاخبرونی ان علی ابنی جلد مائة و انما الرجم علی امرأته فقال رسول اللهﷺ اما و الّذی نفسی بیدہٖ لاقضین بینکما بکتاب الله تعالٰی اما غنمك و جاریتك فردّ علیك و جلد ابنه مائة و امر انیس الاسلمیؓ ان یأتی امــــرأة الا فان اعترفت فارجمها فاعترفت فرجمها. (ابو داؤد ج۲، ص ۶۱۰)

"حضرت ابو هریره رضی الله عنه فرمایي چه یو ځل دوو کسانو له خپلې مقدمې سره د حضور اکرمﷺ په خدمت کښې حاضر شول۔ په هغو کښې یوه وویل چه زما زوی له دې سړي سره مزدوري کوله او د ده له ښځې سره ئې زنا کړې ده خلکو ماته وویل چه ستا د زوی سزا سنګسار دی نو ما د دې په بدل کښې نوموړي ته سل ووزې او یوه وینځه ورکړه۔ بیا ما له عالمانو څخه پوښتنه وکړه نو هغو ماته وویل چه ستا د زوی سزا سل دُرې ده او د ده د ښځې



سزا رجم دی۔ نو ده مبارك وفرمایل چه زما دې په هغه ذات قسم وي چه زما روح د هغه په قبضه کښې دی چه زه ستاسو د دواړو په منځ کښې د الله تعالٰی د کتاب سره موافقه فیصله کوم۔ او هغه دا چه تا ته به خپلې ووزې او وینځه بیرته درکول کیږي او د سزا په توګه به ستا زوی ته سل دُرې ورکول کیږي۔ او حضرت انیس اسلمي ته ئې وفرمایل چه د ده د ښځې خوا ته لاړ شه او د معاملې پوره تحقیق راوړه که چیرته هغې د زنا اقرار وکړ نو بیا ئې سنګسار کړه۔ چنانچه هغې پخپل جرم باندې اعتراف وکړ او د سنګسار سزا پرې جاري شوه۔

په دې حدیث کښې چه د زنا کومه واقعه بیان شوې ده د دې په اړه څوك دا تصور هم نه شي کولی چه دا دې د جبري زنا واقعه وي ځکه چه دا د کور د یوه مزدور د کور له مالکې سره زنا ده کوم چه د جبر سوال هم پکښې نه شي پیدا کیدلی۔ آخر د کور مزدور به څومره طاقت ولري چه د کور له مالکې سره په زور زنا کړې وای۔ له دې پرته که چیرته دا زنا بالجبر وای نو په ښځې باندې به د رجم سزا نه وای جاري شوې ځکه چه په جبري زنا کښې په ښځې باندې د سزا جاري کول خو پریږده ښځه بالکل مجرمه هم نه بلل کیږي۔ او بیا د سنګسار غوندې سخت ترینه سزا۔ آیا دا انصاف دی چه په ښځې باندې سره له دې چه مجبوره کړل شوې به وي د رجم سزا پرې جاري کړی شي او سړی سره له دې چه مجرم هم وي د دُرو د سزا مستحق وګرځي؟ کلا و حاشا۔ نو معلومه شوه چه دا زنا اختیاري زنا وه نه چه جبري۔ همدا رنګه له دې حدیث څخه دا هم معلومیږي چه د زنا جرم په اسلامي شریعت کښې د راضي نامې (چه دواړه خواوې په یوه شي باندې سره راضي کړی شي) قابل نه دی۔ که چیرته دا جرم د راضي نامې قابل وای نو حضور اکرمﷺ به په دې واقعې کښې د دواړو متاثرو خواوو تر منځ شوې راضي نامې لره د ناقابل اعتبار په ګرځولو سره فسخ کړې نه وای او د دې راضي نامې په صورت کښې به ئې په زانیې ښځې او زاني سړي باندې سزا جاري کړې نه وای۔

**یوه بله واقعه:** عن ابن عمرؓ انه قال ان الیهود جاء وا الٰی رسول اللهﷺ فذکروا له ان رجلاً منهم و امرأة زنیا فقال لهم رسول اللهﷺ ما تجدون فی التوارة فی شان الزنا فقالوا نفضحهم و یجلدون فقال عبد الله بن سلامؓ کذبتم ان فیها الرجم فاتوا با لتوراة فنشروها فجعل احدهم یدهٗ علی آیة الرجم ثم جعل یقرأ ما قبلها و ما بعدها. فقال لهٗ عبد الله ابن سلام ارفع یدك فرفعها فاذا فیها آیة الرجم فقالوا صدق یا محمد فیها آیة الرجم فامر بها رسول اللهﷺ فرجما. قال عبد الله بن عمرؓ فرأیت الرجل یحنی علٰی امرأة یقیها الحجارة انتهٰی. (سنن ابی داؤد ج۲، ص ۶۱۰)

"حضرت ابن عمر رضی الله عنهما فرمایي چه یهود حضور اکرمﷺ ته راغلل او دا واقعه ئې بیان کړه چه په مونږ کښې یوې ښځې او یوه سړي زنا کړې ده۔ ده مبارکﷺ وفرمایل چه مونږ زنا کوونکي ذلیل او رسوا کوو او هغو ته دُرې هم ورکوو۔ عبد الله بن سلام وویل چه ته دروغ وایې په تورات کښې د زنا سزا رجم دی۔ هغه تورات راوړ او خلاص ئې کړ او په هغو کښې یوه سړي د رجم په آیت باندې لاس کینبود او د مخکښینې او وروستنې آیتونو لوستل

ئې شروع کړ- نو عبد الله بن سلام ورته وويل چه لاس پورته کړه هغه چه کله لاس پورته کړو نو لاندې د رجم آيت موجود وو- په دې باندې هغوی وويل چه عبد الله واقعي ته رښتيا وايې په تورات کښې د رجم آيت موجود دی- نو حضور اکرم ﷺ د زاني او زانيې په باره کښې د رجم حکم وفرمايه او هغوی دواړه سنګسار کړی شو- حضرت ابن عمر رضی الله فرمايي چه ما وليدل چه هغه سړي په ښځې باندې د سنګسار په وخت کښې ځان اچاوه او هغه ئې له ډېرو ګخه بچ کوله-

په دې حديث کښې چه د يهوديانو د رجم شوي سړي او ښځې کومه يادونه شوې ده د هغو له يوه بل سره د محبت دا حالت وو چه عين د رجم په وخت کښې هم زاني سړي په زانيې ښځې باندې ځان اچاوه او تر آخره وخته پورې ئې هغه له ډېرو څخه بچ کوله- آيا يو د هوش خاوند انسان دا خيال په زړه کښې راوستلی شي چه دلته سړي له ښځې سره چه کومه زنا کړې وه هغه اختياري نه وه بلکه جبري وه؟ په داسې حال کښې چه مونږ مخکښې ويلي دي چه د زنا بالجبر په صورت کښې ښځه د قانون په نظر کښې بالکل مجرمه نه ده او نه د سزا مستحقه ده او بيا په هغې باندې د رجم غوندې سنګينه او سخته سزا جاري کولو غوندې دوه ګوني ظلم ولې وکړی شو؟

**د زنا بالجبر په صورت کښې ښځه د قانون په نظر کښې مجرمه نه ده:** لاندې مونږ يو بل حديث وړاندې کوو چه له هغه څخه دا حقيقت ښه واضح شي چه د زنا بالجبر په صورت کښې ښځه مجرمه نه ده او نه په هغې باندې د زنا حد جاري کيدلی شي-

عن وائل ابن حجرؓ قال استکرهت امراة علی عهد رسول اللهﷺ فدرأ عنها الحد و اقامه علی الذی اصابها. (جامع الترمذی بحوالۂ مشکٰوة ج۲، ص )

"له وائل بن حجر رضی الله عنه نه روايت دی چه د حضور اکرم ﷺ په زمانه کښې له يوې ښځې سره جبراً زنا وشوه نو ده مبارک ﷺ له ښځې څخه حد ساقط کړ او معاف ئې کړه- او په زنا کوونکي سړي باندې ئې حد جاري کړ"-

و عنه ان امرأة خرجت علی عهد النبیﷺ ترید الصلٰوة فتلقاها رجل فتجللها فقضی حاجته منها فصاحت و انطلق و مرت عصابة من المهاجرین فقالت ان ذٰلك رجل فعل بی کذا و کذا فاخذوا الرجل فاتوا به رسول اللهﷺ فقال لها اذهبی فقد غفر الله لك و قال للرجل الذی وقع علیها ارجموه. (جامع الترمذی بحوالۂ مشکٰوة ج۲، ص ۳۱۱/۳۱۲)

دا هم د وايل ابن حجرؓ روايت دی چه د حضور اکرم ﷺ په زمانه کښې يوه ښځه د لمانځه په اراده له کوره راووتله په لار کښې يو سړی مخې ته وراغی او دا ښځه ئې ونيوله او په زوره ئې زنا ورسره وکړه- دغې ښځې شور او غوغا وکړه چه له وجهې ئې هغه زاني سړی ووېريد او وتښتيد- په دې وخت کښې د مهاجرينو يوه ډله راورسيده نو هغې ښځې ورته وويل چه فلاني سړي له ما سره په زوره زنا وکړه هغوی هغه سړي لره ونيو او د حضور ﷺ په خدمت



کښې ئې پيش کړ او ښځه هم ورسره وه- حضور اکرم ﷺ هغې ښځې ته وويل چه لاړه شه ته خدای پاك معاف کړې ئې او د زاني سړي په باره کښې د رجم حکم ورکړ- چنانچه هغه د ده مبارک ﷺ په حکم سره رجم شو-

دا حديث که څېرته له پورتني روايتونو سره يو ځای ولولی نو د حديثو له ټولو روايتونو او قرآني نصوصو څخه دوه خبرې په واضحه توګه معلوميږي- يوه دا چه د زنا بالجبر په صورت کښې ښځه د اسلامي قانون په نظر کښې مجرمه نه ده او نه په هغې باندې قانوني سزا ګانې جاري کيدلی شي- بله دا چه په قرآن او حديث کښې د زنا لپاره چه کومې قانوني سزا بيان شوي دي او يا د حضور ﷺ په زمانه کښې د زنا په واقعاتو کښې چه په کومو خلکو باندې دغه قانوني سزا ګانې جاري کړل شوي دي په هغو کښې اکثره د اختياري زنا په اړه دي نه د زنا بالجبر په اړه- او که نه نو بيا په ښځو باندې د سړو غوندې هيڅکله دغه قانوني سزا ګانې نه جاري کيدلی- په هر حال د قرآن او حديث له مخې په دې حقيقت کښې د ذرې غوندې هم خفا (پټوالی) نشته چه اسلامي شريعت د زنا لپاره کومې سزا ګانې مقررې کړې دي په هغو کښې د زنا بالاختيار او زنا بالجبر تر منځ هيڅ فرق نه دی منل شوی او نه اسلامي شريعت له دغو قانوني سزا ګانو څخه زنا بالاختيار مستثنیٰ کړی دی بلکه د زنا دواړه قسمونه د اسلام په نظر کښې يو رنګ دي او د جرم مرتکب د سزا مستوجب دی- بلکه حق خو دا دی چه د اسلام نومورې قانوني سزاوې په اصل کښې د زنا بالرضا لپاره ټاکل شوي دي ځکه چه له دغو قانوني سزا ګانو څخه اصل مقصد دا دی چه معاشره د زنا له کثرت څخه محفوظه پاتې شي او ښکاره خبره ده چه په معاشره کښې چه کومې زنا ګانې ډيرې منځ ته راځي او يا کيږي هغه زنا بالجبر نه وي بلکه زنا بالرضا وي او د هغو د بندولو او مخنيوي لپاره اسلام دغه سزا ګانې مقررې کړې دي- نو که څېرته دغه زنا بالرضاء له هغو سزا ګانو څخه مستثنیٰ کړی شي نو د قانون اصل مقصد فوت کيږي او بيا د انسان په پوهه کښې نه راځي چه نن صبا له مغرب څخه متاثر شوي ځينې مسلمان دانشوران آخر په کوم معقول دليل باندې زنا بالرضا د اسلامي قانون له سزا ګانو څخه مستثنیٰ کوي؟

آيا په دې کښې دا راز خو پټ نه دی چه دا حضرات پخپل دې ملك کښې د زنا کارۍ په کاروبار کښې د قانون له مخې توسيع کول غواړي او په دې ملك کښې يورپي تهذيب تر ټولو زيات مضبوطوی او يا په دې ملك کښې له اوله چه کوم د عياشۍ او فحاشۍ رجحان موجود دی هغه ته نومورې حضرات نور تقويت ورکوي؟ اَللّٰهُمَّ اهدِنا وَ اِيَّاهُم صِراطَ المُستَقيم. آمين

**د دوهم جزء جواب:** دا خبره د شريعت له مسلماتو څخه ده او د امت مسلمه په نزد فيصله شوې ده چه کوم حکم په قرآن او حديث کښې په منصوصه طريقه بيان شوی وي او د حضور ﷺ د مبارك دور په اسلامي معاشره کښې عمل پرې هم شوی وي همدا رنګه په کتاب او سنتو کښې

د دې حکم د کومې مخصوصې زمانې لپاره کیدل او یا په کوم جزوي مصلحت باندې مبني والی ئې هم معلوم نه وي نو په داسې حکم کښې ټول امت په ګډه سره تر قیامته پورې له ادنٰی څخه ادنٰی ترمیم او تغیر نه شي کولی او داسې هر ډول ترمیم یوې خوا ته په آسماني شریعت کښې د بندګانو له خوا څخه تحریف دی او بلې خوا ته د هغو له خوا نه یوه مکمله تشریح ده.

او آسماني شریعتونو کښې امتونو ته د تحریف مجاز نشته او نه د مستقلې تشریح حق لري. د مکې مشرکینو چه کله د دې ډول ترمیمونو او بدلونونو غوښتنه له حضور اقدس ﷺ څخه وکړه او داسې ووېل چه ائت بِقُرْاٰنٍ غَيْرِ هٰذَا اَوْ بَدِّلْهُ "مونږ ته کوم بل قانون راوړه او یا په دې کښې زمونږ د منشاء مطابق بدلون وکړه نو په دې باندې د الله تعالی له طرفه د دې مطالبې په ځواب کښې حضو اکرم ﷺ ته دا خبرداري وشوه چه قُلْ مَا يَكُوْنُ لِيْ اَنْ اُبَدِّلَهٗ مِنْ تِلْقَآءِ نَفْسِيْ اِنْ اَتَّبِعُ اِلَّا مَا يُوْحٰى اِلَيَّ "هغو ته ووایه چه ما ته دا حق هیڅکله هم حاصل نه دی چه زه د خپل ځان له خوا څخه د خدای په دې قانون کښې څه تبدیلي او ترمیم وکړم زما حق یوائې د دې قانون حرف په حرف پابندي کول دي کوم چه د الله تعالی له طرفه ما ته د وحی په ذریعه لیږل کیږي".

کله چه حضور ﷺ ته الله تعالی په لیږل شوي قوانینو کښې د ترمیم او بدلون اجازه او مجاز نشته نو نورو خلکو ته به څنګه د داسې ترمیمونو او بدلونونو اجازه وي؟ قرآنکریم دا حقیقت هم واضح کړی دی چه کوم خلك د خپل ځان له طرفه د خود ساخته قانون په ذریعه د خدای په احکامو کښې تبدیلي کوي او بیا خلکو ته دا باور هم ورکوي چه زمونږ دغه جوړ شوی قانون هم د خدای او د اسلامي قانون یوه حصه ده او د مسلمانانو لپاره د عمل کولو قابل دی. داسې خلك خدای ته ډیر مبغوض او د عظیم عذاب مستحق دي. د الله تعالی ارشاد دی چه:

فَوَيْلٌ لِّلَّذِيْنَ يَكْتُبُوْنَ الْكِتَابَ بِاَيْدِيْهِمْ ثُمَّ يَقُوْلُوْنَ هٰذَا مِنْ عِنْدِ اللّٰهِ لِيَشْتَرُوْا بِهٖ ثَمَنًا قَلِيْلًا فَوَيْلٌ لَّهُمْ مِّمَّا كَتَبَتْ اَيْدِيْهِمْ وَ وَيْلٌ لَّهُمْ مِّمَّا يَكْسِبُوْنَ☆ (البقرة)

"هغه خلك به په سخت عذاب کښې مبتلا کیږي چه پخپل لاس سره لیکي، او بیا خلکو ته وایي چه دا هم د قرآن قانون دی او دوی داسې عمل ځکه کوي چه تر څو د دې په وجه د خپل ځان لپاره د دنیا دغه کمه متاع او منافع حاصل کړي، دا خلك د داسې قانون سازۍ په وجه سره به هم په عذاب کښې مبتلا وي او کومه ګټه چه په دې سره دوی ته حاصلیږي د هغې په وجه به هم دوی ته هلاکت په نصیب کیږي".

په هر حال قرآنکریم په ډیرو ځایونو کښې په غیر مبهمو الفاظو کښې د دې حقیقت اعلان کړی دی چه په شرعي قوانینو او منصوصي احکامو کښې د ټول نوع انساني افراد چه سره یو ځای شي بیا هم ترمیم او تبدیلي پکښې نه شي کولی. ځکه چه د دې نوعیت د مستقلې تشریع (شریعت سازۍ) دی او د تشریع حق له الله تعالی پرته بل هیچا ته حاصل نه



دی. البته په غیر منصوصي احکامو او مسائلو، او معاملاتو کښې د احکامو د ثبوت لپاره له شرعي منصوصاتو څخه د اجتهاد په ذریعه احکام اخذ کیدلی او مستنبط کیدلی شي لیکن د تشریع اجازه هیڅ یوه فرد بشر ته نشته. او کله چه دا ثابته شوه چه هیڅ یو فرد د بشر په شرعي قوانینو او منصوصي احکامو کښې هیڅ تغیر او ترمیم نه شي کولی نو دا هم ثابته شوه چه د زنا غوندې قبیح عمل لپاره شریعت چه کومې قانوني سزاګانې ټاکلې دي په هغو کښې یوه سزا هم با اقتدار اداره ډله یا اداره د زنا بالاختیار د مستثنٰی کولو حق نه لري.

**د دریم جزء جواب:** د قطعي حرامو جائز ګرځولو او څوك چه حرام حلال ګڼي هغه مسلمان پاتې کیدی شي او که نه؟ نو د دې په ځواب کښې له خپلې خوا څخه د څه ویلو په ځای بهتره دا ده چه قرآن او حدیث د دې په اړه کومه فیصله کړې ده هغه وړاندې کړم او همدارنګه چه د اسلام فقهاوو د قرآن او حدیثو په رڼا کښې د داسې خلکو په حق کښې چه کوم احکام راایستلي دي هغه بیان کړم.

**قرآن کریم او تحلیل حرام:** دا خبره له هر ډول شك او شبهې څخه خالي ده او پوره اسلامي ملت په دې باندې متفق دی چه د کائناتو یو مالك او له شرکت بغیر حقیقي حاکم او حکمران یوائې رب العٰلمین دی. د کائناتو ذره ذره د هغه خاص ملکیت دی او د ټولو اصل حاکم هغه دی. نو کله چه د ټولو کائناتو خالق او مالك یو الله دی نو د ټولو حاکم به هم هغه وي او په ټولو کائناتو کښې به حکم او قانون هم یوائې د هغه چلیږي. اَلَا لَهُ الْخَلْقُ وَ الْاَمْرُ تَبَارَكَ اللّٰهُ رَبُّ الْعٰلَمِيْنَ "دا حقیقت دی چه پیدائش هم خاص د هغه دی او حکم به هم خاص د هغه چلیږي الله تعالی ډیر لوی بابرکته او د دواړو جهانونو مالك دی". اِنِ الْحُكْمُ اِلَّا لِلّٰهِ اَمَرَ اَلَّا تَعْبُدُوْا اِلَّا اِيَّاهُ "حکم نه دی مګر د الله تعالی لپاره دی، هغه تاسو ته دا حکم کړی دی چه له هغه پرته د بل چا اطاعت مه کوی" وَلَا يُشْرِكُ فِيْ حُكْمِهٖ اَحَدًا "هغه پخپل حکم او فیصلې کښې له خپل ځان سره څوك نه شریکوي".

د قانون د دې بنیادي مادې لاندې د شیانو د تحریم او تحلیل د دواړو حق او ختیار یوائې او یوائې د شیانو پیدا کوونکي ته حاصل دی. مخلوق ته قطعاً د دې حق حاصل نه دی. په دې باره کښې د قرآن کریم فیصله ډیره صفا او واضحه ده. هغه لکه څنګه چه تحریم حلال (د خدای د حلال کړي شیانو د حرامولو) قطعاً ممانعت کړی دی او ویلي ئې دي چه لَا تُحَرِّمُوْا طَيِّبٰتِ مَا اَحَلَّ اللّٰهُ لَكُمْ وَ لَا تَعْتَدُوْا اِنَّ اللّٰهَ لَا يُحِبُّ الْمُعْتَدِيْنَ☆ "هغه پاك شیان حرام مه ګڼی کوم چه خدای پاك تاسو ته حلال ګرځولي دي او د خدای د ټاکل شویو حدودو څخه تجاوز مه کوی او خدای له حد څخه تجاوز کوونکي نه خوښوي" او فرمایلي ئې دي چه لِمَ تُحَرِّمُ مَا اَحَلَّ اللّٰهُ لَكَ "ولې حراموی په ځانونو باندې هغه شیان کوم چه خدای پاك ستاسو لپاره حلال ګرځولي دي". قَدْ خَسِرَ الَّذِيْنَ قَتَلُوْا اَوْلَادَهُمْ سَفَهًا بِغَيْرِ عِلْمٍ وَّ حَرَّمُوْا مَا رَزَقَهُمُ اللّٰهُ افْتِرَآءً عَلَى اللّٰهِ "په تحقیق سره ډیر په تاوان کښې دي هغه کسان کومو چه د علم نه پرته په حماقت او نادانۍ سره خپل اولادونه قتل کړي

دي او خدای پاك هغوی ته چه کوم حلال رزق ورکړی دی په هغوکښې ئې په خدای پاك باندې دروغ تړلی دی او هغه ئې په ځانو حرام کړي دي". بعینهٖ همدا شان قرآن کریم د تحلیل حرام (د خدای پاك حرام کړل شوي شیانو حلال ګڼل) په قطعي توګه ممانعت کړی دی. ارشاد رباني دی:

وَ لَا تَقُوْلُوْا لِمَا تَصِفُ اَلْسِنَتُكُمُ الْكَذِبَ هٰذَا حَلٰلٌ وَّ هٰذَا حَرَامٌ لِّتَفْتَرُوْا عَلَى اللّٰهِ الْكَذِبَ

"یعنې مه وایی هغو شیانو ته چه ستاسو ژبې ئې د دروغو په توګه بیانوي چه دا حلال او دا حرام دي د دې انجام په خدای باندې د دروغو تړل دي".

لَا تُحِلُّوْا شَعَآئِرَ اللّٰهِ وَ لَا الشَّهْرَ الْحَرَامَ وَ لَا الْهَدْیَ

"شهر حرام او د قربانۍ د ځناورو بې عزتي او حرمت حلال مه بولی"

وَ لَا یُحَرِّمُوْنَ مَا حَرَّمَ اللّٰهُ وَ رَسُوْلُهٗ وَ لَا یَدِیْنُوْنَ دِیْنَ الْحَقِّ

"دا خلك د خدای پاك حرام کړل شوي شیان حرام نه بولي او نه حق دین قبلوي".

په دې آیتونو کښې په صریحه توګه دا حقیقت ښکاره شوی دی چه د تحریم (حرامول) او تحلیل (حلالول) حق د الله تعالی له ذات پرته بل هیچا ته نشته. دا حقیقت هم له قرآنکریم څخه واضح ښکاریږي چه کوم شیان د آسماني شریعتونو له مخې په قطعي توګه حرام کړل شوي دي هغه چه کله هم چا حلال ګڼل شروع کړي دي په آسماني شریعتونو کښې د هغه تعلق برحاله نه دی پاتې شوی بلکه منقطع شوی دی. د انساني تاریخ په هر دور کښې حضرات انبیاء علیهم السلام د کفر او د عالم اسلام تر منځ د جدا والي حد مقرر کړی دی چه د خدای حرام کړل شوي شیان په زړه سره حرام ګڼل او حلال کړل شوي شیان په زړه سره د حلال ګڼلو مضبوطه عقیده وساتی. له دې عقیدې پرته نه څوك مؤمن ګڼل کیږي او نه مسلم. د مثال په توګه شرك را واخلی کوم چه د انسان د تاریخ په هر دور کښې ورته د آسماني شریعتونو له مخې د قطعي حرمت حیثیت حاصل دی او کله چه هم چا حلال او جائز ګڼلی دی نو ټولو آسماني شریعتونو له خپلو خپلو دائرو او چوکاټونو څخه نوموړی خارج تسلیم کړی دی او تعلق ئې د هر آسماني شریعت څخه د تل لپاره منقطع شوی دی.

**تحلیل او تحریم او د رسول ﷺ احادیث:** د قرآنکریم نه وروسته چه مونږ کله د رسول الله ﷺ د حدیثو خوا ته رجوع کوو نو هلته هم د تحلیل او تحریم په باره کښې هم هغه فیصلې دي کومې چه قرآنکریم په دې باره کښې کړي دي. یعنې د رسول الله ﷺ د سنتو فیصله هم همدا ده چه کوم یو هم د خدای حرام کړل شوي شیان حلال وبلل او حلال کړل شوي شیان حرام وبلل د هغه له اسلامي شریعت سره هیڅ تعلق نه پاتې کیږي بلکه د تل لپاره ترې منقطع کیږي.

**د علماء او مشائخو په باره کښې د اهل کتابو عقیده:** په قرآن مجید کښې یهودي علماوو او عوامو او د عیسایانو په اړه دا راغلي دي چه هغوی خپل علماء او مشائخ له خدای نه بغیر د خپلو ځانونو لپاره معبود جوړ کړي وو. د الله تعالی ارشاد دی چه: اِتَّخَذُوْا اَحْبَارَهُمْ وَ رُهْبَانَهُمْ اَرْبَابًا مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ دا



آیت کریمه چه کله نازل شو نو له اهل کتابو څخه یو یهودي عالم "عدي بن حاتم" کوم چه په اسلام مشرف شوی وو د حضور ﷺ په خدمت کښې ئې عرض وکړ چه یا رسول الله ﷺ مونږ هیڅ وخت هم کوم عالم یا درویش ته خدای نه وو ویلي. حضور ﷺ ورته وفرمایل چه اما کانوا اذا حلوا لهم شیئا استحلوه و اذا حرموا علیهم شیئا حرموه؟ قال نعم! قال هو ذٰك او کما قال (ترمذی) "آیا هغوی د اسې نه وو چه کله به د دوی علماوو او مشائخو د هغو لپاره چه کوم شیان حلالول نو هغو به هغه شیان حلال ګڼل او کله به ئې چه کوم شیان حرامول نو هغوی به حرام ګڼل؟ عدي ابن حاتم وویل چه هو د اسې خو وو نو حضور ﷺ و فرمایل چه همدا د دوی شرك وو"

حاصل دا چه حضور ﷺ عدي بن حاتم رض ته وفرمایل چه له خدایي شریعت څخه د سند له حاصلولو پرته کله چه یهودي علماوو او مشائخو په عوامو باندې کوم شی حرامولو نو آیا هغه عوامو حرام نه بلل؟ همدا ډول له خدایي شریعت څخه د دلیل د حاصلولو نه پرته چه کله یهودي علماوو او مشائخو په عوامو باندې کوم شی حلالولو نو آیا عوامو هغه حلال نه بلل؟ د دې په ځواب کښې عدي بن حاتم رض وویل چه د اسې خو بالکل وو. نو حضور ﷺ وفرمایل چه همدا بې سنده تحلیل او تحریم وو چه له مخې ئې هغوی په شرك کښې مبتلا شوي وو. په دې حدیث سره دا خبره په واضحه توګه معلومه شوه چه کوم شخص یا اداره یا ډله د خدای حرام کړل شوي شیان حلال ګڼي او یا د هغه حلال کړل شوي شیان حرام ګڼي نو له اسلام سره د هغوی تعلق بالکل له منځه ځي.

**د اسلام د فقهاوو فیصله:** د قرآن او حدیث د دغو واضحو احکاماتو په رڼا کښې د اسلام فقهاوو هم په دې باره کښې هغه فیصله کړې ده چه د قرآن او حدیث له منشاء سره ډیره برابره ده. علامه تفتازاني رحمه الله پخپل مشهور کتاب "شرح العقائد" کښې لیکلي دي چه: استحلال المعصیة کفر اذا ثبت کونها معصیة بدلیل قطعی.

"د ګناه حلال ګڼل کفر دي خو په دې شرط چه ګناه والی ئې په قطعي دلیل سره ثابت وي". تر دې مخکښې مزید فرمایي:

و علی هٰذا تفرع ما ذکر فی الفتاوٰی من انهٗ اذا اعتقد الحرام حلالاً فان کانت حرمته لعینهٖ و قد ثبت بدلیل قطعی یکفر و الا فلا بان تکون حرمته لغیرهٖ او ثبت بدلیل ظنّی. و بعضه لم یفرق بین الحرام لعینهٖ و لغیرهٖ و قال من استحل حراماً و قد علم فی دین النبی ﷺ تحریمه کنکاح المحارم کافر. (حوالۀ شامی ج۲، ص۳۱۵/۳۱۶)

"په دې قاعدې باندې هغه مسئله مبني ده کومه چه د فتاواوو په کتابونو کښې ذکر ده چه کله یو څوك حرام حلال وبولي او هغه حرام لذاتهٖ وي او حرمت ئې په دلیل قطعي سره ثابت وي نو دا سړی کافر کیږي. او که چېرته د هغه حرمت لغیرهٖ وي او یا په قطعي دلیل سره ثابت نه وي نو بیا نه کافر کیږي او ځینې علماوو د حرام لذاتهٖ او حرام لغیرهٖ فرق نه دی کړی بلکه مطلق ئې دا ویلي دي چه د دواړو ډولونو حرامو حلال بلونکی به کافر وي. خو په دې شرط چه په

نبويَ دين کښې ئې د حرمت ثبوت معلوم وي لکه له محارمو سره نکاح او د اسې نور۔

علامه ابن عابدينؒ په پورته ذکر شوي دواړو مذهبونو باندې د تبصرې په کولو سره فرمايلي دي چه: و حاصله ان مشروط الکفر علی القول الاول شیئان قطعية الدليل و کونه حراماً لعينه و علی الثانی يشترط الشرط الاول فقط و قد علمت ترجيحه آه.

د دې حاصل دا شو چه د کفر شرط د اول قول په بناء باندې دوه شيان دي يو دا چه دليل به قطعي وي او دوهم دا چه هغه به حرام لعينهٖ وي او د دوهم قول په بناء باندې د کفر لپاره يو اځې دا شرط دی چه د حرمت دليل به قطعي وي او بس. او د دې قول راجح والی معلوم دی.

دې ته نژدې نژدې هغه مضمون دی کوم چه علامه تفتازانيؒ په شرح العقائد العضديه کښې ذکر کړی دی چنانچه هغه فرمايي:

و استحلال المحرمات کفر و لا بد من التقيد بکون تحريمه مجمعاً عليه دون تکون حرمته من ضروريات الدين و بدون القيد الثانی ان کان الاجماع مستنداً الی الظن لا يثبت ايضاً و کذا انْ کان مستنداً الی دليل قطعی و لم يکن مشتهرا بحيث يکون من ضروريات الدين. (شرح العقائد العضدية ص۰ ۱۰۵)

"د محرماتو حلال ګڼل کفر دی په دې شرط سره چه حرمت ئې اتفاقي وي او همد ارنګه حرمت ئې د دين له ضرورياتو څخه وي او که چېرته ئې حرمت اتفاقي نه وي بلکه اختلافي وي نو کفر به اصلا ثابت نه وي او که چېرته ئې حرمت د دين له ضرورياتو څخه نه وي ليکن اتفاقي وي نو په داسې حال کښې که چېرته اجماع مبني په ظن باندې وي بيا به ئې کفر ثابت نه وي. همدارنګه که چېرته اجماع مبني په قطعي دليل باندې وي ليکن په دين کښې ئې حرمت دومره مشهور نه وي چه د دين له ضرورياتو څخه ګڼل شوی وي نو په دې وخت کښې هم کفر نه ثابتيږي.

## د فقهاء کرامو د پورتني تصريحاتو حــــــاصل

د اسلام د فقهاوو له ذکر شويو پورتني تصريحاتو نه چه کومې خبرې د حاصل په توګه ثابتيږي په لاندې ډول دي.

﴿۱﴾ د کوم شي حرام والی که چېرته قطعي وي او لذاتهٖ هم وي همدارنګه په نبويَ دين کښې د هغه حرمت دومره مشهور وي چه د دين له ضرورياتو ګڼل کيده نو د داسې حرام شي حلال ګڼل په اتفاق سره کفر دی او د هيچا په دې کښې اختلاف نشته.

﴿۲﴾ ليکن که چېرته د هغه حرمت قطعي وي مګر لذاتهٖ نه وي يا لذاتهٖ هم وي ليکن د دين له ضرورياتو څخه نه وي نو د داسې شي د حلال ګڼونکي کفر مختلف فيه دی. د کومو خلکو په نزد چه د کفر لپاره يو اځې د حرمت قطعي کيدل کافي دي او لذاتهٖ او د دين له ضرورياتو څخه کيدل ئې شرط نه وي د هغو په نزد کافر دی ځکه چه د حرمت قطعيت په دواړو صورتونو



کښې موجود دی او د کوم خلکو په نزد چه د کفر لپاره د حرمت قطعيت او لذاتهٖ کيدل دواړه ضروري دي د هغو په نزد د اول صورت له مخې کفر نه دی ځکه چه په هغه کښې يو اځې د حرمت قطعيت دی او لذاتهٖ والی پکښې نشته. او په دوهم صورت کښې کفر دی ځکه چه په هغه کښې د حرمت له قطعيت سره سره لذاتهٖ کيدل هم پکښې موجود دی. او د کومو خلکو په نزد چه د کفر لپاره دا ضروري دي چه د شي حرمت مشهور او د دين له ضرورياتو څخه وي د هغو په نزد په دوهم صورت کښې کفر اصلا شته نه ځکه چه دا حرمت د دين له ضرورياتو څخه نه دی.

د فقهاوو د دغو تصريحاتو په رڼا کښې کله چه مونږ د زنا په حرمت باندې غور کوو نو حرمت ئې قطعي هم دی او لذاتهٖ هم دی او دومره مشهور شوی هم دی چه د دين له ضرورياتو څخه ګڼل شوی دی. له دې وجهې حلال ګڼل ئې په اجماع سره موجب د کفر دی. د دغې اجماعي فيصلې لاندې تاسو پخپله غور وکړی چه کوم خلك شرعي محرمات حلا بولي نو د قرآن او حديث او د اسلام د فقهاوو د دغو واضحو فيصلو په رڼا کښې د هغو انجام به څه وي؟

## مونږ او تکفيــــــر

ليکن مونږ پخپله په کوم سړي يا اداره باندې د کفر د فتوٰی د ورکولو له دې وجهې معذور او قاصر يو ځکه چه د تکفير د فتوٰی لپاره ضروري دي چه مفتي ته د دې خبرې په اړه يقيني علم حاصل وي چه د هغه سړي يا ادارې په زړه کښې د دين د قطعي احکامو او ضرورياتو څخه په قطعي توګه انکار موجود دی. او دا علم په مونږ کښې هيچا ته هم حاصل نه دی او نه حاصليدلی شي او له دې پرته د کفر د فتوٰی ورکول هيڅکله جائز نه دي.

لهذا مونږ د شورٰی د دغه غړي په حق کښې له الله تعالی څخه دعا غواړو چه الله تعالی هغوی ته په حقې لارې باندې د تللو توفيق ورکړي کوم چه زنا بالاختيار ئې له شرعي سزاګانو څخه د مستثنٰی ګرځولو غلط اقدام کړی دی او دوی ته دا درخواست کوو چه د خدای لپاره پخپلې دغې فيصلې باندې زر تر زره نظر ثاني وکړی تر څو د خدای او د رسول ﷺ له ناراضګي او د دنيا او آخرت له خطرې سره ځان مخامخ نه کړی. اميد دی چه د اسمبلي ټول غړي زمونږ دا درخواست صدا بصحرا ثابت نه کړي. اَللّٰهم اهدنا الصراط المستقيم صراط الذين انعمت عليهم غير المغضوب عليهم و لا الضآلين. (آمين)

## د قرائنو او شهرت له وجهې په عدالت کښې چاته سزا ورکول

**سوال:** څه فرمايي د دين علماء کرام او مفتيان عظام د لاندينۍ مسئلې په باره کښې چه دلته زمونږ په کلي کښې يو پنځلس کلن هلك په يوه سړي باندې دعوه وکړه چه له ما سره ئې د ټوپك په زخمې باندې په زور او زبردستۍ سره بدفعلي کړې ده. هلك د دې واقعې عريضه په تانې

كښې درج كړې هم ده او معامله په محكمې كښې د غور او فيصلې لاندې ده او مجرم له بد فعل څخه انكار كوي په داسې حال كښې چه د هلك د دې دعوې د اثبات لپاره ګواهان هم نشته. البته ډاكټر د هلك د دعوې تصديق كوي او نوموړى سړى هم په دغې بد عملي باندې مشهور او معروف او پوره بدنام دى. نو اوس پوښتنه دا ده چه آيا عدالت نوموړي سړي ته د بد عملي د شهرت او د ډاكټر د راپور په بناء د سزا د وركولو اختيار لري او كه نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د كوم جرم د اثبات لپاره محض دعوىٰ كول كافي نه دي چه تر څو پورې د شريعت مطابق شهادت موجود نه وي. البته له قرائنو او د شهرت له وجهې كله چه قاضي ته د نوموړي سړي د متهم كيدو يقين وشي نو بيا محض سياستاً د سزا وركولو حق لري.
لهذا د صورت مسئوله مطابق كه چېرته ډاكټري راپور او په دغه بدفعلۍ كښې د نوموړي سړي د شهرت په باره كښې عدالت او محكمې ته اطمينان وشي چه رښتيائې هم له مدعي سره بدفعلي كړې ده نو محكمه هغه ته تعزيراً سزا وركولى شي او په دې ډول واقعاتو كښې عدالت د اطمينان له حاصلولو وروسته مجرم ته سياستاً د سزا وركولو اختيار لري.

لما قال العلامة الحصكفىؒ: و من يتهم با لقتل و السرقة و ضرب الناس احبسه و اخلده فى السجن حتىٰ يتوب لان شرّ هٰذا على الناس و شر الاوّل على الناس. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج٤، ص٧٦، كتاب الحدود، باب التعزير، مطلب فى تعزير المتهم)

لما قال العلامه ظفر احمد العثمانيؒ: (الجواب) محض د ښځې په ويلو باندې سړي ته سياستاً تعزير نه شي وركول كيدلى بلكه كه چېرته د قاضي په رائې كښې د آخـــــري قرائنو له مخې هغه ســــــړى د متهم په درجه كښې راشي نو تعزيراً څه سزا وركولى شي ليكن قاضي نن صبا چيرته دى؟ البته په ځينو قومونو كښې د جرګې زور وي نو جـــــرګه په دې باره كښې د قاضي په درجه كښې ده كـــــــه چېرته هغوى د شرعي مسائلو څخه خبر وي او يا له كوم عـــــالم څخه پوښتنه وكړي او په هغه باندې عمل وكړي نو فبها و نعمت. و الله اعلم. (امداد الاحكام ج٣، ص١٢٨، كتاب الحدود)

# كتاب الاشربة

قال النبي صلى الله عليه وسلم

كل مسكر خمر

وكل مسكر حرام



# کتاب الاشـــــربه

## (د اشربه (نشه آورو) شیانو احکام او مسائل)

## د نسوارو په شکل کښې د تمباکو د استعمال حکم

**سوال:** د نسوارو استعمال جائز دی او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** نسوار چونکه له تمباکو څخه جوړیږي له دې وجهې استعمال ئې هم د تمباکو غوندې في نفسهٖ مباح او جائز دی ځکه چه په دې کښې نه نشه شته او نه مستي۔

قال العلامة ابن عابدینؒ: فانه لم یثبت اسکاره و لا تفتیره و لا اضراره بل ثبتله منافع فهو داخل تحت قاعدة الاصل فی الاشیاء الاباحة و ان فرض اضراره للبعض لا یلزم منه تحریم علی کل واحد. (رد المحتار ج۵، ص۲۹۶، کتاب الاشربة)

البته د نسوارو د بدبویي په وجه په جومات کښې لمونځ کوونکو ته تکلیف وي او همدارنګه له اسراف او تبذیر سربیره له طبي نقطۂ نظره هم د صحت مضر دی نو ځکه نه کول ئې بهتر دي۔

قال العلامة ابن عابدینؒ: اذا شرب الماء و غیره من المباحات بلَهو و طرب علی هیئة الفسقة حرامٌ. (رد المحتار ج۵، ص۲۹۲، کتاب الاشربة)

قال العلامة محمد الکامل الطرابلسیؒ: و قد حقق المتاخرون من اهل مذهبنا الحنفیة انهٗ لیس بحرامٍ و انما فی تعاطیه الکراهیة و قد قدمنا ان احسن ما قیل فیه قول الامیر رحمه اللّٰه فاختلف فیه الدخان و الورع ترکه. (الفتاوی الکاملیة ص۲۸۶، کتاب الحظر و الاباحة، مطلب فی حکم شرب الدخان فی مجلس قرأة القرآن)

## د ګنیو له جوس یا اوبو څخه ایستل شوي شراب حرام دي

**سوال:** کوم شراب چه د ګنیو له رس یا جوس څخه ایستل شوي وي شرعائې څه حکم دی؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** له انګورو او خرماوو څخه جوړ کړل شوي شراب بالاتفاق حرام دي۔ له دغو دوو شیانو څخه پرته له کومو شیانو څخه چه شراب جوړیږي هغه هم د امام محمد رحمه اللّٰه په نزد د مفتیٰ بهٖ قول مطابق حرام دي ځکه چه دا هم نشه کوونکي شراب دي۔ او د حدیث له ظاهر څخه هم د هر مسکر شراب حرمت معلومیږي۔

لما اخرجه الامام مسلمؒ: کل مسکر حرام. (الصحیح المسلم ج۲، ص۱۶۷، باب بیان کل مسکر حرام)

قال العلامة الحصکفیؒ: و الکل حرام عند محمدؒ و به یفتی. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۵، ص۲۹۲، کتاب الاشربة)

قال العلامة الزیلعی رحمه اللّٰه: کل شراب اسکر فهو حرام.رواه البخاری. (تبیین الحقائق ج۶، ص۴۷، کتاب الاشربة) و مثله فی الهدایة ج۴، ص۴۹۸، کتاب الاشربة.

## په اضطراري حالت کښې د افیونو استعمال جائز دی

**سوال:** یوه سړي د افیونو د خوړلو عادي دی تر دې پورې چه تول ژوند ئې د افیونو په خوړلو تیر کړی دی او اوس زوړ شوی دی نو آیا د اسې سړي د افیونو د خوړلو او یا هغه ته د ور خوړلو او یا په دې لاره کښې له هغه سره تعاون کول جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته نوموړی سړی په افیونو باندې د اسې عادي وي چه د افیونو له پرېښودلو سره ده ته مرګ واقع کیږي یعنې مري نو د افیونو خوړل ورته جائز دي او اعانت هم ورسره جائز دی۔ او که چېرته د اسې حالت نه وي نو خوړل ئې په بل چا ور خوړل ئې دواړه ناجائز دي خو په دې شرط چه د اسې سړی تدریجا د افیونو د پرېښودلو کوشش وکړي او پخپل ځان باندې ئې لازم کړي۔ او که نه نو سخت ګنهګار به وي۔

قال العلامة ابن عابدینؒ: سئل ابن حجر عن من ابتلی باكل نحو الافیون و صار ان لم یأكل منه هلك اجاب ان علم ذٰلك قطعاً حل لهٗ بل وجب لاضطراره الی ابقاء روحه کا لمیتة للمضطر و یجب علیه التدریج فی تنقیصه شیئاً فشیئاً.

(رد المحتار ج۵، ص۴۰۸، کتاب الاشربة)

قال العلامة الجصاص الرازیؒ: فاقتضی ذٰلك وجود الاجابة بوجود الضرورة فی کل حال وجدت الضرورة فیها.

(الاحکام القرآن ج۱، ص۱۲۶، باب ذکر الضرورة المبیحةلاکل المیتة)

## له الکحل سره د ګډ شوي عطر او خوشبویی د استعمالولو حکم

**سوال:** له یورپي ممالکو څخه په اخیستل شوو عطرونو کښې الکحل شامل دي نو آیا په بدن او کالیو باندې د نوموړو عطرونو وهل او پاشل جائز دي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په کومو عطرونو کښې چه الکحل ګډ وي که چېرته دغه الکحل د انګورو او خرماوو وي نو په اتفاق سره د د اسې عطرونو لګول ناجائز دي ځکه چه په خوشبویي کښې د الکحل د استعمال کوم ضرورت نشته او پرته له شرعي عذر څخه د شرابو استعمال حرام دی اګر که کم هم وي۔

قال العلامة الحصکفیؒ: و حرم الانتفاع بها و لو لسقی دواب او الطین او قطر للتلمی او فی دواء او دهن او طعام او غیر ذٰلك. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۵، ص۲۸۹، کتاب الاشربة)

او که چېرته د انګورو او خرماوو له الکحل څخه د نورو شیانو الکحل ورسره ګډ شوی وي نو د امام محمد رحمه الله په نزد دا هم حرام دي لیکن متاخرینو محققینو د عموم بلوٰی له وجهې د امام ابوحنیفه د قول د توسع په خاطر قابل عمل ګرځولی دی چه د انګورو او خرماوو نه علاوه د نورو شیانو الکحل چه ورسره ګډ وي د هغو عطرونو استعمال حرام نه دي۔

قـــال العلامة محمد تقی العثمانیؒ: ان معظم الکحول التی تستعمل الیوم فی الادویة و العطور و غیرها لا تتخذ من العنب او التمر انما تتخذ من الحبوب او القشور او البترول و غیره کمـــا ذکرنا فی باب بیع الخمر من



کتاب البیوع و حینئذ هناك فسحة فـــی الاخذ بقول ابی حنیفةؒ عند عموم البلوٰی. (تکملة فتح الملهم ج۳، ص۶۰۸، کتاب الاشربة، حکم الکحول المسکرة)

بیائې هم چه استعمال نه کړی نو ډېره به ښه وي۔

## هر ډول منشیات په اسلام کښې ممنوع دي

**سوال:** یو سړی د افیونو، بنګو او د چرسو د استعمالولو عادي دی او د دې شیانو له استعمال څخه په نوموړي باندې څه بد اثر هم نه پرېووځي۔ که چېرته نوموړی دا شیان باقاعده استعمالوي او پرېږدي ئې نه نو آیا شرعا د ده لپاره څه ګنجائش پکښې شته او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د دې شیانو د حرمت په باره کښې فقهاوو دا تصریح کړې ده۔

قال العلامة ابن عابدینؒ: و یحرم اکل البنج و الحشیشه و الافیون لانهٗ مفسد للعقل و یصد عن ذکر الله و عن الصلوٰة.

(رد المحتار ج۵، ص۲۹۴، کتاب الاشربة)

لهذا د دغو شیانو استعمالول حرام دي۔ د د اسې مضرو شیانو استعمال نه عادي او نه غیر عادي ته جائز دي بلکه په عادي باندې واجب دي چه د هغو په استعمالولو کښې ورو ورو کموالی راولي تر څو چه یو وخت ئې بالکل پرېږدي۔

قال العلامة ابن عابدینؒ: و یجب علیه التدریج فی تنقیصه شیئاً فشیئاً. (رد المحتار ج۵، ص۴۰۸، کتاب الاشربة)

قال العلامة ابو بکر الحداد الیمنیؒ: و لا یجوز اکل البنج و الحشیشه و الافیون و ذٰلك کله حرام. (الجوهرة النیرة ج۲، ص ۲۷۰، کتاب الاشربة) و مثله فی فتاوی الکاملیة ص ۲۷۰، کتاب الاشربة.

## د نیګونه بوټي له ولیو څخه د جوړ شوي شربت تحقیق

**سوال:** په فیجي ائیر لینډ کښې د نیګونه په نامه یو بوټی دی چه ولې ئې خلك وچوی او په بیا اوبو پکښې ور ګډوي او چښي ئې چه له چښلو نه وروسته ئې لاندیني اثرات پرې مرتب کیږي۔

﴿۱﴾ له چښلو نه وروسته سړی خاموش شي۔

﴿۲﴾ د ډیرو چښلو له وجهې ځوان سړی زوړ معلومیږي۔

﴿۳﴾ له زیاتو چښلو څخه ئې د انسان په بدن کښې سپین رنګې لیکې پیدا کیږي۔

﴿۴﴾ لاسونه کلك او بدن وچ شي۔

﴿۵﴾ په بدن کښې سستي او کمزوري پیدا کوي۔

﴿۶﴾ په اکثرو ملکونو کښې دا بوټی نشه کوونکی ګڼل کیږي او پابندې پرې لګیدلې وي۔ نو د د اسې بوټي شرعي حکم بیان کړی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په سوال کښې د ذکر شوي مضرو اثراتو په وجه سره د نیګونه بوټي د ولي د شربت استعمال جائز نه دی ځکه چه په بدن باندې ډیر بد اثر کوي او حال دا چه نشه هم لري۔ شریعت مقدسه د صحت او د بدن لپاره د مضرو شیانو له استعمال څخه منع فرمایلې ده

لکه په زهر کښې خو نشه نشته او پاك هم دی لیکن استعمال ئې حرام دی۔

قال العلامة ابن عابدینؒ: کا لسم القاتل فانهٔ حرام مع انه طاهر. (رد المحتار ج۵، ص۲۹۳، کتاب الاشربة)

او په دې بوټي کښې نشه هم شته لهذا استعمال ئې حرام دی اګر که ذکر ئې د فقهې په کتابونو کښې نشته لیکن نظائر ئې موجود دي۔

قال العلامة ابن عابدینؒ: و هکذا یقال فی غیره من الاشیاء الجامدة المضرة فی العقل او غیره یحرم تناول القدر المضر دون القلیل. که چېرت ئې نشه کمه وي او که زیاته نو استعمال ئې حرام دی و قال محمدؒ ما اسکر کثیر فقلیله حرام. (رد المحتار ج۵، ص۲۹۳، کتاب الاشربة)

قال العلامة الزیلعیؒ: و عن ابن عمر انه علیه الصلوٰة و السلام قال ما اسکر کثیره فقلیله حرام. (تبیین الحقائق ج۶، ص۴۷، کتاب الاشربة) و مثله فی البحر الرائق ج۸، ص۲۱۹، کتاب الاشربة)

## د دوایي په توګه د شرابو د استعمال حکم

**سوال:** یو مریض دی کوم چه مرګ ته نژدې دی او هر ډول علاج ئې پرې وکړ لیکن ښه نه شو۔ د ده لپاره ډاکټر د آخري علاج په توګه شراب خوښ کړي دي نو آیا د داسې مریض لپاره د ضرورت په اندازه شراب څښل جائز دي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته یوه مسلمان ته د ډاکټر په تجربو باندې دا یقین وشي چه په دې سره مریض ته شفا حاصلیږي نو د ضرورت له مخې ئې څښل جائز دي خو په دې شرط سره چه له شرابو پرته نوره دوایي ئې په مقابل کښې موجوده نه وي ځکه چه په اضطراري حالت کښې د حرام شي استعمال هم د ضرورت په اندازه جائز دي۔

لما فی الهندیة: و لو ان مریضاً اشار الیه الطبیب بشرب الخمر روی عن جماعة ائمة بلخ انه ینظر ان کان یعلم یقیناً انه یصح حل له التناول. (الفتاوی الهندیة ج۵، ص۳۵۵، الباب الثامن عشر فی التداوی و المعالجات)

قال العلامة الکاسانیؒ: انه یحرم شرب قلیلها و کثیرها الا عند الضرورة. (بدائع الصنائع ج۵، ص۱۱۲، کتاب الاشربة) و مثله فی ردّ المحتار ج۴، ص۲۱۵، کتاب الاشربة.

## د دوایي په توګه د شرابو د خارجي استعمال حکم

**سوال:** د یوه سړي قوت سامعه (د اوریدلو قوت) خرابه ده او ډاکټرانو د علاج په توګه د شرابو څو څاڅکي په خارجي توګه د استعمالولو تجویز ورکړی دی نو آیا د علاج دا طریقه جائزه ده او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د متقدمینو فقهاوو په نزد د شرابو د خارجي او داخلي استعمال او له هغه څخه نفع اخیستل حرام دي۔

قال العلامة المرغینانی رحمه اللّٰه: و یکره الاحتقان با لخمر و اقطارها فی الاحلیل لانه الانتفاع با لمحرم. (الهدایة ج۴، ص۵۰۰، کتاب الاشربة)

لیکن متاخرینو کله چه د تداوي په توګه د داخلي استعمال اجازه ورکړې ده نو د



خارجي استعمال په مرخص کیدو کښې هیڅ شبهه نه پاتې کیږي۔

لما فی الهندیة: یجوز للعلیل شرب الدم و البول و اکل المیتة للتداوی اذا اخبره طبیب مسلم ان شفائه فیه و لم یجد من المباح ما یقوم مقامهٖ. (الفتاوی الهندیة ج۵، ص۳۵۵، الباب الثامن عشر فی التداوی و المعالجات)

قال العلامة ابن عابدین رحمه اللّٰه: اما اذا علم و لیس لهٗ دواء غیره یجوز. (رد المحتار ج۵، ص۲۱۵، باب المتفرقات، مطلب فی التداوی) و مثله فی البحر الرائق ج۸، ص۲۱۹، کتاب الاشربة.

## د هغو ادویاتو چه الکحل پکښې ګډ وي د استعمال حکم

**سوال:** د انګریزي په کومو ادویاتو کښې چه الکحل ګډ شوي وي د هغو استعمال د ډاکټر د تجویز کړل شوي نسخې مطابق جائز دی او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د انګریزي ادویاتو د استعمال په باره کښې د متاخرینو فقهاء کرامو قول دا دی چه که چېرته په دغو ادویاتو کښې د شرابو او د نورو حرامو شیانو ګډوالی وي او یقیني هم وي او یا د ظن غالب په توګه معلوم شوی وي نو د هغو استعمال شرعا جائز دي چه کله په هغه کښې د شفاء امکان وي۔ او که چېرته په هغو کښې یوازې د الکحلو احتمال او شك وي نو بیا د داسې ادویاتو په استعمالولو کښې نور ګنجائش هم شته۔

قال العلامة ابن عابدین رحمه اللّٰه: ففی النهایة عن الذخیرة یجوز ان علم فیه شفاء و لم یعلم دواء آخر. (رد المحتار ج۱، ص۱۴۰، مطلب فی التداوی فی المحرم)

لما فی الهندیة: یجوز للعلیل شرب الدم و البول و اکل المیتة للتداوی اذا اخبره طبیب مسلم ان شفائهٗ فیه و لم یجد من المباح ما یقوم مقامهٖ. (الفتاوی الهندیة ج۵، ص۳۵۵، الباب الثامن عشر فی التداوی و المعالجات) و مثله فی البحر الرائق ج۸، ص۲۱۹، کتاب الاشربة.

## د دوایي په توګه د افیونو د استعمالولو حکم

**سوال:** د دوایي په توګه د افیونو خوړل جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** لکه څرنګه چه د نورو حرامو شیانو د ضرورت په وخت کښې د دوایي په توګه استعمالول جائز دي همدارنګه د افیونو استعمال هم د دوایي په توګه استعمالول جائز دي۔ خو په دې شرط چه د سکر اندازې ته و نه رسیږي۔

لما قال العلامة ابن عابدین رحمه اللّٰه: من غاب عقله با لبنج والافیون یقع طلاقه اذا استعمله للهو و ادخال الآفات قصداً لکونه معصیة و ان کان للتداوی فلا لعدمها. کذا فی فتح القدیر و هو صریح فی حرمة البنج و الافیون لا للدواء. (رد المحتار ج۵، ص۲۹۴، کتاب الاشربة)

لما فی الهندیة: یجوز للعلیل شرب الدم و البول و اکل المیتة للتداوی اذا اخبره طبیب مسلم ان شفائهٗ فیه و لم یجد من المباح ما یقوم مقامهٖ. (الفتاوی الهندیة ج۵، ص۳۵۵، الباب الثامن عشر فی التداوی و المعالجات) و مثله فی البحر الرائق ج۸، ص۲۱۹، کتاب الاشربة.

## د سيون اپ او كوكا كولا د چښلو حكم

**سوال:** د سيون اپ او كوكا كولا د مشروباتو په باره كښې مو اوريدلي دي چه په هغو كښې الكحل ګډ وي په دې لحاظ سره د دغو مشروباتو چښل جائز دي او كه نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د سيون اپ او كوكا كولا په باره كښې د تحقيق له مخې دا خبره ثابته شوې ده چه په شك سره د يوه شي حرمت نه ثابتيږي. البته كه چېرته ئې څوك محض له همدې وجهې احتياطا نوموړي مشروبات و نه چښي نو صحيح ده ليكن چښل ئې حرام نه دي.

لما قال العلامة سليم رستم بازؒ: و هٰذا بناء على ان الشك يورث الاحتياط دون الحرمة لان اليقين لا يزول با لشك. (شرح مجلة الاحكام المادة ٤، ص ٢٠)

قال العلامة الشيخ الزرقاءؒ: و معناها ان ما كان ثابتاً متيقاً لا يرتفع بمجرد طرؤ الشك عليه لان الامر اليقينى لا يعقل ان يزيله ما هو اكف منه بل ما كان مثله او اقوى. (شرح القواعد الفقهية ص ٣٧، القاعدة الثالثة، اليقين لا يزول الا با لشك)

## د فتاوىٰ رشيديه په عبارت باندې د يوه سوال ځواب

**سوال:** په دې مسئله كښې د دين علماء څه فرمايي چه فقيه الزمان حضرت مولانا رشيد احمد ګنګوهي رحمه الله په فتاوىٰ رشيديه كښې د چلم (حُقه) څكول مباح ګرځولي دي نو آيا د هغه د دې قول ثبوت په فقه حنفي كښې شته او كه نه؟ او كه چېرته وي نو د حديث شريف د دې الفاظو چه "كل دخان حرام" په اړه ستاسو څه رايه ده. د فقه حنفي په رڼا كښې د دې مسئلې وضاحت وكړئ؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** له مسلمانو ذوى العقولو څخه دې دا خبره پټه نه وي چه د چلم د څكولو حدوث له ۱۰۰۰ سنه هجري نه وروسته شوى دى. له هغه وخت نه را واخله تر ننه پورې د څلور مذهبونو د علماوو په دې باره كښې مختلفې رائې دي. ځينو د حرمت حكم وركړى دى او ځينې د تحريمي كراهيت خوا ته مائل دي او ځينې بيا د تنزيهي كراهيت قائل دي او ځينو بيا د مطلق اباحت حكم وركړى دى.

د دې مسئلې پوره وضاحت سره د ما لها و ما عليها حضرت مولانا عبد الحى لكهنويؒ پخپلې رسالې "ترويح الحنان بتشريح حكم شرب الدخان" كښې ليكلى دى. د نورو معلوماتو لپاره د هغې رسالې مطالعه انتهايي ګټوره ده او د مكملې تندې د ماتيدو هيله ورسره تړلې ده. بيا هم ستاسو د سوال په رابطه دلته د څو ضروري خبرو وضاحت وړاندې كوو.

علامه شامي رحمه الله په دې باره كښې ليكي: اضطربت آراء العلماء فيه فبعضهم قال بكراهته و بعضهم قال بحرمته و بعضهم باباحته و افردوه با لتاليف و فى شره الوهبانية الشرنبلالىؒ.

و يمنع من بيع الدخان و شربه
و شاربه فى الصوم لا شك يفطر

و للعلامة الشيخ على الاجهورى رسالة نقل فيها انهٗ افتى بحله من يعتمد عليه من ائمة المذاهب الاربعة قلت و الف فى حله سيدنا العارف عبد الغنى النابلسى الحنفىؒ رساله سميها الصلح بين الاخوان فى اباحه شرب الدخان و اقامة الطامة



الكبرىٰ على القائل با لحرمة او با لكراهة فانهما حُكمان شرعيان لا بد لهما للبعض لا يلزم منه تحريمهٗ على كل احد انتهىٰ.

دا ټول عبارتونه په شامي ج ٥، كتاب الاشربه كښې موجود دي.

او عبد الغني نابلسي په "حديقه النديه" شرح "طريقه محمديه" كښې ليكي چه: من البدع العادية استعمال التتن و القهوة. انتهىٰ

او شيخ عبد الخالق زجاجي زبيدي حنفيؒ پخپلو ځينو فتاواوو كښې ليكلي دي.

قد تكلم العلماء المتاخرون فى ذٰلك لانهٗ لم يكن فى القرون السابقة فمن مفرط فى ذمه حتى جزم با لحرمة و من مفرط فى مدحه و منهم من توسط و قال انهٗ مكروه تحريماً وَ هٰذا عندى احسن الاقوال و اعدلها اذ لا قاطع بتحريمه و ليس كل موذٍ و منتن حراماً و الاركان اكل الثوم و البصل و الفحل و الكراث حراماً هٰذا كله فى شرب دكانه و اما اكه و شمه فهو مكروه تنزيهاً عندى لانها دون شرب دخانه. انتهىٰ ملخصاً. (دا عبارتونه د مجموعه الفتاوىٰ ج٢، ص٩٦ څخه نقل شوي دي)

اوس د دې معلومول په كار دي چه د علماوو د دې اختلاف منشأ څه شى دى؟ نو زمونږ په نزد د دې اختلاف منشأ هغه ده كوم چه حضرت مولانا اشرف علي تهانوي رحمه الله وړاندې كړې ده. دى مبارك فرمايي چه "دا حقه (چلم) چه درې سوه كاله مخكښې پيدا شوى دى كوم چه كفارو ايجاد كړى دى او بيا په ټولو خلكو كښې شائع شو او په اصل كښې دا يوه دوايي ده چه د ځينو مرضونو لپاره نافع هم ده او تاوان ئې هم ډير دى لكه څرنګه چه د طب له كتابونو څخه معلوميږي. اوس د څكونكي ئې له دې څخه مختلف مقصدونه دي، مختلف مزاجونه دي او مختلف طور او طريقې دي او مختلف خيالونه او عادتونه دي. څوك ئې د مرض لپاره څكي، څوك ئې د شوق له مخې څكي، چا ته څه نا څه فائده مند وي او چا ته مضر، څوك ئې چه وڅكي نو خوله صفا كوي، څوك ئې په احتياط سره څكي او څوك ئې په بې احتياطۍ سره څكوي، څوك ئې بد ګڼي او څكوي ئې او څوك ئې ښه بولي او څكوي ئې ان تر دې پورې چه ځينې ئې په روژه كښې هم څكوي او وايي چه روژه پرې نه ماتيږي، څوك ئې ډير ډير څكوي او څوك ئې كله كله څكوي، ځينې خلك ئې كه چېرته يو ساعت و نه څكوي نو بې آرامه كيږي او ځينې ئې تر څو ورځو پورې چه و نه څكوي نو بالكل ئې خيال هم نه وي. او بيا په تمباكو كښې هم ډير قسمونه دي. ځينې ئې ډير تيز او مضر دي او ځينې ئې بيا كم تيز دي، په ځينو كښې بوى زيات وي او په ځينو كښې كم، په ځينو كښې نشه يا فتور وي او په ځينو كښې نه وي، ځينې د داسې شيانو سره ګډ وي چه له وجهې ئې خباثت كميږي او په ځينو كښې ګډ نه وي، او همدارنګه په حقه او نيچې كښې هم فرق وي. د ځينو د نيچې كپړه پاكه وي او د ځينو نه وي او د حينو مشتبه وي، ځينې پيچوان دي او د هغه اثر كم راځي او په ځينو كښې زيات راځي، ځينې زر زر تازه كيږي او ځينې زر زر نه تازه كيږي، ځينې هر سړي په خوله پورې نيولې وي لكه د حجرې حقه يا چلم او ځينې خاص وي. غرض دا چه نه ټول څكوونكي برابر

دي او نه ټول چلمونه او تمباکو سره برابر وي۔ ټول متفاوت او مختلف وي پس د هر يوه حکم هم بيل دی۔ که چېرته ئې يو څوك د سخت ضرورت په وخت کښې د کوم مرض د علاج لپاره په احتياط سره د دوا په توګه کله واړې څکوي نو دومره جرم نه دی۔ او کوم چه ئې له مرض څخه وروسته په صحت کښې د شوق له مخې څکوي لکه نن صبا چه عام دی کوم چه د محفل زيب او زينت جوړ شوی دی چه په چا و نه څکول شي نو وايي چه چلم ئې هم را باندې و نه څکاوه، په ژبه بد وريسې وايي او يا ئې په زړه کښې بد بولي ليکن په ظاهر کښې ئې د شرم له محسوسولو پرته څکوي اولې غوندې هم نه محجوب او نه منقبض کيږي او په آخر کښې ورته مضر هم وي او له خولې نه ئې بدبويي هم ځي او په حواسو کښې ئې کدورت او سترتيا هم راځي او له اهل نار سره تشبه هم دی ځکه چه د خولې او پزې نه لوګی باسي او پخپله اور او لوګی د الله تعالی عذاب دی کوم چه دی ورسره ځان متلبس کوي۔ په د اسې توګه ورسره عادي کيدل په سبب د يو ځای کيدو د دغو ټولو شيانو يقينا چه ډير بد او سخت مکروه دی۔ بيا هم د مخکښينيو ذکر شويو توپيرونو په وجه به ئې په کراهيت کښې هم تفاوت وي او ځينې څکونکي چه بې احتياطه وي او د وراسته چلم، ناپاکې نيچې او تيزې تمباکو په څکولو نشه کيږي او د شرابو غوندې پرې مد هوشه کيږي نو بيائې د دې ډول په حرمت کښې هيڅ شك نشته۔

حاصل دا چه ځينې چلم ډير مکروه او ځينې کم مکروه، ځينې حرام او ځينې د سخت ضرورت په وخت د دوايي په توګه يو دوه ځله مباح۔ د دې تقرير په بناء چه د علماوو او فقهاوو د دې په اباحت، کراهيت او حرمت کښې کوم فرق دی تطبيق ئې هم ممکن دی۔ چه کله کومه موقعه سړی ګوري بايد هغسې حکم وکړي۔ بهر حال د چلم د څکونکي په اکثره حالاتو کښې نه چه په ټولو حالاتو کښې له ګناه نه خالي نه وي“۔ انتهٰی

د حضرت تهانويؒ له دې تقرير څخه د فقهاوو او علماوو د اختلاف په منشأ او د هغو د اقوالو په تطبيق باندې رڼا ولويده او واضحه شوه چه د دلائلو په اعتبار سره چه کله د علماوو او فقهاوو په اختلاف باندې نظر واچول شي نو د طرفينو د دلائلو له تنقيح نه وروسته دا ښکاريږي چه د حرمت قول لا يعبأ بهٖ دی ځکه چه د قطعي حرمت د تحريم په دليل باندې موقوف وي۔ کومو علماوو چه د حراموالي حکم ورکړی دی هغو کوم قطعي دليل پرې نه دی وړاندې کړی بلکه د هغو ټول ظني دليلونه هم مخدوش دي لکه څرنګه چه مولانا عبد الحی صاحب رحمه الله په ترويح الجنان کښې د دې وضاحت کړی دی۔ او له کراهيت پرته د اباحت قول هم له مخدوش والي نه خالي نه دی۔ البته د کراهيت قول به د اعتبار وړ وي۔ او بالفرض که چېرته د چلمو حرمت ثابت شي نو بيائې هم په مختلف فيه والي کښې ئې شك نشته۔ لکه څرنګه چه د مخکښينيو عبارتونو څخه معلوميږي چه د علماوو يوې ډلې ئې له حراموالي څخه انکار کړی دی او هغوی ئې د کراهيت او يا ئې د اباحت فتوٰی ورکړې ده او په کراهيت کښې هم ځينو د تحريمي قول کړی



دی او ځينو د تنزيهي۔ د علامه ابو سعودؒ په نزد باندې کراهيت تنزيهي دی او کراهيت تنزيهي له اباحت سره جمع کيدلی شي۔ علامه شامي ليکي چه: قال ابو السعود فتكون الكراهة تنزيهية و المكروه تنزيها يجامع الاباحة.

که چېرته حضرت ګنګوهي صاحب چا ته چه حضرت مولانا انور شاه کشميري د فقيه النفس موزون خطاب ورکړی دی ئې د اباحت قول کړی وي او فتوٰی ئې ورکړې وي نو کومه ګناه به ئې کړې وي؟ کيدلی شي فقيه النفس حضرت ګنګوهي صاحبؒ د هغو علماوو او فقهاوو اقوالو او رايو ته ترجيح ورکړې وي کوم چه ئې د اباحت قائل دي۔ او پخپله حضرت ګنګوهي صاحب د ډير لوی مقام عالم دی او په ټولو اسلامي علومو کښې هغه ته د امامت منصب او لقب حاصل وو۔ ليکن چه کوم خصوصي مناسبت د ده د فقهې او حديثو سره وو له هغه نه دا معلوميږي چه دا علوم د ده په خيال، عادت او فطرت کښې داخل شوی وو۔ هغه مشکل مسائل چه د زمانې علماوو به ئې په حل کولو کښې حيران او سرګردان وو حضرت ګنګوهي صاحبؒ به هغه ډير زر زر حل کول۔ کيدی شي چه حضرت ګنګوهي صاحب رحمه الله به تحقيق کړی وي او د تحقيق په نتيجې کښې چلم د اباحت په درجه کښې ورته ثابت شوی وي۔ له دې برسيره که چېرته هغه د اباحت خبره کړې وي او فتوٰی ئې ورکړې وي نو د دې مطلب دا نه دی چه بالکل په يوه وخت کښې هم د کراهيت درجې ته نه رسيږي او چېرته ئې څوك يو مخ د اباحت قايل هم شي نو بيا هم کفر نه دی ځکه چه په اباحت، کراهيت او حرمت کښې ئې اختلاف خو خامخا شته۔

او په شرح العقائد النسفي او همدارنګه په فتاوٰی بزازيه کښې د دې مسئلې تصريح شوې ده چه هغه حرام چه مختلف فيه وي د هغه حلال ګنونکي ته هيڅکله کافر ويل جائز نه دي۔ ”کل دخان حرام“ دا د حديث الفاظ نه دي بلکه اصل حديث داسې راغلی دی چه ”کل مسکر خمر و کل مسکر حرام“ (رواه مسلم) او يا دا حديث دی۔

نهٰى رسول اللهﷺ عن كل مسكر و مفترٍ. (رواه احمد عن ام سلمة)

او کله چه ”کل دخان حرام“ بالکل د حديث الفاظ نه وي نو په هغه اندازه د بحث کولو ضرورت هم نشته۔

مسئله في نفسهٖ د ضرورت په اندازه واضحه شوه

فقط و الله اعلم

# كـــتاب القصاص و الدية

## (د قصاص او د ديت احكام او مسئلې)

### د قاتل د معاف کولو او بخښلو نه وروسته د قصاص غوښتنه جائزه نه ده

**سوال:** يوه سړي په بل سړي باندې د قصداً قتل دعوٰی دائره کړه. اوس كه چېرته د مقتول وارثانو د شاهدانو په وړاندې قاتل معاف كړي نو وروسته بيا له كومې وجهې دوباره د قصاص غوښتنه كولی شي او كه نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** كله چه وارثانو يو ځل په باقاعده توګه قاتل معاف كړي نو له هغه نه وروسته د هغو د قصاص حق ساقط ګرځي او د مقتول وارثانو ته د بيا د قصاص د غوښتنې حق نه پاتې كيږي بلكه د يوه وارث په معاف كولو سره هم پاتې وارثانو ته د قصاص د اخيستلو حق نه پاتې كيږي.

و فی الهندية: و من حفا عن ورثة المقتول فلا سبيل الى القصاص. (الفتاوی الهندية ج٦، ص٢٢، الباب السادس فی الصلح و العفو)

قال العلامة الجصاص الرازی رحمه الله: قال رسول اللهﷺ العمد قود الا ان يعفو ولی المقتول. (الاحكام القرآن ج١، ص١٨٠، بحث تنازو اهل العلم فی معنی قوله تعالٰی فمن عفی لهٗ من اخيه شیء. (الآية) و مثله فی بدائع الصنائع ج٧، ص٢٤٦، بيا ما يسقط القصاص بعد وجوبه، كتاب الجنايات.

### د صلحې او روغې جوړې نه وروسته د محكمې قاتل ته د سزا وركولو حكم

**سوال:** يوه سړي مثلاً زيد يو بل سړي په قصد سره قتل كړ چه مقدمه ئې په محكمې كښې د غور لاندې وه. د مقتول وارثانو ديت واخيست او مقدمه ئې پرېښودله چه له مخې ئې زيد د اعدام يا قصاص له سزا څخه بچ شو ليكن محكمه هغه ته د ټول عمر سزا وركړه نو آيا شرعاً محكمې ته د اسې كول جائز دي او كه نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په قتل عمد كښې د قصاص اخيستل د وارثانو شرعي حق دی په داسې حال كښې چه قاتل معاف كولی هم شي، ديت هم اخيستلی شي او صلح هم كولی شي. د صورت مسئوله مطابق وارثانو چه ديت واخيست او قاتل ئې معاف كړ نو حكومت ته د نورې سزا وركولو هيڅ حق حاصل نه دی. نو اوس چه عدالت او محكمه هغه ته د عمر قيد سزا وركوي نو هغه به مروجه قانوني سزا وي نه شرعي.

لما قال الله تعالٰی: فَمَنْ عُفِیَ لَهٗ مِنْ اَخِيْهِ شَیْءٌ فَاتِّبَاعٌ بِالْمَعْرُوْفِ وَ اَدَآءٌ اِلَيْهِ بِاِحْسَانٍ........ فَمَنِ اعْتَدٰی بَعْدَ ذٰلِكَ فَلَهٗ عَذَابٌ اَلِيْمٌ☆ (سورة البقرة، آيت١٧٨)

قال العلامة المرغينانیؒ: انها نزلت فی الصلح. (الهداية ج٣، ص٢٤٦، كتاب الصلح)



قال العلامة الجصاص الرازیؒ: من قتل بعد اخذ الدية فعليه القتل لا يقبل منه الدية. (الاحكام القرآن ج١، ص١٥١، بحث تنازع اهل العلم فی معنی قوله فمن عفی لهٗ من اخيه شیءٌ)

### د صلح بدل يوازې په قاتل باندې دی

**سوال:** د يوه سړي پلار چا قتل كړی دی زوی ئې اوس صلح غواړي نو آيا د قاتل وارثان د ديت د ادا كولو پابند دي او كه نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د صلح په صورت كښې بدل يوازې په قاتل باندې واجب دی نور خپلوان ئې يوازې د احسان په توګه تعاون ورسره كولی شي.

كما فی الهندية: و كل ارش وجب با لصلح فهو فی مال القاتل. (الفتاوی الهندية ج٦، ص٢٤، كتاب الصلح)

قال العلامة ابو بكر الجصاص الرازیؒ: دلالة الدية ظاهرة علٰی ان الصلح دم العمد و سقوط القود بعفو بعض الاولياء يوجب الدية فی مال الجانی. (الاحكام القرآن للجصاص ج١، ص١٥٨، بحث تنازع اهل العلم الخ) و مثله فی بدائع الصنائع ج٧، ص٢٥٥، بيان من تجب عليه الدية، كتاب الجنايات.

### د قتل بالسبب د ديت حكم

**سوال:** يوې ښځې د خپل مېړه په ډوډۍ كښې زهر ګډ كړل ليكن اتفاقاً هغه مړی بل چا وخوړه چه له وجهې ئې هغه مړ شو. كله چه ښځې ته معلومه شوه نو وتښتېدله. د نيولو په صورت كښې ئې خسر هغې لره مړه كړه. اوس كوم سړي چه د زهرو مړی خوړلې ده وارثان ئې د ښځې له وارثانو څخه د ديت غوښتنه كوي او حال دا چه د دې واقعې ډېر وخت تېر شوی دی. د دې مسئلې شرعي حكم څه دی؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په زهرو باندې په لړل شوې ډوډۍ باندې د مرګ واقع كېدلو ته قتل بالسبب ويل كيږي. په صورت مسئوله كښې كومې ښځې چه په ډوډۍ كښې زهر ګډ كړي دي د هغې په عاقله باندې ديت واجب دی او په ښځې باندې كفاره نشته اګر كه هغه مړه شوې هم ده. د هغې عاقله موجوده ده له هغې څخه به ديت اخيستل كيږي او د مقتول وارثانو ته به وركول كيږي.

قال العلامة ابن عابدينؒ: لو زلق بماء صبه رجل فوقع فی البئر فا لضمان علی الصّاب. (رد المحتار ج٥، ص٣٤٢، كتاب الجنايات)

قال العلامة الزيلعیؒ: موجب القتل بسبب الدية علی العاقلة الا الكفارة. (تبيين الحقائق ج٦، ص١٠٢، كتاب الجنايات) و مثله فی الهداية ج٤، ص٥٦١، كتاب الجنايات.

### مـــــريض ته د دوايي په وركولو سره د مـــــرګ د واقع كېدو پــــه صورت كښې د ديت حكم

**سوال:** يوه سړي يو مريض ته د اسې دوايي وركړه چه له وجهې ئې هغه مريض مړ شو نو آيا په دوايي وركوونكي باندې ديت يا ضمان شته او كه نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته مریض ته د کوم ماهر او تجربه کار ډاکټر یا حکیم د تجویز کړل شوې نسخې مطابق دوایي ورکړ شوې وي او هغه ترې مړ شوی وي نو په دوا ورکوونکي باندې نه دیت او نه ضمان یو هم نشته. او که چېرته دوایي ورکوونکی پخپله نه ډاکټر وي او نه حکیم او نه ئې د بل ډاکټر د نسخې مطابق دوایي ورکړې وي او یا ئې د نسخې د هدایاتو په خلاف ډېره دوایي ورکړې وي نو په دې صورت کښې دوا ورکوونکی ضامن دی کوم چه دیت او کفاره به دواړه پرې واجب وي۔

لما ورد فی الحدیث: قال النبیﷺ من تطیب و لا یعلم منه طب فهو ضامن. (ابو داؤد ج۲، ص۲۸۲، کتاب الدیات)

قال العلامة خلیل احمد السهارنفوریؒ: قال الخطابی لا اعلم خلافاً ان المعالج اذا تعدی فتلف المریض ضمن ای الدیة. و فیه ایضاً لا ضمان علی حجام و لا ختان و لا متطیب بشرطین احدهما ان یکونوا ذوی حذق و بصارة فی ضاعتهم فان لم یکن کذٰلك لم یحل له مباشرة القطع. (هاشیة بذل المجهود ج۱۸، ص۱۰۷، کتاب الدیات)

## د مقتول د دیت مستحقین

**سوال:** د موټرو د ټکر په صورت کښې د مقتول لپاره د موټر او موټروان څخه د تاوان په توګه ورکوونکي پیسې به د مړي کونډې ته ورکول کیږي او که ئې ورونو ته په د اسې حال کښې چه کونډه ئې له بل چاسره نکاح کول هم غواړي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د ټکر په صورت کښې د قتل شوي دیت په موټروان او د هغه په عاقلې باندې واجب دی او د ا دیت به د مړي په وارثانو به د شرعي قاعدې مطابق تقسیمیږي۔ په نوموړي صورت کښې ئې ښځه وارثه ده اګر که له بل چاسره نکاح هم غواړي۔

قال العلامة برهان الدین المرغینانیؒ: ان القصاص حق جمیع الورثة و کذا الدیة. (الهدایة ج۴، ص۵۷۲، کتاب القصاص فی مادون النفس)

قال العلامة ابن نجیم المصری رحمه اللّٰه: و الورثة فی ذٰلك کلهم سواء. (البحر الرائق ج۸، ص۳۱۰، فصل فی الصلح علی المال) و مثله فی التفسیرات احمدیة ص۱۹۶

## د خوب په حالت کښې د مور د تي لاندې د مړ کیدونکي بچي د دیت او کفارې حکم

**سوال:** یو بچی د خپلې مور په څنګ کښې پروت وو او ویده وو چه د مور لاندې شو او مړ شو نو اوس ئې د مور لپاره د دیت او کفارې څه حکم دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د اسې مرګ د جاري مجري خطا له جملې څخه دی۔ چه په دې کښې په عاقله باندې دیت او په قاتل باندې کفاره لازمیږي۔ نن صبا د عاقله څخه د دیت وصولول د اسلامي قانون د نه اجراء په وجه مشکل دی نو ځکه په نوموړي صورت کښې به مور د خپلې غاړې د خلاصولو لپاره کفاره ادا کوي۔ همدارنګه که چېرته بچی د مرګ په وخت کښې مالك



وي نو مور ئې د همدې قتل له وجهې د بچي له جائداد څخه به محرومه وي۔

لما قال اللّٰه تبارك و تعالیٰ: وَمَنْ قَتَلَ مُؤْمِناً خَطأً فَتَحْرِيْرُ رَقَبَةٍ مُؤْمِنَةٍ وَّدِيَةٌ مُّسَلَّمَةٌ اِلٰى اَهْلِهٖ. (سورة النساء، آیت۹۲)

قال العلامة علاؤ الدین الحصکفی رحمه اللّٰه: و الرابع ما جری مجراه مجری الخطاء کنائم انقلب علی رجل فقتله لانه معذور کا لمخطیء و موجبه الکفارة الدیة علی العاقلة. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۵، ص۳۴۲، کتاب الجنایات)

قال العلامة الکاسانی رحمه اللّٰه؛ النائم ینقلب علی انسان فیقتله فهٰذا القتل فی معنی القتل الخطاء من کل وجه لوجوده لا عن قصد لانه مات بثقله فترتب علیه احکامه من وجوب الکفارة و الدیة و حرمان المیراث. (بدائع الصنائع ج۷، ص۲۷۱، کتاب الجنایات) و مثله فی الهدایة ج۴، ص۵۶۱، کتاب الجنایات.

## د خوب په حالت د مور په غیرِ کښې د بچي په مرګ باندې د پیدا شوي سوال ځواب

**سوال:** د خوب په حالت کښې که چېرته بچی د مور لاندې شي او مړ شي نو د دیت او کفارې په وجوب باندې تاسو د ا دلیل ورکوی چه "کنائم انقلب علی رجل فقتله" آیا د ا قتل خطا د هغه قائم مقام کیدلی شي؟ آیا په بیداري او خوب کښې فرق نه وي؟ که چېرته فرق نه وي نو د دې حدیث مطلب څه شی دی چه "رفع القلم عن ثلث النائم حتی استیقظ الخ" ستاسو په دې دلیل چه النائم انقلب کښې د اُم لفظ نشته۔ همدارنګه د ا آیت کریمه چه لَا تُضَآرَّ وَالِدَةٌ بِوَلَدِهَا اګر که د رضاعت په باره کښې راغلی دی لیکن د الفاظو د عموم لره اعتبار دی۔ تاسو د اسقاط حمل دلیل هم ورکړی دی لیکن په هغه کښې د ښځې اراده وي او حال دا چه د خوب مسئله ځانته ده۔ د روژې په حالت کښې که چا ته احتلام وشي نو د روژې قضاء او کفاره پرې نشته ځکه چه روژه لرونکی مجبور دی۔ مهرباني وکړی زما د ا مشکلات حل کړی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** ﴿۱﴾ د "رفع القلم عن ثلث مطلب د ا دی چه په آخرت کښې ئې ګناه او نیول نه وي د دې د ا مطلب نه دی چه که په دنیا کښې کومه غلطي وشي نو د هغه ضمان به نه وي او که نه نو په قتل خطا کښې وجوب د دیت، په لمانځه کښې په ترك د واجبو باندې سجده سهو، او همدارنګه مجنون او بچی که چېرته د چا مال ضائع کړي نو په هغه باندې د ضمان حکم به ولې وو۔ بچی او مجنون که چېرته په دواړو سره یو څوك قتل کړي نو د هغو په عاقله باندې دیت شته۔

قال العلامة ابوبکر الکاسانیؒ: فتجب الدیة ثم ما یجب علی الصبی و المجنون و الخاطیء تتحمله العاقلة. (بدائع الصنائع ج۷، ص۲۳۶، کتاب الجنایات)

﴿۲﴾ فقهاء کرامو چه کوم مثال ورکړی دی "کنائم انقلب علی رجل" د ا عامه قاعده ده۔ په دې کښې مور، پلار، خور، ورور او د اسې نور ټول داخل دي۔ له دې څخه مراد شخص کلي دی کوم چه

مستثنی کول او نور پکښې شاملول غلط دی۔

مور، پلار او د اسې نور ئې افراد دي او د مور ترې مستثنی کول او نور پکښې شاملول غلط دی۔ ضرر ورکول نه دي لکه څرنګه چه تاسو ئې

﴿۳﴾ په مور باندې د دیت وجوب او کفاره دې ته ضرر ورکول نه دي لکه څرنګه چه تاسو ئې په وجه هغه ته تکلیف مه ورکوی وَ لاَ ګنی۔ همد ارنګه د پلار په اړه هم دا حکم دی چه د بچي په وجه هغه ته تکلیف مه ورکوی وَ لاَ مَوْلُودٌ لَهٗ بِوَلَدِهٖ لیکن که چېرته خپل زوی مړ کړي نو بیا دیت پرې واجب دی۔ همد ارنګه د دیت مطلب دا دی چه که چېرته ښځه خپل بچي ته د شیدې له ورکولو څخه بالکل معذوره وي نو میړه به هغې ته تکلیف نه ورکوي دلته ښځه بالکل مجبوره ده لیکن که چېرته ئې بچی ترې لاندې شي او مړ شي نو په دې کښې د هغې بې احتیاطي خامخا دخل لري۔ د دې لپاره علامه ابن عابدین فرمایي چه:

فان النائم لیس من اهل القصد اصلاً و انما وجبت الکفارة لترک التحرز عن نومهٖ موضع یتوهم قاتلاً و الکفارة فی قتل الخطاء انما یجب لترک التحرز. (رد المحتار ج۵، ص۳۴۲، فصل فیما یوجب القود وما لا یوجبه)

﴿۴﴾ چونکه د حمل له اسقاط څخه مراد قتل عمد دی کوم چه نه شبه عمد دی او نه سببي فعل دی "لعدم التوریث" د حمل د اسقاط لپاره دوایي خوړل او له بچي سره د مور څملاستل اختیاري دي لیکن قتل په دواړو صورتونو کښې غیر اختیاري دی۔

قال العلامة الزیلعیؒ: کنائم انقلب علی رجل بیان لما جرٰی مجری الخطاء لان هٰذا لیس بخطاء حقیقة لعدم قصد النائم الی شیء حتٰی یصیر مخطأ لمقصود و لما وجد فعله حقیقة وجب علیه ما اتلفه کفعل الطفل. (تبیین الحقائق ج۵، ص۱۰۱، کتاب الجنایات)

## د نقدو روپو په شکل کښې د دیت اندازه

**سوال:** د قتل خطاء دیت د نن صبا په رائجو پیسو باندې څومره جوړیږي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د قتل خطا دیت سل اوښان یا یو زر دیناره او یا لس زره درهمه ده۔

کما فی الهندیة: و من العین الف دینار و من الورق عشرة الاف درهم. (الفتاوی الهندیة ج۴، ص۵۸۵، کتاب الدیات)

یو درهم تقریبا د درې نیمو ماشو سپینو زرو سره برابر دی۔ (اوزان شرعیه از مفتي محمد شفیع ص۱۵)

له دې حساب څخه نن صبا د دیت اندازه ۳۶ سیره اوه چټاکه یوه توله او اته ماشې سپین زر جوړیږي۔ چه د نوموړې اندازې سپینو زرو په مارکیټ کښې څومره قیمت وي هغومره روپۍ به د قتل خطاء دیت وي۔

قال العلامة ابوبکر الجصاص الرازیؒ: فمن الدراهم عشرة آلاف درهم و من الدنانیر الف دینار. (الاحکام القرآن ج۲، ص۲۳۷) و مثله فی بدائع الصنائع ج۷، ص۲۵۴، فصل فی وجوب الدیة و الکلام فیها.

## د اوږې د هډوکي په ماتیدو باندې د عادل حکومت حکم

**سوال:** یو سړی د ریو کسانو ښه زیات وواهه چه له وجهې ئې د نوموړي د مټ هډوکی مات شو۔ وهل شوي سړي په هغو کسانو باندې دعوه وکړه چه ما ته ضمان راکړی نو آیا شرعا د ضمان د



غوښتنې حق لري او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په صورت مسئوله کښې چه د کوم وهل شوي سړي هډوکی مات شوی دی په بدل کښې ئې دریواړه وهونکي ضامنان دي۔ د مساواتو د رعایت د نه ممکن والي په وجه سره په دې کښې د عدل حکومت دی۔ یعنې وهل شوی سړی چه کله د علاج او معالجې نه وروسته ښه شي نو د هغه د علاج خرڅ، دوایي، د ډاکټر فیس او د اسې نور چه څومره مصارف شوي وي یا کیږي د اټول مصارف به له دریواړو وهونکو نه اخیستل کیږي او وهل شوي سړي ته به ورکول کیږي۔

قال العلامة ابو بکر الکاسانیؒ: فنقول فی کسر العظام کلها حکومت عدل الا للسن. (بدائع الصنائع ج۸، ص۳۲۸، فصل یجب فیه ادش غیر مقدر)

قال العلامة ابن نجیمؒ: و لا قصاص فی عظم لقوله علیه الصلٰوة و السلام لا قصاص فی العظم و قال عمرو ابن مسعودؓ لا قصاص فی عظم الا فی السّنّ. (البحر الرائق ج۸، ص۳۶، باب القصاص فی مادون النفس) و مثله فی الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۵، ص۳۵۴، باب القود فی مادون النفس.

## تر صلح وروسته چه زخمي مړ شي نو د دیت حکم به ئې څه وي؟

**سوال:** د دوو ډلو تر منځ له جنګ څخه وروسته صلح وشوه۔ د وهل شوي سړي وارثانو وویل چه چونکه زمونږ کوم وهل شوی سړی په دې جنګ کښې زخمي شوی وو له هغې وجهې نه نوموړی مړ شوی دی او په رښتیا هم له هم هغو زخمونو نه مړ شوی وي۔ نو اوس پوښتنه دا ده چه په زخمي کوونکي باندې شرعا دیت شته او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته دا صلح او معافي یوازې د جنایت او زخم وي او زخمي د دې جنایت څخه په پیدا کیدونکو اثراتو باندې خاموش پاتې وي او د همدې زخم له وجهې هغه مړ شي نو په زخمي کوونکي باندې دیت لازم دی او که چېرته صلح د زخم او له هغه څخه په پیدا کیدونکو اثراتو باندې شوې وي نو له صلحې څخه وروسته که چېرته زخمي مړ شي نو په زخمي کوونکي باندې هیڅ دیت نشته۔

لما قال العلامة المرغینانیؒ: و من قطع ید رجل فعفا المقطوعة یدهٖ عن القطع ثم مات من ذٰلک فعلی القاطع الدیة فی ماله و ان عفا عن القطع و ما یحدث منه ثم مات من ذٰلک فهو عفو عن النفس. (الهدایة ج۴، ص۵۷۶، کتاب الجنایات)

قال العلامة التمرتاشیؒ: و من قطع فعفا عن قطعه فمات منه ضمن قاطعه الدیة و لو عفا عن الجنایة او عن القطع و ما یحدث منه فهو عفو عن النفس. (تنویر الابصار علی هامش رد المحتار ج۵، ص۳۶۱، فصل فی الفعلین) و مثله فی تبیین الحقائق ج۶، ص۱۱۸، فصل و من قطع ید رجل.

## د ولادت د رشتې له وجهې یوازې قصاص ساقط ګرځي

**سوال:** د خوب په حالت کښې که چېرته له مور څخه بچی مړ شي نو د ځینو په نزد په مور باندې کفاره نشته ځکه چه په در مختار کښې دي چه: و القتل الموجب للقود او لکفارة و ان سقطا بحرمة الابوة علی ما

مرّ. (ج۵، ص۴۸۹، کتاب الفرائض) یعنې د اسې قتل کوم چه موجب د کفارې او یا د قصاص وي د ولادت په رشتې باندې دواړه ساقط ګرځي مهرباني وکړی د در مختار د دې عبارت وضاحت وکړی؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** له مور څخه که چېرته د خوب په حالت کښې بچی مړ شي نو موجب د کفارې او د دیت دی ځکه چه دا قتل قتل خطاء ده۔

لما قال العلامة الحصکفیؒ: و الرابع ما جریٰ مجراه مجری الخطاء کنائم انقلب علی رجل فقتله لانه معذور کا لمخطیء و موجبه ای موجب هٰذا النوع من الفعل و ما جریٰ مجراه الکفارة و الدیة علی العاقلة. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۵، ص۳۴۲، کتاب الجنایات)

له دې عبارت څخه دا معلومیږي چه دیت او کفاره دواړه واجب دي۔ د دُر مختار د پورته ذکر شوي عبارت څخه چه کوم د عدم کفارې او قصاص معلومیږي له هغه څخه مطلب دا دی چه په رشته د ولادت سره یواځې قصاص ساقط ګرځي کفاره نه ساقطیږي ځکه چه د علی ما مر څخه مراد د کتاب الجنایات خوا ته اشاره ده او د کتاب الجنایات څخه یواځې د قصاص ساقطیدل معلومیږي او د دیت او کفارې وجوب د کتاب الفرائض عبارت د کاتب سهوه ده او د کفارې د وجوب تائید د دُر مختار له لاندیني عبارت څخه هم معلومیږي۔

قال العلامة الحصکفی رحمه اللّٰه: شربت دواء تسقط لهٗ عمداً فان کان الولد حیاً فمات فعلیها الدیة و الکفارة. (رد المحتار ج۵، ص۳۷۹، فصل فی الجنین، کتاب الجنایات)

حالانکه دا نه قتل عمد دی او نه شبه عمد۔ په قتل خطاء او شبه عمد په حکم کښې فرق نشته۔

قال العلامة الکاسانی رحمه اللّٰه: النائم ینقلب علی انسان فیقتله فهٰذا القتل فی معنی القتل الخطاء من کل وجه لوجوده لا عن قصد لانه مات بثقله فترتب علیه احکامه من وجوب الکفارة و الدیة و حرمان المیراث. (بدائع الصنائع ج۷، ص۲۷۱، مطلب فی معنی القتل الخطاء) و مثله فی الهدایة ج۴، ص۵۶۱، کتاب الجنایات.

## د جسم د کوم هډوکي په ماتولو باندې به حکومتِ عدل وي

**سوال:** یوه هلك لره په سړك باندې موټر ووا هه چه له وجهې ئې د پښې هډوکی مات شو او بدن ئې هم زخمي شو۔ هلك په شفا خانه کښې د علاج لاندې دی نو آیا په موټروان باندې ئې ضمان او تاوان شته او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په کوم جنایت کښې چه قصاص نه وي او ټاکل شوی دیت هم نه وي نو هلته به حکومتِ عدل وي یعنې حاکم، قاضي او یا تجربه کار ډاکټر د متاثر شوې حصې د جوړوالي نه وروته په علاج معالجې باندې د شوي اخراجاتو حساب به کوي او بیا به ئې له زخمي کوونکي څخه غواړي او زخمي شوي هلك ته به ئې ورکوي۔ د بدن د هرې حصې د هډوکي د ماتوالي په صورت کښې حکومتِ عدل وي لهذا په نوموړي صورت کښې د پښې د هډوکي په ماتوالي کښې به حکومتِ عدل وي۔

لما قال العلامة ابوبکر الکاسانی رحمه اللّٰه: فنقول فی کسر العظام کلها حکومة عدلٍ الا للسن. (بدائع



الصنائع ج۸، ص۳۲۳، فصل یجب فیه ارش غیر مقدر)

قال العلامة ابن نجیمؒ: و لا قصاص فی عظم لقوله علیه الصلٰوة و السلام لا قصاص فی العظم و قال عمرو ابن مسعودؓ لا قصاص فی عظم الا فی السنّ. (البحر الرائق ج۸، ص۳۶، باب القصاص فی مادون النفس) و مثله فی الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۵، ص۳۵۴، باب القود فی مادون النفس.

## د والدینو د نه حفاظت له وجې چه بچی مړ شي نو موجب د ضمان نه دی

**سوال:** یوې مور خپل بچي لره د اور خوا ته کښینولی وو چه بیا اور ته ور ولویده، وسوځید او مړ شو نو آیا د بچي په مور باندې ضمان شته او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** والدین که چېرته د بچي د حفاظت څخه غافل شوي وي او یا ئې بالکل د حفاظت خیال نه وي ساتلی چه له وجهې ئې بچی اور ته ولویده او مړ شو او یا د والدینو د غفلت له وجهې په کوم بل مرګ باندې مړ شوی وي نو په والدینو یا په هغو کښې په یوه باندې ئې هم ضمان نشته۔ هو دواړو ته په کار دي چه توبه او استغفار وکړي۔

کما فی الهندیة: و عن ابی القاسم فی الوالدین اذا لم یتعاهد الصبیّ حتٰی سقط من سطح ومات او احترق با لنار لا شیء علیهما الا التوبةو الاستغفار و اختیار الفقیه ابی اللیث علی انهٗ لا کفارة علیهما و لا علی احدهما. (الفتاوٰی الهندیة ج۶، ص۳۳، باب الامر با لجنایة و مسائل الصبیان)

قال الامام قاضی خان رحمه اللّٰه: و قال بعضهم لیس علی الوالدین شیء الا الاستغفار و هو الصحیح. (فتاوٰی قاضی خان علی هامش الهندیة ج۳، ص۴۴۷، فصل فی اثلاث الجنین)

## د یو چـــــا له لاسه د غلطۍ له مخې د کوم شي په لویدلو سره کـــــه چېرته څوك مـــــړ شي نو د ضمان موجب دی

**سوال:** یو هلك په کټ باندې پروت وو او مور ئې هغه نژدې د دیوال په طاقچې کښې ګرمې شیدې یا اوبه ایښې وې۔ کله چه ئې هغه را اخیستلې نو په هلك باندې توی شوې کوم چه له وجهې ئې هغه هلك مړ شو نو آیا په مور باندې ئې دیت او ضمان شته او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** له والدینو څخه که چېرته په دې ډول سره بچی مړ شي نو دا د قتل با لسبب په حکم کښې راځي۔ په د اسې قتل سره د قاتل په عاقلې باندې دیت شته او پخپله په هغه باندې کفاره واجبه نه ده۔ دا بچی ئې د غلطۍ له وجهې تړې مړ شو ځکه چه د قاتل له لاس څخه پریوتلی شی د بچي د هلاکت سبب دی۔

قال العلامة ابو بکر الکاسانی رحمه اللّٰه: و کذٰلك اذا کان یمشی فی الطریق حاملاً سیفاً او حجراً او لبنة او خشبه فسقط من یده فقتله لوجوده معنی الخطاء فیه و حصوله علی سبیل المباشرة لوصول الآلة بشرة المقتول. (بدائع الصنائع ج۷، ص۲۷۱، مطلب قتل الذی فی معنی القتل الخطاء)

قال العلامة الزیلعیؒ: و من حمل شیئاً فی الطریق فسقط علی انسان ضمن سواء تلف با لوقوع او با لعثرة به بعد

الوقوع لان حمل المتاع فی الطریق علی رأسهٖ او علی ظهره مباح له لٰکنه مقید بشرط السلامة بمنزلة الرمی الی الهدف او الصَید. (تبیین الحقائق ج٦، ص١٤٦، باب ما یحدث الرجل فی الطریق) و مثله فی البحر الرائق ج٨، ص٣٥١، باب ما یحدث الرجل فی الطریق.

22
22

## حکومتي نوکر ته چه د نوکري په دوران کښې څه نقصان ورسيږي نو په حکومت باندې هيڅ ضمان نشته

**سوال:** یو سړی حکومتي نوکر دی. د زیات کار له وجهې په دماغي تکلیف مبتلا شو او حال دا چه ډاکټر هم د دې تصدیق کړی دی کوم چه له مخې ئې هغه له وخت څخه مخکښې له نوکرۍ څخه و ایستل شو نو آیا په حکومت باندې د دې نوکر کوم ضمان شته او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** نوموړي په خوښه او رضا دا نوکري غوره کړې وه. هغه دا معلومات وو چه کار زیات دی. اوس که چېرته د زیات کار له وجهې هغه ته دماغي تکلیف ور پېښ شوی وي نو دا د هغه ذاتي فعل دی. د نوموړي په دماغي تکلیف کښې په مبتلا کېدو باندې حکومت نه مباشر دی او نه سبب. نو ځکه په حکومت باندې هیڅ ضمان نشته. او د حکومت دا قانون هم دی چه د حکومت نوکر له تقاعد څخه مخکښې صحیح معائنه وشي نو حکومت هغه په یوه ځای څه پیسې ورکوي کوم چه دا د حکومت یو ښه عمل دی.

فقهاوو دلته یو مثال ورکړی دی چه دوو کسانو پړي سره څکول او د پړي په پړې کېدو سره دواړه شا ته ولویدل او مړه شول نو دواړه د یوه او بل ضامنان نه دي ځکه چه د دوی دواړو هلاکت د دوی پخپل فعل سره واقع شوی دی.

لما قال العلامة ابو بکر الکاسانیؒ: فلما سقط علی قفاه علم انهٗ سقط بفعل نفسهٖ و هو مده فقد مات کل واحد منهما من فعل نفسهٖ فلا ضمان علی احد. (بدائع الصنائع ج٧، ص٢٧٣، مطلب فی المعنی القتل الخطاء)

قال العلامة الزیلعی رحمه اللّٰه: فان وقعا علی القفاء لا تجب لهما دیة لان کل واحد منهما مات بقوة نفسهٖ. (تبیین الحقائق ج٦، ص١٥١، باب جنایة البهیمة) و مثله فی الهندیة ج٦، ص٨٨، کتاب الجنایات.

## د قتل په نیت سره د تورې د پورته کوونکي سړي د قتل حکم

**سوال:** که چېرته یوه سړي له خپلې ډلې څخه یو کس او یا د ټولې ډلې د قتل کولو لپاره توره پورته کړې نو آیا هغه سړی یا ډله د خپل ځان د دفاع په خاطر نوموړی د تورې پورته کوونکی قتل کولی شي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د مشاهر (د تورې د پورته کوونکي) وینه مباح ده. د نوموړي په قتل سره په چا هیڅ ډول ضمان نه لازمیږي.

و فی الهندیة: و من شهر علی المسلمین سیفا وجب قتله و لا شیء بقتله و کذٰلك ازا شهر علی رجل سلاحا فقتله او قتل غیره دفعاً عنه فلا یجب بقتله شیء الخ. (الفتاوی الهندیة ج٦، ص٧، الباب الثانی فیمن یقتل قصاصاً و من لا یقتل)



قال العلامة الحصکفیؒ: (و یجب قتل من شهر سیفاً علی المسلمین) یعنی فی الحال کما نص علیه ابن الکمال الخ. (الدرالمختار علی هامش رد المحتار ج٥، ص٣٩١، فصل فیما یوجب القود و ما لا یوجبه) و مثله فی الهدایة ج٤، ص٥٦٧، باب ما یوجب القصاص و ما لا یوجب.

## د پښې د ماتیدلو دیت

**سوال:** په سړك کښې یو هلك روان وو چه ناڅاپه زید په موټر ووهه چه له مخې ئې د هلك پښه ماته شوه نو آیا په زید باندې څه ضمان شته او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د ګاډي په ټکر کښې دیت واجبیږي او چه کله د چا یوه پښه ماته شي نو نیم دیت واجبیږي. بیا هم دا دیت به فی الحال نه ورکول کیږي تر یو کال پورې به ورته انتظار کوي. او دا خبره هم ده چه دا دیت به د عاقلې څخه اخیستل کیږي کوم چه د مسلمان حاکم او قاضي څخه ئې پرته څوك نه شي ادا کولی. په نن صبا وخت کښې د عاقلې د نشت والي له وجهې پخپل منځ کښې صلح بهتره ده.

و فی الهندیة: و ان کان صاحب الدابة راکباً علی الدابة و الدابة تسیر ان وطئت بیدها او برجلها یضمن و علی عاقلته الدیةو تلزمه الکفارة و یحرم عن المیراث. و قال فی الهندیة ج٦، ص٢٧، الباب السابع فی اعتبار حاله القتل) و فی الرجلین کمال الدیة فی الخطاء و فی احدهما نصف الدیة کذا فی المحیط. (الفتاوی الهندیة ج٦، ص٥٠، الباب الثانی عشر فی جنایة البهائم و الجنایة علیها)

قال العلامة علاؤ الدین الحصکفیؒ: (ضمن الراکب فی طریق العامة) وطئت دابة و ما اصابت بیدها او رجلها او رأسها. و الرجلان ففیهما الدیة و فی احدهما نصفها. (تنویر الابصار علی هامش رد المحتار ج٥، ص٣٨٦، کتاب الجنایات) و مثله فی کنز الدقائق ص٤٦٥، و فیها ایضاً ص٤٥٩، کتاب الجنایات.

## د دیت شرعي انـــــدازه

**سوال:** جناب مفتي صاحب! په مقدس شریعت کښې د دیت اندازه څومره ده؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په مقدس شریعت کښې د قتل د دیت اندازه د اوښانو په اعتبار سره سل اوښان دي او د سرو زرو په اعتبار سره یو زر دیناره دی او د سپینو زرو په اعتبار سره لس زره درهمه دی.

قال العلامة برهان الدین المرغینانیؒ: و الدیة فی الخطاء مائة من الابل اخماساً عشرون بنت مخاض و عشرون بنت لبون و عشرون ابن مخاض و عشرون حقة و عشرون جذعة و قال و من العین الف دینار و من الورق عشرة آلاف درهم. (الهدایة ج٤، ص٥٨٤، کتاب الجنایات)

قال العلامة علاؤ الدین ابی بکر بن مسعود الکاسانی رحمه اللّٰه: فان کان المقتول ذکراً خلاف فی ان الواجب بقتله من الابل مائة. لقوله علیه الصلٰوة و السلام فی النفس المؤمنة مائة من الابل و لا خلاف ایضاً فی اَنَّ الواجب من الذهب الف دینار لما روی انهٗ علیه الصلٰوة و السلام جعل دیة کل ذی عهد فی عهده الف دینار (و قال بعده) و اما الواجب

من الفضة فقد اختلف فیه قال اصحابنا رحمهم الله تعالٰی عشرة آلاف درهم وزنا وزن سبعة. (بدائع الصنائع ج۷، ص ۲۵٤، کتاب الجنایات) و مثله فی تبیین الحقائق ج٦، ص۱۲٦، کتاب الدیات.

## په نا حقه قتل باندې سړی نه کافـــــر کیږي

**سوال:** څه فرمایي علماء کرام د دې مسئلې په باره کښې چه د یوه بې ګناه انسان قتل کوونکی کافر کیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته قتل حرام وبولي او قتل وکړي نو قاتل نه کافر کیږي اګر که قتل عمداً هم وي او د داسې قاتل توبه قبلیږي او کوم انسان چه قتل روا او حلال وبولي او بیا څوك قتل کړي نو په دې سره کافر کیږي۔

قال العلامة بدر الدین العینیؒ: و عندنا ان المؤمن اذا قتل مؤمنا لا یکفر بفعله و لا یخرج به من الایمان الا ان یقتله استحلالاً. (عمدة القاری ج۱۸، ص۱۸۳)

قال العلامة ابن عابدین رحمه الله: و اعلم ان قتل النفس بغیر حق من اکبر الکبائر بعد الکفر با لله تعالٰی و تقبل التوبة منه فان قتل مسلماً ثم مات قبل التوبة منه لا یتحم دخوله النار بل هو فی مشیه الله تعالٰی کسائر اصحاب الکبائر فان دخلها لم یخلد فیها الخ اما الآیة فمؤولة بقتل لایمانه او با لاستحلال او بان یراد با لخلود المکث الطویل. (رد المحتار ج۵، ص۳٤۰، کتاب الجنایات) و مثله فی التفسیرات الاحمدیة ص۵۱، سورة البقرة.

## د یو چا زخمي کولو په صورت کښې د قصاص حکم

**سوال:** که چېرته یو څوك په چا حمله وکړي او زخمي ئې کړي او له زخم څخه ئې وینه لاړه شي نو د هغه د قصاص به څه صورت وي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته زخم داسې وي چه په هغه کښې مماثلت کیدی شو نو په هغه کښې قصاص واجب دی۔

قال العلامة المرغینانیؒ: و فی کل شجة تتحقق فیها المماثلة القصاص انتهی و فی العنایة لقوله تعالٰی وَ الجُرُوْحَ قِصَاص. (الهدایة ج٤، ص۲٦۹، باب القصاص فیما دون النفس)

قال العلامة ابو البرکات عبد الله بن احمد النسفیؒ: و (یقتص) کل شجةٍ یتحقق فیها المماثلة. (کنز الدقائق ص۳۹۳، باب القصاص) و مثله فی مختصر القدوری ص۱۷۷، کتاب الجنایات.

## د غائب د ماتیدلو قصاص

**سوال:** که چېرته یو سړی څوك ووهي او غاښ ئې مات کړي نو له ماتوونکي څخه به قصاص او دیت څنګه اخیستل کیږي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په نوموړي صورت کښې په وهونکي او غاښ ماتوونکي باندې قصاص واجب دی۔ البته د مصالحت په توګه د پیسو راکړه ورکړه هم جائزه ده اګر که د هر غاښ په بدل کښې پنځه سوه درهمه یا تردې کم یا زیات ورکړل شي نو بیا هم صحیح دی۔



لما فی الهندیة: و فی السّن القصاص و ان کان سن من یقتص منه اکبر من سن الآخر و لا قصاص فی عظم الا السن کذا فی الهدایة. ایضاً: و ان شاء ضمنه اورش سنّه خمسمائة. (الفتاوی الهندیة ج٦، ص۱۱/۱۲، الباب الرابع فی القصاص فیما دون النفس)

قال العلامة ابن نجیم المصریؒ: و قال عمرو ابن مسعود لا قصاص فی عظم الا فی السن (البحر الرائق ج۸، ص۳۰٦، و فیه ایضاً ص۳۰۵، و فی السراجیة فی السن الرجل خمسمائة و فی السن المرأة نصف ذٰلك) و مثله فی الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۵، ص۳۵۳/۳۵٤، باب القود فیما دون النفس.

## په مسبب او مباشر باندې دیت

**سوال:** ﴿۱﴾ یو سړی د برمې چلوونکی دی او برمه هغه مشین دی چه د هغه په ذریعې له ځا ګانو څخه ډبرې او داسې نور شیان ایستل کیږي۔ د عام معمول مطابق چه په کومې کوهی کښې کار شروع وو په هغې کښې دریو تنو کار کاوه چه د نوموړي برمې د مشین پړی پرې شو او بوکه ئې په دریواړو کسانو باندې ولویده چه له وجهې ئې دوه کسه زخمیان شول او یو پکښې مړ شو۔ اوس سوال دا دی چه د نوموړي مشین د چلوونکي په ذمې باندې شرعا څه لازم دي؟

﴿۲﴾ دوهمه مسئله په همدې سلسله کښې دا ده چه د نوموړي مړ شوي سړي له خپلوانو څخه یو کس موجود وو په داسې حال کښې چه اصل وارثان ئې په پاکستان کښې وو او دا واقعه په سعودي عربستان کښې پیښه شوې وه۔ او همدارنګه د مړ شوي سړي د همدې دور د خپلوانو سره اسناد موجود نه وو د دې لپاره ئې هغه په پاکستان کښې مقیم ګڼلی وو او اسناد ئې په پاکستان کښې جوړ کړي وو او ور لیږلي ئې وو۔ نو د مړ شوي سړي هغه خپل چه ورسره موجود وو او یوه شریك کوم چه د سعودي عرب اسناد ورسره وو دواړو په سعودي عدالت کښې چلوونکی معاف کړل۔

اوس سوال دا دی چه د مړي دغه خپل او شریك ئې د چلوونکي له معاف کولو څخه وروسته د مړي اصل وارثان یعنې پلار او ورونه ئې په هغه باندې شرعا د دعوې حق لري او که نه؟ او چلوونکي د هغو دواړو له خوا څخه په معاف کولو باندې د اصل وارثانو د دعوٰی حق ساقطیږي او که نه؟ دلته دا خبره هم یاده لری چه هلاکیدونکی سړی د دې کار تیکه دار او د برمې د ماشین مالك هم وو او د غمناکه واقعه د برمې د ماشین د پړي یعنې رسۍ د کمزورۍ له وجهې پرې شوی وو په داسې حال کښې چه د برمې مالك د رسۍ د دغې کمزورۍ څخه هم خبر وو او سره له دې ئې د دغې کمزورۍ دفع و نه کړه تر څو چه پرې شوه او د ده د مړ کیدو سبب وګرځیده۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** ﴿۱﴾ په صورت مسئوله کښې دا قتل (مرګ) د قتل له اقسامو څخه د جاري مجري خطاء په قسم کښې داخل دی۔ شرعا په دې ډول قتل کښې دیت لازم وي کوم چه

قاتل به ئې ادا کوي۔ چونکه له پورتني بیان څخه معلومیږي چه مقتول پخپله کمزوري رسی ماشین چلوونکي ته ورکړې وه او په ماشین کښې ئې اچولې وه او بار بار په دغې کمزوری باندې له خبرتیا سره سره به ئې د لیت او لعل څخه کار اخیست او دا کمزوري رسی ئې بدل نه کړ تر څو چه ناڅاپه دا واقعه پیښه شوه۔ نو ګواکه مقتول پخپله یو ډول د دغې حادثې ذمه وار دی نو ځکه به دیت د قاتل او مقتول تر منځ مشترك وي او مقتول چونکه مړ شوی دی لهذا له هغه څخه د دیت حصه ساقطه شوه او پاتې نیمه حصه (پنځه زره درهمه) یا پنځه سوه دیناره د سرو زرو او یا د هغه مروجه قیمت به قاتل یعنې ماشین چلوونکی د مقتول وارثانو ته ورکوي او د مروجه قیمت معلومات به له ماهر زرګر څخه کوي۔

لما قال الشیخ وهبة الزحیلی: یضمن المتسبب مع المباشر اذا کان للسبب تاثیر یعمل بانفراده فی الاتلاف متی انفرد عن المباشر ای اذا تعادلت قوة السبب و المباشر او اعتدل السبب و المباشر بان تساوی اثرهما فی الفعل کان المتسبب و المباشر مسئولین معاً عن القتل کان اجتمع علی قیادة دابة سائق و راکب علیها فما احدثته من تلف کان الضمان علیهما لان سوق الدابة وحده یؤدی الی التلف و ان لم یکن هناك شخص راکب علیها و کذٰلك اذا نخس رجل الدابة بامر راکبها یکون الضمان علی الاثنین لان الناخس بمنزله السائق. (الفقه الاسلامی و ادلته ج۶، ص۲۴۸، ثالثا تضمین المتسبب و المباشر معاً)

﴿۲﴾ د یوه قاتل دیت او د اسې نورو معاف کول شرعاً د مقتول د وارثانو حق دی کوم چه د هغه په میراث کښې د شرعي حصې حقدار وي۔ بل څوك په دې کښې د تصرف اختیار نه لري۔ د صورت مسئوله مطابق کومو دواړو کسانو چه چلوونکي لره معاف کړی وو چونکه دواړه حضرات د مقتول حقیقي وارثان نه وو یو ئې د مقتول کوم لرې خپل وو او بل ئې خپل هم نه وو یوائې ئې شراکت ورسره درلود په داسې حال کښې چه د مقتول وارث یعنې پلار ئې ژوندی وي نو ځکه د هغو دواړو حضراتو معافي د هغه د پلار له اجازې پرته صحیح نه ده۔ او نه له دیت څخه د چلوونکي غاړې خلاصیږي۔ لهذا قاتل به د خپل دیت برخه د مقتول پلار او نورو وارثانو ته ورکوي۔ او که چېرته هغو دیت معاف کړ نو بیا په دې صورت کښې د چلوونکي له غاړې د دیت ذمه ساقطیږي۔

لما قال العلامة الحصکفی: و لا یجوز التصرف فی مال غیره الا باذنه و لا ولایته الا فی مسائل الخ. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۵، ص۱۴۰، کتاب الغصب)

و قال العلامة وهبة الزحیلی: و من لا حق لهٗ فی العفو هو الاجنبی غیر الوارث عند الجمهور و غیر الغاصب عند المالکیة و کذا الاب و الجد فی قصاص وجب للصغیر عند المالکیة و الحنفیة لان الصغیر هو صاحب الحق و لابیه و جده ولایة الاستیفاء فقط. (الفقه الاسلامی و ادلته ج۶، ص۲۸۸، شروط العفو)



## له اجـــــرتي قاتل څخه د قصاص د اخیستلو حکـــــم

**سوال:** څه فرمایي د دین علماء کرام د دې مسئلې په باره کښې چه د پاکستان د حکومت د قانون مطابق چه د کوم سړي په اړه دا ثابته شي چه د پیسو په بدل کښې ئې څوك وژلی دی یعنې په اجرت باندې ئې یو څوك په قتل رسولی دی نو د نوموړي سزا هم د قاتل د سزا سره برابره ده یعنې نوموړی به هم قصاصا په قتل رسیږي۔ نو اوس پوښتنه دا ده چه په مقدس شریعت کښې په اجرت باندې د قتل کوونکي لپاره څه حکم دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په صورت مسئوله کښې د ضابطې او قانون مطابق قصاص په اجیر باندې راځي نه په مستاجر باندې۔ البته مستاجر ته تعذیري سزا ورکول کیږي۔

قال العلامة قاضی خان رحمه اللّٰه: و لو قال اقتل ابی فقتلهٗ کان علی القاتل دیة لابنه. (الفتاوی قاضی خانؒ علی هامش الهندیة ج۳، ص۴۴۱، کتاب الجنایات، فصل فیمن یقتل قصاصاً و فیمن لا یقتل)

وفی الهندیة: و فی جنایات المنتقٰی قال ابو یوسف رحمه اللّٰه تعالٰی قال ابو حنیفة رحمه اللّٰه تعالٰی فی رجلٍ قمط رجلاً فطرحه قدام سبع فقتله السبع لم یکن علی الذی فعل ذٰلك قودٌ و لا دیة لکنه یعزر و یضرب و یحبس حتٰی یموت الخ. (الفتاوی الهندیة ج۶، ص۶، کتاب الجنایات، الفصلالثانی فیمن یقتل قصاصاً و فیمن لا یقتل) و مثله فی درر الحکام شرح مجلة الاحکام ج۱، ص۹۰/۹۱، المادة ۸۹/۹۰)

## د مقتول د وارثانو په ذریعه د قصاص د اجراء حیثیت

**سوال:** جناب مفتي صاحب! د افغانستان په اسلامي امارت کښې د اسلامي قوانینو د نفاذ په وجه کله چه قصاص له چا اخیستل کیږي نو کله کله قاضي د مقتول وارثانو ته اسلحه ورکوي او سره له دې چه قاضي پخپله موجود وي قصاص د مقتول په وارثانو اجراء کوي آیا شرعاً دا طریقه صحیح ده او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د حدود او قصاص اجراء د وخت د حاکم ذمه واري ده۔ البته په دواړو کښې دومره فرق شته چه د حدودو اجراء به یوائې د وخت حاکم پرته له کومې واسطې څخه کوي او قصاص د حاکم په موجود والي کښې د ده په اجازې سره د مقتول په وارث باندې هم اجراء کولی شي او که چېرته په دې صورت کښې د قصاص له اجراء کولو نه وروسته په دواړو خواوو کښې د فتنې او فساد خطره وي نو بیا دې د دې اجراء هم قاضي پخپله کوي تر څو چه فتنه پورته شي۔

لما قال العلامة وهبة الزحیلی: استیفاء الحدود یکون بواسطة الامام الحاکم و اما القصاص فیجوز لولی الدم استیفاؤه بشرط وجود الامام. (الفقه الاسلامی و ادلته ج۶، ص۲۶۴، الفرق بین القصاص و الحدود الاخری)

## د قصاص په اجراء سره له ګناه څخه د پاکیدو حکم

**سوال:** که چېرته له یوه قاتل څخه د شریعت مطابق قصاص واخیستل شي نو آیا په دې سره د قاتل ګناه معاف کیږي او که نه؟ او که توبه او استغفار کول هم لازمي دي؟ د فقه حنفي په رڼا کښې ځواب راکړی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د یوه سړي په قتل کولو سره دوه ډوله حقونه د قاتل په ذمه اوړي یو د بنده حق یعني د مقتول د وارثانو حق چه د قصاص په اخیستلو سره پوره کیږي او بل د الله تعالی حق چه د حنفي علماوؒ په دې باره کښې رایه دا ده چه د قصاص اخیستل او یا د مقتول د وارثانو په معاف کولو سره اګر که د بنده حق ادا کیږي لیکن د الله تعالی د حق د ادا کولو کفاره نه شي ګرځیدلی بلکه د هغه لپاره توبه او استغفار ضروري دي ځکه چه د حنفیهووؒ په نزد حدود زواجر دي جوابر (پټی یا کفارات) نه دي۔ البته د جمهورو علماوو په نزد حدود چونکه جوابر دي نو ځکه د هغو په نزد په قصاص او په عفوې سره ګناه هم له منځه ځي۔

لما قال العلامة وهبة الزحیلی: اختلف العلماء فی امره کما اختلفوا فی الحدود هل هی زواجر ام جوابر؟ قال الجمهور القصاص من القاتل او العفو عنه یکف اثم القتل لان الحدود کفارات لاهلها و هٰذا عام لم یختص قتلا من غیره. قال النوویؒ: ظواهر الشرع تقتضی سقوط المطالبة با لعقوبة فی الآخرة. قال الحنیفةؒ القصاص او العفو لا یکفر اثم القتل لان المقتول المظلوم لا منفعة له فی القصاص و انما القصاص منفعة للاحیاء لیتناهی الناس عن القتل. وَلَكُمْ فِی الْقِصَاصِ حَیٰوةٌ. (الآیة) (الفقه الاسلامی و ادلته ج٦، ص٢٦٢، هل القصاص یکفر اثم القتل)

## د قاضي پخپل علم باندې د قصاص د اجراء حکم ورکول

**سوال:** زمونږ په علاقه کښې یو سړی ډیر لوی ظالم او بد معاش دی د خلکو عزت، مال او ځان هر وخت له ده څخه په خطر کښې وي او ده علی الاعلان په ښکاره څو قتلونه هم کړي دي کوم چه قاضي صاحب ته هم ښه معلومات شته په داسې حال کښې چه خلك د ویرې او ډار له وجهې د هغه په خلاف په محکمه کښې ګواهي ته نه شي حاضریدلی نو آیا قاضي د خپلو معلوماتو په بناء سره نوموړی قصاصا قتل کولی شي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د حنفیه ووؒ په دې مسئلې کښې دوه رایې دي۔

﴿۱﴾ د متقدمینو احنافوؒ په نزد قاضي د خپل علم مطابق قصاص اخیستلی شي۔

﴿۲﴾ او متاخرین احنافؒ وایي چه قاضي ته دا اجازه نشته چه د خپلو معلوماتو په بناء ئې قتل کړي او په همدې قول باندې فتویٰ هم ده۔

لما قـــال العلامة الحصکفیؒ: یجوز القضاء بعلمه فی القصاص دون الحدود. قال ابن عابدینؒ تحته مبنی علی ان القاضی یقضٰی بعلمه فی غیر الحدود و الفتویٰ الیوم علی عدم جـــــواز القضاء بعلمه مطلقاً. (رد المحتار ج٦، ص٥٤٩، کتاب الجنایات)

قال العلامة وهبة الزحیلی: یجوز للقاضی القضاء بعلمه الشخصی فی القصاص دون الحدود و هٰذا عند متقدمی الحنفیة و افتی المتاخرون بعدم القضاء با لعلم مطلقاً سداً للذریعة اما قضاء السوء سواء فی القصاص و الحدود ام فی الاموال و غیرها. (الفقه الاسلامی و ادلتهٗ ج٦، ص٢٦٤، الفرق بین القصاص و الحدود الاخری)



## د نشې په حالت کښې له قاتل څخه د قصاص د اخیستلو حکم

**سوال:** که چیرته یو څوك د نشې په حالت کښې د زمکې او آسمان فرق نه شو کولی او نه ئې د مور، خور او ښځې تمیز کولی شو نو اوس که چیرته هغه په همدې حالت کښې په غیر اختیاري توګه یو څوك په قتل ورسوي نو آیا شرعا به له ده څخه قصاص اخیستل کیږي او که نه؟ د قرآن او سنتو په رڼا کښې د دې مسئلې وضاحت وفرمایې؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب:** له قاتل څخه د قصاص اخیستل د مقتول د وارثانو شرعي حق دی او دا د مذاهب اربعه وو په اتفاق سره په سکران (نشې) باندې نه ساقطیږي نو ځکه د نوموړې صورت مطابق له قاتل څخه به قصاص اخیستل کیږي۔ د قرآن او سنتو د حکم د مخاطب کیدو لپاره نشه شرعي مانع نه ده۔

لما قال العلامة وهبة الزحیلی: القصاص من السکران و یقتص من السکران بشراب محرم باتفاق مذاهب الاربعة لان السکر لا ینافی الخطاب الشرعی ای التکلیف فتلزمه کل احکام الشرع و تصح عباراته کلها فی العقود کا لبیع الخ. (الفقه الاسلامی و ادلته ج٦، ص٢٦٥، شروط القاتل)

لما قال العلامة علاؤ الدین الحصکفی رحمه الله: یجب القود ای القصاص بقتل کُلّ محقون الدم با لنظر لقاتله درر.......... بشرط کون القاتل مکلفا لما تقرر انهٗ لیس لصبی و مجنون عمد. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج٦، ص٥٣٢، کتاب الجنایات، فصل فیما یوجب القود الخ)

## د دیت له مقدار څخه په کم مال باندې صلح کول

**سوال:** جناب مفتي صاحب! مونږ څو کسه ملګري په ګډه سره د قتل په سلسله کښې د دوو ډلو پخپل منځ کښې د دښمنۍ د ختم کولو او له منځه وړلو کوشش کوو او دواړه خواوې هم صلحې ته تیار دي۔ نو اوس که چیرته مونږ د دیت له اندازې څخه په کم مال باندې فیصله وکړو او د مقتول وارثان په دې باندې راضي هم شي نو آیا داسې کول شرعا جائز دي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د قتل عمد د صلحې په معامله کښې د دیت د اندازې پابندي ضروري نه ده بلکه چه په څومره مال باندې دواړه خواوې راضي شي او صلح وکړي نو په قاتل باندې د مقتول د وارثانو ته هم هغومره اندازه مال ورکول ضروري دي اګر که هغه مال د دیت له اندازې څخه کم وي او که زیات۔

قال العلامة الحصکفیؒ: و صح فی الجنایة العمد مطلقاً و لو فی نفس مع اقرار باکثر من الدیة و الارش او باقل لعدم الربٰو. و قال العلامة ابن عابدینؒ تحت (قوله لعدم الربٰو) لان الواجب فیه القصاص و هو لیس بمال. (رد المحتار علی الدر المختار ج٤، ص٥٣٠، کتاب الدیات)

لما قال العلامة وهبة الزحیلی: یجوز الاعتیاض فی القصاص بخلاف الحدود و منها حد القذف و اجاز الشافعیة المعاوضة فیه. (الفقه الاسلامی و ادلته ج٦، ص٢٦٤، الفرق بین القصاص و الحدود الاخری)

## د قصاص او دیت د نفاذ مسوده آرډیننس مجریه ۱۹۸۰ء او د دار العلوم حقانیې سفارشات او ترامیم

حکومت پاکستان د دریم، ۲۱م، ۲۲م/ ۸۰ آر، سي، آئی، آئی مجریه ۱۳ دسمبر ۱۹۸۰ء د قانون لاندې د انساني جسم خلاف د جرائمو (قصاص او دیت آرډیننس) مسوده قانون د عامه رائې د معلومولو لپاره اعلان کړ۔ اسلامي نظریاتي کونسل دا مسوده د تجاویزو او اصلاحي ترمیماتو او بدلونونو لپاره دار العلوم حقانیه ته ولیږه۔ چنانچه د دار العلوم حقانیه مفتي اعظم حضرت مولانا مفتي محمد فرید صاحب، نائب مفتي حضرت مولانا غلام الرحمٰن صاحب د شیخ الحدیث حضرت مولانا عبد الحق صاحب د لارښوونې په مشورې او موجودوالي کښې په دې مسودې باندې د فقهې او د شریعت له مخې نظر ثاني وکړه او په کومو ځایونو کښې چه د اصلاح قابل شیان په نظر وراغلل د هغو اصلاح ئې وکړل او د اسلامي نظریاتي کونسل د چیرمین و خدمت ته ئې ولیږه او د قصاص او دیت په قانون کښې ئې تول سفارشات وړاندې کړل چه په لاندې ډول دي۔

(مرتب)

بخدمت جناب اقدس چیرمین صاحب اسلامي نظریاتي کونسل پاکستان۔

السلام علیکم ورحمه الله و برکاته

ستاسو په رالیږل شوې آرډیننس مسودې د انساني جسم د جرائمو په خلاف د قصاص او دیت د نفاذ په آرډیننس ۱۹۸۰ء باندې تفصیلي غور وشو۔ چونکه ځینې مادي دفعات داسې دي چه په مسوده کښې ئې یادونه په اجمالي توګه شوې ده او تفصیلي حواله ئې په تعزیرات پاکستان کښې ورکړ شوې ده۔ تعزیرات پاکستان اوس له مونږ سره نشته او مونږ د هغو په اړه د اسلامي نقطهٔ نظر له مخې د ځواب له ورکولو څخه قاصر یو لکه چه په دوهمه دفعه (۱۰۵) (الف)، (ب)، (ج)، (۱۰٦)، ۱، ۲، ۳، ٤، ٥، ۱۱۱، (۱)، (٤)، ۱۲۱، (۱)، ۲ د پاکستان د تعزیراتو متعلق دی۔ له دې برسیره د نورو دفعاتو متعلق تجاویز او ترامیم ستاسو په خدمت کښې دي۔

﴿۱﴾ په دې مسوده کښې تقریبا دیرش ځایونه داسې دي چه قیدِ محض او قیدِ با مشقت په مختلفو مدتونو کښې تقسیم کړی شوي دي او په ځینو ځایونو په مختلف شمیر کښې د دُرو سزا بیان شوې ده نو د دې په اړه ګذارش دا ده چه دا تولې سزاګانې چه تاکل شوي دي یا بیان شوي دي له دې سره سره د دې تصریح ضرور کول په کار دي چه دا سزاګانې محض تعزیرات دي چه د حکومت د سیاسي مصلحتونو سره تړلي دي او دا سزاګانې شرعي نه دي چه د کوم



خاص نص لاندې راشي۔ البته د دُرې سزاګانې چه په کوم ځای کښې ذکر دي نو چونکه دا په غیر منصوصو سزاګانو کښې یوه سخت ترینه سزا ده له دې وجهې ئې په جاري کولو کښې ډیر احتیاط په کار دی او د تعزیر په صورت کښې د فساد د مخنیوي لپاره په ځینو ځایونو کښې د هغه اجراء کول په کار دي ترڅو چه د خلکو لپاره عبرت جوړ شي لیکن کلیه ترې مه جوړوی۔ د مسودې په لاندیني ځایونو کښې دا سزاګانې ذکر دي۔ دفعه (٥) شق ب، ج۔ دفعه ۱٦، دفعه ۲۱ب، دفعه ۲۳ب۔ دفعه ۳٥ الف، ب۔ دفعه ۳۷، الف، ب۔ دفعه ۳۹۔ دفعه ٤۳ ب، ج۔ دفعه ٤٥ب۔ دفعه ٤۷ب۔ دفعه ٤۸۔ دفعه ٥۱ب۔ دفعه ۳٥ب۔ دفعه ٥۸۔ دفعه ٦۰۔ دفعه ٦۲۔ دفعه ٦۳، ٦٦، ٦۸، ۷۰ الف۔ دفعه ۷۱ب، ۸۱ ــ ۸۲، الف۔ ۹۰ــ۹۱ــ ۹٤ج۔ دفعه ۹٥، ۹۷الف، ب۔ دفعه ۹۸ــ۱۰۹ــ۱۱۱۔

﴿۲﴾ چونکه دغه آرډیننس له قصاص او دیت سره تعلق لري او په شریعت کښې د قصاص او د دیت قانون د نفس حفاظت لپاره الله تعالی یوه ضابطه مقرره کړې ده لهذا په دې کښې د نفس د حفاظت په ټولو اړخونو باندې غور کول په کار دي تر څو چه مبادا په یوې نه یوې طریقې سره د مظلوم د وارثانو حق تلفي و نه شي لهذا د قاتلانو پوره پوره محاسبه کول په کار دي او کوم خلک چه د قاتلانو حمایت کوي او یا هغوته له خپل ځان سره پناه ورکوي د هغو لپاره د مصلحت له مخې څه تعزیري قانون مقرر کړی۔ اګر که پناه ورکوونکي یو قوم، یوه قبیله او یا یوه خاصه علاقه او د حکومت ځینې افراد دې ولې نه وي او همدارنګه په هغو علاقو کښې کوم چه د پولتیکل ایجنټ تر نګرانی لاندې دي په هغو کښې هم قاتلین ونیسي چیرته چه قاتلان تښتي او پناه اخلي۔

﴿۳﴾ د دې مسودې په دوهمه صفحه دوهمه ماده شق ج کښې چېرته چه د بالغ تعریف شوی دی په هغې کښې څه زیاتوالی په کار دی او دا تعریف داسې کول په کار دي چه "له بالغ څخه مراد هغه نر او هغه ښځه ده چه په هغو باندې د بلوغ نښې ښکاره شوي وي مثلا احبال، حمل او یا د نامه لاندې د ویښتانو شنه کیدل او یا ښځه او سړی چه ۱۷، ۱۸ کلونو ته ئې عمر رسیدلی وي"۔
په نوموړي دواړو صورتونو کښې هر هغه صورت ته به اعتبار ورکول کیږي کوم چه اول واقع شي۔

﴿-﴾ او په سرکاري مسودې کښې ئې د بالغ تعریف داسې کړی دی چه کوم سړی چه ۱۸ کلونو او یا د بلوغت عمر ته رسیدلی وي۔

﴿-﴾ دا د امام ابو حنیفهؒ مذهب دی۔ د صاحبینوؒ په نزد د دواړو لپاره تر پنځلسو کلونو پورې رسیدل د بالغ والي عمر دی۔

﴿٤﴾ د څلورمې صفحې څلورمې مادې په تشریح کښې چېرته چه د تربت کولو صورت د قتل عمد په صورت کښې ګڼل شوی دی نو هلته دا تصریح ضروري ده چه د تربت کولو په صورت کښې د قاتل قتل کول به حداً (د حد له وجهې) نه وي بلکه سیاستاً (د سیاست له وجهې) وي۔

و لو خنق رجلاً لا یقتل الا اذا کان الرجل خناقاً معروفاً خنق غیر واحد فیقتل سیاسةً. (الفتاوی الهندیة ج٦، ص٥، کتاب الجنایات، الباب الثالث)

قال العلامة قاضی خان رحمه اللّٰه: و لو خنق رجلاً لا یقتل الا اذا کان الرجل خناقاً معروفاً خنق غیر واحد فیقتل سیاسةً. (فتاوی قاضی خان علی هامش الهندیة ج٣، ص٤٤٠، کتاب الجنایات، باب القتل)

﴿٤﴾ یعنې تربت کول او مطلق زهر چا ته ورکولو ته قتل عمد ویل صحیح نه دي. البته په ځینو صورتونو کښې د اسې سړی تعزیرا پرې قتل کیدلی شي. واضحه دې وي چه شرعي اصطلاحات یعنې حد او تعزیر بدلول او مخلوطول یعنې سره ګډول په راتلونکي کښې ډیر خطرناك ثابتیدلی شي.

"که چېرته څوك تربت کړی شو نو قاتل به ئې نه قتل کیږي او البته که چېرته تربت کوونکی په دې کار کښې مشهور وي چه له دې پرته ئې نور خلك هم تربت کړي وي نو بیا به دی د مصلحت له مخې سیاستاً قتل کیږي".

﴿٥﴾ د پورته څلورمې صفحې څلورمې مادې په ذکر شوي شق کښې د زهرو د ورکولو په صورت کښې کوم چه په قتل عمد کښې شمار کړی شوی دی د هغه په اړه دا واضح کول په کار دي چه "د هغه څخه زهر ورکول مراد دي چه هغه ته زهر ورکوونکی په زور، جبر او اکراه سره زهر ورکړي وي نو په دې صورت کښې قصاص او دیت دواړه نشته. البته حکومت په دې صورت کښې هم د مصلحت له مخې تعزیر ورکولی شي".

لکه څنګه چه په عالمګیري کښې د دې تصریح موجوده ده.

و اذا ناوله فشرب من غیر ان اکرهه علیه لم یکن علیه قصاص و لا دیة سواء علم الشارب بکونه سمًا او لم یعلم. (الفتاوی الهندیة ج٦، ص٦٠، کتاب الجنایات، الباب الثانی)

"او کلــــــه چه چا ته له زور، جبر او اکراه پرتـــــــه ور وچښل شي نو په دې صورت کښې په هغه باندې قصاص او دیت یو هم واجب نه دی. اګر که چښونکي ته دا علم وي او کــــــه نه وي. چه دا زهر دي او که نه".

په دولسمې صفحې څوارلسمې مادې قاتل ته د عفوې یا صلحې نه وروسته په تعزیراً قتل کولو کښې ډیر له احتیاط څخه کار اخیستل په کار دي تر څو چه له غیر اسلامي قوانینو او خصوصاً له یهودیت څخه امتیاز او فرق وشي.

﴿٦﴾ په اولسمې صفحې څوارلسمې صفحې د قتل په صورت کښې قاتل له وراثت څخه د محروم کولو چه کوم حکم بیان شوی دی. په دې کښې دا ضروري ده چه دا په قتل عمد، شبه عمد، خطاء، د جاري مجري خطاء په صورت کښې وي یعنې د دغو څلورو صورتونو کښې د قتل له وجهې قاتل د مقتول د وصیت او د وراثت له حق څخه به محروم وي او د قتل با لسبب په صورت کښې قاتل د مقتول له وراثت څخه نه محروم کیږي. لکه څرنګه چه څوك د خپل



ملکیت نه پرته په بل ځای کښې کوهی وواهه او یو سړی په دې کوهي کښې ولویده او مړ شو نو دې ته قتل با لسبب ویل کیږي کوم چه قاتل د مقتول له وراثت څخه نه محرومیږي. فتاوی هندیه مطالعه کړی.

و اما القتل بسبب فمثل حفو البئر و وضع الحجر فی غیر ملکه و موجبه اذا تلف به آدمی الدیة علی العاقلة و لا یتعلق به الکفارة و لا حرمان المیراث عندنا. (الفتاوی الهندیة ج٦، ص٣، کتاب الجنایات، الباب الاول)

"قتل با لسبب لکه څنګه چه یو څوك له خپل ملکیت نه علاوه په بل ځای کښې کوهی وکني یا څوك د خپل ملکیت نه د باندې د بل چا په ځای کښې ډبره کښیږدي او له وجهې ئې یو څوك مړ شي نو په د اسې صورت کښې د قاتل په عاقلې باندې به دیت واجب وي او زمونږ په مذهب کښې په دې کښې کفاره او له وراثت څخه محرومیدل نشته".

﴿٧﴾ په شپږ څلویښتمې صفحې دیارلسمې مادې کښې د مرګ د سزا د توثیق اختیار چه کوم عدالت مرافعه ته ورکړ شوی دی په هغه کښې دا تصریح کول ضروري په کار دي چه "په دې شرط سره چه د دغه عدالت مرافعه فیصلې هم شرعي وي".

﴿٨﴾ د اتــــــه څلویښتمې صفحې یو سل او درویشتمې مادې په آخـــــــر کښې، دا زیاتول په کار دي چه "همدا رنګه د خاص او معتمد علیه ادارو او د اهل حل و عقد څخه هم د رایې غوښتل په کار دي".

﴿٩﴾ په ذکر شویو دفعاتو کښې کوم ځای چه د جرمانې یادونه شوې ده هلته به د جرمانې څخه مراد تعزیر با لضرب او یا تعزیر با لحبس مراد وي نه تعزیر با لمال. د غه موجوده مروجه جرمانه یو غیر شرعي امر دی.

## د دیت او قصاص د قانون د مسودې ځینې د بحث لاندې ټکي

داسې خو په هر دور کښې دا ډول خلک شته چه هغو ته په دین کښې د جدت پسندۍ ډیر شوق وي او هغوی په هره مسئله کښې که هغه دیني وي او که دنیوي وي د یوه جدت د پیدا کولو په یوه تش په نامه کوشش کښې مصروف وي- په دنیوي امورو کښې خو ممکن وي لیکن په دیني امورو او مسائلو کښې له خپل ذهن څخه جوړ د جوړ شویو مسائلو داخلول، د اسلام مسلمه اصول تر پښو لاندې کول د هر یوه دور علماء حق او مفتیان کرامو ته د برداشت وړ خبره نه وي- او کله چه یو مغرب ذهنه او مفسد خیاله سړی په اسلامي قوانینو کښې قلم پورته کړي او د جدت او افراتفري د پیدا کولو کوشش وکړي نو دا د دین محافظین د هغو خلک مکمل تعاقب کوي او د هغوی هرې نکتې ته غابښ ماتوونکی ځواب ورکوي-

په اسلامي جمهوري پاکستان کښې کله چه د دیت او قصاص آرډیننس نافذ شو نو دغه روشن خیاله طبقه د دې آرډیننس مسلمه نکات د خپلو مذمومو مقاصدو د حاصلولو لپاره په رسالو، جریدو او اخبارونو کښې لیکل شروع کړل-

د مشرق په ورځني اخبار کښې یو په نامه محقق او سکالر په دغو مسلمه او فیصله شوي نکاتو باندې سوالونه پورته کړي دي- د جامعه حانیه مفتي حضرت مولانا مفتي غلام الرحمٰن صاحب د دې محقق مکمل تعاقب وکړ او د قرآن او سنتو په رڼا کښې ئې د هغه د هر سوال ځواب ورکړ چه په هغه وخت کښې د دار العلوم د ترجمان په ماهنامه الحق کښې شائع هم شو کوم چه اوس د عامې افادې لپاره په فتاوٰی دار العلوم حقانیې کښې هم شاملیږي-

(از مرتب)



## د قصاص او د دیت د قانون د مسودې ځینې د بحث لاندې نکـــــات د ښځې، کافـــــر او د نا بالغ ګواهي

د مشرق په اخبار کښې د یوه وکیل یو مضمون تر دې عنوان لاندې چه "د دیت او د قصاص د قانون د مسودې جائزه له قصاص څخه مستثنٰی قاتل" عنوان مې تر نظر تیر شو- د مضمون له عنوان څخه په ظاهره د مضمون نګار اخلاص معلومیږي- لیکن په حقیقت کښې دا یو خالي او بې معنې بلکه د اخلاص مفسد دی- د مضمون نګار ډیرې خبرې د قرآن او حدیث سره په لا تعلقي باندې مبني دي ځکه چه د مضمون خاوند په هر ځای کښې له خپلې رأیې سره قرآن او حدیث تکر کړی دی او خپلو عقلي توجیهاتو ته ئې ترجیح ورکړی دی- مثلاً د مضمون خاوند لیکي:

"د اسلامي قانون بنیاد قرآن او سنت دی ټول قوانین حالاتو ته په کتو سره د اجتهاد په ذریعه د قرآن او سنت په رڼا کښې تشکیل ورکول ضروري دي- د اجتهاد په ذریعې د سلفو فقهاوو څخه او د هغوی د رایو څخه اختلاف هم کیدلی شي ځکه چه مخکښیني فقهاوو د خپل وخت او حالاتو ته په کتو سره د قرآن او سنت په رڼا کښې په یوې مسئلې باندې رایه ورکړې وه چونکه اوس هغه حالات باقي پاتې نه دي ځکه هغو حالاتو ته په کتو سره قائم کړل شوې رایه هم بدلیدلی شي- په موجوده مجوزه د قصاص او دیت په مسوده کښې د فقهې د مخکښیني کتابونو څخه استفاده شوې ده لیکن د حالاتو تقاضاوې پکښې نه دي پوره شوي"-

د مضمون د خاوند نوموړې جملې په دې خبره باندې دلالت کوي چه ائمۀ کرامو چه پخپلو زمانو کښې په محنت او مشقت سره په لکونو مسئلې مستنبط کړي دي دا مسائل د موجوده زمانې د تقاضاوو مطابق نه دي- د ځینو امورو په پریښودو سره د نویو طریقو اختیارول په کار دي تر څو چه د ترقۍ په لور روان شو- معلومه نه ده چه مضمون نګار له کوم مسلک سره تعلق لري- که چېرته په مذاهب اربعه کښې له کوم یوه مسلک سره وابسته وی نو بیا به هغه ته پخپله خپله نظریه او رایه غلطه او بې بنیاده ښکاره شوې وی- ځکه چه که چېرته په دې نظریې باندې عمل وشي نو بیا به د مجتهدینو امامانو هغه ټولې مسئلې به تر پښو لاندې کیږي د کومو لپاره ئې چه تر کلونو کلونو پورې شپه او ورځ یوه کړې وه او بیا هم له قرآن او احادیثو څخه د مسائلو استنباط کار لري کوم چه عوام خو پریږده خواصو ته هم نه دی حاصل شوی- لهذا د شر او فساد په دې زمانې کښې د ائمۀ کرامو له تقلید نه پرته د کامیابۍ کومه بله طریقه کیدلی شي؟ بلکه زمونږ غوندې د بې علمانو لپاره تقلید شخصي واجب دی- چونکه د تقلید موضوع یوه مستقله موضوع ده چه مختلف کتابونه پرې لیکل شوي دي او دلته ئې مونږ له تفصیل څخه ډډه کوو یواځې د طائفې د بادار مسند الهند شاه ولي الله محدث دهلوي رحمه

الله د تقلید په اړه د یوه او دوو ارشاداتو په نقل کولو باندې اکتفاء کوو. حضرت شاه ولي اللهؒ فرمایي:

ان الامة اجتمعت علی ان یعتمدوا علی السلف فی معرفة الشریعة فا لتابعون اعتمدوا فی ذٰلك علی الصحابة و تبع التابعین و هکذا فی کل طبقة اعتمد العلماء و علی من قبلهم و العقل یدل علی حسن ذٰلك لان الشریعة لا یعرف الا با لنقل و الاستنباط و النقل لا یستقیم الا بان یأخذ کل طبقة عمن قبلها با لاتصال. (عقد الجید فی الاجتهاد و التقلید ص ۳۶، باب سوم، د دغو څلورو مذهبونو د غوره کولو تاکید)

"بې شکه ټول امت په دې خبرې باندې متفق دي چه د شریعت په زده کولو کښې ضروري دي چه په اسلافو باندې اعتماد وشي. تابعینوؒ په صحابه وو باندې اعتماد کړی دی او له هغو څخه ئې شریعت زده کړی دی او تبع تابعینوؒ په تابعینو باندې اعتماد کړی دی او همدا ډول د هر دور علماء د اسلافو په نقش قدم باندې تللي دي او په دین باندې ئې عمل کړی دی او د عقل له نظره هم دا ښه خبره ده ځکه چه د شریعت دارو مدار په نقل باندې دی او نقل د اسلافو د دې تقلید او اتباع څخه پرته په بله طریقه ممکنه هم نه ده".

او له څو صفحو وروسته حضرت شاه ولي اللهؒ مزید فرمایي: و بما اندراست المذاهب الحقة الا هٰذه الاربعة کان اتباعها اتباعاً للسواد الاعظم و الخروج عنها خروجاً عن السواد الاعظم. (عقد الجید فی الاجتهاد و التقلید ص ۳۸، باب سوم، د دغو څلورو مذهبونو د غوره کولو تاکید)

"او په څلورمې صدۍ هجري کښې له دغو څلورو مذاهبو نه پرته بل یو حق مذهب پاتې نه شو نو د دغو څلورو مذاهبو تقلید اجماع امت دی او تقلید نه کول د اجماع امت خلاف دی".

لهذا ائمهٔ کرامو چه کوم مسائل مستنبط کړي دي هغه نن هم د حالاتو موافق او مناسب دي او که چېرته یو حکم ناموافق معلومیده نو دا به زمونږ د پوهې قصور وي او په نفس الامر کښې به داسې نه وي. بیا هم که چېرته یوه داسې مسئله مخته راشي چه د هغه حکم د فقهې په کتابونو کښې موجود نه وي نو بیا مستند علماء کرام او د علم با اعتماده حضرات د داسې جزئیاتو حکم پخپل منځ کښې د مشورې له مخې د قرآن او حدیثو او د فقهې د هغو اصولو مطابق ایستلی شي په کومو اصولو باندې چه د فقهې دارومدار دی لیکن د دغو حضراتو لپاره هم خاص شروط دي کوم چه د فقهې په کتابونو کښې موجود دي. د "وینې په مسئلې او د سترګې د بدلولو په مسئلې" باندې د ننني مسائلو د تحقیق مجلس له تحقیق او بحث نه وروسته د "انساني اعضاوو د پیوند کاري" په نامه سره د رسالې جاري کول د دې ښکاره ثبوت دی.

لیکن قصاص او دیت او یا له دې پرته د دې غوندې مسائل چه د هغه حکم یوائې په یوه کتاب کښې نه بلکه د فقه په ټولو کتابونو کښې موجود دی نو بیا له دې سره سره د هغه پرېښودل او د نوې لارې لټون د کوم انصاف خبره ده؟ بلکه د وخت له ضائع کیدو او د اضلال او



تضلیل د باعث ګرځیدو نه پرته بله هیڅ ګټه نه لري. فاعتبروا یأولی الابصار.

نو موړی تش په نامه پوهنوال صاحب خپله جوړه شوې نظریه د اجتهاد داسې بیان کړې ده چه مثلاً "په مجوزه آرډیننس کښې د قتل عمد د ثبوت لپاره د ښځې او نابالغ هلك ګواهي د قبول وړ نه دی ګرځولی. په لسمې مادې کښې د قتل عمد د ثبوت لپاره د دوو کسو نرو او بالغو ګواهي ضروري ګرځولی دی. اوس د فقهاوو په وړاندې دا سوال دی چه آیا په قرآن او سنت کښې د ښځې او نابالغ د ګواهۍ ممانعت شوی دی؟ په قرآن او حدیث کښې چېرته هم داسې پابندي او بندیز نشته".

د مضمون د خاوند دا تجویز د شریعت د نفاذ لپاره معاون نه بلکه مبطل دی ځکه چه دا سراسر د اسلام خلاف دی بلکه په حقیقت کښې د اسلام بیخ کني ده.

ے من از بیگانگان هرگز ننالم — که با من هر چه کرد آن آشنا کرد

ښایي چه د مضمون خاوند ته د دې آیت کریمې او حدیث علم نه وي کوم چه په حدودو او قصاص کښې یوائې د بالغ سړي د ګواهۍ په اړه راغلي دي لیکن د هغه د نه علم درلودلو په وجه د آیت او حدیث عدم وجود نه لازمیږي. بلکه په قرآن او حدیثو کښې دا پابندي ده چه د قتل په امورو کښې یوائې او یوائې د دوو بالغو سړو ګواهي د قبول وړ دی او بس. د ښځو ګواهي د قبول وړ نه ده چنانچه علامه زیلعيؒ فرمایي:

لحدیث الزهریؒ: مضت السنة من لدن رسول اللهﷺ و الخلیفتین من بعده ان لا شهادة للنساء فی الحدود و القصاص. و قال الله تعالیٰ وَ استشهدُوا شَهِیدَیْنِ مِنْ رِّجَالِکُمْ. (تبیین الحقائق ج ٤، ص ۲۰۸، کتاب الشهادة)

"حضرت زهري فرمایي چه د رسول اللهﷺ له دور څخه را واخله په خلفاء راشدینو کښې د شیخینوؓ تر دور پورې چا په حدودو او قصاص کښې د ښځو ګواهي نه ده منظوره کړې او الله تعالی پخپله فرمایي چه تاسو دوه سړي د ګواهي لپاره وړاندې کړئ".

او وړاندې نور فرمایي:

و لان شهادة النساء فیها شبهه البدلیة لان کل اثنین منهنّ قائمة مقام رجل فلا یقبل فیما یندرأ با لشبهه. (تبیین الحقائق ج ٤، ص ۲۰۸، کتاب الشهادة)

"او چونکه د دوو ښځو د یوه سړي په قائم مقام ګرځیدو باندې د بدلون شبهه ده له دې وجهې په حد او قصاص کښې د ښځو ګواهي بالکل قبوله نه وي".

نو اوس دې د مضمون خاوند پخپله غور وکړي چه آیا د ښځې په ګواهي باندې په مقدس شریعت کښې بندیز شته او که نه؟ نو موړی په یوه بل ځای کښې وایي چه:

"اوس دو همه پوښتنه دا ده چه که چېرته یو قتل کوم بچي چه عاقل وي پخپلو سترګو باندې ووینې او هغه یوائې د دې قتل ګواه وي او پاتې د سترګو لیدلې ګواهان موجود نه وي بلکه هغه هلك په واقعیت کښې ګواه وي نو د دې بچي ګواهي دې له نظره و نه غورځول شي

په داسې حال کښې چه فطرتا هلکان دروغ هم کم وایي۔ او هغه قاتل هم پیژني او د قتل آله هم ښه پیژني او پخپلې ژبې باندې د قتل پوره واقعه هم ښودلی شي نو بیا هم د هغه ګواهي له نظره اچول د انصاف له تقاضاوو سره ټکر دی"۔

واضحه دې وي چه په داسې واقعاتو کښې د بچي ګواهي ته اعتبار ورکول د عقل او نقل له مخې باطل دی نقلا خو ځکه چه قرآن مجید د ګواهي د ورکولو لپاره د رجلین لفظ استعمال کړی دی او د قرآن کریم له نوموړي آیت څخه د نابالغ هلك د ګواهي نه قبول والی صریح معلومیږي ځکه چه هلك ته رجُل نه ویل کیږي او عقلا هم باطل دی او هغه ځکه چه:

﴿۱﴾ فقهاوو په اتفاق سره د ګواهي د اداکولو په خت کښې د ګواه بالغ والی شرط ګرځولی دی لکه څرنګه چه علامه ابن نجیم المصري رحمه الله فرمایي:

و لا تقبل شهادة المملوك و الصبیّ لانها من الولایة و لا ولایة لهما علی انفسهما فا لاولی ان لا یکون لهما علی غیرهما ولایة. (البحر الرائق ج٦، ص٧٧، کتاب الشهادة)

"د غلام او نابالغ ګواهي د قبول وړ نه ده ځکه چه ګواهي او شهادت د یوه طاقت استعمال دی او غلام او هلك دواړه پخپله عاجزان دي نو په بل باندې به څه طاقت استعمال کړي۔

﴿۲﴾ دا خبره له مسلماتو څخه ده چه د شهادت لپاره پوره عقل ضروري دی او دا وجه ده چه د کم عقله سړي شهادت د قبول وړ نه دی له دې وجهې اوس مونږ وینو چه آیا د نابالغ هلك ګواهي درسته ده او که نه؟ نو دا خبره ښکاره ده چه د هلك عقل کم وي۔ دا وجه ده چه بچی د نابالغي په عمر کښې خپل راتلونکی کامیابي نه پیژني بلکه بچي ته د والدینو او یا د بل سرپرست لارښوونه ضروري وي۔ اوس یو بچی په دې حیثیت سره کومه د اسې واقعه چېرته له من و عن سره په یاد کښې ساتلی شي او بیا په هغو حالاتو کښې د ګواهي مکمل اظهار هم نه شي کولی له دې وجهې د نابالغ ګواهي د قبول وړ نه دی۔

﴿۳﴾ او که چېرته بالفرض یو هلك کومه واقعه زباني یاده هم کړي نو د محکمې یا کوم لوی افسر په وړاندې د هغه د رعب، جلال او هیبت له وجهې مکمله ګواهي نه شي اداکولی۔

﴿٤﴾ د نابالغ ارادي قوت مضبوط نه وي نو ځکه په ډارولو باندې نابالغ هلك په آسانتیا سره له خپلې ګواهۍ څخه اړول کیدلی شي او حقیقت په نه حقیقت باندې بدلولی شي۔ په خلاف د بالغ سړي چه پخپل ارادي قوت باندې مضبوط ولاړ وي او د صحیح او درست شهادت د نقل کولو صلاحیت لري او که چېرته د کوم نابالغ هلك په ګواهي باندې عمل وشي نو خدای پوهیږي چه د څومره مفاسدو لپاره به لاره هواره شي۔

د مضمون خاوند مخکښې لیکي:

"د کافر ګواهي هم له نظر څخه غورځول د اسلام د روح خلاف دی"۔



نو څرګنده دې وي چه د غیر مسلم یعنې کافر شهادت په غیر مسلم یعنې کافر باندې صحیح دی لکه څرنګه چه پخپله په نوموړې مسودې کښې د لسمې مادې په ۱۰ب شق کښې ویل شوي دي نو ځکه د کافر شهادت په مسلمان باندې صحیح نه دی او دا د اسلام د انصاف د روح خلاف نه بلکه عین موافق دی۔ لکه څنګه چه علامه ابن نجیم المصريؒ لیکي:

و قید بقوله علی مجله لانها لا تقبل علی مسلم ولایة و لن یجعل الله للکافرین علی المؤمنین سبیلاً. (البحر الرائق ج٦، ص٩٤، کتاب الشهادة)

"یعنې د غیر مسلم په غیر مسلم باندې ګواهي صحیح ده لیکن د غیر مسلم په مسلمان باندې شهادت صحیح نه دی ځکه چه په قرآن کښې دي چه الله تعالی هیڅکله کفارو ته په مسلمانانو باندې د غلبې لاره نه ورکوي"۔

او همدارنګه کفار چونکه له مسلمانانو سره فطرتا بغض او کینه لري او د دې بغض او کینې له وجهې خدای خبر چه څومره دروغ شهادتونه به په مسلمانانو باندې اداکړي کوم چه په حقیقت کښې د معاشرې د اصلاح په لاره کښې یو تباه کوونکی شی جوړیږي۔

د مضمون خاوند مخکښې لیکي:

"له لسو کالو څخه پورته قاتل هلك له قصاص څخه مستثنٰی کول نه دي په کار"۔

دا تجویز هم د پورته ذکر شوي تجویزونو غوندې یو خندوونکی تجویز دی ځکه چه په شریعت کښې د هلك د بلوغ لپاره کم تر کمه د لسو کلونو ذکر هیڅ چېرته نه دی راغلی بلکه د هلك د بلوغ لپاره کم تر کمه د دولسو کالو ذکر راغلی دی۔ لهذا الس کلن قاتل له قصاص څخه نه مستثنٰی کول د شریعت خلاف دی۔ ځکه چه په شریعت کښې د نابالغ په فعل باندې د عدم عقل له وجهې قصاص نشته۔ البته له عاقلې څخه ئې دیت اخیستل واجب دي ترڅو چه هر یو د خپلو بچیانو خیال وساتي او حفاظت ئې وکړي۔

مضمون نګار مخکښې لیکي:

"د اولاد د قاتل معامله هم عجیبه ده۔ که کوم سړی د کوم جنسي ترغیب له مخې خپل اولاد قتل کړي او یا چه کله وغواړي د نورو بچیانو په ترغیب ورکولو باندې له وراثت څخه د محروم کولو په خاطر خپل بچی قتل کړي نو مستوجب د قصاص نه دی۔ دا استثنٰی هم د اسلام د اصولو خلاف ده"۔

﴿۱﴾ پلار د خپل اولاد په قتل باندې قصاصاً نه قتل کول د اسلام یوه اجماعي مسئله ده پخپله د حضور ﷺ فرمان دی چه:

لا یقاد الوالد بولده. (جامع الترمذی ج۱، ص۲۵۱، ابواب الدیات)

"یعنې پلار به د زوی په قتل کولو باندې قصاصاً نه قتل کیږي"۔

﴿۲﴾ د پلار د همیشه لپاره له خپل اولاد سره انتهایي مینه او شفقت وي او د دې پلرني شفقت

له مخې هيڅ يو سليم العقله سړی خپل زوی نه قتل کوي نو له دې وجهې د دې شبهې په وجه سره به قصاص ساقط وي۔ لکه څنګه چه علامه ابن نجيم المصريؒ فرمايي:

و لان الوالد لا يقتل ولده غالباً لوفور شفقته فيکون ذٰلك شبه فی سقوط القصاص. (البحر الرائق ج۸، ص۲۹۶، کتاب الجنايات)

"پلار په عمومي توګه د پلرني شفقت له مخې خپل بچی نه قتل کوي نو د دې شبهې له وجهې به قصاص ساقط وي"۔

﴿۳﴾ پلار لکه څرنګه چه د زوی د احياء او ژوند لپاره په ښکاره يو سبب دی له دې وجهې زوی اوس د پلار د ختم کولو لپاره سبب جوړول نه دي په کار۔

و لان الاب لا يستحق العقوبة بولده لانهٔ سبب لاحيائه فمن المحال ان يکون الوالد سببا لافنائه. (البحر الرائق ج۸، ص۲۹۶، کتاب الجنايات)

﴿۴﴾ پلار که چېرته مشرك وي او زوی مسلمان وي نو بيا هم زوی پلار نه شي قتل کولی نو په قصاص کښې به ئې څنګه قتل کيږي۔

و لهٰذا لا يقتله اذا وجد فی صف المشرکين مقاتلته. (البحر الرائق ج۸، ص۲۹۶، کتاب الجنايات)

"او زوی مشرك پلار د جهاد په دوران کښې هم نه شي قتلولی"۔

برسيره پر دې که چېرته يو پلار سره له دومره قدر او احترامه د خپل زړه د ټکړې د ژوند څراغ ووژني يعنې قتل ئې کړي نو په ده باندې به ديت واجب وي کوم چه پخپله به د ده له مال څخه په دريو کلونو کښې ادا کيږي۔ او د مصلحت په صورت کښې د عدالت د استصواب رايې له مخې د تعزير مستحق هم دی ليکن د شريعت له مخې په پلار باندې قصاص نشته۔ په فتاوٰی هنديه کښې راغلي دي چه:

و هٰذه الديات کلها علی العاقلة الا فی قتل الاب ابنه عمد فانها فی ماله فی ثلاث سنين و لا تجب علی العاقلة. (الفتاوی الهندية ج۶، ص ۲۴، کتاب الديات)

"نور ټول ديات به د قاتل له عاقلې څخه اخيستل کيږي۔ البته که چېرته پلار خپل زوی لره قتل کړي نو ديت به ئې د پلار له مال څخه په دريو کلونو کښې ادا کيږي په عاقله باندې ئې واجب نه دی"۔

زه په آخر کښې د دين د بې علمو محبينو څخه غواړم چه د اسلام د دين دارو مدار په نقل باندې دی نه په عقل باندې۔ له دې وجهې د خدای لپاره په دې کښې خپلې ذاتي رايې مه داخلوی۔ له مستندو علماء کرامو څخه پوښتنه وکړی او بيا ئې پخپلو کتابچو کښې وليکی تر څو د چا د ګمراهۍ ذريعه و نه ګرځي۔ او که چېرته څوك خامخا له بغض او کينې څخه کار اخلي نو بيا د اقتدار په خاوندانو لازمه ده چه په داسې غير ذمه دارانه بياناتو باندې هغوی ونيسي او سزا ورکړي۔



## د ښځې په حق کښې د نيمـــــايي ديت مسئله په وفاقـــــي کونسل کښې شوی تقريــــــر

د قصاص او ديت په مسوده باندې په ۲۵ جولائي ۱۹۸۴ء په وفاقي کونسل کښې د مولانا سميع الحق صاحب مد ظله د لسو دقيقو په محدود وخت کښې شوی تقرير د وفاقي کونسل د سيکرټري له ضبط شوي ثبت څخه نقل او په ماهنامه الحق کښې شائع شوی وو۔ د دې مسودې د قصاص او ديت له قانون سره د مناسبت له وجهې د عامې افادې لپاره په فتاوٰی حقانيه کښې هم شامل شو۔

(مرتب)

مولانا سميع الحق صاحب: نحمده و نصلي علی رسول الکريم۔ بسم الله الرحمٰن الرحيم☆

جناب چيرمين صاحب: دا موضوع مختلف اړخونه لري او په لسو دقيقو کښې ئې نغښتل او بيانول ډير مشکل کار دی۔ زه يوائې درې څلور اصولي خبرې عرض کوم ځکه چه کوم اختلافي ليکنه زمونږ مخې ته راغلې ده په هغې کښې زياتره په دغو خبرو باندې زور اچول شوی دی۔

**د حديثو تشريعي مقام:** له ټولو نه لومړی شی چه د ټول نظرياتي انتشار اساس جوړيږي او زما يوه ملګري هم هغه ته اشاره وکړه چه د حديثو چه کوم عظمت او حيثيت دی او په اسلام کښې ئې چه کوم تشريعي مقام دی۔ په هغه باندې د دغو ملګرو نظر نه لويږي۔ قرآنکريم په واضح ډول بار بار د حديثو تشريعي حيثيت بيان کړی دی او د حجت په توګه ئې تسليمول د اسلام بنيادي شرط ګرځولی دی۔ الله تعالی فرمايي:

فَلاَ وَ رَبِّكَ لاَ يُؤْمِنُوْنَ حَتّٰى يُحَكِّمُوْكَ فِيْمَا شَجَرَ بَيْنَهُمْ ثُمَّ لاَ يَجِدُوْا فِيْ اَنْفُسِهِمْ حَرَجاً مِّمَّا قَضَيْتَ وَ يُسَلِّمُوْا تَسْلِيْماً☆ (سورة النسآء، آيت۶۵)

"ستا په رب مې دې قسم وي (حضور ﷺ ته خطاب دی) چه دا خلك مؤمن نه شي جوړيدلی تر څو پورې ئې چه ته ثالث، فيصله کوونکی او حکم تسليم کړی نه يې او بيا هغوی په زړونو کښې هم ستا په فيصله باندې کوم تکليف محسوس نه کړي او ستا فيصلې په پوره او مکمله توګه تسليم کړي"۔

په يوه بل ځای کښې الله تعالی فرمايي:

وَ مَا كَانَ لِمُؤْمِنٍ وَّ لاَ مُؤْمِنَةٍ اِذَا قَضَى اللّٰهُ وَ رَسُوْلُهٗ اَمْراً اَنْ يَّكُوْنَ لَهُمُ الْخِيَرَةُ مِنْ اَمْرِهِمْ. (سورة الاحزاب، آيت۳۳)

"يوه مسلمان او مسلمانې ته هيڅ حق نشته چه کله الله او د هغه رسول ﷺ کومه فيصله وکړي نو هغوی ته د هغې د منلو او نه منلو اختيار وي۔ (بلکه لازماً به ئې تسليموي)"۔

د ام المؤمنين حضرت سيده عائشه صديقه رضی الله تعالی عنها په خدمت کښې يوه

ښځه راغله او په جسم باندې ئې د خالونو د ایښودلو او نقش او نګار د جوړولو په باره کښې ترې پوښتنه وکړه (لکه نن صبا هم چه ځینې خلك د خپل بدن په ځینو اعضاوو باندې خالونه او نقش او نګار جوړوي) نو حضرت عایشه رضی الله عنها ورته وفرمایل چه الله تعالی او د هغه رسولﷺ دې کار لره نه دی خوښ کړی۔ هغې ښځې ورته وویل چه ما له الٓمٓ څخه تر و الناس پورې د قرآن کریم مطالعه کړې ده لیکن د دې مسئلې ذکر ما ته په قرآنکریم کښې نه دی راغلی (د دې ښځې په ذهن کښې دا خبره وه چه کومې خبرې په قرآن کریم کښې راغلې دي یوائې هم هغه حجت دي) نو حضرت عایشې رضی الله عنها ورته وفرمایل چه که چېرته تا قرآنکریم په غور سره مطالعه کړې وای نو تا به خامخا په قرآنکریم کښې دا خبره پیدا کړې وای۔ هغې ښځې بیا وویل چه ما خو نه شوای پیدا کولی۔ حضرت عایشې رضی الله عنها ورته وفرمایل چه لو قرأتیه لوجدتیه یعنې دا چه که چېرته تا غور کړی وی نو پیدا کولی دې شوای۔ او بیائې پخپله ور وښوده چه آیا دا قرآن کریم نه دی۔ وَمَا اٰتٰكُمُ الرَّسُوْلُ فَخُذُوْهُ وَمَا نَهٰكُمْ عَنْهُ فَانْتَهُوْا. (سورة الحشر، آیت ٤)

"یعنې الله تعالی وفرمایل چه کوم حکم چه تاسو ته رسول درکړی او درکوي ئې هغه ونیسی او له کوم شي څخه مو چه منع کوي له هغه نه منع شی"۔

نو کله چه قرآن دا اصول بیان کړي دي او ټول هغه تفصیلات کوم چه حضورﷺ بیان کړي دي نو ګوا که د ده مبارکﷺ ټول تفصیلات عین قرآن دی۔

یوه بنیادي خبره دا ده چه زمونږ ځینو ملګرو په دې مسئله کښې له حدیثو سره صحیح انصاف نه دی کړی۔ زمونږ فاضل ملګري چودهري الطاف او د اسې نورو پخپلې اختلافي لیکنې کښې په ۱۳۴ صفحې کښې تر دې پورې لیکلي دي چه احادیث کوم چه د هغو زیاتره بلکه ۹۹ فیصده حصه په اخبارِ آحاد باندې مشتمل دي چه نه په هغو کښې حقانیت شته او نه پوره یقین پرې کیدلی شي۔ نعوذ بالله۔

حضرت ابوبکر، حضرت عمر، حضرت عثمان او حضرت علي رضی الله عنهم د دوی له ټولو څخه چه کوم روایت جدا جدا یا د یو یو راوي په ذریعه نقل شوي دي او هغه چه یوائې کوم صحابي اوریدلی دی او هغه ئې امت ته بیان کړی دی د غو ټولو ته اخبارِ آحاد ویل کیږي۔ اوس که چېرته د احادیثو ټولې ذخیرې ته د اسې ووایو چه نعوذبالله حقانیت پکښې نشته نو بیا به له مونږ سره څه پاتې شي؟

**د ښځې په حق کښې د نیم دیت روایتونه:** دوهمه بنیادي خبره کومه چه ټول زور پرې اچول کیږي چه د نیم دیت کوم روایت دی هغه ضعیف دی نو د دې په باره کښې یوائې دومره وایم چه په دې مسئلې باندې د حدیثو کومه سلسله ده، دوی هم دا سلسله په نښه کړې ده۔ حالانکه دا مسئله یوائې په یوه حدیث کښې نه دی راغلی چه د ښځې دیت نیم دی بلکه د حدیثو مستند کتابونه کوم چه په صحاح سته کښې شامل دي په ټولو کښې دا مسئله راغلې ده۔ امام نسائي



رحمه الله دا احادیث را جمع کړي دي او کتاب ئې په صحاح سته کښې شامل دی۔ موطاء امام مالك دا احادیث را نقل کړي دي په د اسې حال کښې چه د امت یوې لویې طبقې مؤطاء امام مالك لره په صحیح البخاري باندې ترجیح ورکړې دی۔ ګوا که عامه رایه دا ده چه اصح الکتاب بعد کتاب الله البخاري "یعنې له قرآن مجید نه وروسته صحیح ترین کتاب بخاري شریف دی"۔ لیکن د امت یوې طبقې په خاصه توګه مغربي ملکونه لکه الجزائر، مراکش، تیونس او د افریقې ځینې علاقې مؤطاء امام مالك ته په بخاري باندې ترجیح ورکوي۔ له دې نه علاوه کنز العمال، نصب الرایه، مصنف عبد الرزاق او د اسې نورو دا روایتونه نقل کړي دي۔ روایت هم له یوه صحابيؓ څخه نه بلکه له حضرت عمر، حضرت عثمان، حضرت علي، حضرت ابوهریره او د حضرت زید بن ثابت رضی الله عنهم غوندې لویو لویو صحابهٔ کرامو همدغه رایه (نیم دیت) دی۔

او علامه کاساني رحمه الله په بدایع الصنایع کښې د حضرت عمر فیصله را نقل کړې ده کومه چه ښځې ته ئې نیم دیت ورکړی دی نو د صحابهٔ کرامو له پوره جماعت څخه هیچا هم په دې باندې اعتراض نه وو کړی۔ له هغه وروسته یعنې له خلفاء راشدینو نه وروسته د ائمهٔ اربعه وو زمانه راغله نو ټول ائمهٔ کرام په دې مسئلې باندې متفق دي۔ امام شافعي رحمه الله فرمایي چه ما د مخکښینې او نویو علماوو یوه خبره هم د دې په خلاف نه ده اوریدلې۔ امام شافعيؒ د امام مالك او امام ابوحنیفه رحمهما الله د فقهې حامل دی نو ګوا که د دوی د ټولو په دې باره کښې همدغه رایه وه۔

**فقه جعفریه هم متفقه ده:** زمونږ ملګری علامه سید محمد رضي مجتهد هم دلته تشریف فرما دی زه د هغه په موجودګي کښې په دعوه سره وایم چه فقه جعفریه، فقه یزیدیه د شیعه مکتب فکر چه څومره فقهاء او مجتهدین دي ټول په دې خبرې باندې متفق دي چه د ښځې دیت نیم دیت دی۔ نو زمونږ د غو ملګرو ته له دغو ټولو ذخائرو څخه همدا یو دوه قوله لاس ته وراغلي دي۔

**جناب والا:** دا ضروري مسئله ده له دې وجهې د دې د تشریح لپاره ما ته یو دوه دقیقې نور وخت هم راکړی څکه چه دا مسئله د دغې ټولې هنګامې بنیاد ګرځیدلی دی۔ نو د نیم دیت په باره کښې یوائې د دغو دوو حضراتو قول را وړاندې کړی شوی دی یو د ابوبکر اصم او بل د ابو علیه او په بدقسمتۍ سره زمونږ دا ملګري د هغوی نومونه هم صحیح نه شي ادا کولی کله هغه ابن اولیاء لیکي او کله څه وایي او کله څه۔

اوس د ابن عُلیه او ابو بکر اصم په باره کښې مونږ ته د افکر کول په کار دي چه دا کوم خلك دي؟ له ټولو نه مخکښې د دوی رایه امام ابن قدامه په "المغني" کښې نقل کړې۔ د دغو دوو حضراتو د رایې د نقل کول په وخت کښې هغه دا وایي چه د دغو راویانو نه پرته له کوم بل څخه (کوم نامعلوم راوي څخه) مذکور دی چه ابوبکر اصم او ابن علیه به ویل چه د ښځې دیت له نارینه سره برابر دی۔ د هغو راویانو نومونه هم نه دي ذکر شوي بیا د (علیه او اصم) د قول له ذکر کولو نه وروسته ابن قدامه په صراحت سره ویلي دي، چه دا قول د ټول امت په نزد

پرېښودل شوی دی هیڅا هم دا قول نه دی غوره کړی۔ اوس مونږ دوی د علم حدیث په رجال او د اسماءَ الرجال په تلې باندې تلو چه دا دواړه څوك دي؟ د اسماء الرجال علم د دې امت عظیم الشان قابل فخر کارنامه ده۔ هر راوي لره د جرح او تعدیل محدثینو او علماوو تللی دی۔ نو اوس له تولو نه مخکښې د ابوبکر اصم نوم اخلو۔ د جرح او تعدیل په کتابونو کښې لیکل شوي دي چه امام احمد ابن حنبل وویل چه هغه د یوه کمزوري راوي نوم واخیست او وئې ویل چه زه دغه ته هم په ابن علیه باندې بنه بولم او ترجیح ورکوم۔ امام نسائي وفرمایل چه دا سړی متروك (پرېښودل) شوی دی او د محدثینو په نزد بالکل مقبول نه دی۔ ابن معینؒ وویل چه دی متروك دی د اسماء الرجال په یوه مستند کتاب "لسان المیزان" کښې ئې هغه په مکمله توګه معلوم کړی دی۔

**جناب چئیرمین صاحب:** مولانا قبله! پرون هم دا خبرې وشوې کومې چه تا اوس وکړې او نن سهار وختي هم ستاسو نه مخکښې یوه صاحب د دغو کتابونو حواله ورکړه او همدا خبرې ئې وکړې۔ بار بار دا خبرې ولې اړوی را اړوی؟

**مولانا سمیع الحق صاحب:** ما په دې مسئله باندې دا اختلافي لیکنه درکړې وه چه د اته ویشتمې مادې په باره کښې چه کله د قرآن کریم، احادیثو او فقهاوو واضح هدایات دي نو هغه-----

**جناب چئیرمین صاحب:** په دې ډول سره د نورو حق ضائع کیږي او بله کومه خبره نشته۔

**مولانا سمیع الحق صاحب:** زه دا عرض کوم چه دغه د نیم دیت مسئله دومره واضحه، قطعي او مسلمه ده چه که چېرته هغې لره په دې ایوان کښې فیصله شوې وبولو او په دې باره کښې چه الله تعالی او رسول اللهﷺ کومه فیصله کړې ده هغې ته مونږ او تاسو ټول د تسلیمی سر ټیټ کړو او سپریم کورټ او یا بلې ادارې ته مو نه وای لیږلي نو ډیر، به بنه وه۔ ځکه چه په دې وخت کښې په زرګونو داسې معاملې شته کوم چه د دې آرډیننس د نفاذ منتظر دي او په سلګونو خلك په محبسونو کښې بند دي او هره لمحه د خلاصون په انتظار کښې دي چه کله به دا مسوده نافذ کیږي او کله به د مصلحت لاره خلاصیږي او له مونږ سره به کله انصاف کیږي۔ که چېرته مونږ دا همداسې پریږدو نو په نفاذ کښې ئې نور هم ځنډ راځي۔ او بله دا چه د الله تعالی او د هغه د رسولﷺ په بیان کړل شویو احکامو او مسائلو کښې په زرګونو حکمتونه دي په هغو کښې نه له ښځو سره زیاتی شوی دی او نه له سړو سره۔ او الله تعالی د مسلمانانو او کافرانو د ټولو خالق دی او آن تر آزاد او غلام پورې د ټولو په قصاص کښې په اسلام کښې مساوات او برابري موجوده ده۔

یوائې د دیت په یوه مسئله کښې کوم چه یوائې د قتلِ خطاء له صورت سره تړاو لري دا تفصیل دی۔ واضح حدود او هدایات زمونږ په مخکښې دي نو زما رایه دا ده چه زمونږ معزز ارکان دا مسئله هم چه څرنګه تشریح ئې په قرآن کښې دی هم هغسې پریږدي او د اسلامي نظریاتي کونسل په راپور کښې هم د دې تفصیل وو چه مقدار به نیم دیت وي نو همدا دې پرېښودل شي۔

**جناب چئیرمین صاحب:** مولانا صاحب ډیره ډیره شکریه!



## الابتدائیــــه

کله چه د پاکستان حکومت د قصاص او دیت آرډیننس (قانون) جاري کړ نو ځینو خلکو د هرتالونو او مظاهرو په ذریعه د دې آرډیننس د ختم کولو لپاره په حکومت باندې د زور اچولو ناکام کوششونه وکړل۔ په دې سلسله کښې علماء کرامو، مفتیان عظامو او نورو اهل علم حضراتو د اسلام د دې عادلانه نظام او قانون د وضاحت او د خلکو د شکوکو او شبهاتو د لرې کولو لپاره د دې آرډیننس په تولو اړخونو باندې رڼا واچوله تر څو چه هغه انسانان چه عقل سلیم ولري دې ته ضرور او هرو مرو تسلیم شي۔

د دار العلوم حقانیې مفتي او د حدیثو استاذ حضرت مولانا مفتي غلام الرحمٰن صاحب هم د دې آرډیننس اجمالي جائزه واخیسته او په هغې باندې ئې تبصره او د ځینو شبهاتو ازاله وړاندې کړه کوم چه د دار العلوم حقانیه په ترجمانه رساله یعنې ماهنامه الحق کښې شائع شوه۔ وروسته له دې د ګوجرانوالې یوه عالم دین سید تصدق بخاري صاحب په هغه باندې خپل تنقیدي نظر وړاندې کړ هغه هم د قارئینو په مخکښې دی او بیا د هغه د ځواب په ځواب کښې حضرت مفتي صاحب پوره ورپسې شو کوم چه په ماهنامه الحق کښې هم شائع شو۔ چونکه دا مضامین هم د اسلامي فقهې له یوې اهمې مسئلې سره پوره تړاو لري نو د دې لپاره د عامې افادې لپاره د دار العلوم حقانیې په فتاوٰی کښې شامل کړی شو۔

(از مرتب)

## د اسلام د قصاص او دیت نظام

### اجمالي تبصره او جائزه او د ځینو شبهاتو ازاله (له منځه وړل)

### (مولانا مفتي غلام الرحمٰن صاحب)

د قصاص او دیت له اعلان نه وروسته چه کله د موټروانانو د کمیټۍ له خوا په هغه باندې په ټول ملك کښې مظاهرې وشوې نو د ملکي او غیر ملکي د خبري رسنیو لپاره دا مسئله له ډیر اهمیت سره د بحث موضوع جوړه شوه. د موجوده قصاص او دیت په حکومتي اعلان کښې که څېرته ټولې شرعي تقاضاوې پوره شوې وای نو تائید او تصویب به ئې په همدومره زوروري لهجې باندې شوی وای خومره چه ئې یه مخالفت کښې مقالې ولیکل شوې. په ځینو اهمو امورو کښې د بې احتیاطۍ او تکاسل دا نتیجه ووتله چه د ټولې اسلامي دنیا په قصاص او دیت باندې مسخرې وشوې. خدای مکړه که څېرته د اسلام په دغو فوجداري دفعاتو کښې شرعي تقاضاوې پوره نه کړی شي نو بنایي چه د راتلونکي لپاره هیڅ یو په دې خدای ورکړي ملك کښې د اسلام د نفاذ جرأت و نه کړی شي.

د لیکلو تر دې دمه په دې مسئلې باندې چه کومې مختلفې مقالې راغلي دي په هغو کښې کوم داسې مقاله نه ده تر سترګو شوې چه په هغې کښې د حکومتي قصاص او دیت په خپاره شوي قانون کښې د سقم او کمزورۍ په شته والي د شرعي نقطۀ نظر له مخې د هغه قابلِ عمل کیدل ثابت کړي. د علم او پوهې خاوندانو او د اسلام د نفاذ د فکر مخلصو خاوندانو د اصلاح کوششونه وکړل. د کمزوریو په نښه کولو نه وروسته ئې متبادل تجویزونه وړاندې کړل.

بلې خوا ته ځینې جدت پسنده خلك د موجوده مسودې څخه د سقم او کمزورۍ څخه د فائدې په اخیستلو سره د اسلام د قصاص او دیت نظام د خپل هدف نښه وګرځوله داسې غیر معیاري اعتراضونه او شبهې ئې وړاندې کړې کوم چه له یوه مسلمان څخه ئې توقع نه شي کیدلی.

په زړه پورې خبره دا ده چه د هغو د ډیرو اعتراضونو منشاء له مذهب او عقیدې څخه د ناخبرۍ نه پرته د مروجه تش په نامه آزادي او جدت پسندي مذمومه غوښتنه پاتې شوه.

### د قصاص او دیت په باره کښې یوه اهمه شبهه

د قصاص او دیت د آرډیننس نه وروسته د قصاص او دیت په باره کښې چه کومې غلط فهمۍ پیدا شوي دي په هغه کښې موټروان د یو لك اویا زره روپو د اداکولو ذمه وار ګرځول شوی دی له دې برسیره پخپله د دوی فعل هم د بحث موضوع جوړه شوه دا شبهه کیږي چه د موټروان په لاس قتل باید د مؤاخذې وړ جرم و نه ګرځول شي ځکه چه د یوه موټروان هم دا خواهش نه وي چه یو څوك د شوق له مخې قتل کړي او تر دې پورې چه موټروان د احتیاطي تدابیرو د اختیارولو لپاره د خپل ځان له قربانۍ څخه هم دریغ نه کوي او د مرګ په خولې کښې



کښیني او د انسان خدمت کوي. آخر له دوی څخه دا توقع څنګه کیدلی شي چه قصداً څوك قتل کړي بلکه ډیر ځله یواځې موټروان پخپله په ټکر او د لسې نورو واقعاتو کښې وژل شوی وي. نو په دې صورت کښې ټکر د مؤاخذې وړ جرم ګرځول د بې انصافۍ خبره ده.

ځینې حضرات دا هم وایي چه د ټکر تصور په مخکښینۍ زمانې کښې نه وو ځکه چه په هغې زمانې کښې موټر هم وو نو ځکه دا د قتل په مخکښینیو قسمونو کښې ګڼل یو بې معنٰی کوشش دی.

### د قصاص او دیت په باره کښې د تشریح وړ نکتې

د دغو شبهو د لرې کولو لپاره د اسلام د قصاص او د دیت نظام د څو اړخونو د جائزې اخیستل ضروري دي تر څو چه د داسې غیر معیاري شبهو موقع پاتې نه شي.

﴿۱﴾ د موټرو د ټکر په صورت کښې د قتل کوم صورت دی او څه حقیقت لري او دا د نفس د قتل په کوم ډول کښې راځي؟

﴿۲﴾ د قصاص او دیت په اسلامي نظام کښې د داسې ډول قتل لپاره کومه سزا ټاکل شوې ده. او همدارنګه اثرات او منافع ئې څه دي؟

﴿۳﴾ د قصاص او دیت د آرډیننس د قانون په مسوده کښې په دې اعتبار سره کومې کومې کمۍ او خرابۍ پیدا کیږي اوکومې کومې پکښې موجودې دي؟

### د نفس د تحفظ محیر العقول (د عقلونو حیرانوونکی) نظام

د ټکر د حقیقت له بیانولو نه مخکښې د دې پیژندل پکار دي چه په اسلام کښې انسان ته کوم عزت، عظمت او تقدس حاصل دی هغه د دنیا په یوه قانون کښې هم نشته. په یوه ریاست کښې د یوه انسان وینې ته د مذهب او عقیدې له امتیاز پرته په هر لحاظ سره تحفظ حاصل دی. دا ممکنه نه ده چه د محترم نفس وینه دې ضائع لاړه شي. په کوم صورت کښې چه له نفس محترمه سره په کومې غیر شرعي طریقې سره لوبې وشي نو د هغه حساب به اخیستل کیږي که څېرته د قصاص په صورت کښې ممکن وي نو قصاص به اخیستل کیږي او که نه وي نو دیت به لازم وي. که څېرته قاتل معلوم نه وي نو د قسامت له مخې به له کلیوالو څخه دیت اخیستل کیږي او که نه نو په بل صورت کښې به ئې حکومت ذمه وار وي. د دې لپاره فقهاء کرامو د نفس محترمه د ضائع کیدو پنځه صورتونه بیان کړي دي چه په هغو کښې ئې په قتل عمد کښې قصاص او په قتل شبیه با لعمد، قتل خطاء، جاري مجري خطا او په قتل با لسبب کښې دیت لازم کړی دی.

د موجوده بحث لاندې مسئله په قتل خطاء پورې اړه لري نو ځکه د نورو ډولونو د حقیقت له بیانولو څخه قطع نظر مونږ یواځې د قتل خطاء د حقیقت جائزه اخلو ترڅو چه دا

واضح کړی شي چه د تکر په نتیجه کښې قتل د قتل خطاء له جملې څخه دی۔

## د قتل خطاء حقیقت

د "خطاء" له عنوان څخه دا معلومیږي چه دا داسې قتل دی چه په هغه کښې د قاتل نیت او اراده شامله نه وي۔ ګوا که د "قتل خطاء" حقیقت دا دی چه له ارادې او نیت نه بغیر یو انسان له بل انسان څخه ضائع شي چه په عمومي توګه دوه صورتونه لري۔ یو خطاء في القصد او بل خطا في الفعل۔

د خطاء فی القصد حقیقت دا دی چه قاتل د غلط فهمۍ ښکار شوی وي یعنې یو انسان حیوان وګڼي او د ښکار په نیت سره ئې ووژني او د خطاء فی الفعل حقیقت دا دی چه په بې احتیاطۍ او فني غلطۍ سره د یو انسان ځان له بل انسان څخه ضائع شي۔ مثلاً د کوم ښکار په ویشتلو سره د هغه ګولۍ ناڅاپه په انسان باندې ولګیږي۔ نوموړي دواړه صورتونه داسې دي چه د قاتل پکښې دا اراده نه وي چه څوك قتل کړي بلکه له قصد او عمد څخه پرته انسان ترې ضائع شي۔

د موټرو د تکر صورت هم څه په همدې ډول دی ځکه چه په دې کښې هم د موټروان اراده نه وي چه کوم انسان قتل کړي۔ موټروان پخپل مقصد کښې د عمل مصروف وي ښایي چه د کومې بې احتیاطۍ، غفلت او بې پرواهۍ سره د کوم انسان ژوند ئې له لاسه ضائع شي۔ دا هم ممکنه ده چه ډیر وارې د موټروان غلطي نه وي بلکه مقتول پخپله عمداً یا سهواً د موټر مخې ته راشي لیکن په دې صورت کښې موټروان بري الذمه نه شي ګڼل کیدلی ځکه چه قتل په هر صورت کښې د موټروان له لاسه شوی دی۔ مثلاً د ښکار د ویشتلو په وخت کښې یو سړی په قصد سره د ښکاري ټوپك مخ ته ودریږي نو د فقهاوو په نزد ښکاري بری الذمه نه شي جوړیدلی۔ په هر حال د ټکر قتل له قتل خطاء څخه باهر هم نه دی۔

## د قتل خطاء سـزا

د دنیا یو قانون هم داسې نه دی چه په هغه کښې خطاء د مؤاخذې وړ جرم نه وي۔ که چیرته یو څوك د بل چا یو قیمتي شی په خطایي سره مات کړي نو آیا د ماتوونکی یو اځې په دې ویلو سره چه له ما څخه غلطي وشوه هغه معاف کیږي؟ په مقدس شریعت کښې خطاء او نسیان په اخروي اعتبار سره د مؤاخذې وړ جرم نه دی۔ د رسول الله ﷺ مبارك ارشاد دی چه "زما له امت سره به د خطاء او هیرې محاسبه نه کیږي"۔

لیکن د دنیوي احکامو په اعتبار سره په دې باندې مؤاخذه شته تر کومه ځایه پورې چه د حقوق العباد خبره ده په هغه کښې خطاء او نسیان عذر نه دی۔ په خاصه توګه چه کله د یوه شي په ضائع کیدو باندې د توان او ضمان مسئله وي۔ قتل خطاء هم د دنیاوي احکامو په اعتبار سره د



مؤاخذې وړ جرم دی۔ په دې باندې چه کومې سزاګانې ټاکل شوي دي هغه درې دي۔

﴿۱﴾ که چیرته مقتول د قاتل داسې نژدې خپل وي چه د هغه په مرګ باندې قاتل ته د وراثت حق رسیده نو قاتل به د قتل له وجهې د وراثت له حق څخه محرومیږي ځکه چه په دې کښې د دې احتمال هم شته چه قاتل به د هغه د جائداد د نیولو لپاره دا کار کړی وي۔

﴿۲﴾ دوهمه سزا دا چه انساني ځان د الله تعالی یو عظیم او مقدس امانت دی او په دې امانت کښې د خیانت کولو له وجهې به دوه میاشتې پرله پسې روژې نیسي تر څو قاتل ته پخپل جرم باندې د ندامت او افسوس احساس وشي۔ دا چونکه د ده او د الله تعالی تر منځه یوه پټه خبره ده نو ځکه په دې کښې د زور او طاقت د استعمال سوال هم نه پیدا کیږي۔

﴿۳﴾ دریمه سزا دا چه تر څو چه د انسان وینه ضائع نه شي د قتل خطاء په صورت کښې دیت لس زره درهمه ده چه دوه زره نه سوه شپاړس تولې او اته ماشې سپین زر کیږي۔ لهذا د دومره اندازې سپینو زرو قیمت به دیت ګڼل کیږي۔ د وینې د توییولو په بدل کښې د دومره ډیرو روپو په ټاکلو کښې بنیادي فلسفه دا ده چه دا به د مقتول د زخمي زړونو لپاره تسلي وي۔ ممکنه ده چه په دې مالي تعاون سره د هغوی جذبات ساړه شي او د انتقام اخیستلو چه کومه جذبه ئې په زړه کښې وي ښایي چه د دیت د لاس ته راوړلو په وجه ئې انتقامي جذبه سړه شي۔

## د دیت د اداکولو ذمه وار څوك دی؟

لیکن د دومره ډیرو روپو اداکول ښایي چه د قاتل په وس او طاقت کښې نه وي۔ ممکنه ده چه د دې روپو د اداکولو د طاقت د نه لرلو له وجهې هغه خپل ځان د قربانۍ لپاره وړاندې کړي چه له مخې به ئې د دیت اداکول ناممکن وي۔ نو ځکه شریعت د دیت د ممکن جوړولو او قاتل له هلاکت څخه د بچ کولو په خاطر د دیت ذمه واري د عاقله په اوږو باندې اچولې ده۔ او له عاقله څخه مراد اهل دیوان (په دفتري ثبت کښې متعلقه ډله) قوم، قبیله ده۔ د عاقلې په تعین کښې بنیادي تصور دا دی چه قاتل له کومو خلکو څخه د تکلیف او مصیبت په وخت کښې د تعاون او امداد امید ولري هغه به د هغه عاقله بلل کیږي۔ په اوسنۍ زمانه کښې اتحادیې، محکمې او شرکتونه په دې ضمن کښې راځي۔ د مثال په توګه د یوه مکتب معلم د قتل خطاء مرتکب وګرځي نو د دې قتل دیت به د ټول ولایت له معلمینو او استاذانو څخه اخیستل کیږي۔ ممکنه ده چه څوك دا ووایي چه دا بیا د کوم ځای انصاف دی چه د یوه ناپیژندل شوي سړي د جرم سزا دې پوره مـکـنـه یا شرکت ته ورکړی شي؟ لیکـن د اسلامي ذهن درلودونکي خلك د داسې بې معنی شبهاتو تصور هم نه کوي۔ ځکه چه ټول مسلمانان د یوه جسم په منزله کښې دي۔ د یوې عضوې په تکلیف باندې ټول جسم تکلیف محسوسوي۔ په مشرق کښې به د اوسیدونکو خلکو د غم او خوښۍ احساس به په مغرب کښې د اوسیدونکو مسلمانانو سره هم وي۔ یو مسلمان هم د بل مسلمان په غم او مصیبت کښې له مبتلا کیدو

څخه بې تعلقه نه شي پاتې کیدلی. په اسلام کښې قومي وحدت یو بنیادي شی دی. په د اسې مصیبت کښې یقینا عاقلې ته د تعاون لاس اوږدول په کار دي.

په عاقله باندې د دیت د تعین یوه بله فائده دا هم ده چه دومره لوی قوم چه کله ذیت ادا کوي نو ضرور به قاتل په داسې اوصافو باندې یادوي چه هغه ته به د برداشت وړ نه وي. د داسې قبیحو حالاتو او مناظرو څخه د بچ کیدو په خاطر په راتلونکي کښې هر یو سړی به تر آخري اندازې پورې له احتیاط څخه کار اخلي. که چېرته په غور سره وکتل شي نو په حقیقت کښې دا هم په مهذب توګه قاتل ته سزا ورکول دي او که نه نو یو عزت لرونکی سړی په لکونو روپی مصرفوي خو د خپل ځان لپاره د اسې نامناسبه الفاظ نه خوښوي.

## د دیت د وصولولو طـــــریقه

په عاقله باندې د دیت چه کوم بار اچول شوی دی دا بو داسې بار نه دی چه د هغې د برداشت له قوت څخه لوړ وي. له عاقلې څخه به دیت په مجموعي توګه په دریو کلونو کښې اخیستل کیږي. د امام محمد رحمه الله د تحقیق په رڼا کښې په یوه کس باندې په دریو کلونو کښې څلور درهمه یعنې د څوارلسو ماشو سپینو زرو د قیمت زیات بار نه اړول کیږي. لهذا که چېرته د سپینو زرو قیمت في توله ۲۰۰ روپۍ وي نو له یوه سړي څخه په دریو کالو کښې ۲۳۰ روپۍ اخیستل کیږي چه د ورځې ډېرې کمې روپۍ راځي. بیا هم که چېرته په نژدې علاقه کښې دومره ګنجائش نه وي نو د عاقلې دائره نوره هم پراخیدلی شي تر څو چه په یوه کس باندې ډېر بار وانه چول شي.

او بیا د دیت د وصولولو لپاره آسانه طریقه ټاکل شوې ده چه دیت به د خلکو له میاشتنۍ، شپږ میاشتنۍ او کلنۍ تنخواه ګانو نه اخیستل کیږي. په موجوده زمانه کښې که چېرته د هر یوه نوکر له تنخواه څخه د میاشتنۍ دیت روپۍ وګرځول شي نو ښایي چه له دوو روپو څخه زیات وي کوم چه په تنخواه لرونکي طبقې باندې کوم خاص بار نه دی.

د دې محیر العقول د ځان ساتنې له نظام څخه چا ته ویره نه ده په کار. د اسلام دین د فطرت دین دی په دې کښې نه د ظلم حوصله افزایي شته او نه د ظالم استیصال مقصود دی. په اسلام کښې د ظالم او مظلوم دواړو سره تعاون کیږي. له ظالم سره د تعاون مطلب دا دی چه هغه به له ظلم څخه منع کولو ته مجبوریږي. او له مظلوم سره د تعاون مطلب دا دی چه هغه ته به د امداد لاس ورغزول کیږي. د اسلام د دیت په نظام کښې که چېرته یوې خوا ته په قاتل باندې بار اچول کیږي نو بلې خوا ته په ده باندې د آسانتیا او سهولت په خاطر دا ذمه واري په عاقله باندې اچول کیږي. بیا د دیت په لاس ته راوړلو باندې د مقتول د غمځپلي وارثانو لپاره د اطمینان ورکول همدردانه رویه د اسلام یو انفرادي مقام دی.



## د قصاص او دیت د موجوده نظام خامی

د آرډیننس په ذریعه د قصاص او دیت د نظام جاري کړل شوې مسوده کومه نوې مسوده نه ده. په دې باندې د جنرال ضیاء الحق صاحب مرحوم په زمانه کښې اسلامي نظریاتي کونسل بهترین کار کړی دی. په هغه وخت کښې ئې د قصاص او دیت حکومتي مسوده علماوو ته وړاندې کړې وه. نو مونږ د دار العلوم حقانیه خادمانو د خپل ځان له طرفه څه تجویزونه حکومت ته لیږلي وو کوم چه د الحق میاشتنۍ رسالې ۱۶ جلد، شماره ص۴ کښې شائع شوي وو. په اوسني آرډیننس کښې د اسلامي خد او خال رعایت نه وو شوی. د قتل خطاء په صورت کښې یوازې موټروان د دیت ذمه وار ګرځول د اسلام د عادلانه نظام د روح سره ټکر دی. له موټروان څخه یوازې دومره روپۍ اخیستل کیږي چه د هغوی د شرکت له عام ممبر څخه اخیستل کیږي. په دې کښې عاقله بري الذمه ګرځول د اسلامي نظام د عدل د تقاضو خلاف دی.

او همدارنګه دیولك او اویا زرو روپو قطعي تعین هم صحیح نه دی ځکه چه د سپینو زرو په اعتبار سره د شرعي معیار اظهار ضروري دی. دا قیمت د وخت سره سره کمیږي او زیاتیږي. او بیا د حکومت دا فیصله چه هم غیر دانشمندانه ده چه په دې کښې د دیت ذمه واري د انشورنس کمیټې په اوږې باندې اچول شوې ده. ځکه چه انشورنس کمیټې د هر یوه عاقله نه ده او له عاقله کیدو پرته د دیت د اداکولو ذمه واري به هغې باندې نه ده. په دې کښې هیڅ اشکال نشته چه محکمه، شرکت، قوم او قبیله عاقله وګرځوی او هغوی د دیت د پرې کولو پابند وګرځوی.

برسیره پر دې د شهادت د شرعي نظام د نه موجودوالي له وجهې د قصاص او دیت آرډیننس څخه د تسلي بخښونکو نتائجو توقع هم بې فائدې دی. د موجوده نظامِ شهادت د موجود والي سره د دې نظام کامیابي ته رسول مشکل تر سترګو کیږي. د دې لپاره دا هم ضروري دي چه د قصاص او دیت له نظام سره سره د ګواهي د نظام اعلان هم د شریعت مطابق وشي.

## د یوه غلط تاثر دفاع

## مولانا قاضي عبد الکریم صاحب کلاچوي مد ظله

له حمد او صلوٰة څخه وروسته عرض دا دی چه په دولسم د ربیع الاول سنه ۱۴۱۱ هجري په مبارکه ورځ د قصاص او دیت قانون نافذ شو نو دیندارو مسلمانانو دا کار د صدر مملکت بهترینه کارنامه وبلله کوم چه د حقیقت عین مطابق وو۔ نوی حکومت قائم شو او ورسره ورسره د بس د موټروانانو د عام هرتال واقعه منځ ته راغله او دا افواه خپره شوه چه د اسلامي قوانینو برداشتول څه آسان کار نه دی۔ دا د یوه قانون د نافذولو رد عمل دی۔ که چېرته ئې مکمل شریعت نافذ کړ نو د هغه انجام به څه وي۔

د بین السطور د دې شرارت په اصل کښې د موجوده حکومت ډاړول وو چه هغه په سینټ او قومي اسمبلي (ملي شورٰی) کښې د شریعت له منظورلو څخه مخ واړوي او ځکه چه هغه سابقه حکومت د الله تعالی دښمني ته ملا وتړله او غرق شو۔ همدارنګه دا به هم د طبعي عمر له پوره کولو څخه مخکښې غرق شي۔ د هرتالیانو د خبرو اترو کولو نه وروسته په اخبارونو کښې دا اعلان چاپ شو چه اسلامي نظریاتي کونسل حکومت ته مشوره ورکړه چه د قصاص او دیت په قانون کښې ترمیم وکړي او دا وښایي چه په موټروان باندې چه کوم دیت راځي هغه دې د دوی له عاقله یعنې یونین یا اتحادیه برداشتوي نه چه په ذاتي توګه ئې یواځې موټروان ادا کوي۔ اوس د اسلامي شریعت له نفاذ څخه ډار شوي خلك شغل بدل کړ او وئې ویل چه وګورئ! اسلامي قوانین کوم چه ابدي ورته ویل کیږي په هغه کښې په زوره ترمیم کیدای شي او دا چه د شریعت د نفاذ نعرې وهونکي خلك خپله بدلیږي۔

؎ خود بدلتے نہیں قرآن کو بدل دیتے ہیں

په اصل کښې چه په انتخاباتو کښې د نفاذ شریعت مخالفینو ته چه کومه ضربه رسیدلې ده هغوی د خپل سپکوالي د لرې کولو لپاره دا ډول حربې استعمالوي۔

## د حقیقت اظهار

حقیقت دا دی چه هرتالیانو ته چکوم خفګان رسیدلی وو هغوی د اسلام د دیت له قانون څخه نه بلکه د اسلام د دیت په قانون کښې د ترمیم کولو له وجهې دوی ته رسیدلی وو۔ د باوثوقو ذرائعو مطابق په سینټ کښې موجودو علماء کرامو چه د قصاص او دیت په اړه کومه مسوده وړاندې کړې وه او همدا ډول اسلامي نظریاتي کونسل چه کوم سفارشات وړاندې کړي وو په هغو کښې له اوله دا واضحه کړې وه چه د اسلامي شریعت له مخې د قتل خطاء دیت په مجرم باندې نه بلکه په عاقله یا یونین باندې عائد کیږي۔ او دا چه هغه به تر دریو کلونو پورې د اداکولو پابند وي لیکن د مخکښیني حکومت کار کوونکي د انسته یا ناد انسته له اسلام څخه



د ناخبرۍ په بناء د اسلام د بدنامه کولو لپاره د "عاقله" لفظ ختم کړ چه له وجهې متاثرینو ته پریشاني ور په برخه شوه۔ یعنې د دیت د اسلامي قانون څخه تاسو یو لفظ یعنې د عاقله لفظ ختم کړ نو پریشاني راغله۔ چه کله مو توجه وکړه او حذف شوی لفظ ئې بیرته راوړ او د اسلامي قانون مطابق ئې جوړ کړ نو اطمینان او سکون جوړ شو ځکه د ملك عوام دې عموما او حکمرانان دې خصوصا دا خبره په ذهن کښې کښینوي چه د شر او فساد منبع په اسلامي قانون د رد او بدل او له هغه څخه بې پروایي ده نه چه د اسلامي قانون صحیح نفاذ۔ د شاعر مشرق دا پیغام یوه لمحه هم مه هیروی هغه فرمایي چه۔

؎ وہ معزز تھے زمانے میں مسلمان ہو کر　　اور تم خوار ہوئے تارکِ قرآں ہو کر

و ما علینا الا البلاغ

## اصل ديت څه شي دی سل اوښان که لس زره درهمه

### د غلام الرحمٰن صاحب د مضمون ځواب د مولانا سيد تصدق بخاري له خوا

مؤقر جريده "الحق" دسمبر ۱۹۹۰ء موافق د جمادي الاول ۱۴۱۱ هجري کښې د حضرت مولانا مفتي غلام الرحمٰن صاحب مد ظله العالي يوه رساله "د اسلام د قصاص او ديت نظام" مې تر نظره تيره شوه نو ډير افسوس مې وکړ چه حضرت موصوف ته هم د ديت د مقدار په تعين کښې ډير سخت خطا شوی دی. ده ليکلي دي چه د قتل خطاء په صورت کښې ديت لس زره درهمه ده کوم چه د دوه زره نهه سوه شپاړل تولې او اته ماشې سپينو زرو سره مساوي ده. لهذا په دومره اندازې د سپينو زرو مروجه قيمت به ديت ګڼل کيږي. (الحق ص۳۶)

هيڅکله نه ده بيا مخکښې په يوې خامې وينا کښې فرمايي:

"د سپينو زرو په اعتبار سره د شرعي معيار اظهار ضروري دی". (الحق ص۳۸)

د حضرت مولانا موصوف څخه دا غلطي ځکه شوې ده چه هغه اصل ديت لره د مبارکو حديثونو له ويلو سره سره هير کړی دی. د احاديثو له تتبع څخه دا خبره له لمر څخه ښکاره ده چه د سرو زرو، سپينو زرو، غواوو، ووزو او د اسې نورو د تعداد په تاکنه کښې په خير القرون کښې کموالی او زياتوالی ځکه شوی دی او په راتلونکي کښې هم تر قيامته پورې د ضرورت په بنياد ځکه کيږي چه دا شيان اصل ديت نه دي. اصل ديت يو اځې سل اوښان دي ځکه د هغوی په اندازې کښې هيڅ ډول کموالی او زياتوالی نه دی راغلی. مولانا موصوف خپله ليکي چه دا قيمت د هم هغه وخت سره کميږي او زياتيږي. (الحق ص۳۸)

نوموړی چه کله حکومتي تاکل شوی ديت غير شرعي ديت تسليم کړ نو بيا د نوموړي حضرت د تولو او ماشو وړاندې کړی شوی ديت په درجهٔ اولیٰ غير شرعي دی. ځکه چه لکه څنګه چه حکومت سره زر او سپين زر د اصل ديت په ګڼلو سره مزلت قبلوونکې غلطي کړې ده. او همدا ډول نوموړی حضرت لس زره درهمه اصل ديت په تسليمولو سره د ډيرې غلطی اظهار کړی دی. دی پخپله ليکي چه:

"همدارنګه يو لك او يا زره شپږ سوه لس روپۍ قطعي تاکنه هم شرعا صحيح نه ده ځکه چه د سپينو زرو په اعتبار سره د شرعي معيار اظهار لازمي ده". (الحق ص۳۸)

په حقيقت کښې اصل ديت يو اځې سل اوښان دي ځکه د ديت د فيصلې په وخت کښې د سلو اوښانو چه څومره قيمت وي هم هغه اصل ديت دی. نور چه کوم شيان د آسانتيا لپاره په ديت کښې ورکول کيږي هغه د سلو اوښانو د مروجه قيمت مساوي به ورکول کيږي. د مقرره شيانو په صورت کښې د دې نه کم او زياتو په ورکولو سره به ديت نه ادا کيږي لکه څنګه چه عنقريب راتلونکی دی.

۲۹۱۶ تولې ۸ ماشې سپينو زرو قيمت د کتاب د ليکلو په وخت کښې يوه توله د ۵۵ روپو



په حساب سره يو لك شپيته زره څلور سوه او لس روپۍ جوړيږي کوم چه شرعي ديت نه دی.

غور وکړی چه د موصوف د ګيډې تاکل شوی ديت د حکومت د تاکل شوي ديت څخه له لسو زرو روپو څخه زيات کم دی کوم چه يو اځې ناقص نه بلکه انقص دی.

حکومت چه کوم د قصاص او ديت آرډيننس په ۱۴ اګست ۱۹۹۰ کښې جاري کړ هغه په ۱۲ اکتوبر ۱۹۹۰ موافق ۱۲ ربيع الاول ۱۴۱۱ هجري کښې نافذ العمل وګرځول شو چه د ۳۲۰ دفعې د غير محتاط موټروانې په اړه ناقص نه بلکه انقص وو. نو ځکه د هغه په خلاف په ټول ملك کښې د زمکني د تګ راتګ د معطلولو هرتال وشو. په نوموړي آرډيننس کښې دا ليکل شوي دي چه د غير محتاطانه موټروانې په صورت کښې چه موټروان کومه حادثه وکړي او کوم سړی ووهي او مړ ئې کړي نو هغه به د مړي وارثانو ته يو لك او يا زره شپږ سوه لس روپۍ به د ديت په توګه ورکوي. د هغه په خلاف هرتالونه او مظاهرې ځکه وشوې چه په دې کښې هم دوه نقصانونه وو يو دا چه اصل ديت له نظره غورځول شوی وو او بل دا چه د عاقله تعارف پکښې نه وو شوی او نه د ديت ذمه وار ګرځول شوې وه.

د دې هرتال نه دا مطلب اخيستل چه خلك اسلامي نظام نه برداشت کوي سراسر غلط او بې اصله دی. په حقيقت کښې دا هرتال ځکه وشو چه د قصاص او ديت په آرډيننس کښې ناقابل برداشت نقصانونه موجود وو چه تنقيح ئې لازمي وو. او بيا د انشورنس کميټي د ديت د اداکولو ذمه وار جوړول په هر وخت کښې د اسلامي شريعت خلاف دی.

## د ديت قـــانون ــــــ اصل ديت يو اځې سل اوښان دي

ابو محمد عبد المالك بن هشام بن ايوب الحميري المعاضري المصري المتوفى سنه ثمان عشره و مائتين هجري په الرساله "المستطرفه" کښې ليکي:

"د لومړني مقتول چه ديت ئې رسول الله ﷺ د مکې د فتح په ورځ ادا وفرمايله د جندب بن اکوع ديت وو. هغه لره بنو کعب قتل کړی وو. نبي عليه السلام د هغه په ديت کښې سل اوښې ورکړې وي". (سيرت ابن هشام ج۲، ص۴۸۳، باب فتح مکه)

عن ابن عمر قال قام النبیﷺ على درجة الكعبة يوم الفتح فقال الحمد لله الذى صدقنا وعده و نصر عبده و حزم الاحزاب وحده الا ان قتيل العمد الخطاء با لسوط و العصا مائة من الابل مغلّظة منها اربعون خلفة فى بطونها اولادها.

(دار قطنى ج۲، ص۱۰۵، البناية فى شرح الهداية ج۴، ص۴۸۲، ابن ماجة، ج۲، ص۸۷۵)

"له حضرت عبد الله ابن عمر رضى الله عنه نه روايت دی چه رسول الله ﷺ د مکې د فتح په ورځ د بيت الله شريف په زينو باندې ودريده د الله تعالى حمد او ثناء ئې بيان کړه چه د الله تعالى شکر دی چه خپله وعده ئې رښتونې کړه. د خپل بندې امداد ئې وکړ او هغه يو اځې د دښمن لښکرو ته ماته ورکړه. خبردار شی د قتل خطاء مقتول هغه ده چه په دُرې او په لرګو سره قتل شي. په دې کښې ديت سل اوښان دي. په هغو کښې به څلويښت اوښې بلاربې وي".

عن عمرو بن شعيب عن ابيه عن جدّه قال كانت قيمة الدية على عها رسول اللهﷺ ثمان مائة دينارٍ او ثمانية آلاف درهمٍ ديّة اهل الكتاب يومئذ النصف من ديّة المسلمين قال فكان ذٰلك كذٰلك حتٰى استخلف عمرؓ فقام خطيباً فقال ان الابل قد غلت قال ففرضها عمرؓ على اهل الذهب الف دينار و على اهل البقرة مائتى بقرة و على اهل الشّاة الفَى شاةٍ و على اهل الحُلل مائتى حُلّة. قال و ترك دية اهل الذمة لم يرفعها فيما رفع من الدية. (ابو داؤد ج۲، ص۲۷۷، كتاب الديات)

”حضرت عمرو بن شعيب له خپل والد څخه او هغه له خپل نيكه څخه روايت نقل كوي چه د رسول اللهﷺ په زمانه كښې د ديت د اوښانو قيمت اته سوه ديناره او يا اته زره درهمه وو او د اهل كتابو ديت په هغه وخت كښې د مسلمانو د ديت نيمايي وو او كله چه د حضرت عمر رضى الله عنه د خلافت زمانه راغله نو هغوىؓ وفرمايل چه د اوښانو قيمت زيات شوى دى نو څكه د سرو زرو په وركوونكي باندې يو زر ديناره، د سپينو زرو په وركوونكي باندې دولس زره درهمه، د غواوو په وركوونكي باندې دوه سوه غواوې، د ووزو په وركوونكي باندې دوه زره ووزې او د كاليو په وركوونكي باندې دوه سوه جوړې مقرر كړې شوي دي او د ذميانو ديت هغه دى كوم چه مخكښې ووېل شو“۔

عن ابن عباسؓ عن النبىﷺ انه جعل الدية اثنى عشر الف درهم. (جامع الترمذى ج۳، ص۲۲٤)

حضرت عبد الله ابن عباس رضى الله فرمايي چه نبي كريمﷺ دولس زره درهمه ديت مقرر كړى وو۔

علامة ابو الفضل جمال الدين عبد اللّٰه بن محمد بن ابى الحسن مكرم بن احمد ابن منظور الانصارى الخزرجى الافريقى المصرى ولد ٦٣٠ هجرى مات فى شعبان ۷۱۱ هجرى. قال و كان اهل الدية الابل ثم قوّمت بعد ذٰلك با لذهب والفضة و البقرة و الغنم و غيرها. (لسان العرب ج۱۱، ص٤٦۱)

”صاحب لسان عرب فرمايي چه اصل ديت يو اخې سل اوښان دي او د خلكو د آسانتيا لپاره د نوموړو اوښانو د قيمت برابر وروسته بيا سره زر، سپين زر، غواوې، ووزې او د اسې نور هم د ديت په وركولو كښې مقرر كړى شول“۔

پس ثابته شوه چه په ديت كښې د سرو زرو او سپينو زرو وركول معتبر نه دي او اصل چه كله يو اخې اوښان دي نو په ديت كښې يو اخې همدا اوښان وركول كيږي او يا به بيا د هغو د قيمت په برابر نور تاكل شوي شيان وركوي۔ او د دوو سوو غواوو او دوه زرو ووزو قيمت هم د يو لك اويازره شپږ سوه لسو روپو څخه زياتې جوړيږي۔ لهذا يو لك اويا زره شپږ سوه لس روپۍ ديت صحيح نه دى۔

فقال الشّافعىؒ وا حمدؒ فى رواية محمد بن المنذر الابل فقط فتجب قيمة الابل بالغة ما بلغت. (البناية ج٤، ص٤٥۸)

”امام شافعي او امام احمد بن حنبل رحمهما الله هم هو به هو فرمايي چه اصل ديت سل اوښان دي او كوم چه د هغوى قيمت جوړيږي هغه به په ديت كښې وركول كيږي“۔

عن عبد اللّٰه بن عمر رضى الله عنهما ان رسول اللّٰهﷺ قال الا ان فى قتل العمد الخطاء با لسوط و العصاء



مائة من الابل مغلّظة منها اربعون فى بطونها اولادها. و ذهب قوم الى ان الدية المغلّظة اربع خمسون و عشرون بنت مخاض و خمس و عشرون بنت لبون و خم و عشرون حقة و خمس و عشرون جذعة. (معالم التنزيل ص٢٤٥)

”له حضرت عبد الله ابن عمر رضى الله عنهما څخه روايت دى چه نبي كريمﷺ وفرمايل چه خبردار اوسى په قتل عمدِ خطاء كښې په دُرو او لرګو باندې قتل شي نو ديت سل اوښان دي۔ په هغو كښې به څلويښت حاملې وي كوم چه په نسونو كښې به ئې بچيان جوړ شوي وي۔ او د يوې ډلې ميلان دې خواته دى چه بې شكه چه ديت مغلظه په څلور ډوله اوښانو باندې مشتمله ده۔ اولاً ٢٥ داسې اوښې چه يو كال ئې د عمر پوره وي او په دوهم كال كښې داخل شوي وي۔ ثانياً ٢٥ اوښان داسې چه د عمر دوه كلونه ئې پوره وي او په دريم كال كښې داخل شوي وي۔ ثالثاً ٢٥ اوښان داسې چه د عمر درې كلونه ئې پوره وي او په څلورم كال داخل شوي وي او د جوړه كيدو قابل وي۔ رابعاً ٢٥ اوښان داسې چه د عمر څلور كلونه ئې پوره شوي وي او په پنځم كال داخل شوي وي۔ (د امام ابو حنيفه او امام ابو يوسف رحمهما الله په نزد)

په بل ځاى كښې ارشاد فرمايي:

و ان فى النفس الدية مائة من الابل. (ابو داؤد، نسائى، ابن خزيمة، ابن جارود، ابن حبّان، مسند احمد، بلوغ المرام، كتاب الجنايات)

”حضرت عمرو بن حزم له خپل نيكه څخه روايت كوي چه د قتل نفس اصل ديت سل اوښان دي“۔

عن جابر بن عبد اللّٰهؓ قال فرض رسول اللّٰهﷺ فى الديّة على اهل الابل مائة من الابل و علٰى اهل البقرة مائتى بقرة و على اهل الشّاة الفى شاة و على اهل الحلل مائتى حلة. (تفسير مظهرى ج۲، ص۱۸۹، ابو داؤد عن عطاء بن رباح)

”له حضرت جابر بن عبد الله رضى الله عنه څخه روايت دى چه نبي كريمﷺ د اوښ په خاوندانو باندې سل اوښان او د غواوو په خاوندانو باندې دوه سوه غواوې او د ووزو په خاوندانو باندې دوه زره ووزې او د كاليو په خاوندانو باندې دوه سود جوړې ديت مقرر كړى دى“۔

دلته دا خبره په ذهن كښې كښينوى چه اصل ديت سل اوښان دي څكه نن صبا د كاليو د دوو سوو جوړو ديت نه ادا كيږي او بيا هم كه چېرته څوك رخت وركوي نو بيا به ئې د سلو اوښانو د قيمت برابر رخت په ديت كښې وركوي۔

عن عمرو بن شعيب عن ابيهِ عن جدّهٖ ان رسول اللّٰهﷺ قال من قتل خطاء فديته من الابل ثلاثون بنت مخاض و ثلاثون ابنة لبون و ثلاثون حقة و عشر بنت لبون. و كان رسول اللّٰهﷺ و يقوّمها على ازمان الابل اذا غلت رفع فى ثمنها و اذا اهانت نقص من ثمنها على نحو الزمان ما كان فبلغ قيمتها على عهد رسول اللّٰهﷺ ما بين اربع مائة دينار الى ثمان مائة دينارٍ او عدلها من الورق ثمانية آلاف و قضٰى رسول اللّٰهﷺ ان كان عقله فى البقرة من اهل البقرة مائتى بقرة و من كان عقله فى الشّاة على اهل الشّاة الفى شاة. (ابن ماجة ج۳، ص۸۷۹)

”حضرت عمرو بن شعيب له خپل پلار نيكه څخه روايت كوي چه رسول اللهﷺ وفرمايل: كوم سړى چه په خطاء سره قتل شي د هغه ديت سل اُوښان دي ۳۰ به داسې اوښان وي

چه د عمر ئې یو کال پوره شوی وي او په دوهم کال کښې ئې پښه ایښې وي او دیرش به د اسې اوښان وي چه د عمر دوه کاله ئې پوره شوی وي او په دریم کال کښې ئې پښه ایښې وي۔ او دیرش به د اسې اوښې وي چه د عمر ئې درې کلونه پوره وي او په ځلورم کال کښې ئې پښه ایښې وي۔ او لس به د اسې اوښان وي چه د دریو دریو کلونو وي او په ځلورم کلني کښې د اخل شوي وي۔ او نبي کریمﷺ د غواوو په خاوند باندې د دیت قیمت ځلور سوه دیناره لګاوه یا د همدې قیمت په اندازه سپین زر، او د دیت قیمت به ئې د اوښانو له حسابه لګاوه۔ چه کله به اوښان ګرانیدل نو دیت به هم زیاتیده او کله چه به اوښان ارزانه کیدل نو دیت به هم کمیده۔ د نبي کریمﷺ په مبارك دور کښې به د اوښ قیمت له ځلورو سوو دینارو څخه واخله تر اتو سوو دینارو پورې وو۔

نن صبا که چېرته د اوښانو په ځای غواوې او ووزې په دیت کښې ورکړی شي نو د هغوی قیمت له ټولو څخه زیات جوړیږي۔ که چېرته د یوې ووزې قیمت دوه زره ولګوو نو د دوو زرو ووزو قیمت تقریبا ځلویښت لکه روپۍ جوړیږي۔

ما د عامو ووزو چه بازار کښې پوښتنه وکړه نو دوه زره ووزې لس لکه روپۍ جوړیدې۔ یعنې د دې کتاب د لیکلو په وخت کښې که چېرته د یوې ووزې قیمت پنځه سوه روپۍ ولګول شي نو د دوو زرو ووزو قیمت لس لکه روپۍ جوړیږي۔

غور وکړی د سلو اوښانو په بدل کښې که چېرته دوه زره ووزې ورکړی نو کم از کم دیت لس لکه روپۍ جوړیږي۔

د نبي کریمﷺ دا فیصله هم ده چه د سلو اوښانو په ځای د غواوو خاوند ان دې دوه سوه غواوې په دیت کښې ورکړي۔

د کتاب د لیکلو په وخت کښې ما د مال منډيي د قیمتونو مطابق چه د یوې غوا پوښتنه وکړه نو یوه غوا تقریبا په ۳۲۰۰ روپۍ باندې پیدا کیدله نو د دوو سوو غواوو قیمت تقریبا شپږ لکه ځلویښت زره روپۍ جوړیږي۔

علامه بدر الدین ابو محمد بن احمد عیني حنفي رحمه الله (ولد ۷۶۲هج، توفی ۸۵۵هج) لیکي چه:

قال الامام الاستیجابی قیمة کل حُلّة خمسون درهما و قیمة کل بقرة خمسون درهما و قیمة کل شاة خمسة دراهم. (البنایة فی شرح الهدایة ج٤، ص٤٨٥)

"علامه اسبیجابي رحمه الله فرمایي چه د یوې جوړې قیمت پنځوس درهمه او د یوې غوا قیمت پنځوس درهمه او د یوې ووزې قیمت پنځه درهمه وو"۔

اته سوه دیناره، لس زره درهمه، سل غواوې، زر ووزې او د دوو سوو جوړو جامو قیمتونه د سلو اوښانو له قیمت سره برابر نه وو۔ نو ځکه سیدنا حضرت عمر فاروق رضی الله عنه دا فیصله وکړه چه اوس د اوښانو قیمتونه زیات شوي دي لهذا د سلو اوښانو په بدل کښې یو زر دیناره یا



دولس زره درهمه یا دوه سوه غواوې او یا دوه زره ووزې په دیت کښې ورکول کیږي۔

یاد ولری چه دراهم او دنانیر او غواوې او ووزې او د نورو شیانو تعداد ځکه زیاتیږي او کمیږي چه هغه اصل دیت نه دي۔ اصل دیت چونکه سل اوښان دي نو ځکه په هره زمانه کښې د اوښانو د اصل قیمت په برابر د نورو ټاکل شویو شیانو تعداد کمیږي او زیاتیږي۔ په خیر القرون کښې کله چه به اوښان ګران یا ارزانه کیدل نو دیت به هم ورسره کمیده او زیاتیده۔ د نبي کریمﷺ په زمانه کښې د اصل دیت قیمت له ځلورو سوو دینارو څخه واخله تر اتو سوو دینارو پورې رسیده۔ د سپینو زرو اته زره درهمه به د هغه سره برابر وو۔ همدارنګه نبي کریمﷺ دا حکم هم وکړ چه د غواوو له او ووزو له خاوندانو څخه دوه سوه غواوې او دوه زره ووزې واخلی۔

**ملحوظه:** دا خبره په یاد ولری چه د نفس د قتل اصلي دیت چونکه سل اوښان دي نو ځکه د سنت قائمه مطابق په هره زمانه کښې د اوښانو د قیمت د نرخ په حساب سره دیت ادا کیږي اګر که د هغو قیمت کم وي یا زیات۔

کما مر. و یقوّمها علی اثمان الابل فاذا غلت رفع قیمتها و اذا هاجت رخص نقص من قیمتها الخ. (ابو داؤد، نسائی، مظاهر حق ج۳، ص۳۶۶، مشکٰوة ص۳۰٤)

"او نبي کریمﷺ به د خطا د دیت قیمت د اوښانو په ارزانۍ او ګرانۍ باندې ټاکه که چېرته به د هغو قیمت زیات شو نو دیت به ئې هم زیاتولو او که به ئې قیمت کم شو نو دیت به ئې هم کمولو۔ (مظاهر حق ج۳، ص۲۶۶)

د دې حدیث لاندې د شاه عبد العزیز محدث دهلوي رحمه الله شاګرد رشید او لمسی مولانا، مخدومنا او مکرمنا حاجي محمد اسحاق روح الله روحه د مولانا قطب الدین ابن محمد محی الدین احراري الدهلوي رحمه الله لیکي۔

"و ئې ویل چه طیبي دا دلالت کوي چه په اصل دیت کښې اوښان دي که چېرته اوښان نه وي نو د هغو د قیمت ادا کول به واجب وي اګر که هر څومره وي"۔

په یو بل ځای کښې د قتل عمد د دیت په باره کښې ارشاد کیږي چه له هغه څخه هم دا ثابتیږي چه اصل دیت سل اوښان دي۔

عن عمرو بن شعیب عن ابیه عن جدّه ان رسول اللهﷺ قال من قتل متعمّداً دفع الی اولیاء المقتول فان شاؤا قتلوا و ان شاؤا اخذوا الدیة و هی ثلاثون حقّة و ثلاثون جذعة و اربعون خلفة و ما صالحوا علیه فهو لهم. (جامع الترمذی ج۲، ص۴۲۱، لسان العرب ج۱۵، ص۳۱۳)

"حضرت عمر بن شعیب رضی الله عنه له خپل پلار څخه او هغه له خپل نیکه څخه روایت کوي چه رسول اکرمﷺ وفرمایل چه کوم سړی قصدا یو څوك په قتل ورسوي نو قاتل دې د مقتول وارثانو ته وسپارل شي۔ هغوی که وغواړي چه قاتل د مقتول په بدل کښې قتل

کړي نو قتل دې کړي او که غواړي چه دیت وغواړي نو دیت دې واخلي او دیت سل اوښان دي۔ په هغو کښې به دیرش داسې اوښان وي چه د عمر ئې درې کلونه پوره وي او څلورم ته داخل شوي وي او دیرش به داسې اوښان وي چه د عمر ئې څلور کلونه پوره او پنځم ته داخل شوي وي او څلویښت اوښې به داسې وي چه حامله به وي او د مقتول وارثان چه په کومې خبرې باندې د صلح فیصله وکړي د هغې پوره کول به په قاتل باندې واجب وي۔

په یو بل ځای کښې هم د قتل خطاء اصل دیت سل اوښان تاکل شوي دي۔ د نبي کریم ﷺ ارشاد دی:

عن عبد الله بن مسعود رضی الله عنه قال قال رسول الله ﷺ فی دیة الخطاء عشرون حقة و عشرون جذعة و عشرون بنت مخاض و عشرون بنت لبون و عشرون بنی مخاض. (ابن ماجة ج۳، ص۸۷۹)

"له حضرت عبد الله بن مسعود رضی الله عنه (متوفٰی ۳۲/۳۳ سنه هجري) څخه روایت دی چه نبي اکرم ﷺ وفرمایل چه د قتل خطاء اصل دیت شل هغه اوښان دي چه د عمر ئې درې کاله پوره وي او په څلورم کښې داخل شوي وي او شل هغه اوښان دي چه د عمر ئې څلور کلونه پوره وي او په پنځم کښې داخل شوي وي او شل هغه اوښان دي یو کلن وي او دوه کلني ته ور داخل شوي وي او شل هغه اوښان دي چه دوه کلني وي او درې کلني ته ور داخل شوي وي او شل هغه اوښان دي چه د یو یو کلن وي او دوه کلني ته ور داخل شوي وي"۔

عن عبد الله بن مسعود رضی الله عنه قال قال رسول الله ﷺ فی دیة الخطاء عشرون حقة و عشرون جذعة و عشرون بنت مخاض و عشرون بنت لبون و عشرون بنت مخاض. (ابو داؤد ج۲، ص۲۷۷، ابن ماجة ج۲، ص۱۹۳، مطبوعه مطبع مجتبائی دهلی، ابن کثیر ج۱، ص۵۳۵)، نسائی، ترمذی، مظهری ج۲، ص۱۸۷، موطاء امام مالکؒ ص۲۹۳، باب الدیة، کتاب العقول)

"له حضرت عبد الله ابن مسعود رضی الله عنه نه روایت دی چه رسول الله ﷺ وفرمایل چه د قتل خطاء اصل دیت سل اوښان دي۔ شل هغه اوښان دي چه څلور کلني ته ور داخل شوي وي او شل هغه چه پنځه کلني ته ور داخل شوي وي او شل هغه چه دوه کلني ته ور داخل شوي وي او شل هغه چه درې کلني ته ور داخل شوي وي او شل هغه دوه کلني ته ور داخل شوي وي"۔ هٰذا عند امام احمد و امام اعظم رحمهما الله.

و ان قتیل الخطاء شبه العمد قتیل السوط و العصاء دیة مغلظة منها اربعون فی بطونها اولادها یعنی مائة من الابل. (دار قطنی ج۳، ص۱۰۵، سنن ابن ماة، ج۲، ص۸۷۷)

"او قتل خطاء عمد هغه دی چه په ډُرو یا لرګي باندې مړ کړی شي د دې اصل مغلظه دیت سل اوښان دي چه څلویښت به پکښې حامله وي"۔

اجمعت الصحابة علی المائة لٰکنهم اختلفوا فی سنها. (البنایة فی شرح الهدایة ج۴، ص۴۸۴)

"د ټولو صحابهٔ کرامو رضی الله عنهم اجمعین په دې باندې اجماع دی چه اصل دیت یواځې او یواځې سل اوښان دي لیکن په عمرونو کښې ئې اختلاف شته"۔



عن عبد الله بن عمرو ان رسول الله ﷺ قال الا دیة الخطاء شبه العمد ما کان با لسوط و العصاء مائة من الابل منها اربعون فی بطونها اولادها. (نسائی، ابن ماجة، دارمی، ابو داؤد، مشکٰوة باب الدیات)

"له حضرت عبد الله بن عمرو رضی الله عنه څخه روایت دی چه نبي کریم ﷺ وفرمایل چه څوک په ډُرو یا لرګو باندې مړ کړی شي نو دا قتل خطاء شبه عمد دی چه دیت ئې سل اوښان دي کوم چه څلویښت به پکښې بلاربې اوښې وي"۔

عن النبی ﷺ بمقدار الدیة و انها مائة من الابل ضمنها حدیث سهل بن ابی حثمة فی القتیل الموجود بخیبر و ان النبی ﷺ وداه بمائة من الابل. وروی سفیان بن عینیة عن علی بن زید بن جدعان عن القاسم بن ربیعة عن ابن عمر قال خطبنا رسول الله ﷺ بمکة فقال الا ان قتیل خطاء العمد با لسوط و العصاء فیه الدیة مغلظة مائة من الابل اربعون خلفة فی بطونها اولادها. و فی کتاب عمرو بن حزم الذی کتبه لهٗ رسول الله ﷺ و فی النفس مائة من الابل. و روی عمرو بن دینار عن طاؤس قال فرض رسول الله ﷺ دیة الخطاء مائة من الابل. (احکام القرآن للجصاص ج۲، ص۳۲، باب مبلغ الدیة من الابل و باب شبه العمد ج۲، ص۲۲۹)

نبوي ﷺ ارشاد دی چه د دیت مقدار سل اوښان دي۔ د حضرت سهل رضی الله عنه حدیث په دې باندې ګواه دی چه په خیبر کښې نبي علیه السلام سل اوښان په دیت کښې ورکړل۔ حضرت ابن عمر رضی الله عنهما فرمایي چه د مکې د فتحې په ورځ نبي اکرم ﷺ وفرمایل چه قتل خطاء العمد هغه ده چه په ډُرو او په لرګیو قتل کړی شي۔ د دې قتل مغلظه دیت سل اوښان دي چه څلویښت به پکښې حامله اوښې وي۔ او عمرو بن حزم ته چه نبي علیه السلام کوم خط ولیږه په هغه کښې ئې هم داسې لیکلي وو چه د قتل خطاء دیت سل اوښان دي۔ حضرت طاوس رضی الله فرمایي چه نبي کریم ﷺ د قتل دیت سل اوښان ټاکلي دي"۔

بیا دا خبره د غور قابله ده چه امام جصاصؒ فرمایي چه دا ئې چیرته هم نه دي ویلي چه دیت دولس زره یا لس زره درهمه ده او نه ئې دا فرمایلي دي چه دیت زر دیناره ده بلکه په هره زمانه کښې د سلو اوښانو قیمت ته کتل شوي دي۔ (احکام القرآن للجصاصؒ ج۲، ص۲۳۵)

له شبهې پرته سیدنا عمر فاروق رضی الله عنه هم د صحابهٔ کرامو په موجودوالي کښې اصل دیت سل اوښان ښودلي دي۔ بیا هیڅ یوه صحابي هم انکار و نه کړ او په دې باندې د صحابهٔ کرامو رضی الله عنهم اجماع دی۔ (البنیایه ج۴، ص۴۸۴)

او د آزاد مسلمان دیت سل اوښان دي کله چه اوښان پیدا نه شي نو د هغه د قیمت ورکول واجب دي لکه څرنګه چه حضرت عمر رضی الله عنه د سلو اوښانو د قیمت برابر د سرو زرو په خاوندانو باندې زر دیناره او د سپینو زرو په خاوندانو باندې دولس زره درهمه دیت مقرر کړی وو۔ او یوې ډلې دا ویلي دي چه د ذمي او معاهد (هغه کافر چه د معاهدې له مخې راغلی وي) دیت د مسلمان له دیت سره برابر دی۔ (معالم التنزیل ص۲۴۵)

صاحب البنیایه لیکي:

"یعنې دیت له اوښانو بغیر د بل شي ثابت نه دی".

حضرت ثوري او حضرت حسن بن صالح رحمهما الله فرمایي چه په دیت کښې د دراهمو او دنانیرو د ورکولو په وخت کښې د اوښانو قیمتونه په نظر کښې نیول شوي دي. د دراهمو او دنانیرو قیمتونه زیاتیږي او کمیږي او مونږ په کتاب کښې همدا بیان کړي دي او هغه دا چه دیت یوائې په اوښانو پورې موقوف دی او د بل شي دیت ثابت نه دی ځکه چه توقف په دې کښې دی چه د (د سلو اوښانو دیت) په شرع شریف کښې وارد دی او په دې باندې اجماع دی. اصل دیت له اوښانو پرته بل کوم مقدار زمونږ په علم کښې نشته. که چېرته کوم قاضي د دې حکم ورکړي نو د هغه د دې حکم نفاذ هم نه شي کیدلی. په اصل دیت کښې د سلو اوښانو په اندازه د صحابهٔ کرامو اجماع دی او اختلاف ئې یوائې د اوښانو په عمرونو کښې دی. (البنایه ج٤، ص۲۸۳)

یو روایت دا هم دی چه: انه جعل الدیة من الورق قیمة الابل لا انهٗ اصل فی الدیة. (احکام القرآن للجصاص ج۲، ص۲۳۷)

"د سپینو زرو څخه دیت د اوښانو د قیمت په حساب سره ورکول شوی دی ځکه چه سپین زر اصل دیت نه دی".



## د اوښانو غوندې سره زر او سپین زر هم اصل دیت دي

### ځواب د ځواب له مولانا مفتي غلام الرحمٰن صاحب څخه

د ماهنامهٔ "الحق" مارچ ۱۹۹۱ء موافق شعبان ۱٤۱۱ هجري په حواله حضرت مولانا سید تصدق بخاري صاحب زید مجدهم تر دې عنوان لاندې چه "اصل دیت څه شی دی، سل اوښان که لس زره درهمه؟" د دیت په باره کښې په "الحق" کښې خپله نظریه وړاندې کړې ده. دا د احقر د هغې مقالې مؤاخذه ده کومه چه په دسمبر ۱۹۹۰ء کښې په "الحق" کښې د "نظام قصاص او دیت" تر عنوان لاندې شائع شوی وو".

### د اختلاف تکـــــي

موصوف ته د احقر په مقاله کښې چه په کومه خبره باندې افسوس وراغلی دی هغه د دیت په ټاکنې کښې د لسو زرو درهمو د تعین مسئله ده. د ده د لیکنې خلاصه دا ده چه د دیت د تعین دار و مدار په اوښانو پورې اړه لري. یعنې اصل دیت سل اوښان دي. دراهم او دنانیر او نور شیان په ذاتي توګه کوم اعتبار نه لري. په هر ځای کښې چه د دیت فیصلې شوي دي په هغو کښې اوښانو ته بنیادي حیثیت ورکړ شوی دی. (په داسې حال کښې چه داسې نه ده) موصوف فرمایي چه:

"د احادیثو له تتبع څخه دا خبره له لمر څخه ښکاره ده چه د سرو زرو، سپینو زرو، غواوو، ووزو او داسې نورو شیانو د تعداد په تعین کښې په خیر القرون کښې کموالی او زیاتوالی ځکه راغلی دی او په راتلونکي کښې د قیامت تر ورځې پورې د ضرورت په وخت کښې ځکه کیږي چه دا شیان اصل دیت نه دي. اصل دیت یوائې سل اوښان دي ځکه د هغو په تعداد کښې کمی او زیاتی نه راځي". (الحق ص۱۲)

### د موصوف د دلائلو تجزیه

موصوف په لسو صفحاتو باندې مشتمل مضمون کښې چه په کومو روایتونو باندې اعتماد او تکیه کړې ده هغه ټول پنځه دي.

﴿۱﴾ اول روایت د حضرت عبد الله ابن عمر رضی الله عنهما دی. نوموړي دا روایت درې واره نقل کړی دی. اول ځل ئې د سیرت ابن هشام په حواله د الحق په دریالسمې صفحې باندې، دوهم ځل ئې د معالم التنزیل په حواله د الحق په پنځلسمې صفحې باندې او دریم ځل ئې د احکام القرآن په حواله د الحق په یو ویشتمې صفحې باندې. په دې روایت کښې د دراهمو او دنانیرو څخه د انکار خبره نشته یوائې دا راغلي دي چه د قتل خطاء دیت سل اوښان دي چه په هغو کښې به څلویښت بلاربې اوښانې وي.

﴿۲﴾ دوهم اهم روایت چه د هغه په باره کښې نوموړی په دې خوش فهمي کښې راغلی دی چه

له هغه څخه د هغه موقف په صراحت سره ثابتیږي او هغه د عمرو بن شعیب عن ابیه عن جده د سند روایت دی۔

موصوف دا روایت اول ځل د ابو داؤد په حواله د الحق په دیارلسمې صفحې باندې او دوهم ځل ئې د ابن ماجه په حواله د الحق په شپاړلسمې صفحې باندې او دریم ځل ئې د ترمذي په حواله د الحق په اتلسمې صفحې باندې ذکر کړی دی۔ او د دې روایت مفاد دا دی چه د قتل خطاء دیت سل اوښانې دي چه په هغو کښې به دیرش دوه کلنې، دیرش درې کلنې، دیرش څلور کلنې او لس اوښې دوه کلنې وي۔ البته په آخري روایت کښې دیرش اوښې څلور کلنې او دیرش پنځه کلنې او د څلویښت حاملې اوښې حدیث وارد دی۔ سر بیره پر دې د دراهمو او دنانیرو او نورو شیانو په اندازه د ادا کولو حکم هم وارد دی۔ او همدا ډول موصوف دا روایت د حضرت عبد الله ابن عمر ابن العاص رضی الله عنهم په دوهم سند سره د مشکوٰة په حواله د الحق په شلمې صفحې کښې نقل کړی دی چه له هغو څخه د سلو اوښانو د ادا کولو ثبوت پیدا کیږي۔

﴿۳﴾ دریم روایت د حضرت عبد الله ابن عباس رضی الله عنهما دی کوم چه موصوف د ترمذي په حواله د الحق په څوارلسمې صفحې کښې نقل کړی دی۔ د دې روایت الفاظ دا دي۔

عن ابن عباسؓ عن النبیﷺ انه جعل الدیة اثنی عشر الف دراهم. (الجامع الترمذی ج۱، ص۲۵۸، باب ما جاء فی الدیة کم هی من الدراهم)

"حضرت ابن عباس رضی الله عنه فرمایي چه رسول اللهﷺ دیت دولس زره دراهم مقرر کړ۔ ذ دې روایت له مخې د اوښانو د تقرري هیڅ تذکره نشته بلکه په دې سره د موصوف په نزد تردید کیږي ځکه چه د موصوف په نزد اصل دیت سل اوښان دي او حال دا چه په دې حدیث کښې رسول اللهﷺ د اوښانو د اعتبار څخه قطع نظر دولس زره دراهمه مقرر کړ۔ دا ځانته خبره ده چه احنافو د دولسو زرو دراهمو په ځای لسو زرو دراهمو ته اعتبار ولې ورکړ؟ د دې د تحقیق لپاره د احنافوؒ د فقهي ذخائرو خوا ته مراجعه ضروري ده۔ بیا هم د درهمو په قیمت کښې د تفاوت له وجهې د ځینو روایتونو څخه لس زره او د ځینو روایتونو څخه دولس زره درهمه معلومیږي۔ دا وینا د روایتونو څخه د ناخبرۍ دلیل دی چه دا تفاوت د اوښانو د قیمت په اعتبار باندې مبني دی۔ د دراهمو اعتبار یوائې په دې روایت باندې نه دی بلکه له ګنو روایتونو څخه ثابت شوی دی۔ کما سیاتي انشاء الله۔ لیکن د موصوف د موقف د تردید لپاره یوائې دا یو روایت هم کافي دی۔ او معلومه نه ده چه ده ته د دې روایت د وړاندې کولو ضرورت ولې پیښ شوی دی؟

﴿۴﴾ څلورم روایت د حضرت جابر بن عبد الله رضی الله عنه دی کوم چه نوموړي د مظهري په حواله د الحق په شپاړسمه صفحه کښې نقل کړی دی۔ د دې روایت له مخې په دیت کښې د



اوښانو نه علاوه د غواوو په خاوندانو باندې دوه سوه غواوې او د ووزې په خاوندانو باندې دوه زره ووزې او د کالیو په خاوندانو باندې د دوو سوو جوړو کالیو ثبوت راغلی دی۔

له دې روایتونو سربیره د حضرت طاؤس مرسل روایت د احکام القرآن په حواله د الحق په ۲۱ صفحه کښې راغلی دی چه له هغه څخه د اوښانو ادا کول معلومیږي۔ امام شافعي، امام احمد، طیبي، امام اعظم، ثوري او حسن بن صالح خوا ته چه کوم اقوال منسوب دي موصوف هغه وړاندې کړي دي۔

## د اوښانو د اصالت باوجود په ټولو روایتونو باندې عمل کول ممکن نه دي

د نوموړي مولانا په نزد خبره په لاندې ډول ده:

"په حقیقت کښې اصل دیت یوائې سل اوښان دي ځکه چه د دیت د فیصلې په وخت کښې د سلو اوښانو چه کوم قیمت وي هغه اصل دیت دی نور کوم شیان چه د آسانتیا له مخې په دیت کښې ورکول کیږي هغه د سلو اوښانو د مروجه قیمت په برابر قیمت به ورکول کیږي"۔ (الحق ص۱۲)

د نوموړي د ارشاد مطابق که څه هم ته مونږ سل اوښان د دیت لپاره اصل ومنو نو بیا هم په ټولو روایتونو باندې عمل کول ممکن نه دي ځکه چه اوښانو په باره کښې هم د حدیثو د نورو ذخائرو په طرف له مراجعې څخه قطع نظر یوائې موصوف چه کوم روایتونه نقل کړي دي په هغو کښې دومره اختلاف لیدل کیږي چه د یو ډول روایت په اختیارولو سره په نورو روایتونو باندې عمل کول فوت کیږي۔ مثلاً د حضرت ابن عمر رضی الله عنه د روایت له مخې چه کله سل اوښان ورکول کیږي نو په هغو کښې به څلویښت اوښانې به بلاربې وي لیکن د د دې په مقابله کښې د عمرو بن شعیب عن ابیه عن جده په سند سره چه کوم روایت نوموړي را نقل کړی دی په هغې کښې د ابو داؤد په روایت کښې د سلو اوښانو په ځای ئې د هغو د قیمت ادا کول وارد دي۔ لیکن د ابن ماجه په روایت کښې د سلو اوښانو په ادا کولو کښې دا صورت اختیار کړی شوی دی چه دیرش اوښې به دوه کلنې وي او دیرش به درې کلنې وي او دیرش به څلور کلنې وي او لس به داسې اوښې وي چه درې کلنې به وي۔

ګواکه په دې روایت کښې د څلور قسمونو سل اوښې معتبر شوي دي لیکن د ترمذي په روایت کښې په سلو اوښانو کښې د تثلیث اعتبار دی۔ چه دیرش به څلور کلنې او دیرش به پنځه کلنې او څلویښت به بلاربې اوښې وي۔ او همدارنګه د عبد الله ابن مسعود رضی الله عنهما د روایت په حواله د سلو اوښانو په تقسیم کښې تخمیس لره اعتبار ورکړ شوی دی۔ شل څلور کلنې، شل پنځه کلنې، شل دوه کلنې، شل درې کلنې او شل به درې کلنې وي۔

یوائې دا الفاظ چه وکتل شي نو د یوې نوعې د تعین څخه په نورو روایتونو باندې عمل کول ممکن نه دي لهذا محض د اوښانو په اصالت باندې چه قول وشي نو د روایتونو د قابل عمل د لارې کامیابي ترې نه معلومیږي۔ په داسې صورت کښې د قتل قسمونو ته به

اعتبار ورکول کیږي او د دیت مغلظه او دیت مخففه صورتونه باید را او ایستل شي.

## دراهمو او دنانیرو لره د دیت قیمت ویل صحیح نه دي

د دیت په حقیقت باندې له غور کولو څخه معلومیږي چه د هغه په معنٰی کښې د معاوضې ماهیت پټ شوی دی یعنې نغښتی دی. ځکه چه دلغت په اعتبار سره دیت مالي معاوضې (بدل) ته ویل کیږي او په شریعت کښې دیت هغه مال ته ویل کیږي چه د یوه سړي د ځان د ختمولو او یا د کوم سړي د جسماني اعضاوو د ناقص کولو په نتیجه کښې ورکول کیږي.
(مظاهر الحق جدید از علامه قطب الدین ج۳، ص۵۳۳، کتاب الدیات)

ګوا که دیت په حقیقت کښې د انسان قیمت دی ځکه چه د انسان په حقیقت کښې یو جز حیوانیت دی او حیوان چه کله هلاك شي نو دا مضمون بالقیمت ګرځي او د قیمت د تعین لپاره د داسې شي تاکنه ضروري وي چه په هغه کښې خپله تعین وي تفاوت نه وي. برسیره پر دې ممکن الوصول وي. د یوه حیوان په عوض کښې یو داسې شی واجب او لازم ګرځول چه پخپل منځ کښې متفاوت وي د فتنې او فساد لپاره د مواقعو د برابرولو مترادف دی. او حال دا چه د ممکن الوصول د نشت والي په صورت کښې د تعجیز نه پرته بل هیڅ شی هم نه شي حاصلیدلی. په دې وجه سره عقلا د اوښ اعتبار په ذاتي توګه په دیت کښې ئې ورکول با لکل نه دي په کار. ځکه چه د هغه د باطني معانیو له مخې په هغو کښې یو شی والی ممکن نه دی. او دا هم ضروري نه دي چه په هر ځای کښې دې اوښ پیدا شي. مثلا زمونږ په ملك کښې که چېرته د موصوف په مشوره اوښانو ته اعتبار ورکړی شي نو دا د اسلام نظام نفاذ له مشکل نه مشکل تر جوړوي ځکه چه د ملك په هر ځای کښې د اوښانو پیدا کول مشکل کار دی. او که چېرته د مقتول وارثانو ته سل اوښان ورکړی هم شي نو په دې کار سره هغوی نور هم په مشقت کښې اچول دي یعنې هغو ته نور هم تکلیف جوړیږي. دا ضروري نه دي چه د مقتول وارثان دې اوښان له ځان سره وساتلی شي او که چېرته ئې وپلوري نو په ملك کښې د نه رواج په وجه سره په داسې حالت کښې له کم څخه په کم قیمت باندې وپلوري. لیکن چونکه په حدیثو کښې د سلو اوښانو حکم ورکړ شوی دی د عقلي وجوهاتو څخه قطع نظر د تثلیث، تربیع او یا د تخمیس په اعتبار سره د هغو ورکول جائز دي. او بیا هم د اوښانو ادا کول په داسې ملك کښې په کار دي چه هلته ئې رواج وي. له دې نه پرته د دراهمو او دنانیرو پخپل ځای کښې د اوښ د قیمت په نسبت د دیت صلاحیت لري ځکه چه د دراهمو او دنانیرو په خلقي توګه باندې په ثمنیت سره متصف دي د هغوی اندازه معلومه ده او په هر ځای کښې په آسانۍ سره پیدا کیږي بلکه د دنیا په هر ګوټ کښې هغو ته اعتبار ورکول کیږي ځکه چه دنانیر د سرو زرو او د راهم د سپینو زرو وي او سره زر او سپین زر د بین الاقوامي راکړې ورکړې ذریعه ده نو ځکه په دیت کښې د هغو په تاکنه کښې مشکلات نه پیدا کیږي.



د دراهمو او دنانیرو د دیت د قیمت په ویلو کښې یوه بله خرابي دا هم ده چه که چېرته اصل دیت مونږ اوښان ومنو او دراهم او دنانیر ئې بدل وبولو نو په داسې حالت کښې اوښان په یو ځای باندې نه اخیستل کیږي دا د قاتل په ذمه محض د واجب ادا کول دي. که چېرته دراهم او دنانیر د هغه بدل وي او د هغه په عوض کښې ورکړی شي نو د دراهمو او دنانیرو په باره کښې قاضي د هغو په اداکولو کښې د دریو کالو موده مقررولی شي. له دې وجهې بیا په دې حالت کښې به هم دا به د قاتل په ذمې باندې واجب الاداء وي نو دا دیناً بدین او د نسیئه په نسیئه صورت لازمیږي کوم چه شرعا حرام او ناجائز دي. (المبسوط للسرخسي ج۲۶، ص۷۵، کتاب الدیات)

## د دیت په تعین کښې د ائمهٔ مجتهدینو مذاهب

تر دې ځایه پورې د موصوف د مضمون اجمالي جائزه وه اوس مونږ د دې خبرې جائزه اخلو چه د دراهمو او دنانیرو تعین د راقم الحروف خود ساخته رایه نه ده بلکه دا د محققینو او مجتهدینو د تحقیقاتو په رڼا کښې د مستقل مکاتبِ فکر مستنده رایه ده. په بدقسمتۍ سره مولانا صاحب پخپله مقاله کښې د سلو اوښانو په اصالت په ائمه اربعه وو کښې د یوه مذهب خوا ته هم نه دی منصوب کړی. د موصوف د بیان انداز داسې اختیار کړی دی چه شاید پخپله صوابدید باندې هغه له احادیثو څخه بالذات مسائل مستنبط کوي. ده په الحق ص۱۵ باندې د "الغایه" په حوالې سره د امام شافعي او امام احمد بن حنبل رحمهما الله قول په داسې انداز کښې نقل کړی دی. لکه څنګه چه د هغو حضراتو اقوال د ده د رایې لپاره یو اځې تائیدي حیثیت لري او کله په ځینو ځایونو کښې د امام ابو حنیفه او امام محمد رحمهما الله له اقوالو څخه غلطه فائده اوچته کړې ده او داسې توجیه ئې کړې ده کوم چه د "ما لا یرضی به قائله" سره برابره ده.

کاش که چېرته موصوف له ابتداء څخه خپله مذهبي رشته ظاهره کړې وای نو دا حقیقت به ښه واضح شوی وای چه د چا د ترجمانی حق ادا کوي. نو ځکه د دیت په باره کښې د ټولو مذاهبو د نقل کولو نه وروسته بنایي د موصوف په باره کښې دا واضح شي چه هغه د کوم مسلك سره وابسته دی. بیا هم له طوالت څخه د بچ کیدو په خاطر د عربي عبارتونو په ځای د اردو ترجمو په حوالو سره اکتفاء کوو.

## د امام شافعي صاحب رحمه الله رایه

د امام شافعي رحمه الله د دیت په اړه دوه قولونه مروي دي. د اول قول (د هغه نسبت د ده له خوا څخه د عراق په حواله کیږي) له مخې د سپینو زرو له خاوندانو څخه دولس زره درهمه او د سرو زرو له خاوندانو څخه یو زر دیناره اخیستل کیږي لکه چه د اوښانو له خاوندانو څخه سل اوښان اخیستل کیږي. البته په مصر کښې د ده مبارك جدید قول دا دی چه د

دراهمو او دنانیرو د تعین لره هیڅ اعتبار نشته بلکه اصل دیت سل اوښان دي چېرته چه نور شیان مثلاً سره زر او سپین زر اخیستل کیږي نو په هغو کښې به د اوښانو قیمت لره اعتبار وي۔

علامه ابن رشد رحمه الله فرمايي:

قال الشافعيؒ بمصر لا يؤخذ من اهل الذهب و لا من اهل الورق الا قيمة الابل بالگة ما بلغت. (بداية المجتهد ج۲، ص۴۰۷، كتاب الديات فى النفوس اختلفوا فى الدراهم و الدنانير)

"د امام شافعي صاحب قول په مصر کښې دا دی چه د سرو زرو او سپینو زرو له خاوندانو څخه به د سلو اوښانو له قیمت نه پرته بل هیڅ شی نه اخیستل کیږي اگر که د هغو قیمت هر څومره هم وي"۔

لیکن د شوافع په نزد مفتٰی بهٖ قول د مصر قول دی گواکه اوس د شوافعو په نزد اصل دیت سل اوښان دي۔ سره زر او سپین زر یعني دراهم او دنانیر که چېرته ورکړل شي نو په هغو کښې به د سلو اوښانو قیمت معتبر وي۔ پخپل ذات کښې د هغو له دیت سره هیڅ تعلق نشته لکه څرنگه چه امام شافعي صاحبؒ فرمايي:

"د آزاد مسلمان دیت سل اوښان دي له دې پرته نور شیان دیت نه دي"۔ (الام دار المعرفت بيروت ج۶، ص۱۰۵)

## د امام مالك رحمه الله رایه

د امام مالك رحمه الله په نزد د سلو اوښانو برسیره د دنانیرو او دراهمو هم اصالتاً په دیت کښې اعتبار شته۔ علامه ابن رشد فرمايي:

و عمدة مالك تقويم عمر بن الخطاب المائةمن الابل على اهل الذهب بالف دينار و على اهل الورق اثنى عشر الف درهم. (بداية المجتهد ج۲،ص۴۰۷، كتاب الديات فى النفوس)

"امام مالك رحمه الله فرمايي چه د سرو زرو په خاوندانو باندې دیت یو زر دیناره او د سپینو زرو په خاوندانو باندې دولس زره درهمه ده"۔

## د امام احمد بن حنبل رحمه الله رایه

د امام احمد بن حنبل رحمه الله څخه هم دوه روایتونه مروي دي۔ په یوه روایت کښې ده مبارک هم د امام شافع رحمه الله غوندې یوازې د اوښانو د اصالت قائل دی او په بل روایت کښې د اوښانو برسیره د سرو او سپینو زرو د دیت هم قائل دی۔ محدث اعظم ملا علي قاري رحمه الله فرمايي:

"یوه شی چه د دیت په اصالت کښې د علماوو اختلاف دی۔ پس له امام شافعي او امام احمد رحمهما الله څخه د یوه یوه روایت له مخې او د ابن المنذر په نزد یوازې سل اوښان دي



لهذا د هغوی قیمت به واجبیږي چه څومره هم وي او د امام ابو حنیفه رحمه الله په نزد د اوښانو برسیره سره زر او سپین زر هم دي۔ دا د امام احمد بن حنبل قول او د امام شافعي پخوانی رایه هم ده"۔ (مرقات المفاتيح شرح مشكوٰة المصابيح ج۷، ص۸۳، ابواب الديات)

## د ابن حزم ظاهـــــريؒ رایه

د دیت په باره کښې له ټولو نه سخت ترینه لهجه د ابو محمد ظاهريؒ ده چه د دراهمو او دنانیرو په باره کښې ترې یو قول هم منقول نه دی په داسي حال کښې چه له نورو امامانو څخه څه نا څه د دراهمو او دنانیرو په باره کښې روایتونه موجود دي لیکن دی مبارکؒ قطعي فیصله کوي او وايي چه:

"د قتل عمد او قتل خطاء دیت سل اوښې دي که چېرته دا نه وي نو بیا به ئې قیمت واجب وي"۔ (ابو محمد علي بن الحزم المحلي ج۷، ص۴۷۳)

مخکښې لیکي:

"زمونږ غوندې له کومو کسانو څخه چه له اوښانو پرته نور شیان نه دي نقل شوي هغوی یوه عظیمه ډله جوړوي چه په هغې کښې زید بن ثابت، علي بن ابي طالب، عبد الله ابن مسعود رضی الله عنهم چه د دوی د ټولو رایه دا ده چه په دیت کښې سل اوښان دي۔ (ابو محدم علي بن الحزم المحلي ج۷، ص۴۷۳)

په دغو ټولو اقوالو باندې په نظر اچولو سره قارئین په آسانی سره فیصله کولی شي چه موصوف د مسلك په اعتبار سره چا ته نژدې دی اگر که ئې د خپلې مذهبي رشتې د ښکارولو جرأت هم نه دی کړی بلکه د بیان مجتهدانه انداز ئې اختیار کړی دی او له احادیثو څخه ئې بالذات د احکامو د ثابتولو کوشش کړی دی۔

## د دیت په باره کښې د احنافو رحمهم الله مؤقف

احنافؒ هم د نورو فقهي مکاتب فکر د خاوندانو غوندې په دیت کښې د اوښانو د اصالت قائل دي لیکن احنافو د خپل فکر زاویه یوازې تر څو روایتونو پورې محدوده نه ده ساتلې بلکه ټولو روایتونو ته په نظر کولو سره د اوښانو برسیره د دنانیرو او دراهمو په تعین باندې هم قول کړی دی۔ گواکه د احنافوؒ په نزد د سلو اوښانو غوندې زر دیناره یا لس زره درهمه هم د دیت لپاره اصل دي۔ که چېرته په یوه علاقه کښې اوښان وي نو هلته به دیت کښې اوښان ورکول کیږي او که چېرته اوښان نه وي نو بیا د هغې علاقې عرف او عادت ته به کتل کیږي او د سرو زرو په اعتبار سره زر دینار او د سپینو زرو په اعتبار سره لس زره درهمه به ورکول کیږي۔

په پاکستان کښې د اوښانو رواج تر څېنو خاصو ځایونو پورې محدود دی ځکه ما

پخپله مقاله کښې د اوښانو برسیره د نورو شیانو حساب لګولی وو. په زکات او نورو نصابونو کښې د سپینو زرو اعتبار زیات کیږي یعنې سپینو زرو ته زیات اعتبار ورکول کیږي او په عام عرف کښې هم د دراهمو حساب آسان وو نو ځکه احقر د لسو زرو دراهمو حساب په تولې او ماشې کښې په حساب د درې نیمو ماشې سپین زر د فی درهم په حساب سره د دوه زره نهه سوه تولې او اته ماشې سپینو زرو د قیمت مشوره وه ځکه چه د دې قیمت په تعین کښې اشتباه نه پاتې کیږي لیکن ما له دې څخه کله انکار کړی دی چه په دیت کښې اوښان مه ورکوی او نه احقر د دې جرأت کولی شي. زمونږ د مذهب په کتابونو کښې د غو دریو شیانو په باره کښې په صراحت سره لیکل شوي دي چنانچه علي بن ابي بکر المرغیناني رحمه الله فرمایي:

"په قتل خطاء کښې دیت سل اوښان دي. د زرو په حساب زر دیناره او د سپینو زرو په اعتبار سره لس زره درهمه دي او د امام ابو حنیفه رحمه الله په نزد له دغو دریو شیانو نه پرته په نورو شیانو باندې دیت ثابت نه دی". (هدایه ج۴، ص۴۹۹، کتاب الدیات)

مونږ ته په دې باندې فخر دی چه مونږ د سیدنا امام ابو حنیفه رحمه الله مقلدین یو او د یوه مقلد په حیثیت سره مونږ دا عقیده لرو چه زمونږ مقتداء او پیشوا سیدنا امام ابو حنیفه رحمه الله چه څه فرمایلي دي هغه له یوه حدیث څخه خامخا ثابت وي. مونږ دا تصور هم نه شو کولی چه دَه مبارك به کومه خبره له ځانه کړې وي او د کوم حدیث مخالفت به ئې کړی وي. او نه مونږ بالذات د یوه حدیث او یا له یوه آیت څخه د مسائلو د استنباط طاقت او قوت لرو. همدا وجه ده چه مفتیان کرام د فتوی د ورکولو په وخت کښې د حدیث یا آیت د حوالې په ځای د یوه مستند فقهي کتاب په حواله باندې اکتفاء کوي. زمونږ فقهاء کرامو د دنانیرو او دراهمو د اصالت په باره کښې قطعي فیصله کړې ده او فرمایلي ئې دي چه:

قال العلامة السرخسی: و اختلفوا فی ان الدارهم و الدنانیر فی الدیة اصل ام باعتبار قیمة الابل فا لمذهب عندنا انهما اصل. (المبسوط ج۲۶، ص۷۵، کتاب الدیات، اختلفوا فی ان الدراهم و الدنانیر)

"د علماوو په دې کښې اختلاف دی چه دراهم او دنانیر په دیت کښې اصالتاً معتبر دي او که د قیمت په توګه معتبر دي. نو زمونږ په نزد د (اوښانو غوندې) دا دواړه هم (دراهم او دنانیر) په دیت کښې اصل دي".

بلکه د امام ابو حنیفه د اجلو شاګردانو یعنې امام ابو یوسف او امام محمد رحمهم الله په نزد د حضرت عمر فاروق رضی الله عنه د فیصلې له مخې په غواوو، ووزو او کالیو یعنې کپړې باندې هم دیت ثابت دی. ګواکه چه د صاحبینؒ په نزد د دیت شپږ اصول دي یعنې په کومه علاقه کښې چه خلکو ته په دې کښې سهولت وي په هغو علاقو کښې د هغه ورکړل شي. چنانچه د ځینو علماوو په نزد د صاحبینؒ دا رایه د امام ابو حنیفه رحمه الله څخه دوهم روایت دی. علامه ظفر احمد عثماني رحمه الله فرمایي:



"زما په نزد حقه خبره دا ده چه د امام ابو حنیفه او د صاحبینو رحمهم الله ترمنځ په دې مسئله کښې هیڅ اختلاف نشته بلکه د امام ابو حنیفه رحمه الله یو قول د صاحبینو مذهب دی". (اعلاء السنن ج۱۸، ص۱۵۳، کتاب الدیات)

او حال دا چه په عامو کتابونو کښې د امام ابو حنیفه په طرف د لومړني دریو ډولونو نسبت کیږي او د وروستني دریو قولونو ثبوت یواځې د صاحبینو تر رایې پورې محدود دی. او بیا د اوښانو په دیت کښې اکثره وختونه سختي او شدت هم موجود وي. او حال دا چه په دراهمو او دنانیرو کښې د خاصې اندازې د مقرر والي په وجه د سختۍ امکان نشته نو ځکه چېرته چه د قتل نوعیت سخت وي نو دیت مغلظه به ادا کیږي او بیا دا شدت په دراهمو او دنانیرو کښې موجود نه وي. نو ځکه په اوښانو ادا کیږي. چنانچه علامه مرغیناني رحمه الله فرمایي:

"د اوښ نه پرته چیرته په بله نوعه کښې تغلیظ ثابت نه دی ځکه چه شرع یواځې په دې کښې وارد دی". (الهدایه ج۴، ص۴۹۹، کتاب الدیات)

لهذا د امام ابو حنیفه او امام ابویوسف رحمهما الله په نزد کله چه د مغلظه دیت د ادا کولو ضرورت پیدا شي نو د اوښانو څخه په څلور ډوله ادا کیږي چه په هغو کښې به پنځه ویشت دوه کلني، پنځه ویشت درې کلني، پنځه ویشت څلور کلني او پنځه ویشت به پنځه کلني شامل وي. په داسې حال کښې چه دیت مخففه لس زره درهمه او یا یو زر دیناره ده او که په اوښانو ئې د ادا کولو ضرورت شي نو بیا په پنځو قسمونو سره ادا کیږي چه په هغو کښې د قیمت په اعتبار سره یقیني آسانتیا وي.

## د دراهمو او دنانیرو اصالت د احادیثو له مخې

د مقاله نګار دا تجزیه بالکل غلطه ده چه د اوښانو نه پرته د دراهمو او دنانیرو اعتبار د اصالت په توګه ثابت نه دی. دا د روایاتو له ذخائرو څخه د ناخبرۍ دلیل دی. هر هغه روایت چه د هغه څخه د لسو زرو یا دولسو زرو درهمو او یا یو زر دینارو ثبوت پیدا کیږي نو هغه د ده د رایې د تردید لپاره کافي دی ځکه چه په دراهمو کښې د لسو او دولسو زرو تفاوت د مروجه پیسو په قیمت کښې په کموالي او زیاتوالي باندې مبني ده. څو روایتونه په دې باره کښې تاسو ته وړاندې کوم چه په لاندې ډول دي.

﴿۱﴾ امام ترمذي رحمه الله د جمع بین البابین په عادت سره کله چه "باب ما جاء فی الدیه کم هي من الابل" یادونه وکړه نو چه کله له هغه څخه فارغ شو نو دوهم "باب ما جاء في الدیه کم هي من الدراهم" راوړ. ده په دې باره کښې د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما په دوو سندونو سره راوړی دی.

عن ابن عباسؓ عن النبیﷺ انهٗ جعل الدیة اثنی عشر. (جامع الترمذی ج۱، ص۲۵۸، باب ما جاء فی الدیة کم هی من الدراهم)

"حضرت ابن عباس رضی الله عنهما له رسول الله ﷺ څخه نقل کوي چه ده مبارک ﷺ دیت دولس زره دراهمه مقرر کړ".

حضرت ملا علي قاري فرمايي چه دا روايت د امام ترمذي نه پرته امام ابو داود رحمه الله، سنن نسايي او دارمي هم رانقل کړی دی. په ځينو روايتونو کښي دا اضافه هم شوي ده چه:

ان رجل من بنی عدی قتل فجعل النبی ﷺ دیة اثنی عشر الفا. (مرقاة ج۷، ص۸۳، باب الدیات)

"د بني عدي يو سړی قتل شو نو رسول الله ﷺ ئي ديت دولس زره دراهمه مقرر کړه".

﴿۲﴾ د حضرت عمر بن خطاب رضی الله څخه د امام ابو حنيفه رحمه الله په سند سره د روايت په نقل کولو باندي امام محمد رحمه الله فرمايي:

اخبرنا ابو حنيفة عن الهيثم عن عامر الشعبي عن عبيدة السلماني عن عمر بن الخطاب رضى الله عنه قال على اهل الورق من الدية عشرة آلاف درهم و على اهل الذهب الف دينار. (کتاب الآثار ص۹۶، کتاب الديات)

دا روايت عبيده السلماني څخه داسي مروي دی چه:

بلغنا عن عمر بن الخطاب رضى الله عنه انه جعل الدية على اهل الابل مائة ابل و على اهل الورق عشرة آلاف درهم. (المبسوط ج۲، ص۷۷، کتاب الديات)

"د حضرت عمر رضی الله تعالى عنه په دور کښي چه کله د ژوند د نظام لپاره ثبت نام تيار شو نو ده د اوښانو په خاوندانو باندي سل اوښان او د سرو زرو په خاوندانو باندي يو زر ديناره او د سپينو زرو په خاوندانو باندي لس زره درهمه مقرر کړه".

ښکاره خبره ده چه کله حضرت عمر رضی الله عنه د ژوند نظام ترتيب کاوه نو په هغه کښي لوی لوی صحابهٔ کرام هم شامل وو او د ده په دې اقدام باندي د يوه صحابي هم اعتراض منقول نه دی. نو له دې څخه معلوميږي چه ټولو صحابه وو د ده رايه تصويب کړه ګواکه په دې باندي د صحابه وو اجماع وشوه چه د سلو اوښانو غوندي زر ديناره او لس زره درهمه هم په ديت کښي ورکولی شي. زمونږ لپاره د صحابه وو دا اجماع لوی سند دی.

﴿۳﴾ د حضرت عطاء رحمه الله نه روايت دی چه: ان رسول الله ﷺ وضع الدية على الناس في اموالهم على اهل الابل مائة بعير و اهل الشاة الفى شاة و على اهل البقر مائتى بقرة و على اهل البروه مائتى حلة. (کتاب الخراج، ص۱۵۵، الحدود على اهل الجنايات)

"رسول الله ﷺ په خلکو باندي د هغوی په مالونو کښي ديت وټاکه. پس د اوښانو په خاوندانو باندي سل اوښان، د ووزو په خاوندانو باندي دوه زره ووزې او د غواوو په خاوندانو باندي دوه سوه غواوي او د رخت په خاوندانو باندي دوه سوه جوړې کپړې".

په دې روايت کښي اګر که د دراهمو او دنانيرو يادونه نشته ليکن دا ضرور ترې ثابتيږي چه رسول الله له اوښانو برسيره نورو شيانو ته هم د اوښ له قيمت څخه پرته اعتبار ورکړی دی. او حال دا چه زمونږ له ځينو ائمه وو څخه نور شيان هم مروي دي او د امام ابو حنيفه رحمه الله په قول



سره هم د دراهمو او دنانيرو نه پرته د نورو شيانو په باره کښي روايتونه راغلي دي.

﴿۴﴾ د حضرت ابو هريره رضی الله عنه له منقوله روايتونو څخه هم معلوميږي چه له اوښانو برسيره د دراهمو او دنانيرو هم اعتبار موجود دی. دی مبارک فرمايي:

ان النبی ﷺ قال من سبح فی کل يوم و ليلة مثل دية اثنی عشر الف تسبيحة فکانما حرر رقبة من ولد اسمعيل. (المبسوط السرخسي ج۲۶، ص۷۷، کتاب الديات)

"رسول الله ﷺ وفرمايل چه چا چه په هره شپه او ورځ کښي د خپل ديت غوندي دولس زره واړي تسبيحات ووايي نو ګواکه چه هغه د اسماعيل عليه السلام له اولاد څخه يو غلام آزاد کړ".

حضرت عکرمه رضی الله عنه فرمايي چه:

"حضرت ابو هريره رضی الله عنه په شپه او ورځ کښي دولس زره تسبيحات لوستل او فرمايل ئې چه زه د خپل ديت په اندازه تسبيحات وايم". (دفاع ابو هريرةؓ ص۳۸)

او حال دا چه د حضرت عکرمهؒ په حواله د لسو زرو درهمو په باره کښي هم د حضرت ابو هريره رضی الله عنه څخه يو روايت مروي دی. (اعلاء السنن ج۱۸، ص۱۵۸، باب القديم الديات من غير الابل)

﴿۵﴾ د عمرو بن حزم څخه هم يو روايت موجود دی.

ان النبی ﷺ جعل الدية من الدراهم اثنی عشر الفا. (المبسوط السرخسي ج۲۶، ص۷۸، کتاب الديات)

﴿۶﴾ له حضرت سعيد ابن المسيب رضی الله عنه څخه روايت دی.

ان النبی ﷺ قال دية کل ذی عمد فی عمده الف دينار. (المبسوط السرخسي ج۲۶، ص۷۸، کتاب الديات)

﴿۷﴾ د حضرت عثمان په دور کښي هم يوه واقعه پيښه شوه نو ده يو زر ديناره ديت وټاکه. (اعلاء السنن ج۱۸، ص۱۵۵، باب التقديم الديات من غير الابل)

﴿۸﴾ او همدارنګه د حضرت عمر بن عبد العزيز رحمه الله څخه د لسو زرو درهمو د ديت روايت منقول دی. (اعلاء السنن پورتنی حواله)

دغو ټولو روايتونو ته په نظر کولو سره مونږ دا ويلی شو چه د اوښانو غوندي دراهم او دنانير هم په ديت کښي د اصالت په توګه ثابت دي. لهذا د لسو زرو دراهمو په حساب سره د سپينو زرو مروجه قيمت د ديت په توګه ادا کول له روايتونو څخه ذهول نه دی بلکه د روايتونو مطابق د عمل کولو يو آسان صورت دی.

# کتاب الجهـــاد

## بـــــــاب شرائط الجهاد و آدابه

## (د جهاد د شرائطو او آدابو په بیان کښې)

## د جهـــــــاد شرائط

**سوال:** ځینې خلك دا وایي چه په موجوده وخت کښې تبلیغي ډله له اندازې څخه زیاته شوې ده لهذا په دوی باندې د تبلیغ په ځای جهاد فرض دی نو آیا د دغو خلکو دا خبره صحیح ده او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** فقهاء کرامو د جهاد د فرضیت لپاره چه د کومو شرائطو لحاظ کړی دی هغه د اهل اقتدار څخه پرته په عوامو کښې موجود نه دی نو ځکه په تبلیغي حضراتو باندې دا فریضه نه عائد کیږي او هغه شرائط دا دي۔

لما فی الهندية: و اما شرائط فشيئاً احدهما امتناع العدو عن قبول ما دعى اليه من الدين الحق و عدم الامان و العهد بيننا و بينهم و الثانى ان يرجو الشوكة و اهل للمسلمين فى القتال فانهٗ لا يحل له القتال لما فيه من القاء نفسه فى التهلكة. (الفتاوى الهندية ج۲، ص۱۸۸، كتاب السير، الباب الاوّل فى تفسيره شرعاً و شرطه و حكمه)

و قال العلامة التمرتاشيؒ: و لا بد لفرضيته من قيد آخر و هو الاستطاعة. و قال العلامة الحصكفيؒ تحته و فى السراج و شرط لوجوبه القدرة على السلاح لا امن الطريق فان علم انهٗ اذا حارب قتل و ان لم يحارب اسر لم يلزمه القتال. (الدر المختار على هامش رد المحتار ج۳، ص۲۲۱، كتاب الجهاد، مطلب طاعة الوالدين) و مثله فى البحر الرائق ج۵، ص۷۲، كتاب السير.

## د جهاد قسمونه

**سوال:** آیا جهاد فرض عین دی او که فرض کفایه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** جهاد په دوه قســـ[illegible]۔

﴿۱﴾ فرض عین ﴿۲﴾ فرض کفایه۔

که چېرته د نفیر عام په صورت کښې پیښ شي یعنې دښمن دومره طاقتور وي چه دوی ته هغه نژدې خلك ئې مقابله نه شي کولی نو په دې صورت کښې جهاد فرض عین کیږي او که چېرته ځینې خلك د دښمن مقابله کولی شوای نو په نورو باندې بیا جهاد فرض کفایه وي یعنې د ځینو خلکو جهاد کول د نورو د غاړې د خلاصولو سبب ګرځي۔

لما قال العلامة الحصكفىؒ: كل ما فرض لغيره فهو فرض كفاية اذا حصل المقصود با لبعض و الا ففرض عين. (الدر المختار على هامش رد المحتار ج۳، ص۲۱۸، كتاب الجهاد)

لما قال العلامة الكاسانىؒ: و اما بيان كيفية فرضية الجهاد فا لامر فيه لا يخلوا من احد وجهين اما ان كان النفير عاماً و اما فان لم يكن النفير عاماً فهو فرض كفاية و معناه ان يفترض على جميع من هو اهل الجهاد لكن اذا قام به البعض



سقط عن الباقين فاما اذا عم النفير بان هجم العدو على بلدٍ فهو فرض عين ليفترض على كل واحد من آحاد المسلمين ممن هو قادر عليه. (بدائع الصنائع ج۷، ص۹۸، كتاب السير) و مثله فى فتح القدير ج۵، ص۱۸۹، كتاب السير.

## د جهاد په دوران کښې د امیر اهمیت

**سوال:** د جهاد په دوران کښې د مجاهدینو د ترتیب، نظم او نسق د برابرولو لپاره د امیر جوړول ضروري دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د جهاد په دوران کښې د مجاهدینو د ترتیب، نظم او نسق لپاره د جنګ په اصولو او طریقو باندې د یوه ماهر، باخبره، نیك او د سنتو تابع امیر ټاکل نبوي ﷺ سنت دی نو ځکه له جنګ څخه مخکښې د امیر ټاکل ښه اقدام دی ترڅو چه د مجاهدینو نظم او نسق برقرار وساتلی شي۔

لما قال العلامة الكاسانىؒ: و منها ان يؤمر عليهم اميراً لان النبى ﷺ ما بعث جيشاً الا وامر عليهم اميراً و لان الحاجة الى الامير مأسة لانه لا بد من تنفيذ الاحكام و سياسة الرعية و لا يقوم ذٰلك الا با لامير لتعذر الرجوع فى كل حادثة الى الامام. (بدائع الصنائع ج۷، ص۹۹، فصل فى بيان ما يندب اليه الامام..... الخ)

و قال العلامة ابن عابدينؒ: قال فى الملتقى و ينبغى الامام ان يعرض الجيش عند دخول دار الحرب ليعلم الفارس من الراجل قال فى شرحه و ان يكتب اسمائهم و ان يؤمر عليهم من كان بصيراً بامور الحرب و تدبيرها و لو من الموالى و عليهم طاعته لان مخالفة الامير حرام الا اذا اتفق الاكثر انهٗ ضرر فيتبع. (رد المحتار ج۳، ص۲۳۴، كتاب الجهاد، فصل فى كيفية القسمة) و مثله فى الهندية ج۲، ص۱۹۲، كتاب السير، الباب الاول فى تفسيره.

## د جهاد د ذمه واری حکم

**سوال:** په دې باره کښې علماء کرام څه فرمایي چه یوه سړي ته والده په نوم شوی دی لیکن تر اوسه پورې ئې راوړی نه دی په داسې حال کښې چه جهاد ته د تللو ډیر شوق لري او د والدینو له خوا اجازه هم ورکړ شوې ده نو آیا د دې سړي جهاد ته تلل د مؤاخذې موجب دی او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** چونکه د جهاد د فرضیت لپاره استطاعت یعنې آلات حرب او قدرت علی الجهاد شرط دی نو ځکه دا جهاد په عوامو باندې فرض عین نه دی بلکه دا د حکومت ذمه واري ده لهذا د نوموړي سړي د جهاد لپاره تلل او یا نه تلل موجب د مؤاخذې نه ده البته په تللو سره خدای پاك اجر خامخا ورکوي په داسې حال کښې چه نیت ئې صحیح وي۔

لما قال العلامة التمرتاشى رحمه اللّٰه: و لا بد لفرضيته من قيد آخر هو الاستطاعة قال العلامة الحصكفى رحمه اللّٰه تحته و فى السراج و شرط لوجوبه القدرة على السلاح لا امن الطريق فان علم انه اذا حارب قتل و ان لم يحارب اُسر لم يلزمه القتال. (الدر المختار على هامش رد المحتار ج۳، ص۲۲۱، كتاب الجهاد)

و فى الهندية: و اما شرائطه فشيئان احدهما امتناع العدو عن قبول ما دعلى اليه من الدين الحق و عدم الامان و العهد بيننا و بينهم و الثانى ان يرجوا الشوكة للمسلمين فى القتال فانه لا يحل له القتال لما فيه من القاء نفسه فى التهلكة. (الفتاوى الهندية ج۲، ص۱۸۸، كتاب السير، الباب الاول فى تفسيره) و مثله فى البحر الرائق ج۵، ص۷۲، كتاب السير.

## د نفير عام تعريف

**سوال:** د نفير عام معنی او تعريف څه شی دی؟ او په کوم حالت کښې د نفير عام حکم لګيدلی شي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** فقهاء کرامو د نفير عام تعريف داسې کړی دی چه کله کفار کوم اسلامي ملك ته داخل شي نو په دې وخت کښې په هر ذي قدرت باندې چه هغه ملك سره ئې تعلق وي جهاد فرض عين دی۔

قال العلامة ابن عابدين رحمه الله: (تحت قوله و ان هجم العدو) ای دخل بلدة بغتة و هٰذه الحالة تسمّی النفير العام قال فی الاختيار و النفير العام ان يحتاج الٰی جميع المسلمين. (رد المحتار ج۳، ص۲۱۰، كتاب الجهاد، مطلب طاعة الوالدين فرض كفاية)

و فی الهندية: و معنی النفير العام ان يخبر اهل مدينة ان العدو قد جاء يريد انفسكم و ذراريكم و اموالكم فاذا اخبروا علی هٰذا الوجه افترض علی كل من قدر علی الجهاد من اهل تلك البلدة ان يخرج للجهاد. (الفتاوی الهندية ج۲، ص۱۸۸، كتاب السير، الباب الاول فی تفسيره) و مثله فی بدائع الصناع ج۷، ص۹۸، كتاب السير.

## د افغانستان جهاد په کومو خلکو باندې فرض دی

**سوال:** آيا د افغانستان جهاد فرض عين دی او که فرض کفايه؟ او که چېرته فرض عين وي نو په خلکو باندې به وي؟ او آيا د پاکستان په خلکو باندې هم دا فرض عائد کيږي او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د افغانستان جهاد له دې وجهې چه نفير عام ګرځيدلی دی فرض عين دی۔ بيا هم په کمزورو او قدرت نه درلودونکي خلکو باندې دا ذمه واري نه عائد کيږي بلکه دا ذمه واري د اهل اقتدار او سربراهانو ده اګر که په عوام الناسو او په رعيت باندې دا جهاد فرض نه دی ليکن په هغو باندې د مجاهدينو اعانت او همدردي ضروري ده۔

لما قال العلامة الكاسانی رحمه الله: و اما بيان من يفترض عليه فنقول انهٗ لا يفترض الا علی القادر عليه فمن لا قدرة لهٗ لا جهاد عليه لان الجهاد بذل الجهد و هو الوسع و الطاقة با لقتال و المبالة فی عمل القتال و من لا وسع له كيف يبذل الوسع. (بدائع الصنائع ج۷، ص۹۸، كتاب السير)

و فی الهندية: و اما شرائط اباحته فشيئان احدهما امتناع العدو عن قبول ما دعی اليه من الدين الحق و عدم الامان و العهد بيننا و بينهم و الثانی ان يرجوا الشوكة و القوّة لاهل الاسلام باجتهاده لما فيه من القاء نفسه فی التهلكة. (الفتاوی الهندية ج۲، ص۱۸۸، كتاب السير، الباب الاوّل فی تفسيره) و مثله فی رد المحتار ج۳، ص۲۲۱، كتاب الجهاد، مطلب طاعة الوالدين.

## د کشمير د جهاد فرضيت

**سوال:** د مقبوضه کشمير مسلمانان چه له ډير وخت راهيسې د يوه جابر او ظالم حکومت تر تسلط لاندې دي هلته هغو ظالمانو د مسلمانانو قتل عام شروع کړی دی، د هغوی کورونه، جائدادونه او داسې نور تباه کوي او باپرده او باعزتې ښځې بې پردې کوي نو آيا په داسې حالت



کښې د دې ظالم او جابر حکومت په خلاف جهاد فرض عين دی او که نه؟ او د هغو مظلومو مسلمانانو اعانت ضروري دی او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** نوموړي حالاتو ته په نظر کولو سره د داسې ظالم او جابر حکومت په خلاف جهاد فرض عين دی ځکه چه د کشمير په مسلمانانو باندې هندي حکومت د جبر او ظلم بازار ګرم کړی دی او مسلمانان قتل عام کيږي او د هغوی عزت او عصمت تر پښو لاندې کيږي ليکن د عوامو او د رعيت له هغو کفارو سره مقابله کول مشکل دي نو ځکه تول ذمه واري په اهل اقتدار باندې عائد کيږي که چېرته هغو ته نژدې اسلامي مملکت د کفارو مقابله نه شي کولی نو په الاقرب فا لاقرب باندې حتی چه شرقاً او غرباً په تولو اسلامي ممالکو باندې جهاد فرض کيږي۔

لما قال العلامة ابن عابدينؒ: و نقل صاحب النهاية عن الذخيرة ان الجهاد اذا جاء النفير انما يصير فرض عين علی من يقرب من العدوّ فاما من ورائهم يبعد من العدو فهو فرض كفاية عليهم حتی يسعهم تركه اذا لم يحتج اليهم فان احتيج اليهم بان عجز من كان يقرب من العدو عن المقاومة مع العدو او لم يعجزوا عنها لٰكنّهم تكاسلوا و لم يجاهدوا فانهٗ يفترض علی من يليهم فرض عين كا لصلٰوة و الصوم لا يسعهم تركه ثم و ثم الا ان يفترض علی جميع اهل الاسلام شرقاً وغرباً علی هٰذا التدريج. (رد المحتار ج۳، ص۲۲۰، كتاب الجهاد، مطلب فی الفرق فرض عين و فرض الكفاية)

و فی الهندية: و انما يفرض فرض عين علی من كان يقرب من العدو وهم يقدرون علی الجهاد و اما علی من ورائهم ممن يبعد من العدو فانه يفترض فرض كفاية لا فرض عين حتی يسعهم تركه فاذا احتيج بان عجز من كان يقرب من العدو عن المقاومة مع العدو او تكاسلوا و لم يجاهدوا فانهٗ يفترض علی من يليهم فرض عين ثم و ثم الی ان يفرض علی جميع اهل الأرض شرقاً و غرباً علی هٰذا الترتيب. (الفتاوی الهندية ج۲، ص۱۸۸، كتاب السير، الباب الاوّل فی تفسيره) و مثله فی فتح القدير ج۵، ص۱۹۱، كتاب السير.

## د برما د مظلومو مسلمانانو د جهاد حکم

**سوال:** د برما په سرزمين کښې له ډير وخت راهيسې مسلمانان آباد دي او حال دا چه هلته تر اوسه پورې د کفارو حکومت دی او د تير شوي کلونو څخه د حکومت لخوا په مسلمانانو باندې د ظلم او بربريت سلسله جاري ده نو آيا د برما په مسلمانانو باندې جهاد فرض عين دی او که نه؟ او د قوت او طاقت د نه درلودلو په صورت کښې د هغو لپاره څه حکم دی؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** کله چه په مسلمانانو باندې په ظلم او تشدد کښې اضافه وشي نو په هغو باندې د کفارو او ظالمانو په خلاف جهاد فرض عين ګرځي۔ په نوموړي صورت کښې د برما د مسلمانانو د کمزورۍ او په جهاد باندې د قدرت د نه لرلو په وجه د هغو په ګاونډي اسلامي ملکونو باندې جهاد باقاعده فرض دی لهذا الاقرف فالاقرب شرقاً او غرباً په تولو اسلامي حکومتونو باندې فرض عائد کيږي۔

لما قال العلامة ابن عابدينؒ: و نقل صاحب النهاية عن الذخيرة ان الجهاد اذا جاء النفير انما يصير فرض عين

على من يقرب من العدوّ فاما من ورائهم يبعد من العدو فهو فرض كفاية عليهم حتى يسعهم تركه اذا لم يحتج اليهم فان احتيج اليهم بان عجز من كان يقرب من العدو عن المقاومة مع العدو او لم يعجزوا عنها لٰكنّهم تكاسلوا و لم يجاهدوا فانهٗ يفترض على من يليهم فرض عين كا لصلٰوة و الصوم لا يسعهم تركه ثم و ثم الا ان يفترض على جميع اهل الاسلام شرقاً وغرباً على هٰذا الترتيب. (رد المحتار ج۳، ص ۲۲۰، كتاب الجهاد، مطلب فى الفرق فرض عين و فرض الكفاية)

و فى الهندية: ثم بعد مجىء النفير العام لا يفترض الجهاد على جميع اهل الاسلام شرقاً و غرباً فرض عين و ان بلغهم النفير و انما يفترض فرض عين على من كان يقرب من العدو و يقدرون على الجهاد......... الى ان قال فانهٗ يفترض على من يليهم فرض عين ثم و ثم الى ان يفرض على جميع اهل الارض شرقاً و غرباً على هٰذا الترتيب. (الفتاوى الهندية ج۲، ص۱۸۸، كتاب السير، الباب الاوّل فى تفسيره) و مثله فى فتح القدير ج۵، ص ۱۹۱، كتاب السير.

## په بوسنيا كښې د جهاد شرعي حكم

**سوال:** په بوسنيا هرزيګونيا كښې كوم جنګ چه د مسلمانانو په خلاف تر سره كيږي او هغوى قتل عام كيږي، د هغو د بيبيانو اجتماعي عزتونه لوټل كيږي او د مسلمانانو ځان، مال او عزت تر پښو لاندې كيږي ليكن د هغه ځاى د مسلمانانو د كمزورى له وجهې د كفارو له مقابلې څخه قاصر دي۔ نو آيا د هغو كفارو سره جهاد كول او نورو مورى فساد دفع كول او د مظلومو مسلمانانو امداد كول په ټولو اسلامي ملكونو باندې فرض دى او كه نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** كفار چه كله د مسلمانانو كوم ملك ته داخل شي او د هغه ځاى مسلمانان ئې مقابله و نه شي كړى نو په داسې صورت كښې د الاقرب فا لاقرب باندې جهاد باقاعده په فرض كيږي تر دې پورې چه شرقاً او غرباً په ټولو اسلامي ممالكو باندې دا فرض عائد كيږي لهذا د بوسنيا د مظلومو مسلمانانو په هرې ممكنې طريقې سره اعانت او امداد كول او د كفارو د فساد دفع كول د ټولو اسلامي ملكونو ذمه واري ده۔

لما قال العلامة ابن عابدينؒ: و نقل صاحب النهاية عن الذخيرة ان الجهاد اذا جاء النفير انما يصير فرض عين

على من يقرب من العدوّ فاما من ورائهم يبعد من العدو فهو فرض كفاية عليهم حتى يسعهم تركه اذا لم يحتج اليهم فان احتيج اليهم بان عجز من كان يقرب من العدو عن المقاومة مع العدو او لم يعجزوا عنها لٰكنّهم تكاسلوا و لم يجاهدوا فانهٗ يفترض على من يليهم فرض عين كا لصلٰوة و الصوم لا يسعهم تركه ثم و ثم الا ان يفترض على جميع اهل الاسلام شرقاً وغرباً على هٰذا الترتيب. (رد المحتار ج۳، ص ۲۲۰، كتاب الجهاد، مطلب فى الفرق فرض عين و فرض الكفاية)

و فى الهندية: ثم بعد مجىء النفير العام لا يفترض الجهاد على جميع اهل الاسلام شرقاً و غرباً فرض عين و ان بلغهم النفير و انما يفترض فرض عين على من كان يقرب من العدو و يقدرون على الجهاد......... الى ان قال فانهٗ يفترض على من يليهم فرض عين ثم و ثم الى ان يفرض على جميع اهل الارض شرقاً و غرباً على هٰذا الترتيب. (الفتاوى الهندية ج۲، ص۱۸۸، كتاب السير، الباب الاوّل فى تفسيره) و مثله فى فتح القدير ج۵، ص ۱۹۱، كتاب السير.



## د مسلمان فاسق حكمران سره د مسلح جهاد حكم

**سوال:** پاكستان كوم چه يو اسلامي مملكت دى ليكن اكثره قوانين ئې غير شرعي دي نو د دغو حكمرانانو سره د مسلح جهاد څه حكم دى؟ او آيا د مسلمان فاسق حكمران سره جهاد بالسيف او قتل او قتال جائز دى او كه نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د نبوي ﷺ احاديثو او د فقهاء كرامو له تصريحاتو څخه دا خبره ثابتيږي چه د مسلمان فاسق حكمران سره مسلح جهاد او قتل و مقاتله بالاجماع جائز نه دى۔ البته له قتال څخه پرته د هغو په خلاف آواز پورته كول او د منكراتو څخه منع كول كه د جلسې او جلوسونو په شكل كښې وي او كه د هرتالونو او داسې نورو په شكل كښې وي ضروري دي۔

لما ورد فى الحديث: عن اُمّ سلمةؓ ان رسول اللّٰه ﷺ قال ستكون امراء فتعرفون و تنكرون فمن عرف برىء و من انكر سلِم و لٰكن من رضى و تابع قالوا افلا نقاتلهم قال لا ما صلّوا. (مسلم شريف ج۲، ص۱۲۸، كتاب الامارة، باب وجوب الانكار الخ)

و قال العلامة مُلاّ على القارىؒ: و المراد با لكفر هنا المعاصى و المعنى لا تنازعوا ولاة الامور فى ولايتهم و لا تعترضوا عليهم الا ان تروا منهم منكراً محققاً تعلمونه من قواعد الاسلام فاذا رأيتم ذٰلك فانكروه عليهم و قوموا با لحق حيث ما كنتم و اما الخروج عليهم و قتالهم فمحرم باجماع المسلمين و ان كانوا فسقة ظالمين و اجمع اهل السنة على ان السلطان لا ينعزل با لفسق لتهيج الفتن فى عزله و اراقة الدماء و تفريق ذات البين فتكون المفسدة فى عزله اكثر منها فى بقائه. (مرقات شرح مشكٰوة ج۷، ص ۲۰۱، كتاب الامارة و القضاء، الفصل الاول) و مثله فى شرح المسلم للنووى ج۲، ص۱۲۸، كتاب الامارة، باب وجوب الانكار على الامراء.

## د افغانستان د جهاد شرعي حيثيت

**سوال:** د افغانستان موجوده جنګ كوم چه د كمونستانو په خلاف جاري دى آيا دغه جنګ شرعي جهاد دى او كه نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د افغانستان موجوده جنګ كوم چه د كمونستانو او روسانو په خلاف جاري دى بې له شك او شبهې څخه شرعي جهاد دى ځكه چه كمونستانو او روسانو په افغانستان باندې جبراً قبضه كړې ده او هلته ئې د ظلم، زياتى او بربريت بازار ګرم كړى دى او د مسلمانانو ځان، مال او عزت ئې تر پښو لاندې كړى دى او د اسلام د دين د ختمولو كوششونه كوي نو ځكه د دغو غاصبينو په خلاف جنګ كول او د هغوى د فساد دفع كول فرض عين جهاد دى۔

لما قال العلامة ابن الهمامؒ: اورد الجهاد عقيب الحدود لانه بعد ان ناسبها بوجهين باتحاد المقصود من كل منهما و من مضمون هٰذا الكتاب و هو اخلاء العالم من الفساد و يكون كل منهما حسناً لحسن لغيره و ذٰلك الغير و هو اعلاء كلمة اللّٰه تعالٰى يتأرى بفعل نفس المامور بهٖ فهو القتال. (فتح القدير ج۵، ص۱۸۷، كتاب السير)

و قال العلامة ابن نجيمؒ: مناسبة الحدود من حيث ان المقصود منهما اخلاء العالم عن الفساد فكان كل منهما حسناً لمعنىً فى غيره و قال لانه ما فرض لعينهٖ اذ هو افساد فى نفسه و انما فرض لاعزاز دين اللّٰه و دفع الشر عن العباد. (البحر الرائق ج۵، ص ۷۰، كتاب السير) و مثله فى الهندية ج۲، ص۱۸۸، كتاب السير، الباب الاول فى تفسيره.

## د جنګ نه مخکښې د اسلام د دعوت ورکولو حکم

**سوال:** د کفارو سره د جنګ له شروع کولو نه مخکښې آیا هغو ته د اسلام دعوت ورکول ضروري دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته د یوې علاقې اوسیدونکو ته د اسلام دعوت با لکل رسیدلی نه وي نو بیا هغو ته د اسلام دعوت ورکول ضروري نه بلکه مستحب دي۔ لیکن بغیر د دعوت نه د جهاد په کولو سره ګناه نه لازمیږي۔

لما قال العلامة الکاسانی رحمه اللّٰه: فان کان الدعوة لم تبلغهم فعلیهم الافتتاح با لدعوة الی الاسلام با للسان لقوله تعالٰی: اُدْعُ اِلٰی سَبِیْلِ رَبِّکَ بِا لْحِکْمَةِ وَ الْمَوْعِظَةِ الْحَسَنَةِ وَ جَادِلْهُمْ بِا لَّتِیْ هِیَ اَحْسَنُ. (الآیة) و لا یجوز لهم القتال قبل الدعوة....... الی ان قال فان کانت قد بلغتهم جاز لهم ان یفتتحوا لقتال من غیر تجدید الدعوة لما بینا ان الحجة لازمة و العذر فی الحقیقة منقطع و شبهة العذر انقطعت با لتبلیغ مرةً لکن مع هٰذا لا فضل ان لا یفتتحوا لقتال الا بعد تجدید الدعوة لرجاء الاجابة فی الجملة. (بدائع الصنائع ج۷، ص ۱۰۰، کتاب السیر)

و قال العلامة التمرتاشی رحمه اللّٰه: و لا نقاتل من لا تبلغهم الدعوة الی الاسلام. و قال العلامة الحصکفی رحمه اللّٰه و هو و ان استشهد فی زماننا شرقاً و غرباً لکن لا شك ان فی بلاد اللّٰه تعالٰی من لا شعور لهٗ بذٰلك و ندع ندباً من بلغتهم الا اذا تضمن ذٰلك ضرراً. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۳، ص ۲۲۳، کتاب الجهاد، مطلب اذا علم انهٗ یقتل یجوز له الخ) و مثله فی البحر الرائق ج۵، ص۷۵، کتاب السیر.

## د کفارو په خلاف مدافعانه او اقدامي دواړه قسمه جهاد جائز دی

**سوال:** د ځینو خلکو دا خیال دی چه په اسلام کښې یوائې مدافعانه جهاد مشروع دی او اقدامي جهاد مشروع نه دی ځکه که چېرته اقدامي جهاد د کفارو په خلاف شروع شي نو اسلام به یو خونخوار او ظالم مذهب ګڼل کیږي او په دې سره د اسلام بدنامي کیږي۔ آیا په رښتیا هم په اسلام کښې اقدامي جهاد مشروع نه دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** اسلام په حقیقت کښې د امن دین دی۔ اسلام د وینې تویونه نه غواړي بیا هم د ضرورت په وخت کښې کله چه دین ته د کافرو له خوا خطره موجوده وي او یا اعلاء کلمة اللّٰه مقصود وي نو اسلام د اقدامي او دفاعي د دواړه قسمو جهاد اجازه ورکوي لیکن په یوه صورت کښې هم د ظلم او جبر قائل نه دی۔

و قال العلامة ابن نجیمؒ: مناسبة الحدود من حیث ان المقصود منهما اخلاء العالم عن الفساد فکان کل منهما حسناً لمعنیً فی غیره و قال لانه ما فرض لعینه اذ هو افساد فی نفسه و انما فرض لاعزاز دین اللّٰه و دفع الشر عن العباد. (البحر الرائق ج۵، ص ۷۰، کتاب السیر) و مثله فی الهندیة ج۲، ص۱۸۸، کتاب السیر، الباب الاول فی تفسیره.

و قال العلامة ابن عابدینؒ: (قوله لاتحاد المقصود) و هو اخلاء الارض عن الفساد الخ (و قوله غیر خفی) لان الحدود اخلاء عن الفسق و الجهاد اخلاء عن الکفر. (ردّ المحتار ج۳، ص۲۱۷، کتاب الجهاد) و مثله فی فتح القدیر ج۵، ص۱۸۷، کتاب السیر.



## د مغلوب والي د یقین په صورت کښې د امیر د حکم منل مناسب نه دي

**سوال:** مجاهدینو ته د جنګ په دوران کښې که چېرته د مغلوب کیدو یقین وي او امیر مجاهدین حمله کولو ته مجبوروي نو آیا په دې صورت کښې د قومندان یا امیر د حکم منل ضروري دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته د مجاهدینو په دې باندې یقین وي چه د قومندان د حکم په منلو کښې څه فائده نشته بلکه د نقصان ډیر خطر موجود دی او د دوی له حملې څخه کفارو ته د ضرر او نقصان احتمال هم نشته نو په داسې صورت کښې د قومندان یا امیر د حکم منل مناسب نه دي۔

لما قال العلامة ابن عابدین رحمه اللّٰه: فاما اذا علم ان لا ینکی فیهم فانهٗ لا یحل له ان یحمل علیهم لانهٗ لا یحصل بحملته شیء من اعزاز الدین. (رد المحتار ج٤، ص۱۲۷، کتاب الجهاد، مطلب اذا علم انه یقتل یجوز له ان یقاتل)

و فی الهندیة: و ان علموا انهم لا ینتفعون بهٖ بیقین بل یتفررون لا یُطیعونه فی ذٰلك. (الفتاوی الهندیة ج۲، ص۱۹۲، کتاب السیر، الباب الاول فی تفسیره) و مثله فی التاتارخانیة ج۵، ص۲۵٦، کتاب السیر، الفصل العاشر.

## د مور له اجازې پرته جهاد ته د تللو حکم

**سوال:** یو سړی جهاد ته د تللو خواهش لري لیکن مور ئې اجازه نه ورکوي۔ نو آیا دا سړی د مور له اجازې پرته جهاد ته تللی شي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته جهاد فرض عین نه وي نو نوموړی سړی د مور له اجازې پرته جهاد ته نه شي تللی ځکه چه د والدینو اطاعت فرض عین دی او د فرض عین مرتبه په فرض کفایه باندې لوړه ده۔ هو د اجازې په صورت کښې تللی شي بیا هم که چېرته جهاد فرض عین شي نو په دې وخت کښې د والدینو د اجازې ضرورت نشته۔

لما قال العلامة الکاسانی رحمه اللّٰه: و کذا الولد لا یخرج الا باذن والدیه او احدهما اذا کان الآخر میتاً لان بر الوالدین فرض عین فکان مقدما علٰی فرض الکفایة و الاصل ان کل سفر لا یومن فیه الهلاك و یشتد فیه الخطر لا یحل للولد ان یخرج الیه بغیر اذن والدیه لانهما یشفقان علی ولدهما فیتضرر انَ بذٰلك و کل سفر لا یشتد فیه الخطر یحل لهٗ ان یخرج الیه بغیر اذنهما. (بدائع الصنائع ج۷، ص۹۸، کتاب السیر)

و قال العلامة الحصکفیؒ: لا یفرض علی صبیٍ و بالغ لهٗ ابوان او احدهما لان طاعتهما فرض عین. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۳، ص ۲۲۰، کتاب الجهاد، مطلب عامة الوالدین فرض عین) و مثله فی الهندیة ج۲، ص۱۸۹، کتاب السیر، الباب الاول فی تفسیره.

## د والدینو نه علاوه د نورو خپلوانو له اجازې نه بغیر جهاد ته د تللو حکم

**سوال:** که چېرته یوه سړي ته د هغه والدین جهاد ته د تللو اجازه ورکړي او نور خپلوان لکه ورونه او داسې نور اجازه ور نه کړي نو آیا په دې صورت کښې دا سړی د نوموړي خپلوانو له اجازې نه بغیر جهاد ته تللی شي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چیرته له والدینو نه پرته نورو خپلوانو یو چا ته د جهاد لپاره د تللو اجازه نه ورکوله او جهاد فرض عین نه وي او د نوموړي خپلوانو د ضائع کیدو خطر هم نه وو نو بیا د دوی له اجازې پرته په تللو کښې کوم حرج نشته البته که چیرته د هغو نفقه په ده باندې واجبه وه او د جهاد لپاره په تللو کښې د هغو د ضائع کیدو خطر موجود وو نو بیا د هغو له اجازې پرته تلل جائز نه دي۔

لما قال العلامة ابن عابدینؒ: و اما غیر هؤلاء کا لزوجة و الاولاد و الاخوات و الاعمام فانه یخرج بلا اذنهم الا اذا کانت نفقتهم واجبة علیه و خاف علیهم الضیعة آه. ملخصا من شرح السیر الکبیر. (رد المحتار ج٣، ص ٢٢٠، کتاب الجهاد، مطلب طاعة الوالدین فرض عین)

و قال العلامة ابن نجیمؒ: و فی الذخیرة ان من سوی الاصول اذا کرهوا خرجه للجهاد فان کان یخاف علیهم الضیاع فانه لا یخرج بغیر اذنهم و الا یخرج و کذا امرأته. (البحر الرائق ج٥، ص٥٢، کتاب السیر) و مثله فی الهندیة ج٢، ص ١٨٩، کتاب السیر، الباب الاوّل فی تفسیره.

## د اهل و عیال د نفقې د انتظام د نه شتون په صورت کښې جهاد ته د تللو حکم

**سوال:** یو سړی جهاد ته د تللو اراده لري لیکن د ده واړه بچیان او ښځې دي او د هغو لپاره له ده نه بغیر بل څوک د ګتې (کفیل) نه وي نو آیا په دې صورت کښې د اسړی جهاد ته تللی شي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** چونکه دا سړی د خپل اهل و عیال یواځنی ضامن دی او د هغوی نفقه په ده باندې واجبه ده نو ځکه که چیرته د هغو د ضائع کیدو خطره وه نو بیا دا سړی جهاد ته نه شي تللی بیا هم که چیرته د هغو د ضائع کیدو او یا هغو ته ضرر متوجه نه وو نو بیا ورته د جهاد لپاره په تللو کښې څه حرج نشته۔

لما قال العلامة ابن عابدینؒ: و اما غیر هؤلاء کا لزوجة و الاولاد و الاخوات و الاعمام فانه یخرج بلا اذنهم الا اذا کانت نفقتهم واجبة علیه و خاف علیهم الضیعة آه. ملخصا من شرح السیر الکبیر. (رد المحتار ج٣، ص ٢٢٠، کتاب الجهاد، مطلب طاعة الوالدین فرض عین)

و قال العلامة ابن نجیمؒ: و فی الذخیرة ان من سوی الاصول اذا کرهوا خرجه للجهاد فان کان یخاف علیهم الضیاع فانه لا یخرج بغیر اذنهم و الا یخرج و کذا امرأته. (البحر الرائق ج٥، ص٥٢، کتاب السیر) و مثله فی الهندیة ج٢، ص١٨٩، کتاب السیر، الباب الاوّل فی تفسیره.

## چــــه جهاد فرض عین نه وي نو پــــــه د اسې صورت کښې له ورونو سره د مشورې حکم

**سوال:** یو سړی جهاد ته د تللو شوق لري والدین هم اجازه ورکوي لیکن دا ورته وایي چه له ورونو سره دې مشوره وکړه نو آیا په دې صورت کښې د نوموړي سړي لپاره له ورونو سره مشوره کول ضروري دي او که نه؟ او آیا د ورونو له مشورې پرته جهاد ته تللی شي او که نه؟



**الجواب باسم ملهم الصواب:** جهاد ته په تللو کښې د والدینو نه علاوه له نورو خپلوانو څخه د اجازې اخیستل ضروري نه دي۔ البته که چیرته د نورو خپلوانو ئې په ده باندې نفقه واجبه وه او بل د نفقې کوم بل انتظام هم نه وو او د هغو د ضائع کیدو خطره هم موجوده وه نو بیا د هغو له اجازې پرته دی جهاد ته نه شي تللی بیا هم د اجازې په صورت کښې تلل څه پروا نه لري۔

لما قال العلامة ابن عابدینؒ: و اما غیر هؤلاء کا لزوجة و الاولاد و الاخوات و الاعمام فانه یخرج بلا اذنهم الا اذا کانت نفقتهم واجبة علیه و خاف علیهم الضیعة آه. ملخصا من شرح السیر الکبیر. (رد المحتار ج٣، ص ٢٢٠، کتاب الجهاد، مطلب طاعة الوالدین فرض عین)

و فی الهندیة: و اما من سواهم من ذوی الرحم المحرم کبناته و بنیه و اخواته و عماته و اخواله و خالاته و کل ذی رحم محرم اذا کرهوا خروج للجهاد و کان یشق ذلك علیهم فان کان یخاف علیهم الضیعة بان کانت نفقتهم علیه بان لم یکن لهم مالٌ و کانوا صغاراً او صغائر و کن کبائر الا انهٗ لا ازواج لهنّ او کانوا کباراً لا حرفة لهم فانه لا یخرج بغیر اذنهم و ان کان لا یخاف علیهم الضیع....... الٰی ان قال کان لهٗ ان یخرج بلا اذنهم. (الفتاوی الهندیة ج٢، ص١٨٩، کتاب السیر، الباب الاول فی تفسیره) و مثله فی البحر الرائق ج٥، ص٧٢، کتاب السیر.

## د عالم دین لپاره جهاد ته د تللو حکم

**سوال:** علماء کرام او مدرسین حضرات د جهاد په دوران کښې هم پخپلو مخصوصو مشاغلو کښې مصروف وي آیا په هغوی باندې جهاد فرض دی او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** چونکه د جهاد څخه مراد اعلاء کلمه الله وي او له درس او تدریس څخه هم د دین ثبات او قیام مقصود دی نو ځکه د فقیه او عالم لپاره چه کله جهاد فرض عین نه وي جهاد ته په تللو کښې د دین د ضائع کیدو خطر وي نو ځکه د علماوو لپاره په د اسې صورت کښې جهاد ته تلل مناسب نه دي۔

لما قال العلامة الحصکفیؒ: و عالم لیس فی البلدة افقه منه فلیس له الغزو خوف ضیاعهم سراجیة. و عمم فی البزازیة السفر و لا یخفی ان المقید یفید غیره. با لاولٰی و فرض عین ان هجم العدو فیخرج الکل و لو بلا اذن. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج٣، ص ٢٢١، کتاب الجهاد، مطلب طاعة الوالدین فرض عین)

و فی الهندیة: عالم لیس فی البلدة احد افقه منه لیس له ان یغزو و لما یدخل علیهم من الضیاعة کذا فی السراجیة. (الفتاوی الهندیة ج٢، ص ١٩٠، کتاب السیر، الباب الاول فی تفسیره) و مثله فی السراجیة ص ٢٤، کتاب السیر، باب الجهاد فرض کفایة.

## په جهاد باندې د نه قدرت په صورت کښې د اسلامي اُمت ذمه واري

**سوال:** که چیرته کفار د مسلمانانو په کوم ملك باندې حمله وکړي او قبضه پرې وکړي۔ لکه څرنګه چه روس په افغانستان باندې حمله وکړه او هغه ئې تر خپلې قبضې لاندې راووست او د ظلم او ستم بازار ئې پکښې ګرم کړ۔ نو آیا د افغانستان له عوامو برسیره ګاونډي اسلامي ملکونه لکه د پاکستان او د اسې نورو په عوامو باندې د روس په خلاف جهاد فرض عین دی او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په افغانستان باندې د روسانو د ظلم په وجه د جهاد حکم نفیر عام دی لیکن د جهاد د فرضیت لپاره دا شرط دی چه په جهاد به قدرت لري. د افغانستان د عوامو او د پاکستان د عوامو د نه قدرت په وجه د روسي فوجیانو سره مقابله مشکله معلومیږي نو ځکه دا فرضیت په اهل اقتدار او د دواړو ملکونو په سربراهانو باندې عائد کیږي او علی الترتیب د الاقرب فالاقرب په بناء باندې تر دې پورې چه شرقاً او غرباً په ټولو اسلامي حکومتونو باندې د روسانو د مظالمو په خلاف جهاد فرض کیږي.

لما قال العلامة ابن عابدين: و نقل صاحب النهاية عن الذخيرة ان الجهاد اذا جاء النفير انما يصير فرض عين على من يقرب من العدو فاما من وراءهم يبعد من العدو فهو فرض كفاية عليهم حتى يسعهم تركه اذا لم يحتج اليهم فان احتيج اليهم بان عجز من كان يقرب من العدو عن المقاومة مع العدو او لم يعجزوا منها لكنهم تكاسلوا و لم يجاهدوا فانه يفترض على من يليهم فرض عين كالصلوٰة و الصوم لا يسعهم تركه ثم و ثم الى ان يفترض على جميع اهل الاسلام شرقاً و غرباً على هذا الترتيب. (رد المحتار ج٣، ص ٢٢٠، كتاب الجهاد، مطلب في الفرق بين فرض عين و فرض كفاية)

و في الهندية: ثم بعد مجيء النفير العام لا يفترض الجهاد على جميع اهل الاسلام شرقاً و غرباً فرض عين و ان بلغهم النفير و انما يفترض فرض عين على من كان يقرب من العدو و هم يقدرون على الجهاد الى ان قال فانه يفترض على من يليهم فرض عين ثم و ثم الى ان يفرض على جميع اهل الارض شرقاً و غرباً على هذا الترتيب. (الفتاوى الهندية ج٢، ص١٨٨، كتاب السير، الباب الاول في تفسيره) و مثله في فتح القدير ج٥، ص ١٩١، كتاب السير.

## د مظلومو مسلمانانو حمایت او اعانت د مسلمانو بادشاهانو ذمه واري ده

**سوال:** په موجوده زمانه کښې د مسلمانانو د ختمولو لپاره کفارو پخپل فکر باندې منصوبې جوړې کړې دي چه له مخې ئې په هر ځای کښې کافرانو په مسلمانانو باندې قتل عام شروع کړی دی نو آیا په داسې حالت کښې د اهل اسلام په اهل اقتدار باندې د مظلومو مسلمانانو امداد او نصرت لازمیږي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په ټولو اسلامي ممالکو او په اهل اقتدار باندې د مظلومو مسلمانانو حمایت او اعانت ضروري دی او چېرته چه په مسلمانانو ظلم کیږي له هغو سره په نژدې اسلامي ملك باندې اعانت او له یهودو او هنودو سره جهاد فرض کیږي او د قدرت د نه لرلو په صورت کښې شرقاً او غرباً په ټول اهل اسلام او په اهل اقتدار باندې جهاد فرض کیږي.

لما قال العلامة ابن عابدين: و نقل صاحب النهاية عن الذخيرة ان الجهاد اذا جاء النفير انما يصير فرض عين على من يقرب من العدو فاما من وراءهم يبعد من العدو فهو فرض كفاية عليهم حتى يسعهم تركه اذا لم يحتج اليهم فان احتيج اليهم بان عجز من كان يقرب من العدو عن المقاومة مع العدو او لم يعجزوا منها لكنهم تكاسلوا و لم يجاهدوا فانه يفترض على من يليهم فرض عين كالصلوٰة و الصوم لا يسعهم تركه ثم و ثم الى ان يفترض على جميع اهل الاسلام شرقاً و غرباً على هذا التدريج. (رد المحتار ج٣، ص ٢٢٠، كتاب الجهاد، مطلب في الفرق بين فرض عين و فرض كفاية)

و في الهندية: و انما يفرض فرض عين على من كان يقرب من العدو وهم يقدرون على الجهاد و اما على من



وراءهم ممن يبعد من العدو فانه يفترض فرض كفاية لا فرض عين حتى يسعهم تركه فاذا احتيج بان عجز من كان يقرب من العدو عن المقاومة مع العدو او تكاسلوا و لم يجاهدوا فانه يفترض على من يليهم فرض عين ثم و ثم الى ان يفرض على جميع اهل الارض شرقاً و غرباً على هذا الترتيب. (الفتاوى الهندية ج٢، ص١٨٨، كتاب السير، الباب الاول في تفسيره) و مثله في فتح القدير ج٥، ص ١٩١، كتاب السير.

## د في سبيل الله د لفظ تحقیق

**سوال:** تبلیغي حضرات د في سبیل الله لفظ یو اځې په تبلیغ باندې منحصر بولي او جهاد په دې کښې نه شاملوي آیا د دغو حضراتو دا انحصار درست دی او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د في سبیل الله لفظ یو وسیع المعنی لفظ دی. د دین په خاطر او د الله د رضا لپاره چه هر څوك محنت او مشقت کوي هغوی ټول ئې په مفهوم کښې داخل دي. لهذا د دین په ټولو شعبو کښې کار کوونکي افراد د دې مصداق دي. د دین یوه شعبه په معینه توګه د دې مصداق ګرځول او نورې شعبې ترې خارجول په غلط فهمۍ باندې مبني دي.

لما قال العلامة ابن عابدين: و قد قال في البدائع في سبيل الله جميع القرب فيدخل فيه كل من سعى في طاعة الله تعالى و سبيل الخيرات اذا كان محتاجاً. (رد المحتار ج٣، ص٦٧)

لما في الحديث: و عن انس قال قال رسول الله ﷺ من خرج في طلب العلم فهو في سبيل الله حتى يرجع. رواه الترمذي و الدارمي. (مشكوٰة ج١، ص٣٤، كتاب العلم) و مثله في البحر الرائق ج٢، ص ٤٢، كتاب السير.

## د دښمن د جاسوس د قتل کولو حکم

**سوال:** کوم سړی چه کافر حکومت ته جاسوسي کوي او د مسلمانانو خفیه حالات او خبرې کفارو ته رسوي او یا د کافر حکومت په تعاون سره د هغه ځای مسلمانانو ته تکلیف ورکوي نو دا سړی که چېرته ونیول شي نو قتل ئې جائز دی او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته ئې له قتل پرته کوم تدبیر د پوهولو لپاره کارګر ثابت نه شي نو په قتل کولو کښې ئې څه حرج نشته. دا هم په هغه صورت کښې چه نیول شوی جاسوس مسلمان وي. او که چېرته دا جاسوس حربي کافر وي نو بیا ئې په قتل کښې هیڅ خبره نشته. اګر که د امام ابوحنیفه او ځینو نورو امامانو رحمهم الله څخه د مسلمان جاسوس د نه قتلولو اقوال مروي دي.

لما قال العلامة الامام القرطبي: فان كان الجاسوس كافراً فقال الاوزاعي يكون نقضاً لعهده و قال اصبغ: الجاسوس الحربي يقتل و الجاسوس المسلم و الذمي يعاقبان الا ان تظاهرا على الاسلام فيقتلان. (الجامع الاحكام القرآن ج١٨، ص٥٣، سورة الممتحنة)

و قال الحافظ العيني: و قال القدوري: الجاسوس يقتل و انما نفى القتل عن حاطب لما علم النبي ﷺ منه و لكن مذهب الشافعي و طائفة ان الجاسوس المسلم يعزر و لا يجوز قتله و ان كان ذا هيئة عفى عنه بهذا الحديث و عن ابي حنيفة و الاوزاعي يوجع عقوبة و يطال حبسهٗ و قال ابن وهب من المالكية يقتل الا ان يتوب و عن بعضهم انه يقتل اذا كانت عادته ذلك و به قال ابن الماجشون و قال ابن القاسم يضرب عنقه لانه لا تعرف توبته و به قال سحنون و من قال

بقتله فقد خالف الحديث و اقوال المتقدمين و قال الاوزاعیؒ فان كا كافراً يكون ناقضاً للعهد و قال اصبغ الجاسوس الحربى يقتل و المسلم و الذمى يعاقبان الا ان يظاهرا على الاسلام فيقتلان. (عمدة القارى ج١٤، ص٢٥٦، باب الجاسوس، كتاب الجهاد)

و قال العلامة الحصكفیؒ: و فى المجتبى الاصل ان كل شخص رأى مسلماً يزنى ان يحل له قتله و انما يمتنع خوفاً من ان لا يصدق انهٗ زنى و على هٰذا القياس المكابر با لظلم و قطاع الطريق و صاحب المكس و جميع الظلمة بادنٰى شیء لهٗ قيمة و جميع الكبائر و الاعونة و السعاة يباح قتل الكل و يثاب قاتلهم انتهى و افتى الناصحى بوجوب قتل كل مؤذٍ....... و قال ابن عابدينؒ: (بعد قوله و جميع الكبائر) اى اهلها و الظاهر ان المراد بها المتعدى ضررها الى الغير فيكون قوله و الاعونة و السعاة عطف تفسيرٍ او عطف خاصٍ على عام فيشمل كل من كان من اهل الفساد كا لساحر و قاطع الطريق و اللحن و اللوطى و الخناق و نحوهم ممن عم ضرره و لا ينزجر بغير القتل قولهٗ و الاعونة كانهٗ جمع معين او اعوان بمعناه و المراد به الساعى الى الحكام با لافساد فعطف السعاة عليه عطف تفسيره و فى رسالة احكام السياسة عن جمع النسفى سئل شيخ الاسلام عن قتل الاعونة و الظلمة و السعاة فى ايام الفترة قال يباح قتلهم لانهم ساعون فى الارض با لفساد فقليل انهم يتمنعون ذٰلك فى ايام الفترة و يختنون قال ذٰلك امتناع ضرورة "وَلَوْ رُدُّوْا لَعَادُوا لِمَا نُهُوْا عَنْهُ" كما نشاهد و سئلنا الشيخ ابا شجاع عنه فقال يباح قتلهٗ و ثياب قاتلهٗ قوله و افتى الناصحى لعل الوجوب ينظر للامام و نوابهٖ و الاباحة بنظر لغيرهم. (رد المحتار ج٣، ص١٩٧/١٩٨، باب التعزير، مطلب يكون التعزير با لقتل) و مثله فى البحر الرائق ج٥، ص٤٢، فصل فى التعزير.

## د دښمنانو کورونه او عسکري مورچو د تباه کولو حکم

**سوال:** آیا له کفارو سره د جنګ په دوران کښې د هغوی کورونه او فوجي او عسکري مورچې او د استوګن ځایونو تباه کول شرعاروادي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** چونکه له دې څخه مقصد د هغوی شان او شوکت ختمول او په هغوی باندې د غصې اظهار دی نو ځکه د دوی کورونه او د مورچو ړنګول او تباه کول مشروع دي او دا هم جهاد ګڼل کیږي۔

و قال العلامة الكاسانیؒ: و لا بأس باحراق حصونهم با لنار و اغراقها با لماء و تخريبها و هدمها و نصب المجانيق عليها لقوله تعالٰى يُخْرِبُوْنَ بُيُوْتَهُمْ بِاَيْدِيْهِمْ وَ اَيْدِى الْمُؤْمِنِيْنَ و لان كل شیء من باب القتال لما فيه من قهر العدو و كبتهم و غيظهم. (بدائع الصنائع ج٧، ص١٠٠، كتاب السير)

و قال العلامة ابن عابدينؒ: (تحت قوله و حرقهم) اراد حرق دورهم و امتعتهم. قالهٗ عينى و الظاهر ان المراد حرق ذاتهم با لمجانيق و اذا جازت محاربتهم بحرقهم فمالهم اولٰى. (رد المحتار ج٣، ص٢٢٣، كتاب الجهاد) و مثله فى الهندية ج٢، ص١٩٤، كتاب السير، الباب الثانى فى كيفية القتال.

## د اهل حرب د باغونو او فصلونو د تباه کولو حکم

**سوال:** آیا د کفارو سره د جنګ په دوران کښې د هغوی د باغونو او فصلونو تباه کول او قطع کول جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** له کفارو سره د جنګ په حالت کښې د هغوی د باغونو او فصلونو قطع



کولو او تباه کولو کښې چونکه د هغوی شان او شوکت او د هغوی د تکبر او غرور ختمول مقصود وي لهذا د جهاد په دوران کښې د هغوی د باغونو او فصلونو او د اسې نورو په تباه کولو کښې هیڅ حرج نشته۔ بیا هم بې له کومې وجهې د هغوی مالونه او باغونه مه تباه کوی۔

لما قال العلامة برهان الدين المرغينانى رحمه اللّٰه: قال و ارسلوا عليهم الماء و قطعوا اشجارهم و افسدوا زروعهم لان فى جميع ذٰلك الحاق الكبت و الغيظ بهم و كسرتهم و تفريق جمعهم فيكون مشروعاً. (الهداية ج٢، ص٢٥٥، كتاب السير، باب كيفية القتال)

و فى الهندية: و نصبوا عليهم المجانيق و حرقوهم و ارسلوا عليهم الماء قطعوا شجرهم و افسدوا زروعهم. (الفتاوى الهندية ج٢، ص١٩٣، كتاب السير، الباب الثانى فى كيفية القتال) و مثله فى البحر الرائق ج٥، ص٧٦، كتاب السير.

## د جنګ په دوران کښې که چېرته کوم کافر کلمه ووایي نو آیا قتلول ئې جائز دي؟

**سوال:** یو کافر او د خدای منکر که چېرته د جنګ په ترخ کښې د مجاهدینو په مخکښې دا کلمه ولولي چه زه مسلمان کیږم او کلمهٔ توحید ووایي نو آیا د اسلام له راوړلو وروسته ئې قتل جائز دی او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د جنګ په حالت کښې که چېرته یو کافر د مسلمانانو په وړاندې د خپل ایمان اظهار وکړي او کلمهٔ توحید ولولي او د خدای د وحدانیت اقرار وکړي نو په شریعت مطهره کښې د داسې سړي قتل جائز نه دی۔ ځکه چه په دې صورت کښې یوازې د ایمان په اقرار باندې اکتفاء کافي ده۔

لما قال العلامة ابن نجيمؒ: و الكفار اقسام قسم يجحدون البارى جل و علا و اسلامهم اقرارهم بوجوده و قسم يقرون به و لكن ينكرون وحدانيته و اسلامهم اقرارهم بوحدانيته. (البحر الرائق ج٥، ص٧٤، كتاب السير)

و فى الهندية: قال القدورى فى كتابه الكفار على نوعين فهم من يجحد البارى عز وجل و منهم من يقربه الا انه ينكر وحدانيته كعبدة الاوثان فمن انكره اذا اقربه يحكم باسلامه و من اقر و مجد وحدانيته اذا اقر بواحدانيته بان قال لا اِلٰهَ الا اللّٰه يحكم با لاسلام. (الفتاوى الهندية ج٢، ص١٩٥، كتاب السير، الباب الثانى فى كيفية القتال) و مثله فى التاتارخانية ج٥، ص٢٣٣، كتاب السير، الفصل الرابع فى بيان ما ينتهى به الامر با لقتال.

## د جنګ په دوران کښې د کافـــــر پلار د قتلولو حکم

**سوال:** که چېرته د چا پلار د کمونستانو له خوا د اسلام د مجاهدینو په خلاف جنګیده نو د قتلول ئې د مجاهد زوی لپاره جائز دی او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** چونکه په اسلام کښې والدین پخپلو اولادونو باندې ډیر زیات حقوق لري نو ځکه که د چا والدین اګر که کافر هم وي اسلام په دنیاوي امورو کښې له هغو سره د ښه سلوك کولو او د هغوی د احترام کولو حکم ورکړی دی۔ نو په دې بناء پلار چه کله د کفارو له خوا څخه د مسلمانانو په خلاف جنګیږي نو د زوی لپاره په پلار باندې د قتل اقدام مرخص نه

دی۔ البته که چېرته د هغه له قتل کولو پرته کوم بل مناسب تدبیر ممکن نه وو او یا له خپل پلار څخه د ده د قتل کیدو خطر وو نو د دې مجبورۍ له مخې د پلار په قتلولو کښې څه حرج نشته۔

لما قال العلامة المرغینانیؒ: و یکره ان یبتدء الرجل اباه من المشرکین فیقتله لقوله تعالیٰ: وَصَاحِبْهُمَا فِی الدُّنْیَا مَعْرُوْفًا الآیة. و لانه یجب احیائه با لاتفاق فیناقضه الاطلاق فی افنائه فان ادرکه امتنع علیه حتی یقتله غیره لان المقصود یحصل بغیره من غیر اقتحامه المأثم و ان قصد الابّ قتله بحیث لا یمکنه دفعه الا بقتله لا بأس به لان مقصوده الدفع الا تریٰ انه لو شهر الاب سیفه علی ابنه و لا یمکنه دفعه الا بقتله یقتله لما بینا فهٰذا اولیٰ. (الهدایة ج۲، ص۲۵۷، کتاب السیر، باب کیفیة القتال)

و فی الهندیة: و لا بأس بان یقتل الرجل من المسلمین کل ذی رحم محرم من المشرکین یبتدأ به الا الوالد و الوالدة و الاجداد من قبل الرجال او النساء و الجدات. (الفتاوی الهندیة ج۲، ص۱۹۴، کتاب السیر، الباب الثانی فی کیفیة القتال) و مثله فی بدائع الصنائع ج۷، ص۱۵۱، کتاب السیر.

## له کمونستانو سره د اوسیدونکو حکم

**سوال:** په افغانستان باندې د روسي قبضې نه وروسته اکثرو خلکو هجرت وکړ لیکن ځینې خلک داسې دي چه تر اوسه پورې ئې هجرت نه دی کړی او د کمونستانو په شا و خوا کښې اوسیږي نو آیا د داسې خلکو قتلول او هغو ته نقصان رسول جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په نوموړي صورت کښې کومو خلکو چه هجرت نه دی کړی او هلته له کمونستانو سره نژدې اوسیږي او د مجاهدینو په خلاف د کمونستانو امداد او حمایت نه کوي نو اګر که هغه خلك د هجرت د نه کولو په وجه د ګناه مرتکب دي لیکن مقدس شریعت په قصد او ارادې سره د هغو د قتلولو اجازه نه ورکوي۔ البته د هغوی د مالونو کوم چه کفارو ته ترې فائده رسیږي ضبط کول درست دي۔

لما قال العلامة محمد کامل الطرابلسیؒ: و منه تعلم من یدخل تحت جوارهم و امانهم من غیر اعانة لهم بنفسه و بماله و لا یکون عینا لهم علینا و لا رداءً دونهم لا یباح قتله و انما هو عاص معصیةً لا تبیح ما عصمه الاسلام من دمه و ماله و انام ابیح اخذ اموالهم ایضاً لکونهم یعینون به العدو علی مقاتل الاسلام و مقاومته و مناواته و مناهفته فابیح اخذه لذٰلك. (الفتاوی الکاملیة ص۲۵۱، کتاب الجنایات)

قال العلامة ابن عابدینؒ: قوله با لمجانیق ای برمی النار بها علیهم لکن جواز التحریق و التغریق کما فی شرح السیر بما اذا لم یتمکنوا من الظفر بهم بدون ذٰلك بلا مشقه عظیمة ان تمکنوا بدونها فلا یجوز لان فیه اهلاك اطفالهم و نسائهم و من عندهم من المسلمین. (رد المحتار ج۴، ص۱۲۹، کتاب الجهاد، مطلب فی ان الکفار مخاطبون ندباً) و مثله فی الهندیة ج۲، ص۲۵۶، کتاب السیر.

## د کمونستانو د معاونینو حکم

**سوال:** د کمونستانو د معاونینو او د هغوی د امداد کوونکو څه حکم دی آیا د هغوی قتلول جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** کمونستان چونکه د خپلو عقائدو او نظریاتو په بناء سره اهل حرب



ګرځیدلي دي لهذا په قطعي توګه کوم خلك چه د کمونستانو حامي وي او له هغو سره امداد او تعاون کوي نو دوی هم د هغو په حکم کښې دي لهذا د داسې خلکو قتل هم مرخص دی۔

لما قال العلامة محمد الطرابلسیؒ: سئلت عن بلدة استول علیها الکفار و تمکنوا منها فا نضم الیهم بعض القبائل و العشائر و صاروا یقاتلون معهم المسلمین و نهبون مالهم و ینصحون الکفار و یعینونهم علی اذی المسلمین فکانوا اشد ضررا علی المسلمین من الکفار فما حکم فیهم و هٰذا حالهم. فا لجواب انی لم اقف علی حکم هٰؤلاء فی کتب مذهبنا معاشر الحنفیة و لکن وقفت عن حکمهم فی کتب بعض السادة المالکیة الیٰ ان قال و الظاهر ان حکم هٰؤلاء حکم اهل الحرب فی قتلهم و اخذ اموالهم و اما اولادهم فلا یقتلون و لا یکون فیئاً و انما اُبیح قتل البالغین منهم لکونهم رداءً لعدو الحرب و معینون لهٗ بانفسهم و حکم الردء اذا لم یقاتل مع العدو حکم المقاتل فاحری اذا قاتل. (الفتاوی الکاملیة ص۲۵۰، کتاب الجنایات)

و قال العلامة الحصکفیؒ: و جمیع الکبائر و الاعونة و السعاة یباح قتل الکل و یثاب قتلهم انتهی و افتی الناصحی بوجوب قتل کل مؤذٍ. و قال ابن عابدینؒ: (بعد قوله و جمیع الکبائر) ای اهلها و الظاهر ان المراد بها المتعدی ضررها الی الغیر الیٰ ان قال فیشمل من کان من اهل الفساد. (رد المحتار ج۴، ص۱۹۸، باب التعزیر، مطلب یکون التعزیر با لقتل)

## د کمونستانو د ښځو او بچیانو د قتلولو حکم

**سوال:** د کمونستانو د بچیانو او ښځو قتلول جائز دي او که نه؟ د احنافو فقهاوو په دې باره کښې څه رایه ده؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د کمونستانو د بچیانو او د هغوی د ښځو په قصد او ارادې سره قتلول جائز نه دي۔ البته که چېرته د کمونستانو او یا د هغوی د کورونو تباه کول مقصود وو نو په هغو کښې چه کوم بچیان او ښځې په غیر ارادي توګه قتل شي نو څه حرج پکښې نشته۔ همدرانګه که چېرته په هغو کښې کوم ذي رأي موجود وي او یا جنګ کوونکي وي او یائې سربراه ښځه وي نو بیا په قصد او ارادې سره هم قتل کولی شی تر څو چه شر او فساد بیخي له منځه لاړ شي۔

لما قال العلامة المرغینانیؒ: و لا یقتلوا امرأة و لا صبیًا و لا شیخاً فانیا و لا مقعدا و لا اعمیٰ لان المبیح للقتل عندنا هو الحرب و لا یحقق منهم...... الا ان یکون احد هٰؤلاء ممن لهٗ رأی فی الحرب او یکون المرأة ملکة لتعدی ضررها الی العباد و کذا یقتل من قاتل من هٰؤلاء دفعاً لشرّہٖ و لا ان القتال مبیح حقیقته. (الهدایة ج۲، ص۲۵۶، کتاب السیر، باب کیفیة القتال)

و قال العلامة الکاسانیؒ: اما حال القتال فلا یحل فیها قتل امرأة و لا صبیّ و لا شیخ فانی. (بدائع الصنائع ج۷، ص۱۰۱، کتاب السیر) و مثله فی البحر الرائق ج۵، ص۷۷، کتاب السیر.

## له دښمن څخه د اسلحې د اخیستونکي او د مجاهدینو د پټو رازونو د افشا کوونکي د قتل حکم

**سوال:** د پاکستان او یا افغانستان په ځینو قبائلي علاقو کښې ځینې خلك مجاهدینو ته د نقصان د رسولو او د هغوی د فوجي لارو د قطع کولو لپاره د روسي کمونست حکومت څخه اسلحه اخلي، او د

مجاهدینو خفیه حالات او مرکزونه دښمن ته ور ښیي نو آیا د اسې خلکو قتلول جائز دي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** څوك چه د اسلام د مجاهدینو په خلاف د کمونستانو او یا د اسلام د نورو مخالفینو سره معاونت کوي او د اسلام د مجاهدینو خفیه رازونه او جنګي او عسکري مرکزونه دښمنانو ته ور ښیي نو د داسې خلکو حکم د زنادقه وو دی او قتلول ئې جائز دي۔

لما قال العلامة محمد کامل الطرابلسیؒ: و منهم من لجأ للمسلمین و صار یقاتل العدو معهم و هو مع ذٰلك یعین العدو خفیة و یعلّمه باحوال عساکر المسلمین و یطلعهٗ علٰی عوراتهم و یتربص بهم الدوائر و قد اطلع لهم علی کتب کتبها فی ذٰلك الوقت کثیر من مشائخهم المعروفین با لاجواد....... الی ان قال و حکم اولٰئك حکم الزنادقة ان اطلع علیهم قتلوا و ان لا فامرهم الی اللّٰه. (الفتاوی الکاملیة ص ۲۵۱، کتاب الجنایات)

قال العلامة الحصکفی رحمه اللّٰه: و جمیع الکبائر و الاعونة و السعاة یباح قتل الکل و یثاب قاتلهم انتهی و افتی الناصحی بوجوب قتل کل مؤذٍ. و قال ابن عابدینؒ: (بعد قوله و جمیع الکبائر) ای اهلها و الظاهر ان المراد بها المتعدی ضررها الی الغیر فیکون قوله و الاعونة و السعاة عطف تفسیرٍ او عطف خاصٍ علی عام فیشمل کل من کان من اهل الفساد کا لساحر و قاطع الطریق و اللحن و اللوطی و الخناق و نحوهم ممن عم ضرره و لا ینزجر بغیر القتل قولهٗ و الاعونة کانهٗ جمع معین او اعوان بمعناه و المراد به الساعی الی الحکام با لافساد فعطف السعاة عطف تفسیر. (رد المحتار ج ٤، ص۱۹۸، باب التعزیر)

## د جهاد په ترځ کښې د بریتونو اوږدول

**سوال:** آیا د مجاهدینو لپاره د جهاد په دوران کښې د بریتونو اوږدول جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د جهاد په دوران کښې چه په هرې مناسبې طریقې سره په دښمن باندې رعب او دباو اچول کیږي او د هغوی شان او شوکت ته نقصان رسیږي ناجائز عمل نه بلکه مستحسن او ښه عمل دي۔ د بریتونو د اوږدولو په صورت کښې چونکه په دښمن باندې د رعب د لویدلو امکان وي نو ځکه د جهاد په دوران کښې د بریتونو لویول ښه کار دی۔

قال العلامة ابن نجیمؒ: و یندب للمجاهد فی دار الحرب توفیر الاظفار و ان کان قصها من الفطرة لانه اذا سقط السلاح من یده و دنا منه العدو ربما یتمکن من دفعه باظافیره و هو نظیر قصر الشوارب فانهٗ سنة ثم الغازی فی دار الحرب مندوبٌ الی توفیرها و تطویلها لیکون اهیب فی عین من یبارزه و الحاصل ان ما یعین المرء علی الجهاد فهو مندوبٌ الی اکتسابه لما فیه من اعزاز المسلمین و قهر المشرکین. (البحر الرائق ج ٥، ص ٧٦، کتاب السیر)

و فی الهندیة: قالوا لا بد عن طول الشارب للغزاة لیکون اهیب فی عین العدو کذا فی الغیاثیة. (الفتاوی الهندیة ج ٥، ص ۳٥٨، کتاب الکراهیة)

## له دښمن سره د دین د حفاظت په خاطر د توریې استعمالول

**سوال:** په جهاد کښې د کفارو د هلاکولو او هغوی ته د شکست د ورکولو لپاره دروغ ویل او هغوی ته دوکه ورکول جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** دوکه ورکول او دروغ ویل د یوه آسماني کتاب له مخې هم جائز نه دي نو ځکه په یوه وخت کښې هم جائز او حلال نه ګڼل کیږي۔ بیا هم ځینې موقعې د اسې دي چه په



هغو کښې که چېرته دین ته نقصان رسیده او له هغه څخه د ظاهري بچ کیدو لپاره د دوکې او دروغو نه پرته بله چاره نه وه نو په داسې مواقعو کښې له دروغو څخه کار اخیستلی شي چونکه په حقیقت کښې دا دروغ نه دي۔ نو د دې لپاره له دښمن څخه د دین د حفاظت په خاطر په ظاهري دوکه او دروغ کښې څه حرج نشته۔

لما قال العلامة عالم بن العلاء الانصاریؒ: روی عن علی انه قال قال رسول اللّٰه ﷺ الحرب خدعة فیه دلیل علی انه لا بأس با لخداع فی الحرب و لیس المراد الکذ المحض و انما المراد استعمال المعاریض. (الفتاوی التاتارخانیة ج ٥، ص ۲٥۰، کتاب السیر، الفصل التاسع فی الخدعة فی الحرب)

قال العلامة العثمانیؒ: بعد ذکر الحدیث ما نصه و فیه علی انهٗ لا بأس للمجاهد ان یخادع قرنه فی حال القتال. (اعلاء السنن ج ۱۲، ص ٤٥، کتاب السیر) و مثله فی خلاصة الفتاوی ج ٤، ص ۳٤٦، کتاب الکراهیة، الفصل الثالث فیما یتعلق با لمعاصی.

## په جنګ کښې د مسلمانو فوجونو د شا ته راتګ حکم

**سوال:** لـــــه کفارو سره د جنګ په دوران کښې به مسلمان فوج پخپلو مورچو کښې تر آخره وخته پورې ثابت قدم پاتې کیږي او که کله کله شا ته د تلو اجازه هم ورته شته؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د کفارو په مقابله کښې مسلمانان د الله تعالی له طرفه په ثابت قدمې باندې مامور دي او د هغو لپاره د میدان پرېښودل جرم دی۔ لیکن د کفارو تعداد که چېرته دومره زیات وي چه د هغو مقابله ناممکنه وي او یا د تعداد په لحاظ سره کم وي لیکن د مسلمانانو غالب ګمان دا وي چه د کفارو مقابله نه شو کولی نو په داسې حالت کښې د دوباره تیارۍ لپاره په شا باندې تلل شرعا جرم نه دی۔

کما قال اللّٰه تعالٰی: یٰٓاَیُّهَا الَّذِیْنَ اٰمَنُوٓا اِذَا لَقِیْتُمُ الَّذِیْنَ کَفَرُوْا زَحْفًا فَلَا تُوَلُّوْهُمُ الْاَدْبَارَ. وَ مَنْ یُّوَلِّهِمْ یَوْمَئِذٍ دُبُرَهٗٓ اِلَّا مُتَحَرِّفًا لِّقِتَالٍ اَوْ مُتَحَیِّزًا اِلٰی فِئَةٍ فَقَدْ بَآءَ بِغَضَبٍ مِّنَ اللّٰهِ وَ مَاْوٰهُ جَهَنَّمُ وَ بِئْسَ الْمَصِیْرُ. (سورة الانفال، آیت ۱٥)

و قال العلامة الکاسانیؒ: و علی هٰذا الغزوات اذا جاء هم جمع من المشرکین ما لا طاقة لهم به و خافوهم ان یقتلوهم فلا بأس لهم ان ینحازوا الی بعض امصار المسلمین او الٰی بعض جیوشهم و الحکم فی هٰذا الباب لغالب الرأی و اکبر الظن دون العدد فان غلب علی ظن الغزاة انهم یقاومونهم یلزمهم الثبات و ان کانوا اقل عدداً منهم و ان کان غالب ظنهم انهم یغلبون فلا بأس ان ینحازوا الی المسلمین لیستعینوا بهم و ان کانوا اکثر عدداً من الکفرة. (بدائع الصنائع ج ۷، ص ۹۸، کتاب السیر، فصل فی بیان من یفترض)

## بـــــاب الغنائم و قسمتهــا

## (د غنیمت د مالونو احکام او مسائل)

### د غنیمت مال د غانمینو حق دی نه د حکومت

**سوال:** له کفارو سره د جنګ په دوران کښې کله چه اسلامي فوج د کفارو فوج مغلوب کړي او په مالونو ئې قبضه وکړي نو آیا دا د غنیمت مالونه د مجاهدینو حق دی او که د حکومت حق دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د شریعت له مخې د غنیمت مال به پنځه حصې کیږي چه یوه حصه به ئې په بیت المال کښې داخلیږي او پاتې څلور حصې به ئې په هغو مجاهدینو تقسیمیږي چه د جنګ په دوران کښې په نوموړي مالونو قبضه کړې وي۔ او د دې برعکس د حکومت دا قانون چه د غنیمت ټول مال به د حکومت وي د نورو قوانینو غوندې غیر اسلامي او غیر شرعي قانون دی او د نبي کریمﷺ د سنتو هم خلاف دی۔

لما قال العلامة المرغینانیؒ: و یقسم الامام الغنیمة فیخرج خمسها لقوله تعالٰی: فَاِنَّ لِلّٰهِ خُمُسَهٗ وَ لِرَسُوْلِهٖ. استثنی الخمس و یقسم اربعة اخماس بین الغانمین لان النبیﷺ قسمها بین الغانمین. (الهدایة ج۲، ص۲۶۷، باب الغنائم و قسمتها)

و قال العلامة الحصکفیؒ: فی المغرب الغنیمة ما نیل من الکفار عنوة و الحربة فتخمس و باقیها للغانمین. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۴، ص۱۳۷، کتاب الجهاد، باب المغنم و قسمته) و مثله فی فتح القدیر ج۵، ص۲۳۴، کتاب الغنائم و قسمتها فصل فی کیفیة القسمة.

### د غنیمت مال د ټولو مجاهدینو مشترکه سرمایه ده

**سوال:** کله چه د لښکر امیر د جنګ په میدان کښې د دښمن د کومې علاقې د لاندې کولو لپاره مجاهدین په څلورو ګروپونو باندې تقسیم کړي او هره ډله خپلو خپلو ځایونو ته ولیږي او له نوموړي څلورو ګروپونو څخه یو ګروپ په همدغې علاقې باندې قبضه وکړي او د غنیمت مالونه ونیسي نو آیا په دغو غنیمتونو کښې به ټول ګروپونه شریك وي او که به یواځې د هغه ګروپ وي چه په علاقه باندې ئې قبضه کړې ده؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په نوموړي صورت کښې د غنیمت مالونه د مجاهدینو د ټولو ګروپونو مشترك حق دی اګر که یوه ګروپ په هغه علاقه لاندې کړې وي۔ البته که چېرته د لښکر امیر د کوم مصلحت په بناء د غنیمت مالونه په یوه ګروپ باندې تقسیم کړي نو په دې کښې څه حرج نشته۔

لما قال العلامة المرغینانیؒ: قال الردء و المقاتل فی العسکر سواء لاستهوائهم فی السبب و هو المجاوزة او شهود الوقعة علی ما عرف و کذٰلك اذا لم یقاتل لمرض او لغیره لما ذکرنا. (الهدایة ج۲، ص۲۶۳، کتاب السیر، باب الغنائم و قسمتها)



و قال العلامة ابن عابدینؒ: (تنبیه) قال فی البحر و افاد المصنف ان المقاتل و غیره سواء حتٰی یستحق الجندی الذی لم یقاتل لمرض او غیره و انهٗ لا یتمیز واحد علٰی اخر بشیء حتٰی امیر العسکر و هٰذا بلا خلاف کذا فی فتح و فی المحیط و المتطوع فی الغزو و صاحب الدیوان سواء. (رد المحتار ج۴، ص۱۴۲، کتاب الجهاد، باب المغنم و قسمته) و مثله فی البحر ج۵، ص۸۵، کتاب السیر، باب الغنائم و قسمتها.

### د تنفیل (انعام) د نه اعــــــلان په صورت کښې د غنیمت مـــــال د ټولو مجاهدینو مشترك حق دی

**سوال:** د افغانستان په جهاد کښې یوه مجاهد یو روسی فوجي مردار کړ او د هغه په کلاشنکوف ئې قبضه وکړه او نور مجاهدین ورته وایي چه دا کلاشنکوف یواځې ستا حق نه دی بلکه ټول مجاهدین په دې کښې حق لري او دا د غنیمت مال دی۔ په داسې حال کښې چه نوموړی مجاهد وایي چه دا کلاشنکوف یواځې زما حق دی بل څوك په دې کښې له ما سره شریك نه دی۔ نو د دې مسئلې شرعي حل به څه وي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د غنیمت مال د ټولو مجاهدینو تر منځ مشترك وي۔ له تقسیم څخه مخکښې یوه مجاهد ته هم د غنیمت له مال څخه د څه شي اخیستل جائز نه دي۔ بیا هم که چېرته د جهاد امیر د انعام اعلان کړی وي یعنې کوم مجاهد چه حربي کافر په قتل ورسوي او د هغه اسلحه را واخلي نو هغه به د هم هغه مجاهد وي۔ نو په دې صورت کښې که چېرته کوم مجاهد کوم حربي کافر لره قتل کړي او د هغه اسلحه لاس ته راوړي نو هغه اسلحه به د هم هغه مجاهد وي او بل هیڅوك به پکښې ورسره شریك نه وي۔ او له دې صورت پرته د غنیمت ټول مالونه به د ټولو مجاهدینو مشترك مال وي۔

لما فی الهندیة: قال محمدؒ و لا یستحق القاتل سلب المقتول بنفس القتل ما لم ینفل الامام قبل القتل فیقول من قتل قتیلا فلهٗ سلبه و هٰذا مذهب علمائنا. (الفتاوی الهندیة ج۲، ص۲۱۷، کتاب السیر، الباب الرابع، الفصل الثالث فی التنفل)

و قال العلامة الکاسانیؒ: هٰذا ازا نفل الامام فان لم ینفل شیئاً و قتل رجل من الغزاة قتیلاً لم یختص بسلبه عندنا. (بدائع الصنائع ج۷، ص۱۱۵، کتاب السیر) و مثله فی الهدایة ج۲، ص۲۶۳، کتاب السیر، باب الغنائم و قسمتها.

### له دار الحرب څخه د غنیمت د مالونو د راوړلو د نه قدرت درلودلو حکم

**سوال:** د جهاد په دوران کښې که چېرته مسلمانان د کفارو په ښو ډیرو مالونو او اسبابونو باندې قبضه وکړي او په هغو کښې ځینې داسې شیان هم وي چه دار الاسلام ته ئې انتقالول مشکل وي لکه د حیواناتو او داسې نور درانه شیان۔ نو آیا د داسې شیانو په باره کښې د شریعت څه حکم دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته نیول شوي شیان داسې وي چه دار الاسلام ته ئې انتقالول مشکل وي لکه حیوانات، درنه اسلحه او داسې نور نو د شریعت له مخې حیوانات دې اول ذبح

کړي او بيا دې په دار الحرب کښې پرېږدي تر څو چه کفار له هغو څخه فائده وا نه خيستلی شي او اسلحه او داسې نور دې په يو پټ ځای کښې ښخ کړي چه کفارو ته ئې معلومات و نه شي۔ بچي او ښځې دې په داسې ځای کښې پرېږدي چه له لوږې او تندې څخه مړه شي تر څو چه کفارو ته له هغو څخه تقويت حاصل نه شي او لوبښې او داسې نور دې ماتې کړي۔

كما قال العلامة التمرتاشيؒ: و حرم عقر دابة شق نقلها فتذبح و تحرق كما تحرق اسلحة امتعة تعذر نقلها و ما لا يحرق منها يدفن بموضع خفى و تكسر اوانيهم و تراق ادهانهم مغالظة لهم و يترك صبيان و نساء منهم شق اخراجها بارض خربة حتى يموتوا جُوعاً. (تنوير الابصار على صدر رد المحتار ج٤، ص ١٤٠، كتاب الجهاد، باب المغنم و قسمته)

قال العلامة الكاسانيؒ: و ان لم يقدر المسلمون على حمل هٰؤلاء و نقلهم الى دار السلام لا يحل قتلهم و يتركون فى دار الحرب لان لشرع نهى عن قتلهم و لا قدرة على نقلهم فيتركون ضرورة و اما الحيوان و السلاح اذا لم يقدروا على الاخراج الى دار السلام اما الحيوان فيذبح ثم يحرق با لنار لئلا يمكنهم الانتفاع به اما السلاح فما امكن احراقه بالنار يحرق و ما لا يحتمل الاحراق كا لحديد و نحوه فيدفن با لتراب لئلا يجدوه. (بدائع الصنائع ج٧، ص١٠٢، كتاب السير) و مثله فى الهندية ج٢، ص٢٠٨، كتاب السير، الباب الرابع فى الغنائم و قسمتها، الفصل الاول فى الغنائم.

## په دار الحرب کښې د مسلمان سوداګر د مال حکم

**سوال:** ځينې مسلمان تاجران په دار الحرب کښې د تجارت سامان راوړي او هلته ئې خرڅوي که چېرته مجاهدين د دوی په مال او سامانونو باندې قبضه وکړي نو آيا دا مال به مالِ غنيمت ګڼل کيږي او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** دار الحرب ته د تجارت مالونه مهيا کول د مسلمانانو لپاره ښه کار نه دی ځکه چه په دې سره کفارو ته تقويت حاصليږي کوم چه اعانت على المعصيت په جمله کښې راځي۔ او د مجاهدينو د مسلمانانو په مال باندې قبضه د غنيمت مال نه ګڼل کيږي بلکه د غنيمت مال هغه دی چه له کفارو څخه د توري په زور لاس ته راوړل شي۔

لما قال العلامة ابن عابدينؒ: الغنيمة اسمٌ لما يؤخذ من اموال الكفرة بقوّة الغزاة و قهر الكفرة. (رد المحتار ج٤، ص١٣٧، كتاب الجهاد و المغنم)

و قال العلامة الكاسانيؒ: فا لغنيمة عندنا اسم للماخوز من اهل الحرب على سبيل القهر و الغلبة. (بدائع الصنائع ج٧، ص١١٧، كتاب السير) و مثله فى الهندية ج٢، ص٢٠٤، كتاب السير، الباب الرابع فى الغنائم، الفصل الاول فى الغنائم.

## د غنيمت په مال کښې خيانت حرام دی

**سوال:** د غنيمت په مال کښې خيانت کول شرعا څه حکم لري۔ په قرآني آيتونو او نبوي ﷺ احاديثو کښې ئې کومه يادونه شته او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د غنيمت په مال کښې خيانت کول شرعا حرام دي او دا د مسلمانانو له شان سره نه ښايي چه د غنيمت په مال کښې دې خيانت وکړي ځکه چه د هغه په حراموالي



باندې قرآني ايتونه او نبوي ﷺ احاديث راغلي دي۔

لقوله تعالى: وَ مَا كَانَ لِنَبِيٍّ اَنْ يَّغُلَّ وَ مَنْ يَّغْلُلْ يَاْتِ بِمَا غَلَّ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ ثُمَّ تُوَفّٰى كُلُّ نَفْسٍ مَّا كَسَبَتْ وَ هُمْ لَا يُظْلَمُوْنَ (سورة آل عمران آيت ١٦١)

و فى الحديث: عن ابن عباسؓ يقول حدثنى عمر ب الخطابؓ قال قيل لرسول اللهﷺ ان فلاناً قد استشهد قال كلا قدر رأيته فى النار بعباء ة قد غلّها قالٌ قُم يا عمر فناد انهٗ لا يدخل الجنة الا المؤمنون ثلاثا. هٰذا حديث حسن غريب. (ترمذى ج١، ص ٩١، باب ما جاء فى الغلول) و مثله فى ابى داؤد ج٢، ص ١٤، باب فى تعظيم الغلول، كتاب الجهاد.

## د غنيمت د لاس ته راوړو په نيت سره د جهاد کولو حکم

**سوال:** د مالِ غنيمت د حصول په نيت سره په جهاد کښې د حصې په اخيستلو سره د ثواب اميد کيدلی شي او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د يوه سړي که چېرته جهاد ته د تللو اصلي مقصد د مال غنيمت لاس ته راوړل وي نو هغه ته د جهاد ثواب نه ورکول کيږي۔ هو که چېرته اصلي مقصد ئې جهاد او د الله تعالى رضا وي ليکن ورسره ورسره ئې د مال غنيمت اراده هم وي نو د ثواب اميد ئې شته چه الله تعالى به ثواب ورکوي۔

لما فى الحديث: عن ابى هريرةؓ ان رجلا قال يا رسول الله رجل يريد الجهاد فى سبيل الله و هو يبتغى غرضٌ من غرض الدنيا فقال عليه السلام لا اجر لهٗ فاعظم ذٰلك على الناس و قال للرجل عد لرسول اللهﷺ فلعلك تم نفهمه فقال يا رسول اللهﷺ رجل يريد الجهاد فى سبيل الله و هو يبتغى غرضاً من غرض الدنيا قال لا اجر لهٗ فقالوا للرجل عد لرسول اللهﷺ فقال له الثالثة فقال لا اجر له. (سنن ابى داؤد ج١، ص٣٤٨، كتاب الجهاد، باب فيمن يغز و يلتمس الدنيا)

و قال العلامة ابن عابدينؒ: ثم تأويله من وجهين احدهما ان يرى انهٗ يريد الجهاد و مراده فى الحقيقة المال فهٰذا كان حال المنافقين و لا اجر له او يكون معظم مقصوده المال و فى مثله قال عليه السلام للذى استوجر على الجهاد بدينارين انما لك دينارك فى الدنيا و الآخرة و اما اذا كان معظم مقصوده الجهاد يرغب معه الغنيمة فهو داخل فى قوله تعالى: لَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ اَنْ تَبْتَغُوْا فَضْلاً مِّنْ رَّبِّكُمْ. يعنى التجارة فى الحج فكما انهٗ لا يحرم ثواب الحج فكذا الجهاد. (رد المحتار ج٤، ص ١٢٠، كتاب الجهاد، مطلب فيمن يريد الجهاد مع الغنيمة)

## د شهيد وارثانو ته د غنيمت په مال کښې د حصه ورکولو حکم

**سوال:** که چېرته يو مجاهد له کفارو سره د جنګ په دوران کښې شهيد شي نو آيا د هغه وارثانو ته د غنيمت په مال کښې حصه ورکول کيږي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** مجاهدين چه کله په مال غنيمت باندې قبضه وکړي او دار السلام ته ئې راوړي او يا ئې تقسيم کړي او له هغه نه وروسته څوك شهيد شي نو په داسې حالت کښې د هغه حصه ئې وارثانو ته ورکول کيږي او که چېرته څوك په دار الحرب کښې شهيد شي او يا د غنيمت د مال څخه مخکښې شهيد شي نو په داسې صورت کښې ئې وارثانو ته حصه نه ورکول کيږي۔

لما قال العلامة المرغيناني رحمه اللّٰه: و من مات من الغانمين فی دار الحرب فلا حق لهٗ فی الغنيمة و من مات منهم بعد اخراجها الٰی دار السلام فنصيبه لورثته لان الارث يجری فی الملك و لا ملك قبل الاحراز و انما الملك بعدهٗ. (الهداية ج۲، ص۲٦٤، كتاب السير، باب الغنائم و قسمتها)

و قال العلامة التمرتاشی رحمه اللّٰه: و لا من مات ثمة قبل قسمة او بيع و لو مات بعد احدهما ثمة او بعد الاحراز بدارنا يورث نصيبه لتاكد ملكه. (تنوير الابصار علی هامش ردّ المحتار ج٤، ص۱٤۲، كتاب الجهاد باب المغنم) و مثله فی الهندية ج۲، ص۲۰۸، كتاب السير، الباب الرابع فی الغنائم، الفصل الاول فی الغنائم.

## د غنیمت په مال کښې د ښځو د حصې حکم

**سوال:** که چېرته په جهاد کښې ښځې هم شریکې وي یعنې هغوی زخمیانو ته ئې اوبو ورکولې او یا ئې زخمیانو ته پټۍ ور لګولې نو د غنیمت په مال کښې هغو ته حصه ورکول کېږي او که نه؟ په د اسې حال کښې چه له سړو سره په دې جهاد کښې تر آخره پورې شریکې وي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د ا مسئله د امت د علماوو په نزد مختلف فیه ده څینې حضرات ښځو ته هم د سړیو په شان برابر او مساوي په مال غنیمت کښې د حصې ورکولو قائل دي او حال د ا چه د حنفي او نورو علماوو د هغو لپاره د سړیو سره د مساوي او برابرو حصو قائل نه دي۔ بیا هم د ا د وخت د حاکم په صوابدید پورې اړه لري چه هغه څومره مناسب وبولي ښځو ته دې د غنیمت له مال څخه څه ورکړي۔

لما قال العلامة ظفر احمد العثمانیؒ: قال فی الهداية و الكفاية و لا يسهم المملوك و لا امرأة و لا صبی و لا ذمی و لكن يرضخ لهم ای يعطون قليلاً من كثير فان المرضخة هی الاعطاء كذٰلك فا لرضخ لا يبلغ السهم و لكن دونه علی حسب ما يراه الامام. (اعلاء السنن ج۱۲، س۱۹۰، باب لا يسهم المملوك و لا امرأة الخ)



# بـــــاب المستأمن

## (په د ار الاسلام کښې د اوسیدونکو کفارو احکـــام او مسائل)

## د د ار الاسلام د جوړیدو لپاره شرائط

**سوال:** له یوه ملك څخه د د ار الاسلام د جوړیدو لپاره څه شرائط دي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د فقهاء کرامو په دې خبرې باندې اتفاق دی چه له د ار الحرب څخه د د ار الاسلام د جوړیدو لپاره یو شرط د ا دی چه په احکامو کښې د اسلام ظهور وشي نو هغه به د ار الاسلام ګڼل کیږي۔

لما قال العلامة الحصكفیؒ: و دار الحرب تصير دار الاسلام باجراء احكام اهل الاسلام فيها كجمعةٍ و عيدٍ. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۳، ص۲۷۷، كتاب الجهاد، قبل باب العشر و الخراج و الجزية)

و قال العلامة الكاسانیؒ: لا خلاف بين اصحابنا فی ان دار الكفر تصير دار الاسلام بظهور احكام الاسلام فيها. (بدائع الصنائع ج۷، ص۱۳۰، كتاب السير) و مثله فی الهندية ج۲، ص۲۳۲، كتاب السير، الباب الخامس فی استلاء الكفار.

## د د ار الحرب د جوړیدو لپاره شرائط

**سوال:** د د ار الاسلام څخه د د ار الحرب د جوړیدو کوم شرطونه دي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** له د ار الاسلام څخه د د ار الحرب د جوړیدو لپاره د فقهاء کرامو تر منځ اختلاف دی۔ د امام ابو حنیفه رحمه الله په نزد د دریو شرطونو موجودیدل ضروري دي۔

﴿۱﴾ دا چه د کفر احکام پکښې ظاهر شي۔

﴿۲﴾ دا چه د د ار الکفر سره متصل شي۔

﴿۳﴾ دا چه مسلمان او ذمي پخپل امن کښې پاتې نه شي بلکه د کفارو په امن کښې د اخل شي او د صاحبینو رحمهما الله په نزد د د ار الحرب د جوړیدلو لپاره یو اځې یو شرط دی او هغه دا چه د کفر د احکامو ظهور وشي۔

لما قال العلامة الكاسانی رحمه اللّٰه: قال ابو حنيفةؒ انها لا تصير دار الكفر الا بثلٰث شرائط احدها ظهور احكام الكفر فيها و الثانی ان تكون متاخمة دار الكفر و الثالث ان لا يبقی فيها مسلمٌ دار الكفر بظهور احكام الكفر فيها. (بدائع الصنائع ج۷، ص۱۳۰، فصل الاحكام تختلف باختلاف الدارين)

و فی الهندية: قال محمدؒ فی الزيادات انما تصير دار الاسلام دار الحرب عند ابی حنيفةؒ بشروط ثلٰثة احدها اجراء احكام الكفار علی سبيل الاشتهار و ان لا يحكم فيها بحكم الاسلام و الثانی ان تكون متصلَة بدار الحرب لا يتخلل بينهما بلد من بلاد الاسلام و الثالث ان لا يبقی فيها مؤمن و لا ذمیٌ امناً بامانه الاول الذی كان ثابتاً قبل استيلاء الكفار للمسلم باسلامه و للذمی بعقد الذمة و قال ابو يوسفؒ و محمدؒ بشرط واحد لا غير و هو اظهار احكام الكفر و هو القياس. (الفتاوی الهندية ج۲، ص۲۳۲، كتاب السير، الباب الخامس فی استيلاء الكفار) و مثله فی تنوير الابصار علی هامش رد المحتار ج۲، ص۲۷۷، كتاب السير، كتاب الجهاد، قبل باب العشر و الخراج و الجزية.

## د سمندر په دار الحرب کښې داخلیدل

**سوال:** نن صبا په جغرافیایي تقسیم کښې د سمندر څه حصې د نژدې ممالکو په قبضه کښې دي چه په هغه کښې د بل ملك له اجازې پرته داخلیدل د سمندري حدودو خلاف ورزي ګڼل کیږي. اوس سوال دا دی چه آیا د کفري ممالکو سره سمندر هم د دار الحرب په حکم کښې داخیدلی شي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** کله چه کفار د مسلمانانو د کوم ملك په لاندې کولو سره د هغه ځای په سمندري حدودو باندې هم قبضه وکړي او له اسلامي بلادو څخه د هغه ملك تعلق ختم کړي نو د هغه ملك سمندري حدود هم حکماً په دار الحرب کښې شاملیږي۔

لما قال العلامة ابن عابدینؒ: قوله و احرزوها دارهم و یلحق بها البحر الملح و نحوهٗ کمفازة لیس ورائها بلاد الاسلام نقله بعضهم عن الحموه و فی حاشیة ابی السعود عن شرح النظم الهاملی سطح البحر لهٗ حکم دار الحرب. (رد المحتار ج۳، ص۲۶۶، کتاب الجهاد، باب استیلاء الکفار)

## په دار الاسلام کښې د یوه حربي په امن کښې د پاتې کیدو موده

**سوال:** یو کافر په اسلامي حکومت کښې تر څومره وخته پورې د اجازې په حاصلولو سره پاتې کیدلی شي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د کفارو اخلاق او عاداتو ته په کتو سره هر وخت له هغو څخه اسلامي معاشره په خطره کښې وي نو ځکه دوی ته له یو کال څخه زیات وخت په اسلامي ملك کښې د اوسیدو اجازه نه وي. بیا هم که د وخت حاکم ئې مناسب وبولي نو د زیات وخت لپاره د اسیدو اجازه ورکولی شي۔

لما قال العلامة الحصکفیؒ: لا یمکن حربی مستأمن فینا سنة لئلا یصیر عیناً لهم دعونا علینا و قیل لهٗ ان اقمت سنة وضعنا علیك الجزیة فان مکث سنة فهو ذمیٌّ. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۳، ص۲۷۲، کتاب الجهاد، فصل فی استئمان الکافر)

و قال العلامة المرغینانی رحمه اللّٰه: و اذا دخل الحربی الینا مستأمنا لم یکن ان یقیم فی دارنا سنة و یقول له الامام ان اقمت تمام السنة وضعت علیك الجزیة. (الهدایة ج۲، ص۲۷۸، کتاب السیر، باب المستأمن) و مثله فی بدائع الصنائع ج۷، ص۱۱۰، فصل من یسع ترکه فی دار الحرب.

## له کافرو قیدیانو سره د اسلام د مجاهدینو چلن

**سوال:** د جهاد په دوران کښې که چېرته مجاهدین څه کفار ونیسي او همدارنګه کفارو هم ځینې مسلمانان بندیان کړي وي. نو آیا مجاهدین به د کفارو له قیدیانو سره څه ډول معامله کوي؟ آیا هغوی دې قتل کړي او که د مسلمانو قیدیانو سره دې تبادله کړي او کې فدیې پرې واخلي او خلاص ئې کړي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د جهاد په وخت کښې کله چه کفار د مجاهدینو په لاس قیدیان شي نو



د وخت د حاکم مرضي دی که قتلوي ئې یا غلامان ترې جوړوي او یا په هغو باندې د ذمي احکام جاري کوي او پریږدي ئې. د امام ابوحنیفه رحمه اللّٰه په نزد د دښمن په قید کښې د مسلمانانو بندیانو په بدله کښې غیر مسلم بندیان به نه آزادیږي او حال دا چه د صاحبینؒ په نزد له هغو څخه د فدیې اخیستلو په ځای دې باید مسلمان بندیان آزاد کړی شي۔

لما قال العلامة برهان الدین المرغینانی رحمه اللّٰه: و هو فی الاسارٰی با لخیار ان شاء قتلهم...... و ان شاء استرقهم و ان شاء ترکهم احراراً ذمة للمسلمین...... الٰی ان قال و لا یفادی با لاسارٰی عند ابی حنیفةؒ و قالا یفادی بهم اساری المسلمین. (الهدایة ج۲، ص۲۶۱، کتاب السیر، باب الغنائم)

قال العلامة ابن عابدین رحمه اللّٰه: و قتل الاسارٰی ان شاء ان لم یسلموا و استرقهم او ترکهم احراراً ذمة لنا الا مشرکی العرب و المرتدین کما سیجیء و حرم منهم ای اطلاقهم مجاناً و لو بعد اسلامهم ابن کمال لتعلق حق الغانمین و جوزه الشافعی لقوله تعالٰی: فَاِمَّا مَنًّۢا بَعْدُ وَ اِمَّا فِدَآءً حَتّٰی تَضَعَ الْحَرْبُ اَوْزَارَهَا قلنا نسخ بقوله فَاقْتُلُو الْمُشْرِکِیْنَ حَیْثُ وَجَدْتُّمُوْهُمْ. شرح مجمع و حرم فدائهم بعد تمام الحرب و اما قبله فیجوز با لمال لا با لاسیر المسلم درر و صدر الشریعة و قالا یجوز و هو اظهر الروایتین عن الامام شمنی. (رد المحتار ج۳، ص۲۵۱، کتاب الجهاد، باب المغنم و قسمته)

## له اجازې نه بغیر د حربي دار الاسلام ته د داخلیدلو حکم

**سوال:** آیا د اجازه نامې یعنې قانوني اسنادو نه پرته که چېرته یو حربي دار الاسلام ته داخل شي نو هغه ته به سزا ورکول کیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** کله چه ملك کښې د دار الاسلام شرائط پوره وي او هلته اسلامي حکومت وي نو د حربي په نوموړي ملك کښې د حکامو له اجازې پرته داخلیدل د دې خبرې دلیل دی چه د کفارو له خوا جاسوسي ته راغلی دی. په داسې حالت کښې د سزا په توګه دې هغه غلام جوړ کړی شي۔

لما قال العلامة ابن عابدین رحمه اللّٰه: قید با لمستأمن لانهٗ لو دخل دارنا بلا امان کان و ما معه فیأ و لو قال دخلت بامان الا ان یثبت. (رد المحتار ج۴، ص۲۷۲، کتاب الجهاد، فصل فی استئمان الکافر)

و قال العلامة ابن نجیمؒ: لانه لو دخل دارنا بلا امان فهو و ما معه فیء فان قال دخلت بامان لم یصدق و اخذ. (البحر الرائق ج۵، ص۱۰۱، باب المستأمن) و مثله فی فتح القدیر ج۵، ص۲۷۱، کتاب السیر، باب المستأمن.

و قال العلامة ابن نجیمؒ: لانه لو دخل دارنا بلا امان و ما معه فیء فان قال دخلت بامان لم یصدق و اخذ. (البحر الرائق ج۵، ص۲۷۱، کتاب السیر، باب المستأمن.

## افغانستان دار الحرب دی او که دار الاسلام

**سوال:** جناب مفتي صاحب! د افغانستان د جهاد په وخت کښې افغانستان دار الحرب وو او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** فقهاء کرامو د یو ملك د دار الحرب د جوړیدو لپاره چه د کومو شرائطو لحاظ کړی دی هغه د جهاد په وخت کښې په افغانستان کښې په مکمله توګه موجود نه وو نو ځکه دا خبره چه افغانستان دار الحرب وو صحیح نه دی۔

لما قال العلامة بدر الدین محمود بن اسمٰعیل رحمه اللّٰه: لا تصیر دار حرب الا باجراء احکام الشرك و

اتصالها بدار الحرب بان لا يكون بينها و بين دار الحرب مصر للمسلمين و ان لا يبقى فيها مسلم او ذمى آمنا على نفسه با لامان الاوّل لا يبقى آمنا الا بان المشركين و عندهما باجراء احكام الشرك تصير دار حرب اتصلت اولا و بقى احد با لامان الاول اولا. (جامع الفصولين ج۱، ص۱۳، كتاب السير)

و قال العلامة التمرتاشىؒ: لا تصير دار الاسلام دار حرب الا بامور ثلاثة باجراء الاحكام اهل الشرك و باتصالها بدار الحرب و بان لا يبقى فيها مسلم او ذمىّ امنا با لامان الاوّل. (تنوير الابصار على هامش رد المحتار ج٤، ص۲۷۷، كتاب الجهاد، فصل استئمان الكافر) و مثله فى الهندية على هامش الهندية ج٦، ص۳۱۲، كتاب السير، باب الرابع فى المرتد و ما يصير الكافر به مسلماً.

## په اسلامي مملكتونو كښې د كافرو لپاره د نوي عبادت ځايونو د جوړولو حكم

**سوال:** په يوه اسلامي ملك كښې چه كله كفار اوسيږي نو آيا هغو ته د ځانونو لپاره د نوي عبادت ځايونو د جوړولو شرعا اجازه شته او كه نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په هيڅ يوه اسلامي ملك كښې هم اوسيدونكي كفار د خپلو ځانونو لپاره د نوي عبادت ځايونو د جوړولو شرعا اجازه نه لري۔ البته د هغو د مخكښيني عبادت ځايونو د حفاظت ذمه وار اسلامي مملكت دى۔

لما قال العلامة التمرتاشى رحمه اللّٰه: و لا يحدث بيعةٌ و لا كنسيةٌ و لا صومعة و لا بيت نار و لا مقبرة فى دار الاسلام و لو قرية فى المختار. (تنوير الابصار على هامش رد المحتار ج٤، ص۲۹٦، كتاب الجهاد، فصل فى الجزية)

و قال العلامة الكاسانى رحمه اللّٰه: و اما الكنائس و البيع القديمة فلا يتعرض لها و لا ينهدم شىء منها و اما احداث كنسية اُخرىٰ يمنعون عنه فيما صار مصراً من امصار المسلمين لقوله عليه السلام لا كنسية فى الاسلام الاّ فى دار الاسلام. (بدائع الصنائع ج۷، ص۱۱٤، كتاب السير) و مثله فى الهندية ج۲، ص۲٤۷، كتاب السير، الباب الثامن فى الجزية.

## په دار الاسلام كښې د عيسائيت د تبليغ حكم

**سوال:** نن صبا په پاكستان كښې عيسايان په آزاده توګه په عامو بازارونو كښې د عيسائيت تبليغ كوي۔ نو آيا اسلام د دې خبرې اجازه وركوي چه يو كافر دې په اسلامي ملك كښې د خپل مذهب په آزاده توګه تبليغ وكړي؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** اسلام د دې خبرې هيڅكله اجازه نه وركوي چه يو كافر دې په آزاده توګه په مسلمانانو كښې د خپل مذهب تبليغ وكړي بلكه د وخت په مسلمان حاكم باندې دا لازم دي چه دوى له د اسې عمل څخه منع كړي۔ تر كومه ځايه پورې چه په دار الاسلام كښې د دوى د مذهبي آزادي تعلق دى نو هغه يوائې د هغوى تر خپلو مذهبونو پورې محدود دى آن تر دې چه هغوى به په جګ آواز سره د خپل مذهبي كتاب تلاوت هم په دار الاسلام كښې نه كوي۔

لما قال العلامة ظفر احمد العثمانىؒ: و قد حكىٰ ابن تيميةؒ: اجماع الفقهاء و سائر الائمة رحمهم اللّٰه على مراعاة تلك الشروط قال و لو لا شهرتها عند الفقهاء لذكرنا الفاظ كل طائفة فيها... و من جملة الشروط ما يعود باخفاء منكرات دينهم و ترك اظهارها كمنعهم من اظهارها الخمر و الناقوس و النيران و الاعياد و نحو ذٰلك ومنها ما يعود باخفاء شعائر دينهم كاصواتهم بكتابهم. (اعلاء السنن ج۱۲، ص٤۸۸، باب شروط اهل الذمة و ما يجوز لهم فى دارنا و ما لا يجوز لهم)



# بـــــاب المعاملات مع الكفـــــار

## (له كفارو سره د معـــــاملاتو احكام او مسئلې)

## كفارو ته د ســـــلام اچولو حكم

**سوال:** زه د كافرو په يوې كمپنۍ كښې ملازم يم هلته زما يو څو عيسايان او هندوان ملګري دي آيا زه په هغو باندې سلام اچولی شم او كه نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په هر كافر باندې د سلام ابتداء ممنوع دى ځكه چه چا ته هم ته اول سلام اچوې نو د هغه د عزت لحاظ كيږي په داسې حال كښې چه د مسلمان لپاره دا مناسب نه دي چه د كوم كافر عزت او عظمت په ده باندې غالب وي۔ بيا هم د ضرورت په وخت كښې په هغو باندې په مناسبو الفاظو سره سلام اچول مرخص دي۔

لما قال العلامة علاؤ الدين الحصكفىؒ: و يحرم تعظيمه و تكره مصافحة و لا يبدأ با لسلام الا لحاجة. (الدر المختار على هامش رد المحتار ج۳، ص۲۸۳، كتاب الجهاد)

قال العلامة ابن البزاز الكردرى رحمه اللّٰه: و فى السير لا بأس بردّ سلام اهل الذمة و النهى عن البداْة الا اذا كان محتاجاً اليه فلا بأس بها ايضاً و لكن يكره مصافحهم. (الفتاوى البزازية على هامش الهندية ج٦، ص۳۵۵، كتاب الكراهية، فصل نوع فى السلام) و مثله فى البحر الرائق ج۵، ص۱۱۳، كتاب الجهاد، فصل فى الجزية، فروع فى الجزية.

## كفارو ته د سلام ځواب وركول

**سوال:** كفارو ته د سلام د ځواب وركولو شرعي طريقه څنګه ده آيا هغو ته د سلام ځواب وركول كيږي او كه نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** كافر ته د سلام په ځواب كښې يوائې د "و عليك" ويل كافي دي۔ بيا هم كه چېرته د يوه كافر د سلام په ځواب كښې له الله تعالى څخه هغه ته د هدايت غوښتنه وكړي او د اسې ځواب وركړي چه "و السلام على من اتبع الهدىٰ" نو ښه به وي۔

لما فى الهندية: و اذا كان لهٗ حاجة فلا بأس برد سلام على اهل الذمة و لكن لا يزاد على قوله و عليكم. قال الفقيه ابوالليثؒ ان مررت بقوم و فيهم كفار فانت با لخيار انهٗ شئت قلتُ السلام عليكم و تريد به المسلمين و ان شئت قلت السلام على من اتبع الهدىٰ كذا فى الذخيرة. (الفتاوى الهندية ج۵، ص۳۲۵، كتاب الكراهية، الباب السابع فى السلام الخ)

## كفارو ته د عبادت ځايونو لاربښوونه كول

**سوال:** كه چېرته يو كافر له كوم مسلمان څخه د خپل عبادت د ځاى په باره كښې د معلوماتو حاصلول وغواړي نو آيا د مسلمان لپاره جائز دي چه د نوموړي كافر لاربښوونه وكړي؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** چونکه په د اسې امورو کښې د کافر په رهبري سره د هغوی د اصلاح په ځای د بې دیني او کفر د تقویت او مضبوتیا امکان وي نو ځکه د کفارو سره په د اسې معاملاتو کښې معاونت د تعاون علی المعصیت سره برابره ده۔

قال الله تبارك و تعالٰی: وَ لَا تَعَاوَنُوا عَلَى الْاِثْمِ وَ الْعُدْوَانِ. (سورة المائدة، آیت ۲)

و قال العلامة قاضی خانؒ: ذمّی سأل مسلما عن طریق البیعة لا ینبغی للمسلم ان یدله علی ذٰلك لانهٗ اعانة علی المعصیة. (فتاوی قاضی خان علی هامش الهندیة ج۳، ص ۵۹۱، الباب الثانی فی الوكالة با لبیع، كتاب الوكالة)

قال العلامة قاضی خان رحمه الله: اذا سلم الیهودی او النصرانی او المجوسی علی مسلم. قال محمد رحمه الله یقول المسلم و علیك ینوی بذٰلك السلام لحدیث مرفوع الی رسول الله ﷺ انه قال اذا سلموا علیكم فردوا علیهم. (فتاوی قاضی خان علی هامش الهندیة ج۳، ص۲۸۳، كتاب الكراهیة) و مثله ف الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۳، ص۲۸۳، كتاب الجهاد.

## د کفارو قدر او عزت کول

**سوال:** که چېرته یو کافر د کوم مسلمان میلمه شي نو د مسلمان لپاره په محفل کښې د هغه د عزت په خاطر دریدل او ولاړیدل جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** له کفارو سره په مد اراتو یعني د معاشرتي تعلقاتو لرلو کښې څه حرج نشته۔ که چېرته د ا نسته ولاړه په معاشره کښې له کوم مذهبي او عقیدوي امتیاز پرته د یوه میلمه حق بلل کیده نو په د اسې حالت کښې د اسې تعلقات قائمول جائز دي۔ همد ارنگه د یوه کافر له شر او فساد څخه د بچ کیدو په خاطر هم له هغوی سره معاشرتي تعلقات قائمول جائز دي بلکه د د اسې تعلقاتو څخه که چېرته د ا توقع وي چه هغه کافر اسلام قبلوي نو هغه دې د خپلو منصبي فرائضو تقاضا وبولي۔ بیا هم که چېرته د عزت او توقیر په وجه د کفارو د مذهب او عقیدې او یا د هغوی د غیر اسلامي شعار عزت او توقیر مقصود وي نو بیا د مسلمان لپاره د ا ډول تعلقات جائز نه دي۔

قال العلامة ابن عابدینؒ: وجب علی المسلم عدم تعظیم لٰكن قال فی الذخیرة اذا دخل یهودی الحمام ان خدمه المسلم طمعاً فی فلوسه فلا بأس به و ان تعظیماً له فان كان لیمیل الی الاسلا فكذٰلك و ان لم ینوی شیئاً كره و ان قام تعظیماً لذاته و ما هو علیه كفر لان رضا با لكفر كفر فكیف بتعظیم الكفر قلت و به علم انه لو قام لهٗ خوفاً من شرّه فلا بأس بل اذا تحقق الضرورة فقد یجب و قد یستحب علی حسب حال ما یتوقعه. (رد المحتار ج۳، ص۲۸۳، كتاب الجهاد)

و فی الهندیة: اذا دخل ذمیّ علی مسلم فقام له ان قام طمعاً فی میلهٖ الی الاسلام فلا بأس بهٖ و ان فعل ذٰلكَ تعظیماً لهٗ من غیر ان ینوی شیئاً ما ذكرنا او قام طمعاً لغناه كره ذٰلك. (الفتاوی الهندیة ج۵، ص۳۴۸، كتاب الكراهیة، الباب الرابع عشر فی اهل الذمة و الاحكام الخ) و مثله فی البحر الرائق ج۵، ص۱۱۴، كتاب الجهاد.



## د کفارو په لوښو کښې د خوړلو او څښلو حکم

**سوال:** د یوه مسلمان لپاره د کفارو او مشرکینو په لوښو کښې خوړل او څښل جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د کفارو د لوښي کودي له استعمال څخه مخکښې نبه پریمینځی او له مینځلو مخکښې د دوی په لوښو او کودو کښې خوړل څښل مکروه دي۔ بیا هم که چېرته له مینځلو پرته خوراك او څښاك پکښې وکړي نو له کراهیت سره جائز دي۔ او د اسې سړی په حرام خوړونکو کښې نه حسابیږي خو په دې شرط چه د نجس والي علم ورته نه وي او که چېرته د نجس والي علم ورته وي نو له پریمینځلو څخه مخکښې د دوی په لوښو کښې خوراك او څښاك کول ناجائز دي۔

لقوله علیه الصلٰوة و السلام: تأكل فی انیتهم فان وجدتم غیر انیتهم فلا تأكلوا فیها فان لم تجدوا فاغسلوها ثم كلوا فیها. (صحیح بخاری ج۲، ص۸۲۵، كتاب الذبائح، باب ما جاء فی الصید)

قال شیخ الاسلام حافظ الدین البزازؒ: و الاكل و الشرب فی اوانی المشركین یكره و الاكل مع الكفار لو ابتلی به المسلم لا بأس لو مرة او مرّتین اما الدوام علیه یكره. (الفتاوی البزازیة علی هامش الهندیة ج۶، ص۳۵۹، كتاب الكراهیة، الثالث فیما یتعلق با لمناهی)

## له کفـــــارو سره یو ځای د خوراك او څښاك د کولو حکم

**سوال:** له کافرو سره په یوه کاسه کښې خوراك او څښاك کول جائز دي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په کفارو کښې چه ترڅو پورې ظاهري نجاست نه وي نو له هغوی سره په یوه لوښي کښې خوراك او څښاك جائز دي۔ بیا هم د اعتقادي اختلاف په وجه د کراهیت باعث دی۔

و فی الهندیة: و لم یذكر محمدؒ الاكل مع المجوس و مع غیره من اهل الشرك انهٗ هل یحل ام لا و حكی عن الحاكم الامام عبد الرحمٰن الكاتب انهٗ ان ابتلی به مسلم مرة او مرتین لا بأس به و اما الدوام علیه فیكره كذا فی المحیط. (الفتاوی الهندیة ج۵، ص۳۴۷، كتاب الكراهیة، الباب الرابع عشر فی اهل الذمة و الاحكام التی تعود الیهم)

قال شیخ الاسلام حافظ الدین البزازؒ: و الاكل مع الكفار لو ابتلی به المسلم لا بأس لو مرة او مرّتین اما الدوام علیه یكره. (الفتاوی البزازیة علی هامش الهندیة ج۶، ص۳۵۹، كتاب الكراهیة، الثالث فیما یتعلق با لمناهی)

## د کافرو مــــــزدوري

**سوال:** کفري ممالکو ته د پاکستان خلك د روزگار لپاره ځي او هلته د غیر مسلمو سره مزدوري کوي نو آیا د کافرو سره مزدوري یا ملازمت کول جائز دي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د کافر مزدوري په د اسې توگه کول چه له وجهې ئې د اسلام او مسلمانانو توهین نه کیده نو جائز دي او که چېرته پکښې د اسلام او یا د مسلمانانو یو ډول

توهین کیده نو بیا د کفارو د اسې مزدوري او ملازمت جائز نه دی۔

لما فی الحدیث: لان خباب بن الارتؓ عمل لعاص بن وائلؓ باجرة و لم ینکر علیه النبی ﷺ. (صحیح بخاری ج۱، ص۳۰۴، باب الاجارة)

قال العلامة طاهر بن عبد الرشید البخاریؒ: المسلم اذا اجر نفسه من الکافر لیخدمه جاز و یکره قال الفضلؒ لا یجوز فی خدمة و ما فیه اضلال بخلاف الزراعة و السقی. (خلاصة الفتاوی ج۳، ص۱۴۹، کتاب الاجارة) و مثله فی البزازیة علی هامش الهندیة ج۵، ص۱۲۵، کتاب الاجارة.

## د هندوانو د متروکه جائدادونو حکم

**سوال:** له کفارو څخه مثلا د هندوانو او د اسې نورو د متروکه مال د مصرف صحیح ځای کوم دی؟ برسیره پر دې چه کوم کفار له یوه ځایه څخه ځي او جائدادونه ئې پاتې کیږي نو د شریعت له مخې د د اسې جائدادونو د مصرف صحیح ځای کوم دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د غیر مسلمو جائداد او اموال په کار دي چه بیت المال کښې جمع شي او همدارنګه کوم مال چه له کفارو څخه بغیر له جنګ نه تر لاسه شي او یا کوم مال چه مسلمان عاشر اخلي د هغو د مصرف صحیح ځای د مسلمانانو مصالح دي۔ مثلا د سرحداتو په حفاظت کښې ئې مصرفول، په دریابونو او نهرونو باندې د پلونو په جوړولو کښې مصرفول، د علماوو، طلباوو او قاضیانو وظیفې پرې پوره کول، د اسلامي فوج تنخواه ګانې ترې ورکول، د هغوی د اهل او عیال په فلاح او بهبود باندې ئې مصرفول او د اسې نور۔

قال العلامة محمد بن عبد الله التمرتاشیؒ: و مصرف الجزیة و الخراج و مال التغلبی و هدیتهم للإمام و انما یقبلها اذا وقع عندهم ان قتالنا للدین لا الدیا جوهرة و ما اخذ منهم بلا حرب و منه ترکة ذمی و ما اخذه عاشر منهم ظهیریة مصالحنا. (تنویر الابصار علی هامش رد المحتار ج۳، ص۳۰۶، باب العشر و الخراج و الجزیة)

و قال الامام عبد الله بن احمد محافظ الدین النسفیؒ: و ما اخذ منهم بلا قتال یصرف فی مصالحنا کسد الثغور و بناء القناطیر و الجسور. (کنز الدقائق علی هامش البحر الرائق ج۵، ص۱۱۷، کتاب الجهاد) و مثله فی الهدایة ج۲، ص۵۹۹، کتاب الجهاد.

## د اهل کتابو نه علاوه د نورو کفارو د ذبیحې حکم

**سوال:** په یوه د اسې ملك کښې چه ځناور په شرعي توګه نه ذبح کیده نو د مسلمانانو لپاره د هغه ځای د کفارو د لاس د ذبیحې د خوړلو څه حکم دی؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د اهل کتابو نه پرته د نورو کفارو ذبیحه مطلقا حرامه ده۔ که ذبحه کوونکی هندو وي او که سِك یا مجوسي او که پارسي په هیڅ حال کښې هم د دوی ذبیحه حلاله نه ده۔

قال العلامة ابو بکر الحداد الیمنیؒ: و لا توکل ذبیحة المجوسی و المرتد و الوثنی لان المرتد لا ملة له و الوثنی



مثله و اما المجوس فلقوله علیه السلام سنوابهم سنة اهل الکتاب غیر ناکحی نسائهم و لا اکل ذبائحهم الحدیث. (الجوهرة النیرة ج۲، ص۲۴۶، کتاب الذبائح)

قال العلامة ابن نجیمؒ: لا مجوسی و وثنی و مُرتد و محرم و تارك التسمیة عمدا یعنی لا تحل ذبیحة هٰؤلاء. (البح الرائق ج۸، ص۱۶۸، کتاب الذبائح) و مثله فی الهدایة ج۴، ص۴۳۴، کتاب الذبائح.

## په اسلامي حکومت کښې د کفارو د مذهبي حقوقو حکم

**سوال:** په یوه اسلامي حکومت کښې کافرو ته تر کومه ځایه پورې مذهبي حقوق حاصل دي؟ آیا هغوی په دار الاسلام کښې خپل مذهبي عبادتونه او رسمونه ادا کولی شي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په هر یوه اسلامي حکومت کښې کفارو ته د ځان، مال، مذهبي آزادي تحفظ حاصل دی۔ لیکن که هغوی د مسلمانانو د ګمراه کولو لپاره د تقریر او تحریر طریقه اختیار کړي نو بیا ئې اسلامي حکومت له دې ډول اعمالو څخه منع کولی شي۔

لما فی الهندیة: و لیس للنصرانی ان یضرب فی منزله با لناقوس فی مصر المسلمین و لان یجمع فیه بهم انما له ان یصلّی فیه و لا ان یخرجوا الصلیب او غیر ذٰلك من کناسهم و لو رفعوا اصواتهم بقرأة الزبور و الانجیل ان کان فیه اظهار الشرك منعوا عن ذٰلك و ان لم یقع بذٰلك اظهار الشرك لا یمنعون و یمنعون عن قرأة ذٰلك فی اسواق المسلمین. (الفتاوی الهندیة ج۲، ص۲۵۱، کتاب السیر، الباب الثامن فی الجزیة)

قال العلامة عالم بن العلاء الانصاری رحمه الله: و لیس للنصرانی انه یضرب فی منزله با لناقوس فی مصر من امصار المسلمین. (الفتاوی التاتارخانیة ج۵، ص۴۵۱، کتاب الخراج) و مثله فی فتاوٰی قاضی خان علی هامش الهندیة ج۳، ص۵۸۹، کتاب السیر، فصل فی اهل الذمة.

## د غیــــــــر مسلم ممالکو څخه د راوړل شوي د خوراك او څښــــاك د شیانو د استعمال حکم

**سوال:** له کفري ممالکو څخه غوښه او ذبحه کړل شوي چرګان، د غوړیو او شیدو څخه جوړ شوي د خوراك او څښاك شیان پاکستان او نورو اسلامي ملکونو ته راوړل کیږي په د اسې حال کښې چه د غوښو په ډبو باندې لیکلي دي چه دا په اسلامي طریقې سره ذبحه شوي دي۔ نو آیا د مسلمان لپاره د د اسې شیانو استعمالول جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** له غوښو څخه پرته چه کوم حلال شیان له کفري ممالکو څخه راځي او حرام شیان لکه شراب او د خنزیر اجزاء پکښې شامل نه وي نو د د اسې شیانو خوړل او څښل جائز دي۔ البته که چېرته د غوښو په ډبو باندې په اسلامي طریقې سره د ذبحه کیدو لیکلي وي نو بیا ئې په خوړلو کښې هم څه حرج نشته او که چېرته د نورو قرائنو او ذرائعو له مخې د دغو الفاظو غلط والی ثابت شي نو بیا ئې خوړل ناجائز دي۔

و فى الهندية: من ارسل اجيرا له مجوسياً او خادماً فا شترىٰ لحما فقال اشتريته من يهودى او نصرانى او مسلم وسعه اكله....... رجل اشترى لحما فلما قبضه فاخبره مسلم ثقة انه قد خالطه لحم الخنزير لم يسعه ان يا كله. (الفتاوى الهندية ج۵، ص۳۰۹/۳۰۸، كتاب الكراهية، الباب الاول)

و قال العلامة فخر الدين حسن بن منصورؒ: مسلم اشترىٰ لحما و قبضه فاخبره ثقة انهٗ ذبيحة المجوس فانه لا ينبغى للمشترى ان ياكل و لا يطعم غيره لان المخبر اخبره بحرمة العين و بطلان الملك. (فتاوىٰ قاضى خان على هامش الهندية ج۳، ص۴۱۶، الباب السادس و العشرون) و مثله فى ردّ المحتار ج۵، ص۲۴۳، كتاب الحظر و الاباحة، باب الاستبراء.

## په اسلامي ملك كښې د كفارو د نوي عبادت ځايونو جوړول

**سوال:** په دار الاسلام كښې غير مسلم د خپلو ځانونو لپاره نوي عبادت ځايونه جوړولی شي او كه نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په دار الاسلام كښې كافرانو ته د نوي عبادت ځايونو د جوړولو اجازه نشته او خپل مخكښيني عبادت ځايونه جوړ او باقي ساتلی شي او د هغو خراب شوي ځايونه له سره هم جوړولی شي ليكن په خپل مخكښيني عبادت ګاه كښې نور زياتوالی نه شي كولی او همدا رنګه كه په كوم ښار كښې د كافرانو كوم عبادت ګاه ړنګه شي نو د هغې د بيا رغونې اجازه هم نشته۔

كما فى الهندية: ان اراد اهل الذمة احداث البيع و الكنائس او المجوس احداث بيت النار ان ارادو ذٰلك فى امصار المسلمين و فيما كان من فناء المصر منعوا عن ذٰلك عند الكل. (الفتاوى الهندية ج۲، ص۲۴۷، كتاب السير، الباب الثامن فى الجزية)

قال العلامة التمرتاشىؒ: و لا يجوز ان يحدث بيعة و لا كنيسة و لا صومعة و لا بيت نار و لا مقبرة. (تنوير الابصار على هامش رد المحتار ج۴، ص۲۰۲، كتاب السير) و مثله فى فتاوىٰ قاضى خان على هامش الهندية ج۳، ص۵۹۰، كتاب السير، فصل فى اهل الذمة ما يؤخذ الخ.

## د مسلمانانو جومات ته د كفارو د داخليدلو حكم

**سوال:** څو ورځې مخكښې د برطانيې شهزادګۍ پاكستان ته راغلې وه او بيا د حكومت په سرپرستي كښې د لاهور بادشاهي جومات ته راوستل شوه نو آيا يو كافر د مسلمانانو جومات ته داخليدلی شي او كه نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** كله چه كافر د جنابت په حالت كښې نه وي او په بدن ئې ظاهري نجاست هم نه وي كوم چه د جومات د آدابو خلاف وي نو بيائې جومات ته داخليدل جائز دي۔

كما فى الهندية: لا باس بدخول اهل الذمة المسجد الحرام و سائر المساجد و هو الصحيح كذا فى المحيط السرخسىؒ. (الفتاوى الهندية ج۵، ص۳۴۶، كتاب الكراهية، الباب الرابع عشر)



قال العلامة ابن عابدينؒ: ان الامام سرخسىؒ ذكر فى شرح السير الكبير ان ابا سفيان جاء الى المدينة و دخل المسجد و لذٰلك قصّة قال فهٰذا دليل لنا على مالكؒ بمنعه المشرك من ان يدخل شيئاً من المساجد ثم قال ان الشافعىؒ قال يمنعونه من دخول المسجد الحرام خاصة للآية إِنَّمَا الْمُشْرِكُونَ نَجَسٌ فاما عندنا لا يمنعون كما لا يمنعون دخول سائر المساجد و يستوى فى ذٰلك الحربى و الذمى. (رد المحتار ج۳، ص۳۰۱، كتاب الجهاد، باب العشر و الخراج و الجزية) و مثله فى البزازية على هامش الهندية ج۶، ص۳۷۱، كتاب الكراهية.

## په جوماتونو كښې د كفارو د چندې د استعمال حكم

**سوال:** كه چېرته يو كافر د جومات د تعمير لپاره چنده وركړي نو آيا هغه چنده په جومات كښې لګولی شي او كه نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** كه چېرته د كافرانو د چندې په وركولو كښې د اسلام او مسلمانانو د توهين احتمال نه وي او د هغوی په مذهب كښې ئې حيثيت د قربت او ثواب وي او د ثواب په نيت ئې وركړې هم وي نو بيا ئې قبلول او په جومات ئې لګول جائز دي۔ ځكه چه د حنفي مذهب له مخې د كافر د وقف په صورت كښې شرط دا دی چه هغه زمونږ او د دوی تر منځه د قربت ذريعه وي۔ پس ظاهره خبره ده چه د كفارو چنده په جومات كښې لګول د اهل اسلام په نزد خو قربت دی او كفار او هنود چه جوماتونو ته څه وركوي هغوی ئې هم اعتقاداً قربت بولي ليكن په نننې دور كښې د كفارو امداد د مسلمانانو له جوماتونو سره مسلمانان په څه نا څه مخمصې كښې د راوستو لپاره دی نو ځكه د دوی له امدادونو او چندو څخه د جوماتونو بچ ساتل ضروري دي۔

قال العلامة ابن عابدينؒ: ان شرط وقف الذمى ان يكون قربة عندنا و عندهم كا لوقف على الفقراء او على مسجد القدس بخلاف الوقف على بيعة فانهٗ قربة عندهم فقط او على حج او عمرة فانهٗ قربة عندنا فقط فافاد ان هٰذا شرط لوقف الذمّى فقط لان وقف المسلم لا يشترط كونه قربة عندهم بل عندنا كوقفنا على حج و عمرة بخلاف على بيعة فانه غير قربة عندنا بل عندهم. (رد المحتار ج۳، ص۳۹۴، كتاب الوقف)

قال العلامة ابن نجيم المصرى رحمه اللّٰه: و اما السلام فليس من شرطه فصح وقف الذمى بشرط كونه قربة عندنا و عندهم كما وقف على اولاده او على الفقراء. (البحر الرائق ج۵، ص۱۸۹، كتاب الوقف) و مثله فى الهندية ج۲، ص۳۵۲، كتاب الوقف.

## د هندوانو د عبادت ګاه په ځای باندې د جومات د جوړولو حكم

**سوال:** زمونږ په علاقه كښې د هندوانو په متروكه جائداد كښې يو مندر هم شته۔ د ځينو مسلمانانو دا اراده ده چه په هغه ځای كښې يو جومات جوړ كړي نو آيا د هندوانو په متروكه عبادت ګاه كښې د جومات جوړول جائز دي او كه نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** اګر كه د مسلمانانو د عبادت ځای د جوړولو لپاره كوم خاص ځای مقرر

نه دی او د زمکې د کرې په هر ځای کښې د لمانځه ادا کول ورته جائز دي. لیکن د هندوانو عبادت ځایونو لره د جومات په توګه په استعمالولو سره چونکه د هغو د عبادت ځایونو د عظمت او لوړوالی شبهه ده نو ځکه ئې د جومات په توګه استعمال جائز نه دي. بیا هم که چېرته رنګ کړی شي او په ځای ئې جومات جوړ کړی شي نو بیا څه حرج پکښې نشته.

په حدیثو کښې راغلي دي چه: عن طلق بن علیؓ قال خرجنا وفداً الی رسول اللهﷺ فبایعناه و صلینا معه و اخبرناه اَنَّ بارضنا بیعة لنا فاستوهیناه من فضل طهوره فدعا بماء فتوضأ و تمضمض ثم صبّه لنا فی ادواة و امرنا فقال اُخرجوا فاذا اتیتم ارضکم فاکسروا بیعتکم و انضحوا مکانها بهٰذا المار و اتخذوها مسجداً قلنا ان البلد بعید و الحر شدید و الماء ینشف فقال مُدُّوه من الماء فانه لا یزیده الا طیباً، رواه النسائی. (مشکٰوة المصابیح ج ۱، ص ۶۹، باب المساجد)

لما ورد فی الحدیث: عن طلق بن علی فاخرجنا وفداً الی رسول اللهﷺ فبایعناه و صلینا معه واخبرناه ان بارضنا بیعة لنا فاستوهبناه من فضل طهوره الحدیث. (سنن النسائی ج ۱، ص ۷۲، کتاب المساجد) و مثله فی مشکٰوة المصابیح (حاشیة) ج ۱، ص ۶۹، کتاب الصلٰوة، ابواب المساجد.

## د کفارو د دعوت قبلولو حکم

**سوال:** که چېرته یو کافر د کوم غم یا ښادي په موقع کښې مسلمانانو ته دعوت ورکړي او په هغو باندې د حلال خوراك د خوړلو وعده هم وکړي نو آیا د مسلمانانو لپاره د دوی د دعوت قبلول جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته د دې دعوت په وجه سره اسلام نه متاثر کیده نو بیا ئې په قبلولو او خوراك کښې څه مضائقه نشته او بیا په ځانګړي توګه هغه دعوتونه چه د حلالو خوراکونو د ورکولو یقین هم ورکول شوي وي.

لما فی الهندیة: و لا بأس با لذهاب الی ضیافة اهل الذمة هٰکذا ذکر محمدؒ و فی اضحیة النوازل المجوس او النصرانی اذا دعا رجل الی طعامه تکره الاجابة و ان قال اشتریت اللحم من السوق فان کان الداعی نصرانیاً فلا بأس به. (الفتاوی الهندیة ج ۵، ص ۳۴۷، کتاب الکراهیة، الباب الرابع عشر)

قال الامام ابن البزاز الکردریؒ: و ان اجابة الدعوٰة و لو لاهل الذمة سنة. (البزازیة علی هامش الهندیة ج ۶، ص ۳۳۳، السادس فی التشبیه)

## د مسلمانانو لپاره د کفارو عبادت ځایونو ته د داخلیدلو حکم

**سوال:** آیا د مسلمانانو لپاره د کافرانو عبادت ځایونو ته تلل جائز دي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د مسلمانانو لپاره د کافرانو عبادت ځایونو ته داخلیدل مکروه دي لیکن دا مکروه والی له دې وجهې نه دی چه مسلمانان دا حق نه لري چه دغو عبادت ځایونو داخل شي بلکه ځکه مکروه دی چه دا عبادت ځایونه د شیطانانو د جمع کیدو ځایونه دي.

کما فی الهندیة: یکره للمسلم الدخول فی البیعة و الکنیسة و انما یکره من حیث انهٗ مجمع الشیاطین لا من



حیث انهٗ لیس لهٗ حق الدخول. (الفتاوی الهندیة ج ۵، ص ۳۴۶، کتاب الکراهیة، الباب الرابع عشر)

قال العلامة ابن عابدینؒ: و یکره للمسلم الدخول فی البیعة و الکنیسة. (رد المحتار ج ۶، ص ۳۸۷، کتاب الحظر و الاباحة، فصل فی البیع)

## د قادیانیانو سره د راشه درشه (تعلقاتو) حکم

**سوال:** د مسلمانانو لپاره له قادیانیانو سره لین دین او تجارت کول جائز دي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** اګر که له کافرو سره د دنیاوي معاملاتو په کولو کښې څه حرج نشته لیکن قادیانیان خپلو ځانو ته د مسلمان په ښکاره کولو او مسلمانانو ته د دوکې ورکولو کوشش کوي چه له مخې ئې ډیر وختونه د هغوی کفري عقائد پټ پاتې کیږي. د دې لپاره دوی د مرتدینو په حکم کښې دي او هر ډول تجارتي لین دین ورسره ناجائز دي.

قال العلامة برهان الدین المرغینانیؒ: و یزیل ملك المرتد عن امواله یرتده زوالا مراعی فان اسلم عادت الی حالها. (الهدایة ج ۲، ص ۶۰۱، کتاب السیر)

قال شیخ الاسلام محافظ الدین النسفیؒ: و یزیل ملك المرتد عن ماله زوالاً موقوفاً فان اسلم عاد ملکه. (کنز الدقائق علی هامش البحر الرائق ج ۵، ص ۱۳۰، باب احکام المرتدین) و مثله فی فتح القدیر ج ۵، ص ۳۱۲، کتاب الجهاد، احکام المرتدین.

## له مــــرتد سره د تعلقاتو د ساتلو حکـــم

**سوال:** کوم سړی چه اسلام پریږدي او هندو مذهب اختیار کړي یعنې هندو شي نو له هغه سره دوستي او محبت لرل او په ورین تندي له هغوی سره مخامخ کیدل او له هغوی سره خوراك او څښاك کول جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** کوم سړی چه اسلام پریږدي او هندو شي هغه مرتد دی او تعلقات او راشه درشه ورسره صحیح نه ده نو ځکه له دوی سره په ورین تندي مخامخ کیدل، ستړي مشي کول او له هغوی سره خوراك او څښاك او د خپلوي رشته او نکاح و مناکحت قائمول ناجائز او ممنوع دي.

کما قال العلامة محمد بن عبد الله التمرتاشیؒ: و من ارتد عرض الحاکم علیه الاسلام استحباباً........ و تکشف شبهته و یحبس وجوبا ثلاثة ایام فان اسلم فبها و الا قتل لحدیث من بدل دینه فا قتلوه. (تنویر الابصار علی هامش رد المحتار ج ۳، ص ۳۱۲، باب العشر و الخراج و الجزیة)

و قال شیخ الاسلام محافظ الدین النسفیؒ: یعرض الاسلام علی المرتد و تکشف شبهتة و یحبس ثلاثة ایام فان اسلم فبها و الا قتل. (کنز الدقائق علی هامش البحر الرائق ج ۵، ص ۱۲۵، باب احکام المرتدین) و مثله فی الهندیة ج ۲، ص ۲۵۳، کتاب السیر، الباب الثامن فی الجزیة.

## د قاديانيانو چنده په جومات كښې د مصرفولو حكم

**سوال:** كه چېرته يو قادياني د جوماتو د جوړولو لپاره خښتې او د اسې نور وركړي نو آيا د نوموړيو خښتو په جومات كښې لګول جائز دي او كه نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** قادياني چونكه مرتد او د اسلام له دائرې څخه وتلي دي او د ارتداد په حالت كښې چه څومره تصرفات كړي وي هغه موقوف وي۔ كه چېرته دوهم ځل مسلمان شي نو د ارتداد په حالت كښې ئې چه څومره تصرفات كړي وي هغه ټول صحيح كيږي او كه چېرته د ارتداد په حالت كښې مړ شي يا قتل شي او يا دار الحرب ته لاړ شي نو د ارتداد د حالت ټول تصرفات ئې باطل ګرځي۔ نو ځكه له يوه قادياني څخه د خښتو او د اسې نورو شيانو د جوماتو لپاره قبلول او په جومات كښې ئې مصرفول جائز نه دي تر څو چه مسلمان شوى نه وي۔

قال العلامة برهان الدين المرغيناني: و ما باعه او اشتراه او اعتقه او وهبه او رهنه او تصرف فيه من امواله فى حال ردته فهو موقوف فان اسلم صحت عقوده و ان مات او قتل او لحق بدار الحرب بطلت. (الهداية ج۲، ص۶۰۳، كتاب الجهاد، باب المرتد)

قال العلامة ابن نجيم المصرى رحمه الله: و توقف مبايعته و عتقه و هبته فان آمن نفذ و ان هلك بطل بيان لتصرف حال ردته بعد بيان حكم املاكه قبل ردته. (البحر الرائق ج۵، ص۱۳۳، باب احكام المرتدين) و مثله فى فتح القدير ج۵، ص۳۲۰، باب احكام المرتدين.

## د قادياني د جنازې د لمانځه حكم

**سوال:** زما په خپلوانو كښې يو سړى قادياني شوى دى۔ د هغه له مړينې وروسته زما لپاره د هغه په جنازه كښې شركت كول جائز دي او كه نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** چونكه قادياني مرتد او له د اسلام له دائرې څخه وتلي دي نو په دې بناء باندې په هغوى باندې د جنازې لمونځ نه ادا كيږي۔ اګر كه هغه مو نژدې خپل وي او نه له قاديانيانو سره د هغوى د مذهب مطابق د مړګ په مراسمو كښې شركت كول جائز دي۔ او كه چېرته د اسې خپلوان د خښولو لپاره د هغه هم مذهبه څوك نه وي نو علاوه له شرعي طريقې څخه د هغه لپاره زمكه و كيندى او بيا ئې پكښې واچوى۔

كما قال العلامة علاؤ الدين الحصكفى: اما المرتد فيلقى فى حفره كا لكلب. (الدر المختار على هامش رد المحتار ج۱، ص۶۵۷، باب صلوٰة الجنازة)

قال العلامة ابن نجيم المصرى رحمه الله: اما المرتد فلا يغسل ولا يكفن و انما يلقى فى حفيرة كا لكلب و لا يدفع الى من انتقل الى دينهم. (البحر الرائق ج۲، ص۱۹۱، كتاب الجنائز، فصل السلطان احق بصلوٰته) و مثله فى الخانية على هامش الهندية ج۱، ص۱۹۵، كتاب الجنائز.



## د مسلمانو په هديره كښې د قادياني د ښخولو حكم

**سوال:** قاديانيانو لره د مسلمانانو په هديرې كښې ښخول جائز دي او كه نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** قاديانيان د دين د ضرورياتو څخه د انكار په بناء كافر او مرتد دي او د مړګ په صورت كښې هغو لره د اهل اسلام په هديرې كښې ښخول جائز نه دي۔

قال العلامة ابن نجيم المصرى رحمه الله: اما المرتد فلا يغسل ولا يكفن و انما يلقى فى حفيرة كا لكلب و لا يدفع الى من انتقل الى دينهم. (البحر الرائق ج۲، ص۱۹۱، كتاب الجنائز، فصل السلطان احق بصلوٰته)

كما قال العلامة علاؤ الدين الحصكفى: اما المرتد فيلقى فى حفره كا لكلب. (الدر المختار على هامش رد المحتار ج۱، ص۶۵۷، باب صلوٰة الجنازة) و مثله فى فتح القدير ج۲، ص۹۴، كتاب الجنائز.

## قادياني د مسلمان وارث نه شي جوړيدلى

**سوال:** كه چېرته يو څوك قادياني شي او زوى ئې مسلمان وي نو د زوى له فوت كيدو نه ئې وروسته پلار د هغه په مال كښې د ميراث حقدار جوړيدلى شي او كه نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** قادياني او مسلمان د يوه او بل د ميراث حقدار نه شي جوړيدلى۔ په پورتني صورت كښې د قادياني مرتد ميراث به په بيت المال كښې د اخليږي او همدا رنګه يو قادياني هم د مسلمان په ميراث كښې حقدار نه شي جوړيدلى بلكه د مسلمان ميراث د هغه په مسلمانو وارثانو باندې به د شرعي قاعدې مطابق تقسيميږي۔

لما قال الشيخ سراج الدين السجاوندى: و اما المرتد فلا يرث من احد لا من مسلم و لا من مرتد مثله. (السراجى ص۷۵، فصل فى المرتد)

قال فى الهندية: المرتد لا يرث من مسلم و لا من مرتد مثله كذا فى المحيط. (الفتاوى الهندية ج۶، ص۴۵۵، الباب السادس فى ميراث اهل الكفر) و مثله فى الخانية على هامش الهندية ج۳، ص۵۸۰، كتاب الفرائض.

## د مـرتد د ميراث حكم

**سوال:** كه چېرته يو مرتد په دار الاسلام كښې مړ شي نو د هغه تركه به د هغه مسلمانو وارثانو ته وركول كيږي او كه څنګه؟ او همدا رنګه كه چېرته په دار الحرب كښې مړ شي نو بيا به ئې تركه چا ته وركول كيږي؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** كه چېرته مرتد په دار الاسلام كښې مړ شي او يا قتل شي نو د هغه د مسلمانۍ د وخت مال يعنې چه د اسلام په حالت كښې ئې ګټلي وي د هغه مسلمانو وارثانو ته وركول كيږي او كوم مال ئې چه د ارتداد په حالت كښې ګټلي وي نو هغه به مال فيء ګڼل كيږي او په بيت المال كښې به د اخليږي۔ او كه چېرته په دار الحرب كښې مړ شي نو د اسلام په حالت كښې ئې ګټلى شوى مال د هغه مسلمانو وارثانو ته وركول كيږي او د ارتداد په حالت كښې ئې ګټلى شوى مال په مرتدو وارثانو ويشل كيږي۔

قال العلامة المرغيناني: و ان مات او قتل على ردته انتقل ما اكتسبه فى اسلامه الى ورثة المسلمين و كان ما اكتسبه فى حال ردته فيئاً. (الهداية ج۲، ص۶۰۱، باب احكام المرتد)

قال العلامة الحصكفى و ابن عابدين: و ان مات او قتل على ردته او حكم بلحاقه ورث كسب اسلامه وارثه المسلم و لو زوجته بشرط العدة (زيلعى) بعد قضاء دين اسلامه و كسب ردته فىء بعد قضاء ربى ردته الخ اما ما اكتسبه فى دار الحرب فهو لابنه الذى ارتد و لحق معه اذا مات مرتدا لانه اكتسبه و هو من اهل الحرب و هم يتوارثون فيما بينهم. (الدر المختار و رد المحتار ج۳، ص۳۲۸/۳۲۹، باب المرتد) و مثله فى البحر الرائق ج۵، ص۱۳۰/۱۳۱، باب احكام المرتدين.

## د مرزايي د دعوت د قبلولو حكم

**سوال:** زمونږ په كلي كښې يو څو كسه مرزايان اوسيږي او كله كله د خوښۍ په موقع باندې دعوتونه كوي۔ او په دغو دعوتونو كښې مونږ مسلمانانو ته هم دعوت راكوي نو آيا د مرزايانو د دعوت قبلول د شريعت له مخې جائز دي او كه نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** مرزايان مرتد او واجب القتل دي نو ځكه له مرتد سره د هر ډول تعلقاتو او يا د هغوى د دعوتونو قبلول جائز نه دي۔

و قال شيخ الاسلام محافظ الدين النسفى: يعرض الاسلام على المرتد و تكشف شبهتة و يحبس ثلاثة ايام فان اسلم فبها و الا قتل. (كنز الدقائق على هامش البحر الرائق ج۵، ص۱۲۵، باب احكام المرتدين) و مثله فى الهندية ج۲، ص۲۵۳، كتاب السير، الباب الثامن فى الجزية.

كما قال العلامة محمد بن عبد الله التمرتاشى: و من ارتد عرض الحاكم عليه الاسلام استحباباً........ و تكشف شبهته و يحبس وجوبا ثلاثة ايام فان اسلم فبها و الا قتل لحديث من بدل دينه فا قتلوه. (تنوير الابصار على هامش رد المحتار ج۳، ص۳۱۲، باب العشر و الخراج و الجزية)

## د شيعه د ذبيحې د خوړلو حكم

**سوال:** كوم سړى چه د حضرت علي رضى الله عنه د الوهيت قائل وي او په الوهيت كښې د تناسخ د قائل والي برسيره د امام مهدي تر خروجه پورې ټول اسلام معطل بولي۔ نو د داسې سړي حكم څه دى؟ آيا د داسې سړي ته سلام اچول او د هغه د لاس د ذبيحې خوړل او له هغه سره د تعلقاتو ساتل جائز دي او كه نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** كوم سړى چه د حضرت علي رضى الله د الوهيت عقيده ولري او حضرت جبرائيل عليه السلام ته د غلطۍ نسبت كوي او په الوهيت كښې د تناسخ معتقد وي او ټول اسلامي احكام د امام مهدي تر خروج پورې معطل بولي د اسې سړى له شك او شبهې پرته كافر دى او د داسې سړي حكم د مرتد غوندې دى۔

كما فى الهندية: و يجب اكفار الروافض فى قولهم برجعة الاموات الى الدنيا و بتناسخ الارواح و بانتقال روح الاله الى الائمة و بقولهم فى خروج امام باطن و بتعطيلهم الامر و النهى الى ان يخرج الامام الباطن و بقولهم ان جبرائيل



عليه السلام غلط فى الوحى الى محمد ﷺ دون على بن ابى طالب و هٰؤلاء القوم خارجون عن ملّة الاسلام و احكامهم احكام المرتدين. كذا فى الظهيرية. (الفتاوى الهندية ج۲، ص۲۶۴، كتاب السير، الباب التاسع)

او مـــــرتد ته سلام اچول او د هغه د لاس د ذبيحې خوړل او لـــــه هغه سره د هر ډول تعلقاتو قائمول هم ناجائز دي۔

قـــال العلامة المرغينانى: ويزيل ملك المرتد عن امواله بردته زوالاً مراعى فان اسلم عادت الى حالها....... و باطل با لاتفاق كا لنكاح و الذبيحة لانه يعتمد المـــــلة و لا ملة له. (الهداية ج۲، ص۶۰۱ الى ۶۰۳، باب احكام المرتد، كتاب الجهـــاد)

و قال العلامة عالم بن العلاء الانصارى: و يجب اكفار الروافض فى قولهم يرجع الاموات الى الدنيا و بانتقال الاموات و تناسخ الارواح و انتقال روح الاله الى الائمة و ان الائمة الهة و قولهم فى خروج امام باطن و بتعطيلهم الامر و النهى الى ان يخرج الامام الباطن...... و هٰؤلاء القوم خارجون عن ملّة الاسلام و احكامهم احكام المرتدين. (الفتاوى التاتارخانية ج۵، ص۵۳۸، كتاب احكام المرتدين) و مثله فى فتاوىٰ قاضى خان على هامش الهندية ج۶، ص۳۱۸، كتاب الفاظ تكون اسلاماً او كفراً الخ.

## د شيعه مال په جبر سره د اخيستلو حكم

**سوال:** د شيعه ګانو مال په جبر يا غلا سره اخيستل جائز دي او كه نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** اګر كه د شيعه ګانو ځينې ډلې د كفارو په حكم كښې دي ليكن چونكه حربيان نه دي نو په دې وجه د دوى مال به محفوظ وي۔ د هغوى مالونه په جبر سره اخيستل او يا ئې پټول جائز نه دي۔

قال العلامة الحصكفى: اذا صار ذمياً يجرى القصاص بينه وبين المسلم و يضمن المسلم قيمة خمره و خنزيره اذا تلفه و تجب الدية عليه اذا قتله خطاء و يجب كف الاذى عنه. و قال ابن عابدين قيد با لمستأمن لانه لو دخل دارنا بلا امان كانه و ما معه فيئاً. (الدر المختار على هامش رد المحتار ج۳، ص۲۷۲، باب المستأمن، كتاب الجهاد)

و فى الهندية: و تثبت احكام الذمى فى حقه من منع الخروج الى دار الحرب و جريان القصص بينه و بين المسلم و ضمان المسلم قيمة خمره و خنزيره اذا اتلفه و وجوب الدية اذا قتل خطاء و وجوب كف الاذى عنه. (الفتاوى الهندية ج۲، ص۲۳۵، كتاب السير، الباب الثامن فى المستأمن) و مثله فى فتح القدير ج۵، ص۲۷۱، كتاب السير، باب احكام المرتد.

## په شيعه ګانو باندې د جنازې د لمانځه د ادا كولو حكم

**سوال:** كوم شيعه ګان چه د دين له ضرورياتو منكر دي په هغوى باندې د جنازې د لمانځه ادا كول د اهل سنت و الجماعت لپاره جائز دي او كه نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په شيعه ګانو كښې كومه ډله چه د دين له ضرورياتو څخه منكر وي په هغوى باندې د جنازې د لمانځه ادا كول جائز نه دي۔

لما فى الهندية: و لو قذف عائشه رضى الله عنها با لزنى كفر با لله....... من انكر امامة ابى بكر الصديق

رضی الله عنه فهو کافر. (الفتاوی الهندیة ج۲، ص۲٦٤، کتاب السیر، الباب التاسع فی احکام المرتدین)

قال العلامة ابن نجیم المصری رحمه الله: و بقذف عائشه رضی الله عنها من نسائه ﷺ فقط و بانکاره صحبة ابی بکر رضی الله عنه الخ. (البحر الرائق ج٥، ص١٢١، باب احکام المرتدین) و مثله فی رد المحتار ج٣، ص٣٢٦، کتاب الجهاد، باب احکام المرتد.

## مسلمان ته د کافر میراث نه ورکول کیږي

**سوال:** مسلمان له کافر څخه او کافر له مسلمان څخه میراث وړلی شي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** چونکه د دین او د عقیدې اختلاف د ارث مانع دی نو ځکه کافر ته د مسلمان میراث او مسلمان ته د کافر میراث نه شي ورکول کیدلی.

لما قال العلامة محمد بن عبد الله التمرتاشی: و موانعه الرق و القتل و اختلاف الدین. (تنویر الابصار علی هامش رد المحتار ج٥، ص٥٤٢، کتاب الفرائض)

قال العلامة السجاوندی رحمه الله: المانع من الارث اربعة الرق والقر...... و اختلاف الدین. (السراجی ص٥، فصل فی موانع الارث) و مثله فی البحر الرائق ج٨، ص٤٨٨، کتاب الفرائض.

## د کفارو لپاره د دعا کولو حکم

**سوال:** اکثره خلك داسې دي چه هغوی ځینې داسې دعاګانې کوي چه ای الله په مسلمانانو باندې رحم وکړې او کفار نیست او نابود کړې نو آیا داسې دعاګانې شرعاً صحیح دي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د داسې دعاګانو په کولو او صحیح والي کښې کوم مشکل نشته. البته کفار هم د مسلمانانو غوندې د رحم مستحق دي. د هغو لپاره د هدایت دعاګانې په کار دي. زمونږ د اکابرو دا طریقه وه چه هغو به پخپلو دعاګانو کښې د کفارو لپاره هم د رحم او هدایت دعاګانې کولې.

و ذکر العلامة مسلم بن الحجاج القشیری: عن ابی کثیر قال حدثنی ابو هریرةؓ قال کنت ادعو امّی الی الاسلام و هی مشرکة فدعوتها یوماً فاسمعتنی فی رسول الله ﷺ ما اکره فاتیت رسول الله ﷺ و انا ابکی قلتُ یا رسول الله انی کنت ادعوا اُمّی الی الاسلام فتابی علیّ فدعوتها الیوم فاسمعتنی فیك ما اکره فادع الله ان یهدی اُمّ ابی هریرةؓ فقال رسول الله ﷺ اللّهمّ اهد اُمّ ابی هریرةؓ...... الخ. (الجامع الصحیح المسلم ج٢، ص٣٠١، کتاب الفضائل، باب فضائل ابی هریرةؓ)

و ذکر العلامة ابو عیسی الترمذی: عن جابرٍ قالوا یا رسول الله احرقتنا نبال ثقیف فادع الله علیهم فقال اللّٰهم اهد ثقیفاً (الجامع الترمذی ج٢، ص٢٣١، ابواب المناقب، باب فی ثقیف و حنیفة)

## له کفارو څخه د امداد د اخیستلو حکم

**سوال:** څه فرمایي علماء دین او مفتیان شرع متین د دې مسئلې په باره کښې چه ډاکټر آرنسټ لعل د ټیکسلا د کرسچین شفاخانې ډایریکټر دې خبرې ته په کتو سره چه د دیر د علاقې غریب



عوام د علاج او معالجې لپاره د دوی له خوا جوړې شوې کرسچین شفاخانې ټیکسلا ته مراجعه کوي. او د دیر په یوه کلي اخګرام کښې ئې د یوې شفاخانې د جوړولو منظوري ورکړې ده. او د هغه ځای د د پائنده خیلو د قبیلې یوې جرګې دو دیرش جریبه زمکه له مشترکو زمکو څخه د نوموړې شفاخانې د جوړولو لپاره ورکړې ده په داسې حال کښې چه ځینو مقامي خلکو دا اندیښنه ښکاره کړې ده چه دا خلك د شفاخانې په رنګ کښې خلکو ته د عیسائیت تبلیغ کوي او خپل تبلیغاتي شیان تقسیموي او مریضانو او د هغوی عیادت کوونکي خلکو ته د عیسائیت دعوت ورکوي وغیره وغیره. دا اندیښنې چه کله د مجوزه شفا خانې د انتظامیې سربراه یعنې ډاکټر آرنسټ لعل ته وړاندې شوې نو هغه وویل چه دا ډول خبرې به یو هم نه وي. تاسو چه د کومو شرائطو لګول غواړی وئې لګوی مونږ د هغو شرائطو پابندي کوو. چنانچه نوموړي ډاکټر ته څو شرطونه وړاندې کړی شو کوم چه هغه تسلیم هم کړل او د حلفیه بیان په صورت کښې ولیکل شول او مهر ئې پرې ولګاوه او دستخط ئې پرې وکړ. دا شرائط په لاندې ډول دي.

﴿۱﴾ په اخګرام شفا خانه کښې به هیڅ ډول مسیحي تبلیغ نه کیږي.

﴿۲﴾ په نوموړي شفاخانه کښې به هیڅ ډول مسیحي دعوت نامې نه تقسیمیږي.

﴿۳﴾ په اخګرام شفاخانه کښې به هیڅ یوه ګرجه نه جوړیږي.

﴿٤﴾ په اخګرام شفاخانه کښې به د صلیب نشان یا علامه نه لګول کیږي.

﴿٥﴾ د شفاخانې بیت الخلاء به د اسلامي اقدارو مطابق شمالاً جنوباً جوړیږي.

﴿٦﴾ د اخګرام شفاخانې نوم به له مسیحي نومونو څخه پاك وي.

﴿٧﴾ په کاغذاتو کښې د بائبل مقدس آیتونه نه چاپیږي.

﴿٨﴾ د اخګرام شفاخانې عمارت به ساده او مضبوط جوړیږي چه له ټولو سرکاري شفاخانو نه به ئې عمارت ښه وي.

﴿٩﴾ دا شفاخانه به خالص د انساني همدردۍ په بنیاد کار کوي همدارنګه شفاخانې ته چه کوم مریضان راځي د هغو علاج به په کمو روپو او د نسل او رنګ له امتیازه پرته کیږي.

﴿١٠﴾ د شفاخانې په احاطه کښې د ننه به یوې خوا ته د جومات لپاره یو ځای ټاکل کیږي لیکن مریضانو ته به د تکلیف له وجهې د لاوډسپیکر د لګولو اجازه نه وي.

دا ټول صورت حال ته په کتو سره اوس پوښتنه دا ده چه ډاکټر آرنسټ لعل کوم چه عیسایي دی په تعاون سره د دې شفاخانې جوړول د شریعت له مخې جائز دی او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په نوموړي صورت کښې د کرسچین شفاخانې جوړوونکي د جرګې له خوا څخه د ټاکل شوي شرائطو په هر لحاظ سره د پابندي معاهده کړې ده. د دغو ټولو

شرائطو د لحاظ او پابندي په صورت کښې د نوموړي ادارې له خوا مسلمانانو ته د شفاخانې جوړول جائز دي. که چېرته د شفاخانې د جوړوونکو له خوا په کوم وخت کښې د دغو شــــرائطو خلاف ورزي وشي نو مسلمانانو ته به د نوموړې شفا خانې د بندولو حق حاصل وي. اصولاً تعلیم، صحت، سائنس او ټیکنالوجي او په نورو دنیاوي امورو او معاملاتو کښې د مسلمانانو او کفارو له یوه او بل څخه افاده او استفاده کول شرعا جائز دي خو په دې شرط چه اسلام او اسلامي اقدار ترې نه متاثر کیږي.

و الله اعلم و علمه اتم

## د مسلمانانو په خلاف د کفارو د امداد کولو حکم

**سوال:** څه فرمایي علماء کرام او مفتیان عظام د دې مسئلې په باره کښې چه یو اسلامي ملك د بل اسلامي ملك په خلاف د کوم کافر ملك امداد او تعاون کولی شي او که نه؟ په داسې حال کښې چه نوموړی ملك خالص اسلامي وي او په هغه کښې په آزاده توګه اسلامي قوانین رائج وي او کافر ملك د اسلامي قوانینو د جاري کولو په وجه سره د هغه مخالف شوی وي او په دې ملك باندې د ظلم او زیاتی د کولو لپاره بې بنیاده او د دروغو الزامات لګوي چه هیڅ ثبوت هم ورسره نه وي. مهرباني وکړی په دې باره کښې مونږ په اسلامي او شرعي نقطۀ نظر باندې آګاه او پوه کړی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د کوم مسلمان ملك په خلاف د یوه کافر ملك سره د محض دنیاوي مفاداتو په خاطر تعاون کول او یا د هغه د لاس آله جوړیدل د شرعي نقطۀ نظر له مخې حرام او ناجائز دي. د هر اسلامي ملك سربراه یا بادشاه چه داسې کوي نو د هغه خلاف بغاوت او د داسې بې دینه قیادت ختمول او د صالح او دیندار سړي حاکم مقررول په مسلمانو رعایاوو باندې لازم او ضروري دي ځکه چه مسلمان د مسلمان ورور دی چه نه پخپله په مسلمان ظلم کوي او نه د دروغجنو الزاماتو په بناء ئې کافر ته شرعا د حواله کولو حق او مجاز لري.

لقوله علیه السلام: المؤمن اخو المؤمن لا یظلمه و یسلمه. (الحدیث)



بسم الله الرحمٰن الرحیم

## د سي ټي بي ټي شرعي حیثیت

### ابتدائیه

امریکه په سي ټي بي ټي (یعنې په ایټمي اسلحې باندې د بندیز د جامع معاهدې په نامه) په پاکستان باندې دستخط کوي او د دې معاهدې پابند ئې جوړوي. تر څو چه په ظاهره سره پاکستان له ایټمي طاقت او د هغه له جوړولو او زیاتې ترقۍ څخه منع کړي. نو آیا شرعا د یو مسلمان ملك حکمرانانو ته د خپلو جهادي آلاتو، قوت، وسائلو او حربي تخنیکونو د کفارو د زور یا دباو یا د څه نورو لالچونو په نتیجه کښې د هغو محدودول او معطل کول او یا د منجمد او مفلوج کولو اجازه شته او که نه؟ د قرآن او سنت او شریعت له مخې د دې مسئلې د شرعي حیثیت د واضح کولو لپاره د ملك او عالم اسلام مشهور، معتمد او ممتازې دیني ادارې "دار العلوم حقانیه" دار الافتاء مدلله رنا اچولې ده کوم چه د حکومت سربراهانو، د پارلمان وکیلانو، سیاستدانانو، سائنسدانانو، فوجي ادارو، علماوو، پوهانو، صحافیانو او د عامو مسلمانانو د غور او فکر لپاره په خدمت کښې ئې وړاندې کوو.

او الله تعالی دې دا حقیر غونډې خدمت د ملك او ملت د بهتر مستقبل لپاره او د فلاح او بهبود او ترقۍ ذریعه وګرځوي. (آمین)

مولانا سمیع الحق صاحب

مهتمم دار العلوم حقانیه اکوړه ختك نوښار

۱۰ ستمبر ۱۹۹۸ء

بسم الله الرحمٰن الرحیم

## استفتاء

## سي تي بي تي او این پي تي یعنې د ایټمي پروګرام او د هغه د پراخوالي او تیسټ باندې د بندیز جامع معاهده

د پاکستان اسلامي مملکت چه د بر صغیر د میلینونو مسلمانانو د قربانۍ ثمره ده د هغه د تقسیم مقصد یوائې د یوه آزاد، خود مختاره اسلامي حکومت قائمول وو۔ الحمد لله پاکستان د اسلام او مسلمانانو د قربانۍ په وجه سره وجود ته راغلی دی او د عالم اسلام لپاره ئې هر وخت او په هره زمانه کښې مرکزي کردار ادا کړی دی۔ یهودو او هنودو ا مغربي ملکونو د پاکستان د قیام له اولې ورځې څخه ئې د ده د وجود د هستي له صفحې څخه د لرې کولو پسې دي او په مختلفو سازشونو سره په هرې راتلونکې ورځې کښې ئې د کمزوري کولو په هر ممکن کوشش کښې مصروف دي۔ د دې له ټولو نه لوی ثبوت په ۱۹۷۰ء کښې د مشرقي پاکستان له پاکستان څخه بیلول دی۔ بیا په ۱۹۴۸ء کښې کله چه د پاکستان د جوړیدو یو کال هم نه وو پوره شوی چه جنګ پرې مسلط کړی شو۔ له دې نه وروسته په ۱۹۶۵ء او ۱۹۷۰ء کښې جنګونه پرې وشول او زمونږ په خلاف بدترین ظلمونه وشول۔ اوس چه کله په مقبوضه کشمیر کښې د آزادۍ د تحریك مجاهدین د هندوانو په خلاف په جهاد کښې مصروف دي او پاکستان هم په هره سطح او په هر میدان کښې خصوصا په بین المللي سطح د کشمیر مسئله ژوندۍ کړې ده۔ نو هندوستان د کشمیر د آزادۍ د تحریك د ختمولو او پاکستان له صفحه هستي څخه یعنې د نړۍ له مخې څخه د لرې کولو لپاره په ۱۱، ۱۳، مئی ۱۹۹۸ء کښې د ایټمي دماکې لپاره ایټمي ازموینه په هندوستان کښې د واجپایي حکومت وکړه کوم چه بنیادي منشور ئې د اسلام او پاکستان په دښمنۍ باندې مبني دی۔ په یاد ولرئ چه هندوستان په ۱۹۷۴ء کښې ایټمي طاقت جوړ شوی دی۔ په دې حالاتو کښې پاکستان ته دا حق په مکمله توګه حاصل دی چه د خپلې دفاع لپاره د قرآني نص مطابق هر ممکن صلاحیت که هغه عسکري وي او که حربي حاصل کړي۔ او په هر لحاظ سره د خپل ځان د مضبوطولو کوشش وکړي ځکه چه د الله تعالی ارشاد دی چه: وَاَعِدُّوْا لَهُمْ مَّا اسْتَطَعْتُمْ مِّنْ قُوَّةٍ وَّمِنْ رِّبَاطِ الْخَيْلِ تُرْهِبُوْنَ بِهٖ عَدُوَّ اللّٰهِ وَعَدُوَّكُمْ. (سورة الانفال، آیت ۶۰)

په دې وخت کښې د پاکستان حکومت خپل ایټمي پروګرام د یهودو او هنودو د عزائمو په معلوملو سره شروع کړی وو او د دې عظیم مقصد لپاره ئې له خپلو ذرائعو، وسائلو او حیثیت څخه لوړ د ملك او ملت اود فخر ور سائنسدانانو اوږد او د صبر آزما قربانۍ مظاهره وکړه او په دې باندې په اربونو روپۍ مصرف شوې او له ډیر مشکل سره ئې دا پروګرام



له عالم کفر څخه بچ ساتلی وو۔ ګوا که ټول ملك دې ته د خپل زړه په وینې باندې اوبو ورکړې وې او د خپل ملك او ملت او عالم اسلام یو ناقابل تسخیر ایټمي قوت ئې جوړ کړ او د عالم کفر او هندوستان مذمومې ارادې ئې له خاورو سره خاورې کړې چه له مخې ئې ټول پاکستان او ټول عالم اسلام په فخر سره سرلوړي شول۔ قوم ته نوې لاره او نوې خوا پیدا شوه او مونږ چه په یویشتمې پیړۍ کښې عالم اسلام او پاکستان د ایټمي طاقت په حیثیت سره (چه د سائنس د ټیکنالوجی او عسکري طاقت معراج بلل کیږي) داخلیږو۔ نو موجوده حکومت چه د سي ټي بي ټي په معاهده باندې د دستخط کولو فیصله کړې ده کوم چه زمونږ د قومي او فوجي دفاع د شه رګ د پرې کولو سره برابره ده۔ حکومت په دې معاهده باندې په دستخط کولو سره مونږ یو بې غیرت، بې حمیت، بزدله او یو سوداګر قوم جوړوي او له معاهدې وروسته مونږ د هندوستان او اسرائیلو غوندې ظالمو او خونخوارو قومونو په وړاندې بې لاس او بې پښو جوړول غواړي۔ په خاصه توګه په داسې حال کښې چه هندوستان تر اوسه پورې د ایټمي پروګرام د معطل کولو په جامع معاهدې باندې د دستخط کولو په انکار او تردد کښې دی۔ او که چیرته دستخط و هم کړي نو د هغه فوجي او دفاعي سازو سامان، صلاحیت، جنګي ټیکنالوجي او افرادي قوت له مونږ څخه څو چنده زیات دی چه مقابله ئې مونږ له ایټمي طاقت نه پرته نه شو کولی۔ حالانکه پخپله یهود او نصاراوو او د عالم کفر پنځو بد معاشانو او د هشت ګردانو تر اوسه پورې د دې معاهدې پخپله هم توثیق نه دی کړی او نه ئې د دستخط کولو اراده شته۔ په دې معاهدې باندې د دستخط له کولو نه وروسته به د پاکستان او عالم اسلام له تصور نه زیات نقصان وشي چه یو څو اهم نقصانات ئې په لاندې ډول دي:

﴿۱﴾ د کشمیر په تحریك آزادي باندې په هر لحاظ سره بد اثر کوي۔

﴿۲﴾ د هندوستان او عالم کفر ایټمي پروګرام به ورځ په ورځ جاري او ساري او د ترقۍ لار به طی کوي او د هغه برعکس زمونږ ایټمي پروګرام به د دې معاهدې د پابندۍ په وجه منجمد او معطل پاتې کیږي۔

﴿۳﴾ د هندوستان په مقابله کښې زمونږ عسکري حالت په حربي او سیاسي لحاظ سره کمزوری کیږي۔

﴿۴﴾ په معاهدې باندې له دستخط کولو نه وروسته د عالم کفر له خوا څخه به له مونږ څخه د دنیاوي غوښتنو بې انتها لارې پرانستل شي چه مثال ئې مونږ په عراق، لیبیا او داسې نورو ځایونو کښې ګورو۔

﴿۵﴾ د ایټمي ازموینې له سر ته رسولو وروسته عالم اسلام ته خصوصا عالم عرب ته یو جوش او یوه ولوله پیدا شوې ده او اسرائیل او نور استعماري کفري طاقتونه مرعوب شوي دي۔ له معاهدې وروسته به زمونږ حیثیت یوائې د یوه سوداګر قوم غوندې پاتې وي۔

﴿۶﴾ که چیرته په راتلونکي کښې د عالم اسلام او عالم کفر تر منځ لوی جنګ شروع شي کوم

چه ابتداء ئې امریکې له عراق، لیبیا، سوډان او افغانستان څخه کړې ده نو په دې کښې به پاکستان د دې معاهدې نه وروسته څه اهم کردار نه شي اداکولی بلکه پاکستان به د امریکې د یوې چاونۍ حیثیت اختیار کړي۔

﴿۷﴾ د معاهدې د دستخطولو په نتیجه کښې به په عالم اسلام کښې جهادي قوتونو ته سخته صدمه ورسیږي او د مجاهدینو حوصلې به کمزورې شي۔

﴿۸﴾ پاکستان به عالم اسلام ته هیڅ کله هم ایټمي ټیکنالوجي نه شي منتقل کولی۔ د اسې خطرناك صورت حال ته په کتو سره علماء کرام او مفتیان دین متین څه فرمایي چه:

﴿الف﴾ د ملك او ملت دا عظیم نقصان چه په معاهدې باندې د دستخط له کولو نه وروسته یقیني او حتمي دی آیا موجوده حکومت ته د دې خبرې حق او اختیار حاصل دی چه د یو ارب مسلمانانو د متفقه فیصلې په ضد د ذلت او رسوایي په دې محضر نامه او د خپل مرګ او قتل په پروانې باندې دستخط وکړي؟ او په بدله کښې ئې چه مونږ د کوم موهوم امداد بلکه د خیرات او سوال بدله راکول کیږي او آیا هغه د ماضي غوندې د حکمرانانو جیبونو ته نه ځي؟ د دغو نقصاناتو او خطرناکو حقائقو په موجودګي کښې په دې معاهده باندې د دستخط لپاره مهم چلول او یا د هغه حمایت کول او دستخط پرې کول د دین او شریعت په رڼا کښې د دې څه حکم دی او د اسې معاهده په شرعي لحاظ سره جائزه ده او که نه؟

﴿ب﴾ او هغه خلك که هغوی سربراهان وي یا سیاستدانان او یا عام خلك وي چه په دې معاهده باندې دستخط کوي او یا ئې حمایت کوي او یا په هغې باندې د دستخط لپاره کار او کوشش کوي په شریعت کښې د هغوی څه حکم دی؟

﴿ج﴾ او آیا دا خلك د ملك او ملت او د خپل حلف څخه د انحراف او ارتکاب کوونکو له جملې څخه دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم و منه الصدق و الصواب:** د جهاد د آلاتو د اعداد (تیاري) په اړه د الله تعالی ارشاد دی:

وَ اَعِدُّوْا لَهُمْ مَّا اسْتَطَعْتُمْ مِّنْ قُوَّةٍ وَّ مِنْ رِّبَاطِ الْخَيْلِ تُرْهِبُوْنَ بِهٖ عَدُوَّ اللّٰهِ وَ عَدُوَّكُمْ وَ اٰخَرِيْنَ مِنْ دُوْنِهِمْ لَا تَعْلَمُوْنَهُمْ اَللّٰهُ يَعْلَمُهُمْ وَ مَا تُنْفِقُوْا مِنْ شَيْءٍ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ يُوَفَّ اِلَيْكُمْ وَ اَنْتُمْ لَا تُظْلَمُوْنَ. (سورة الانفال، آیت ۶۰)

"او تیار کړی له هغو سره د جنګ لپاره کوم شی چه جمع کولی شی له قوت څخه او له اسونو څخه چه وویروی د الله دښمنان او ستاسو دښمنان او له دوی نه بغیر نور دښمنان کوم چه تاسو ئې نه پیژنی او الله تعالی ئې پیژني او کوم شیان چه تاسو د الله تعالی په لاره کښې خرڅ کوی هغه به تاسو ته پوره درکول کیږي او په تاسو به ظلم نه کیږي"۔

د دې په تفسیر کښې امام رازي رحمه الله فرمایي: و هٰذه الآية تدل على ان الاستعداد للجهاد بالنبل و السلاح و تعليم الفروسية فريضة. (تفسیر کبیر ج۱۵، ص۱۸۵، سورة الانفال)

علامه شبیر احمد عثماني رحمه الله د دې آیت په ضمن کښې په فوائد عثماني کښې



تحریر فرمایي چه:

"په مسلمانانو باندې فرض دي چه څومره قوت ئې وي د جهاد سامان تیار کړي۔ د نبي اکرم ﷺ په مبارك دور کښې په اسونو سپریدل، تورې وهل او د تیر اندازۍ مشق کول د جهاد سامان وو۔ نن صباء ټوپك، توپ، هوایي جهاز، کشتۍ، زرې پوشونه، ټانګونه او د اسې نور تیارول او په استعمال کښې راوستل او د حربي فنونو زده کول بلکه ورزش او د اسې نور کول ټول جهاد دی۔ همدارنګه په راتلونکي کښې کومه اسلحه او د حرب آلات تیارېږي هغه ټول د آیت په منشأ کښې داخل دي۔ (تفسیر عثماني ص۲۴۴، سورت الانفال)

لهذا د دې آیت په عموم کښې په موجوده وخت کښې چه کوم د حرب او ضرب آلات او د سائنس او ټیکنالوجی له وجهې کوم بمونه او میزائیل تیار شوي دي لکه کروز میزائیل، سکډ میزائیل، نیپام بم، هائیډروجن بم او ایټم بم غوندې مهلکې اسلحې ټول د ما استطعتم په عموم کښې راځي۔ چنانچه مولانا محمد ادریس کاندهلوي پخپل تفسیر دریم جلد ص۲۵۵، سورت الانفال کښې لیکي:

"لهذا د دې آیت له مخې په مسلمانانو حکومتونو باندې د اسلحې تیاري او د اسلحې د کارخانو او کمپنیو جوړول فرض دي ځکه چه په دې آیت کښې تر قیامته پورې د هرې زمانې او مکان سره مناسب د طاقت د لاس ته راوړلو حکم شوی دی لکه څنګه چه کفارو د اسې تباه کوونکې اسلحې تیار کړي دي نو په مونږ مسلمانانو باندې هم د دوی غوندې تباه کوونکې بلکه له دوی نه هم زیات تباه کوونکې اسلحې جوړول فرض دي تر څو چه د کفر او د شرك مقابله وکړی شي۔

## د دې آیت په اړه د حضور ﷺ ارشادات او د فقهاوو اقوال

همدارنګه د حضور اکرم ﷺ په مبارکو احادیثو کښې د حرب د آلاتو د اعداد تاکید او ترغیب ورکړ شوی دی چنانچه د حضور ﷺ مبارك ارشاد دی:

عن عقبة بن عامرؓ قال سمعت رسول اللهﷺ و هو على المنبر يقول و اعدوا لهم ما استطعتم من قوّة الا ان القوة الرمی الا ان القوة الرمی الا ان القوة الرمی. (صحیح مسلم ج۲، ص۱۴۳، باب فضل الرمی و الحث علیه، کتاب الجهاد)

"له عقبه بن عامر رضی الله عنه څخه روایت دی چه ما له رسول الله ﷺ څخه اوریدلي دي په د اسې حال کښې چه دی مبارك ﷺ په ممبر باندې تشریف فرما وو نو ده مبارك ارشاد وفرمایه: او جوړ کړی له کفارو سره د جنګ په خاطر هغه شیان چه تاسو ورسره په طاقت کښې کیدلی شی۔ خبردار بې شکه قوت تیر اندازي ده، خبردار بې شکه قوت تیر اندازي ده"۔

د دې حدیث په تفسیر کښې علامه ابوبکر الجصاص الرازي رحمه الله فرمایي: و معنى قوله الا ان القوّة الرمی ان من معظم ما يجب اعداده للقوة على قتال العدوّ و لم ينف به ان يكون غيره من القوة بل عموم اللفظ شامل لجميع ما يستعان به على العدو من سائر انواع السلاح و آلات الحرب. (احکام القرآن ج۲، ص۸۵، سورة الانفال)

دوهم روایت دا دی: عن عقبة بن عامرؓ قال سمعت رسول اللهﷺ يقول ان الله تعالى يدخل با لسهم

الواحد ثلاثة نفر الجنة صانعه یحتسب فی صنعته الخیر و الرامی به و منبله. (رواه ابو داؤد بذل المجهود ج۱۱، ص۴۲۸، کتاب الجهاد، باب الرمی)

"د عقبه بن عامر رضی الله عنه څخه روایت دی چه ما له رسول اللهﷺ څخه اوریدلي دي چه الله تعالی په یو تیر باندې درې کسان جنت ته داخلوي یو جوړوونکی چه د جوړوونکي نیت ئې ورته د خیر وي، بل ویشتونکی، او بل د غیشي ورکوونکی د غیشي ویشتونکي په لاس کښې".

د دې حدیث په اړه د ابو داوود شارح مولانا خلیل احمد سهارنپوري صاحبؒ لیکي: و لم یکون فی زمن رسول اللهﷺ الا رمی السهام فیدخل بل یعوض عنه فیه ما یرمی به من الرصاص با لبندوقیة و المدافع و غیر ذٰلك من آلات الحرب الجدیدة فی هٰذا الزمان فانها اغنت عن رمی السهام با لقوس و عطلته. (بذل المجهود ج۱۱، ص۴۲۸، باب الرمی، کتاب الجهاد)

په فقهاء کرامو کښې د فقه حنفي مشهور او معروف شخصیت علامه ابن نجیم المصريؒ فرمایي: یندب للمجاهد فی دار الحرب توقیر الاظفار و ان کان قصها من الفطرة لانهٗ ازا سقط السلاح من یده و دنا منه العدو ربما یتمکن من دفعه با لاظافیر و هو نظیر قص الشوارب فانهٗ سنة ثم الغازی فی دار الحرب مندوب الٰی توقیرها و تطویلها لیکون اهیب فی عین من یبارز. فا لحاصل ان ما یعین المر علی الجهاد فهو مندوب الی اکتسابه لما فیه من اعزاز المسلمین و قهر المشرکین. (البحر الرائق ج۵، ص۷۶، کتاب الجهاد)

"یعنې په دار الحرب کښې د یوه مجاهد لپاره د نوکانو اوږدول سره له دې چه پرې کول ئې یو فطري امر دی مندوب او مستحب دی ځکه چه د جنګ او جهاد په دوران کښې که چېرته له هغه سره اسلحه نه وي او دښمن ورته بالکل نژدې وي نو د نوکانو په ذریعه هم له دښمن څخه د ځان دفاع کولی شي او د دې بل نظیر د بریتونو پرې کول دي ځکه دا هم سنت دي او بیا د غازي لپاره په دار الحرب کښې د بریتونو اوږدول مستحب دي تر څو چه په دې وجه د هغه په مقابل دښمن باندې رعب او هیبت راشي.

حاصل دا دی چه هر هغه شی چه د مجاهد او غازي لپاره په جهاد کښې ممد او معاون ثابتیږي د هغه شي حاصلول مندوب او مستحب دی ځکه چه په دې کښې د مسلمانانو عزت او توقیر وي او د مشرکینو تذلیل او توهین دی".

د دې تصریحاتو له مخې دا خبره بالکل واضحه ده چه د مسلمانانو لپاره هر ډول اسلحه او جنګي سامان و آلات د دښمن د مقابلې لپاره تیار ساتل فرض او ضروري دي تر څو چه د جهاد په وخت کښې ئې توجه د اسلحې په جوړولو کښې نه وي.



## د جنګي سامانونو او یا عسکري قوت ضائع کــــول یا د هغو په منجمد کولو بـــــاندې وعیدونه

له کوم مسلمان ملك سره چه نوموړي د حرب آلات (او هغه هم په جدید ترین شکل کښې) موجود وي نو په ضائع کولو او په استعمال کښې د نه راوستلو په اړه د حضورﷺ مبارك ارشاد دی: عن عقبة بن عامرؓ قال سمعتُ رسول اللهﷺ یقول من علم الرمی ثم ترکه فلیس منا او قد عصی. (صحیح مسلم ج۲، ص۱۴۳، باب فصل الرمی و الحث، کتاب الجهاد)

"له حضرت عقبه بن عامر رضی الله عنه څخه روایت دی چه ما له رسول اللهﷺ څخه اوریدلي دي چه وئې فرمایل: چا چه د غشي ویشتل زده کړل او بیا ئې پرېښود نو هغه له مونږ څخه نه ده یا هغه ګنهار شو".

د پورتني حدیث لاندې د مسلم شریف شارح امام نووي رحمه الله فرمایي:

هٰذا تشدید عظیم فی نسان الرمی بعد علمه و مکروه کراهة شدیدة من ترکه بلا عذر. (صحیح مسلم ج۲، ص۱۴۳، باب فصل الرمی و الحث، کتاب الجهاد)

او د دې حدیث په تشریح کښې ملا علي قاري حنفي رحمه الله فرمایي: "یعنې چا چه د غشي ویشتل زده کړل او بیا ئې پرېښود نو هغه له مونږ څخه نه دی ګواکه هغه پکښې نقصان ولیده او استهزاء ئې پرې وکړه او دا صورتونه په کفران نعمت کښې راځي. د حدیث شراح دې نعمت ته نعمت خطیره ویلي دي". (مرقات ج۷، ص۳۱۴، باب اعداد آله الجهاد)

او دا حدیث په یوه بل روایت کښې د اسې بیان شوی دی: من تعلم الرمی ثم نسیه فهی نعمة جحدها. (مجموعة الفتاوٰی لابن تیمیة ج۲۸، ص۹، الجهاد)

په لنډه توګه د دې مبارك حدیث په رڼا کښې دا امر واضح کیږي چه لکه څرنګه چه د حرب د آلاتو اعداد د مسلمانانو لپاره ضروري او لازمي دي همدا رنګه د عسکري فن زده کول او بیا ئې پرېښودل او هیرول ډېر د ملامت وړ کار دی کوم چه امام نووي او ملا علي قاري په صراحت سره په دې باندې تنبیه ورکړې ده. موجوده حالاتو ته که چېرته په غور سره وکتل شي نو د یوه مسلمان ملك سره چه کوم طاقت او قوت وي چه د اسلام دښمنان ترې مرعوب کیږي نو د داسې قوت او طاقت له منځه وړل، په استعمال کښې ئې نه راوستل او یا هغه لره منجمد کول د دې وعید په ضمن کښې راځي.

علامه برهان الدین المرغیناني "حرمت اکل لحم الفرس" (یعنې د اس د غوښې د حرمت یو علت دا هم دی چه: و یکره لحم الفرس عند ابی حنیفةؒ...... و لانه آلة ارهاب العدو فیکره اکله احتراماً له و لهٰذا یضرب له بسهم فی الغنیمة و لانه فی اباحته تقلیل آلة الجهاد. (الهدایة علی صدر فتح القدیر ج۸، ص۴۲۰/۴۲۱، کتاب الجهاد)

یعنې د امام ابو حنیفه رحمه الله په نزد د داسې غوښې خوړل مکروه دي (د هغه یو علت دا دی) چه د دښمن د ډارولو، ویرولو او مرعوب کولو آله ده نو ځکه ئې د احترام له وجهې د

غوښې خوړل مکروه تحریمي دي او د دې عظمت له وجهې په مال غنیمت کښې د اس مستقله حصه ده او دو هم علت ئې دا دی چه د اباحت په صورت کښې د جهاد د آلې تقلیل لازمیږي".

د کفارو او غیر مسلمو د دباو لاندې راتلل او ایتمي صلاحیت او حربي او عسکري قوت منجمد کول او یا په هغه کښې د تخفیف د کولو په اړه په یوې بین المللي معاهدې باندې د دستخط کولو په باره کښې د دغو قطعي نصوصو څخه استدلال کیدلی شي. د الله تعالی ارشاد دی: فَلَا تُطِعِ الْكَافِرِينَ وَجَاهِدْهُم بِهِ جِهَادًا كَبِيرًا. (سورة الفرقان، آیت ۵۲)

"د کفارو خبرې مه منی او له هغو سره زوروره مقابله وکړی".

په بل ځای کښې ارشاد فرمایي: وَلَا تَرْكَنُوا إِلَى الَّذِينَ ظَلَمُوا فَتَمَسَّكُمُ النَّارُ. (سورة هود، آیت ۱۱۳)

"او د هغو کسانو خوا ته چه ظلم ئې کړی دی معمولي میلان هم مه کوی بیا به په تاسو باندې د جهنم اور ولګیږي".

په یوه بل ځای کښې د الله تعالی مبارک ارشاد دی: وَدَّ الَّذِينَ كَفَرُوا لَوْ تَغْفُلُونَ عَنْ أَسْلِحَتِكُمْ وَأَمْتِعَتِكُمْ فَيَمِيلُونَ عَلَيْكُم مَّيْلَةً وَاحِدَةً. (سورة النساء، آیت ۱۰۲)

"کفار دا خوښوي چه تاسې له خپلو اسلحو او اسبابونو څخه غافل شی تر څو په تاسو باندې په یو ځل حمله وکړي".

په دغو نصوصو باندې په غور او فکر او تدبر سره دا خبره په واضحه توګه څرګندیږي چه الله تعالی پوره په ښه شد و مد سره مسلمانانو ته هر وخت د کفارو په مقابله کښې د تیار اوسیدلو حکم کړی دی او د کفارو خوا ته ئې معمولي میلان هم د اور د داخلیدلو موجب ګرځولی دی. که چیرته زمونږ مسلمان حکمرانان د یهودو، هنودو او نصاراوو تر دباو لاندې راشي او په دې رسوا کوونکې معاهدې باندې دستخط وکړي نو په لازمي توګه دوی د دغو قطعي نصوصو او الهي فرمانونو خلاف ورزي او مخالفت کوي.

## چه د مسلمانانو له مفاد اتو او ګټو سره ټکر وي د داسې معاهدې پابندي ضروري نه ده

که چیرته د اسلحې د تخفیف په اړه یوه بین المللي معاهده موجوده وي او کنټرول ئې هم د کفارو په لاس کښې وي نو آیا په دې صورت کښې به مسلمانان د دې معاهدې پابند وي او که نه؟ په دې باره کښې له ټولو نه مخکښې چه کله مونږ د خپل کتاب قرآنکریم خوا ته رجوع کوو نو لاندیني آیتونه مخې ته راځي.

﴿۱﴾ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَتَّخِذُوا الْكَافِرِينَ أَوْلِيَاءَ مِن دُونِ الْمُؤْمِنِينَ (سورة النساء، آیت ۱۴۴)

"ای د ایمان خاوندانو کافران خپل دوستان مه جوړوی". د مسلمانانو په پرېښودو سره غواړې چه پخپل ځان د الله تعالی صریح الزام واړوی.



﴿۲﴾ وَإِمَّا تَخَافَنَّ مِن قَوْمٍ خِيَانَةً فَانبِذْ إِلَيْهِمْ عَلَىٰ سَوَاءٍ إِنَّ اللَّهَ لَا يُحِبُّ الْخَائِنِينَ. (سورة الانفال، آیت ۵۸)

"یعني که چیرته تاسو ته له یوه قوم څخه د خیانت او وعده خلافي خطره پیدا شي نو د هغوی عهد د هغوی خوا ته په دې صورت کښې واپس کړی چه تاسو او هغوی سره برابر شی ځکه چه الله تعالی خیانت کوونکي نه خوښوي". (معارف القرآن ج۴، ص۲۶۹، سورت الانفال)

## د یهودو او نصاراوو سره د دوستی ممانعت

د الله تعالی ارشاد دی: يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَتَّخِذُوا الْيَهُودَ وَالنَّصَارَىٰ أَوْلِيَاءَ بَعْضُهُمْ أَوْلِيَاءُ بَعْضٍ وَمَن يَتَوَلَّهُم مِّنكُمْ فَإِنَّهُ مِنْهُمْ إِنَّ اللَّهَ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الظَّالِمِينَ ☆ فَتَرَى الَّذِينَ فِي قُلُوبِهِم مَّرَضٌ يُسَارِعُونَ فِيهِمْ يَقُولُونَ نَخْشَىٰ أَن تُصِيبَنَا دَائِرَةٌ فَعَسَى اللَّهُ أَن يَأْتِيَ بِالْفَتْحِ أَوْ أَمْرٍ مِّنْ عِندِهِ فَيُصْبِحُوا عَلَىٰ مَا أَسَرُّوا فِي أَنفُسِهِمْ نَادِمِينَ. (سورة المائدة، آیت ۵۲/۵۱)

"ای د ایمان خاوندانو! تاسو یهود او نصاری په دوستۍ سره مه نیسی هغوی پخپلو کښې د یوه او بل دوستان دي او کوم یو چه له تاسو څخه له هغوی سره دوستي وکړي نو هغه له هغوی څخه دی، الله تعالی ظالمانو ته هدایت نه کوي. اوس به ته ووینې هغوی چه په زړونو کښې ئې مرض دی ډاریږي او له دوی سره یو ځای کیږي او وایي چه مونږ ډاریږو چه په مونږ باندې د زماني دوران را نه شي پس نژدې دی چه الله تعالی زر ښکاره کړي له خپلې خوا څخه فتح یا یو امر نو دوی به د خپلو زړونو په پټو خبرو باندې پښیمان وي".

علامه ابو بکر الجصاص الرازي د دې آیت په ضمن کښې لیکي چه په دغو آیتونو کښې الله تعالی د دوی له دوستۍ او ازلال څخه منع فرمایلي ده ځکه چه په دې کښې د دوی عزت او برتري ده. (احکام القرآن ج۳، ص۱۲۳)

له دغو آیتونو څخه په ښکاره توګه معلومیږي چه سي ټي بي ټي او این پي ټي باندې دستخط کول او د هغې لپاره د لاړې هوارول او په دې سلسله کښې د تعاون په صورت کښې کوم خلک چه د کفارو او یهودو او نصاراوو سره د دوستۍ. چه کومه مظاهره کوي د هغوی حشر به د کفارو او یهود و نصاراوو سره وي لهذا حکومت ته په کار دي چه په دې معاهده باندې د دستخط کولو په صورت کښې د عقل او هوش څخه کار واخلي او د دې له بد انجام څخه دې خپل ځان وژغوري او د سي ټي بي ټي د حامیانو دا وینا چه د دستخط نه کولو په صورت کښې دا کیږي او هغه کیږي نو هغوی ته په دغو آیتونو کښې یعنې د دغو آیتونو په رڼا کښې هیڅ عذر نه پاتې کیږي.

## د دستخط د کولو په صورت کښې د کفارو له خوا امداد وعدې

د اسلحې د تخفیف په دې معاهدې باندې د دستخط د کولو په صورت کښې د کفارو له خوا څخه د مالي امداد او تحفظاتو وعدې شوي دي او د دې برعکس چه د حرب د آلاتو د تیارۍ په اړه چه کوم آیت کریمه مونږ مخکښې ذکر کړه چه "وَأَعِدُّوا لَهُم مَّا اسْتَطَعْتُم" نو د دې آیت په آخر کښې د الله تعالی فرمان دی: وَمَا تُنفِقُوا مِن شَيْءٍ فِي سَبِيلِ اللَّهِ يُوَفَّ إِلَيْكُمْ وَأَنتُمْ لَا تُظْلَمُونَ☆

په دې کښې د غور له کولو څخه دا معلومیږي چه مسلمان په جهادي سامانونو باندې څومره مصرف کوي د هغه په اړه الٰهي وعده ده چه "یُوَفَّ اِلَیْکُم" یعنې هغه مصرف تاسو ته د الله تعالی له طرفه پوره پوره درکول کیږي پرته له څه کمې نه. ګواکه دا آیت کریمه د دې خبرې تصریح ده چه که چېرته د حرب د آلاتو په تیاري باندې ستاسو څومره مصرف شوی وی او مصرف خو خامخا کیږي نو د هغو مصارفو انتظام الله تعالی پخپله کوي.

اوس د اقتصادي بندیزونو له ویرې څخه په سي تي بي تي او یا په این پي تي باندې دستخط کول ګواکه د الله تعالی له وعدې څخه انحراف یعنې مخ اړونه ده. همدا ډول نور هم داسې آیتونه دي چه له هغو څخه دا معلومیږي چه د مسلمانانو لپاره د خپل عزت او وقار زخمي کول او له کفارو څخه استعانت اخیستل صحیح نه دي لکه چه الٰهي فرمان دی:

﴿۱﴾ یٰاَیُّهَا الَّذِیْنَ بِطَانَةً مِنْ دُوْنِکُمْ لَا یَاْلُوْنَکُمْ خَبَالاً. (آل عمران، آیت۱۱۸)

علامه ابو بکر الجصاص الرازي رحمه الله د دې آیت په تفسیر کښې فرمایي: وفی هٰذه الآیة دلالة علی انهٗ لا تجوز الاستعانة باهل الذمة فی امور المسلمین من العمالات و الکتبه. (احکام القرآن ج۲، ص۴۴، سورة آل عمران)

"د دې آیت یعنې لاتتخذو بطانه کښې د دې خبرې دلیل دی چه د مسلمانانو په اجتماعي کارونو او ملازمتونو کښې د کفارو له ذمه دارانو څخه د امداد اخیستل جائز نه دي".

﴿۲﴾ همدارنګه په یوه بل آیت کریمه کښې هم د دې شي وضاحت کړی شوی دی.

یٰاَیُّهَا الَّذِیْنَ اٰمَنُوْا لَا تَتَّخِذُوا الْیَهُوْدَ وَ النَّصٰارٰی اَوْلِیَآءَ بَعْضُهُمْ اَوْلِیَاءُ بَعْضٍ وَ مَنْ یَّتَوَلَّهُمْ مِّنْکُمْ فَاِنَّهٗ مِنْهُمْ. (سورة النساء، آیت ۵۱)

د دې آیت لاندې علامه ابو بکر الجصاص الرازي فرمایي چه:

"په دغو آیتونو کښې حق تعالی د کفارو له دوستۍ او د هغوی له اعزاز څخه منع فرمایلې ده او د هغوی د اهانت (سپکوالي) او ازلال حکم ئې کړی دی او له هغوی څخه د مسلمانانو په اجتماعي کارونو کښې د کومك له اخیستلو څخه منع فرمایلې ده ځکه چه په دې کښې د هغوی عزت او برتري راځي". (احکام القرآن ج۳، ص۱۲۳، سورت النساء)

د الله تعالی ارشاد دی: اَلَّذِیْنَ یَتَّخِذُوْنَ الْکَافِرِیْنَ اَوْلِیَآءَ مِنْ دُوْنِ الْمُؤْمِنِیْنَ اَیَبْتَغُوْنَ عِنْدَهُمُ الْعِزَّةَ فَاِنَّ الْعِزَّةَ لِلّٰهِ جَمِیْعاً. (سورة النسآء، آیت۱۳۹)

"کوم خلك چه له مسلمانانو نه علاوه کفارو لره خپل دوستان جوړوي آیا دوی له هغوی څخه قوت او عزت غواړي هغوی دې په یاد وساتي چه قوت او عزت ټول د الله تعالی لپاره دی یعنې قوت او عزت د الله تعالی په قوانینو باندې په عمل کولو باندې حاصلیږي".

د پورتني تصریحاتو او نصوصو له مخې له کفارو څخه امداد غوښتل او له هغوی سره دوستي کول په دې وجه سره چه په دې کښې زمونږ عزت دی بالکل صحیح نه دی او دا زمونږ مشاهده ده چه مسلمان ممالك له کومو کفري ملکونو سره چه څومره معاهدې کړي دي هغو د



وعدو د پوره کولو خیال نه دی ساتلی. د پاکستان او د عربو له کفارو سره شوې معاهدې زمونږ په مخکښې دي کوم چه له خسارې او نقصان نه پرته بل څه زمونږ لاس ته نه دي راغلي.

علامه ابو بکر الجصاص الرازيؒ د پورته ذکر شوي آیاتو په ضمن کښې لیکي: و هٰذا یدل علی انهٗ غیر جائز للمؤمنین الاستنصار با لکفار علی غیرهم من الکفار اذا کان متٰی غلبوا کان حکم الکفر هو الغالب و بذٰلك قال اصحابنا. (احکام القرآن ج۲، ص۳۵۲، سورة النساء)

## د فتوٰی خلاصه او حاصل

پورتني دلیلونه کوم چه د قرآنکریم له صریحو آیتونو او د نبويﷺ د سنتو په واضحو هدایاتو، د مفسرینو، محدثینو او د امت د فقهاوو په تشریحاتو باندې مشتمل دي او په کومو شیانو باندې چه د ټولو فقهي مکاتب فکر اجماع دی له هغو څخه لاندیني امور ثابتیږي.

﴿الف﴾ د اسلام د دښمنانو جارحیت او د اسلامي ملکونو د حفاظت او دفـــــــاع لپاره هر ډول فوجي ساز و سامان، د جنګي آلاتو تیاري او په هغو کښې شپه او ورځ ترقي او د دښمنانو د ارهـــــــاب لپاره د جهاد د آلاتو تیاري فرض عین دی. آن تر دې چه د اسلام اساسي عبادتونه لکه لمونځ، روژه، زکات او د حج فرضیت له محدودو وختونو او اندازې سره تړلي دي لیکن د دښمن د مقابلې تیاري غیر محدود او غیر مقید دی او د غیر موقت او د ټولو ممکنه طاقتونو سره تړلی دی کوم چه الله تعالی جل جلالُه د "وَ اَعِدُّوا لَهُمْ مَا اسْتَطَعْتُم (الآیة)" کښې ذکر کړی دی.

﴿ب﴾ د اسلام د دښمنانو د دباو لاندې په راتللو کښې داسې کومه معاهده یا اقدام هیڅکله جائز نه دی چه له مخې ئې په فوجي او حربي تیاریو کښې تعطل او ځنډ پیدا کیږي او یا په هغو کښې کموالی راځي او یا پکښې حربي ساز و سامان منجمد کیږي او یا په حربي تمریناتو، ټریننګ، مشق او تربیت کښې نقصان راځي او یـــــــا په دغو ټولو امورو کښې کمی راځي او یا کوم داغ پرې لګیږي.

﴿ج﴾ سي ټي بي ټي او د این پي ټي په شکل کښې د بحث لاندې معاهده کښې داټول خطرات، خدشات، اندیښنې او ډول ډول بندیزونه موجود دي نو په دې لحاظ سره په دې باندې د یوه مسلمان ملك لپاره د پاکستان په شمول دستخط کول او یا د هغې تحریري یا ژبني تایید او اتفاق د قرآن، سنت او د امت د اجماع له مخې هیڅکله اجازه نشته. که چېرته د کوم ملك سربراه، وزیر اعظم او یا د پارلمان ارکان او یا عام شهري د دې موافقت او تایید وکړي نو هغه د الله تعالی او د هغه د رسولﷺ د ښکاره احکامو د مخالفت او ښکاره بغاوت مرتکب دی. داسې خلکو ته د خپل دین، عقیدې او ایمان ته خدایي امان په کار دی. په قصد سره د داسې عمل کوونکي خلك د ملك او ملت غداران دي کوم چه په دې طریقې سره هغوی د ملك د آزادي، سالمیت او خپلواکۍ د له منځه وړلو غوندې د قبیح جرم ارتکاب کوي. د شریعت له مخې په داسې صورت کښې ټول قوم ته په دیني، ملي او قومي جُرم کښې د مرتکبو حکمرانانو په خلاف هر ډول کوشش او جد و جهد نه یوازې جائز بلکه ضروري دي".

# كتاب الدعوىٰ و القضاء

## (د دعوىٰ او قضاء احكام او مسائل)

## د قاضي په علم باندې د فيصلې حكم

**سوال:** آيا قاضي پخپل علم باندې د يوې مقدمې فيصله كولى شي او كه نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** شريعت مطهره چه د فيصلې كومه طريقه ښوولې ده او كوم قواعد او ضوابط ئې چه وضع كړي او مرتب كړي دي قاضي به د هغو پابند وي. لهذا قاضي به يا د مدعي په ګواهانو باندې فيصله كوي او كه چېرته ګواه نه وي نو د مدعا عليه په قسم باندې به فيصله كوي. د دې طريقې په مطابق په فيصله كولو كښې په قاضي باندې هيڅ تهمت او د اسې نور نه لازميږي او فريقين هم مطمئن كيږي. كه چېرته قاضي ته په يقيني توګه باندې د كوم فريق په اړه معلومات حاصل وي چه دا په حقه دى نو اګر كه متقدمين علماء د دې يقيني معلوماتو په حصول باندې قاضي ته د فيصلې اختيار وركړى دى ليكن په معاشره كښې د خرابۍ او فساد د پيدا كيدو په سبب چونكه په نن دور كښې په قاضي باندې هغه اعتماد پاتې نه دى چه د متقدمينو په دور كښې وو نو له دې وجهې متاخرينو علماء كرامو قاضي لره د تهمت د خطرې او انديښنې څخه د محفوظ ساتلو او مقضي عليه ته د اطمينان د وركولو په خاطر د قاضي لپاره پخپل علم باندې فيصله كول ناجائز ګرځولي دي.

قال العلامة ابن عابدينؒ: و الفتوىٰ على عدمه فى زماننا كما نقله فى الاشباه عن جامع الفصولين و قيد بزماننا لفساد القضاة فيه و اصل المذهب الجواز. (رد المحتار ج ٤، ص ٣٨٣، كتاب القضاء، مطلب فى حكم القاضى بعلمه)

قال العلامة ابن نجيمؒ: و رجع فى جامع الفصولين قول محمد قال و ينبغى ان يفتىٰ به لما علم من احوال قضاة زماننا ثم نقل ان محمدا قال لا يقضى القاضى بعلمه ثم نقل عن عيون المذاهب ان بقوله يفتى. (البحر الرائق ج ٦، ص ٢٥٨، كتاب القضاء) و مثله فى الاشباه و النظائر ج ٢، ص ٣٣٦، كتاب القضاء و الشهادة و الدعاوى.

## د قاضي لپاره د مدعي يا مدعىٰ عليه په كور كښې د پاتې كيدلو حكم

**سوال:** آيا قاضي د مدعي يا مدعي عليه په نزد قيام كولى شي او كه نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د قضاء منصب چونكه ډير نازك او د اهميت وړ منصب دى نو د دې لپاره شريعت په تفصيل سره د هغه آداب بيان كړي دي. په اصل كښې د دې ټولو آدابو مقصد دا دى چه قاضي له تهمت څخه محفوظ پاتې شي ترڅو چه د هغه وقار په معاشره كښې په ځاى پاتې شي نو ځكه شريعت د قاضي لپاره له هر هغه عمل څخه پرهيز كول لازمي ګرځولي دي چه د هغه له صدور څخه د قاضي په وقار باندې تهمت راځي او د فريقينو د اعتماد د پورته كېدو ذريعه جوړيږي. چونكه د مدعي او مدعي عليه په نزد د پاتې كيدو په وجه سره په



قاضي باندې تهمت راځي چه په وجه ئې په هغه باندې اعتماد باقي نه پاتې كيږي كوم چه د قضاء په باب كښې مطلوب دى نو ځكه د قاضي لپاره د يوه فريق په نزد قيام كول يعنې پاتې كيدل جائز نه دي.

كما فى الهندية: فاما اذا كانت لصاحب الدعوة خصومة لا يجيب دعوته و ان كانت بينهما قرابة او مباسطة قبل القضاء. (الفتاوى الهندية ج٣، ص ٣٣١، الباب التاسع فى رزق القاضى)

قال العلامة الحصكفى رحمه الله: و لا يجيب دعوة خصم و غير معتاد و لو عامة للتهمة. (در المختار ج٤، ص ٣٤٧، كتاب القضاء، مطلب فى حكم الهدية للمفتى) و مثله فى البحر الرائق ج٧، ص ٢٨١، كتاب العارية

## د مدعي او مدعي عليه د قاضي په تعين كښې د اختلاف حكم

**سوال:** مدعي او مدعي عليه دواړه د مختلفو مناطقو سره تعلق لري. په يوه متنازعه مسئله كښې مدعي د خپلې علاقې په قاضي باندې فيصله كول غواړي او مدعي عليه د خپلې علاقې په قاضي باندې نو په دې صورت كښې به د كوم يوه د علاقې قاضي ته ترجيح وركول كيږي؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** كله چه مدعي د خپل حق د حصول لپاره په چا باندې دعوىٰ كوي نو مدعي ته د حق د وركولو په وخت كښې په ظاهره سره مدعي عليه نقصان برداشت كوي نو ځكه هغه د اطمينان وركول هم ضروري دي نو د شريعت په دائرهٔ اختيار كښې هغه ته چه كوم يو قاضي ته په تللو كښې اطمينان حاصليږي نو هغه ته هم هلته د مقدمې د چلولو حق حاصل دى. لهذا كه چېرته د مدعي او مدعي عليه تر منځ د قاضي په باره كښې اختلاف پيدا شي نو د مفتىٰ بهٖ قول مطابق د مدعي عليه رايې ته به ترجيح وركول كيږي.

لما قال العلامة بدر الدين محمد بن اسماعيل الشهير بابن قاضى سماوةؒ: و ان كان من المحلتين فاراد المدعى ان يخاصمه الى قاضى محلته و اباه الآخر قال ابو يوسفؒ العبرة لمدعى قال محمد لا بل للمدعى عليه و به يفتى. (جامع الفصولين ج١، ص ٢١، الفصل التاسع و الثلاثون فى المتفرقات)

قال العلامة سليم رستم بن باز اللبنانىؒ: اذا طلب احد الخصمين فى البلدة التى تعدد حكامها المرافعة فى حضور حاكم و طلب الآخر المرافعة فى حضور حاكم آخر و وقع الاختلاف بينهما على هذا الوجه يرجع الحاكم الذى اختاره المدعى عليه. (شرح مجلة الاحكام المادة ١٨٠٣، ص ١١٧١، الكتاب السادس عشر فى القضاء، الفصل الثالث فى وظائف الحاكم) و مثله فى تنقيح الحامدية ج١، ص ٣١٧، كتاب القضاء، باب هل العبرة بقاضى المدعى الخ.

## د فيصلې په نه منلو باندې د جرمانې د اخيستلو حكم

**سوال:** د فريقينو تر منځ د فيصلې د كولو په وخت كښې دريمانو له دواړو خواوو څخه پنځه پنځه كلاشنكوفونه له خپل ځان سره كيښودل او شرط ئې دا ولګاوه چه د فيصلې د اختيار له وركولو نه وروسته كومه يوه ډله چه له فيصلې څخه انكار وكړي نو د هغې كلاشنكوفونه به د

جرماني په توګه ضبط کيږي. دوا‌ړو خواوو په دې وخت کښې دا شرط قبول کړ چنانچه له فيصله څخه وروسته يوې ډلې د فيصلې له منلو څخه انکار وکړ چه له مخې ئې د هغه پنځه کلاشنکوفونه ضبط شول. لهذا د فيصلې څخه په انکار کولو باندې د جرمانې وصولول جائز دي او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** کله چه دواړه خواوې په خوښې سره دريمانو ته د فيصلې اختيار ورکړي نو د دريمانو فيصله که چېرته د شريعت د اصولو منافي نه وي نو بيا له هغې څخه انکار کول جائز نه دي بلکه د دې فيصلې منل په دواړو خواوو باندې لازم دي څکه چه له داسې فيصلې څخه انکار يو غير شرعي امر دی او د يوه غير شرعي امر په ارتکاب باندې د جرمانې وصولول جائز دي اګر که په اصل مذهب کښې عدم جواز دی ليکن په معاشره کښې د بديو د مخنيوي لپاره چونکه په شرعي طريقې سره د تعزيراتو نظام مفقود دی او د بديو انسداد او مخنيوي ضروري ده نو څکه که چېرته يو داسې طاقت او قوت موجود نه وي چه د هغه په وجه سره د جرائمو انسداد وکړی شي او په تعزير بالمال سره د هغه انسداد يعني بنديدل او مخنيوی کيدلی شو نو په داسې صورت کښې د معاشرې د اصلاح په خاطر د امام ابو يوسف رحمه الله په قول باندې فتوٰی ورکول ډير مناسب دي.

لما قال العلامة طاهر بن عبد الرشيد البخاری رحمه اللّٰه: قال المصنف سمعت من ثقة ان التعزير باخذ المال ان رأى القاضی او الولی جاز و من جملة ذلك رجل لا يحضر الجماعة يجوز تعزيره باخذ المال. (خلاصة الفتاوٰی ج۴، ص۴۴۴، کتاب الحدود، الفصل الاول)

قال العلامة الزيلعی رحمه اللّٰه: عن ابی يوسف ان تعزير باخذ الاموال جائز للامام. (تبيين الحقائق ج۳، ص۲۰۷، باب حد القذف، فصل فی التعزير) و مثله فی البحر الرائق ج۵، ص۴۱، باب حد القذف، فصل فی التعزير.

## د حکومت له خوا څخه د ټاکل شوي قاضي شرعي حيثيت

**سوال:** آيا په نن دور کښې د حکومت له خوا څخه ټاکل شوی قاضي د شرعي قاضي قائم مقام ګرځيدلی شي او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د قاضي ټاکنه په اصل کښې د خلکو د تنازعاتو د ختمولو لپاره وي. د دغو تنازعاتو د ختمولو لپاره شريعت باقاعده حدود ذکر کړي دي او همدارنګه د قضاء په منصب باندې د فائز کيدو لپاره ئې څه شرائط ټاکلي دي نو څکه که چېرته د دغو شرائطو په مراعات کولو سره د وخت حکومت چه کوم يو هم د تنازعاتو د حل کولو لپاره قاضي يا مجسټريټ ټاکلی وي نو هغه د شرعي قاضي قائم مقام وي. چونکه قاضي د خلکو د تنازعاتو د حل کولو په باره کښې د وکيل حيثيت لري او حکومت ته په دې باره کښې اختيار حاصل دی چه د دې کار لپاره چه څوک وغواړي مقرر کولی ئې شي ليکن په دې کښې دا ضروري دي چه قاضي به د شرعي اصولو مطابق او موافق چلن کوي او فيصله ئې د شرعي قواعدو خلاف نه وي.



قال العلامة سليم رستم باز: الحاکم وکيل من قبل السلطان فی اجراء المحاکمة و الحکم. (شرح مجلة الاحکام المادة ۱۸۰۰، ص۱۱۶۷، الکتاب السادس عشر، الفصل الثالث)

قال العلامة الکاسانی: کل ما يخرج به الوکيل عن الوکالة يخرج به القاضی عن القضاء. (بدائع الصنائع ج۷، ص۱۶، کتاب آداب القاضی، فصل فی بيان ما يخرج به الوکيل) و مثله فی الاحکام السلطانية ص۶۵، فی ولاية القضاء.

## په اعلٰی منصب باندې د اهل بدعت د ټاکنې حکم

**سوال:** آيا اهل بدعت کوم چه اعتقادي فاسقان دي له هغوی څخه يو څوك د رؤيت هلال کميټې صدر او چئرمين جوړول جائز دي او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په اعلٰی منصب (لوړې عهدې) باندې د يوه عادل او شريعتي يعنې هغه څوك چه د شريعت پابند وي سړي مقررول د وخت د حکومت ذمه واري ده څکه چه د عادل او نيك سړي له ټاکنې نه علاوه خلکو ته د هغوی د حقوقو تحفظ فراهم کول سخت او مشکل دی او د هلال کميټې د صدر (رئيس) سره د ديني امورو خاص تعلق دی نو چه کوم سړي پخپله د بدعتونو د ارتکاب له وجهې له شرعي حدودو څخه په تجاوز کولو سره په فسق او فجور کښې مبتلا وي نو هغه به د نورو مسلمانانو د عباداتو د تحفظ به څه لحاظ او مراعات وساتي نو څکه د حکومت لپاره مناسب نه دي چه د عادل او متشرع سړي له موجودوالي سره سره له بدعتيانو څخه يو څوك په دې عهدې باندې وټاکي. او بيا هم چه حکومت مقرر کړی وي نو په ديني امورو کښې د هغه حکم د شرعي قواعدو مطابق به نافذ العمل وي لکه څنګه چه د فاسق حکم نافذ العلم وي.

لما قال العلامة المرغينانی رحمه اللّٰه: و الفاسق اهل للقضاء حتی لو قلد يصح الا انه لا ينبغی ان يقلد کما فی حکم الشهادة. (الهداية ج۳، ص۱۳۲، کتاب ادب القاضی)

قال العلامة ابن عابدين: و الوجه تنفيذ قضاء کل من ولاه سلطان ذو شوکة و ان کان جاهلاً او فاسقاً و هو ظاهر المذهب عندنا و حينئذٍ فيحکم بفتوٰی غيره. (رد المحتار ج۴، ص۳۳۳، کتاب القضاء) و مثله فی جامع الفصولين ج۱، ص۱۶، الفصل التاسع و الثلاثون فی المتفرقات.

## مـــــدعي عليه چه له قسم څخه انکـــــار وکړي نو فيصله به د مدعي په حق کښې کيږي

**سوال:** کله چه مدعي پخپله دعوه باندې ګواهان وړاندې نه کړی شي نو په مدعي عليه باندې قسم لازميږي ليکن که چېرته مدعي عليه د قسم له کولو څخه انکار وکړي نو فيصله به د چا په حق کښې کيږي؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** کله چه د شرعي شرائطو مطابق د مدعي دعوٰی قاضي ته د اوريدو لپاره منظوره شي نو په مدعي عليه باندې د مدعي ځواب ورکول واجب دي چه يا دې د مدعي

د حق اقرار او یا انکار۔ که چېرته مدعي علیه د مدعي له حق څخه انکار وکړي نو په مدعي باندې لازم دي چه ګواه وړاندې کړي۔ که چېرته مدعي د ګواه له وړاندې کولو څخه عاجز شي نو بیا په مدعي علیه باندې قسم لازمیږي او که چېرته مدعي علیه له قسم څخه انکار وکړي نو په ده باندې د مدعي حق لازمیږي او فیصله به د مدعي په حق کښې کیږي۔

لما قال العلامة المرغیناني: و اذا نکل المدعیٰ علیه عن الیمین قضی علیه با لنکول و الزمه ما ادعی علیه. (الهدایة ج۳، ص ۲۰۲، باب الیمین، کتاب القضاء)

قال العـــــلامة الحصکفي: و قضی القاضی علیه بنکوله مرةً لنکوله فی مجلس القاضی حقیقةً. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۴، ص ۴۷۱، کتاب الدعوٰی) و مثله فی مجلة الاحکام المادة ۱۷۵۱، ص۱۱۰۶، کتاب الدعوٰی، الباب الثانی.

## د ثالث په فیصله باندې د قاضي د فیصلې د کولو حکم

**سوال:** فریقین یا دوه خواوې د کومې تنازعې د تصفیې لپاره دریمان وټاکل۔ د دریمانو له فیصله څخه وروسته نوموړې فیصله عدالت ته وړاندې شوه۔ قاضي د فیصلې له کتلو نه وروسته بعینه د دریمانو د فیصلې مطابق فیصله وکړه نو آیا د قاضي لپاره د دریمانو په فیصلې باندې فیصله کول جائز دي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** کله چه دوه خواوې د تنازعې د تصفیې لپاره پخپل منځ کښې په رضاء سره څوك دریم مقرر کړي نو هغه دریمان چه کومه فیصله هم کوي په دواړو خواوو باندې نافذ ګرځي کله چه د دوی فیصله عدالت ته وړاندې کیږي نو که چېرته د ثالث فیصله د شرعي قوانینو مطابقه وي نو د قاضي لپاره د همدې فیصلې ماتول جائز نه دي ځکه چه د دې فیصلې په ماتولو کښې د فریقینو هیڅ فائده نشته۔ بلکه د انتشار سبب ګرځي۔ البته که چېرته دا فیصله په کوم مختلف فیه امر کښې وي او هغه د قاضي د رائې موافق وي نو بیا د قاضي لپاره ئې ماتول مناسب نه دي۔ او که چېرته د قاضي د رائې خلاف وي نو قاضي د خپلې رائې مطابق په نوموړې فیصله کښې د تغیر او تبدیلي اختیار لري۔ نو د دې لپاره په نوموړي صورت کښې که چېرته د دریمانو فیصله د قاضي د رایې مطابق وي نو قاضي به همدا فیصله د مدار په جوړولو سره خپله فیصله اوروله شي۔

لما قال العلامة ابو بکر بن مسعود الکاساني: و منها انه اذا حکم فی فصل مجتهد فیه ثم رفع حکمه الی القاضی و رأیه یخالف رأی الحاکم المحکم لهٗ ان یفسخ حکمه. (بدائع الصنائع ج۷، ص۳، کتاب القضاء، فصل فی بیان من یصلح للقضاء)

قال العلامة سلیم رستم باز اللبناني: ان قضی المحکم فی فصل مجتهد فیه ثم رفع حکمه الی قاضی مولی من السلطان امضاه ان وافق مذهبه لانه لا فائدة فی نقضه. (شرح مجلة الاحکام، المادة۱۸۴۹، ص۱۱۹۹، الباب الرابع) و مثله فی خلاصة الفتاوٰی ج۴، ص۲۹، کتاب القضاء، الفصل الرابع.



## د دعوٰی د اثبات لپاره د تحریري ثبوت د وړاندې کولو حکم

**سوال:** یوه سړي پخپل ژوند کښې له خپل جائداد څخه یو کور پخپل زوی باندې وپلوره او کور ئې هم هغه ته و سپاره۔ د هغه له مړینې وروسته ئې نورو وارثانو په نوموړي کور کښې د شرکت دعوٰی وکړه او د خپلې دعوې د اثبات لپاره ئې باقاعده د مړي له طرفه وصیت نامه وړاندې کړه چه په هغې کښې نوموړی کور په وارثانو تقسیم شوی دی۔ نو آیا د دې تحریري وصیت نامې لاندې د نورو وارثانو په حق کښې فیصله کیدلی شي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د شریعت له مخې کوم سندونه چه د تغیر او تبدل څخه محفوظ وي هغو ته اعتبار ورکول کیږي او په هغو باندې فیصله کیدلی شي لیکن په موجوده حالاتو کښې چونکه دوکه او فریب په معاشره کښې ډیر شوي دي او خلك د مکر او فریب څخه خالي نه دي چه له مخې ئې په صحیح، غلط، رښتیا او دروغجنو سندونو کښې فرق مشکل شوی دی نو ځکه که چېرته په دغې تحریري معاهدې باندې باقاعده شاهدان موجود وي نو هغې ته به اعتبار ورکول کیږي او که نه وي نو نه به ورکول کیږي۔ په نوموړي صورت کښې کوم خلك چه په کور کښې د شرکت دعوٰی کوي او د خپلې دعوې د اثبات لپاره تحریري وصیت نامه وړاندې کوي نو که چېرته په همدغې وصیت نامې باندې ګواهان وړاندې کړي نو بیا به دا وصیت نامه شرعي حیثیت ولري او د فریقینو د دعوې له کتلو نه وروسته به فیصله کیدلی شي۔

لما قال العلامة سلیم رستم باز: و لا یعمل با لخط و التختم و حدهما الا اذا کان سالماً من شبهة التزویر و التضیع فیعمل بهٖ یعنی انه یکون مداراً للحکم و لا یحتاج الی الثبوت بوجه آخر. (شرح مجلة الاحکام، المادة ۱۷۳۶، ص ۱۰۹۰، الباب الثانی)

قال العـــــلامة ابن عابدین: فا لحاصل ان المدار علی انتفاء الشبهه ظاهرا و علیه فما یوجد فی دفاتر التجار فی زماننا اذا مات احدهم و قد حرر بخطه ما علیه فی دفتره الذی یقرب من الیقین انه لا یکتب فیه علی سبیل التجربة و الهزل یعمـــــل به. (فتاوی التنقیح الحامدیة ج۲، ص ۲۱، کتاب الدعوٰی) و مثله فی تقریرات الرافعی ج۲، ص۹۲، کتاب الدعوٰی.

## له مـــــدعي علیه څخه د مدعي د مقـــــدمې یعنې د دعوې د مصـــــرف اخیستلو حکم

**سوال:** د دعوې د کتلو په صورت کښې مدعي د محکمې مصرف د مدعي علیه څخه اخیستلی شي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** کله چه مدعي د خپل حق د حصول لپاره په محکمه کښې دعوٰی دائروي نو د عدالت عمله د هغه د حق د ژوندي کولو لپاره مصروف عمل وي چه تولله فائده ئې یواځې مدعي ته رسیږي او د عدالت د شیانو استعمال د نوموړې فائدې لپاره وي۔ د دې لپاره

د دغو شیانو مصرف په مدعي باندې عائد کیږي ځکه چه فقهاوو لیکلي دي چه قاضي ته اختیار حاصل دی که چېرته هغه د مقدمې د درج کولو او د اسې نورو خرڅه له مدعي څخه وصول کړي نو وصولولی ئې شي۔ کله چه د محکمې خرڅه په مدعي باندې راځي نو مدعي علیه د دې ضامن ګرځول او له هغه څخه د نوموړي مصرف وصولول جائز نه دي۔

كما فى الهندية: و على هٰذا الصحيفة التى يكتب و فيها دعوى المدعين و شهادتهم ان رأى القاضى ان يطلب ذٰلك من المدعى فلهٗ ذٰلك. (الفتاوى الهندية ج۳، ص ۳۳۰، الباب التاسع فى رزق القاضى)

قال العلامة طاهر بن عبد الرشيد البخارىؒ: و اذا اراد القاضى ان يكتب السجل و يأخذ على ذٰلك اجراً ياخذ منه مقدار ما يجوز اخذه لغيره. (خلاصة الفتاوى ج۴، ص۷) و مثله فى منحة الخالق على هامش البحر الرائق ج۶، ص۲۷۹، كتاب القضاء، الفصل الثانى.

## د وخت د حاکم له خوا قاضي ته د مملوکه زمکې د ورکولو حکم

**سوال:** د څلورو ورونو مشترکه جائداد کوم نواب صاحب قاضي ته د عطیه (بخشش) په توګه ورکړ۔ قاضي په دې جائداد باندې باقاعده قبضه هم وکړه او باقاعده ئې نفع ترې حاصلوله۔ د نوموړي نواب اقتدار چه کله ختم شو نو نوموړي څلورو ورونو له حکومت څخه د خپل جائداد د بیرته ورکولو غوښتنه وکړه۔ په عدالت کښې تقریبا د اولسو کلونو له مقدمې وروسته فیصله د دوو ورونو په حق کښې وشوه او پاتې دوه ورونه ئې یواځې په دې وجه له خپل حق څخه محروم کړل چه هغوی نواب صاحب ته دستخطونه کړي وو۔ اوس نوموړی مشترکه او نه تقسیم شوی جائداد د قاضي په قبضه کښې دی او نوموړي ورونو له قاضي څخه د جائداد د واپسي مطالبه وکړه لیکن هغه انکار وکړ او وئې ویل چه چونکه دا جائداد زمان په قبضه کښې دی او نوموړی نواب صاحب ما ته راکړی دی نو ځکه دا یواځې زما حق دی۔ نو اوس پوښتنه دا ده چه آیا د قاضي لپاره په داسې زمکې باندې قبضه جائزه ده او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** شریعت حاکم ته یواځې د هغه جائدادونو څخه د عطیاتو د ورکول حق ورکړی دی چه د چا مملوکه نه وي او کوم جائداد چه له اول څخه د چا په ملکیت کښې وي د هغه یوه برخه هم چا ته د عطیه یا انعام په توګه نه شي ورکولی۔ نو ځکه نوموړی نواب پخپل دور حکومت کښې چه کومه مملوکه زمکه قاضي ته ورکړې ده په دې باندې د قاضي ملکیت نه ثابتیږي او په خاصه توګه چه د نوموړي نواب له ختم کیدو وروسته حکومت د جائداد د مالکانو په حق کښې فیصله کړې وي نو دا جائداد به اصل مالکانو ته واپس کیږي۔ د قاضي لپاره په دې باندې بې ځایه قبضه جائزه نه ده بلکه دا به د غصب په حکم کښې راځي۔ نو ځکه که چېرته د قاضي د تصرفاتو له وجهې نوموړې زمکې ته نقصان رسیدلی وو نو د دې ذمه واري به په قاضي باندې عائد کیږي۔



لما قال العلامة ابو بكر بن مسعود الكاسانىؒ: و لو غصب ارضاً فبنٰى عليها او غرس فيها لا ينقطع ملك المالك و يقال للغاصب اقلع البناء و الغرس و ردّها فارغة لان الارض بحالها لم تتغير و لم تصر شيئاً آخر. (بدائع الصنائع ج۷، ص۱۴۹، كتاب الغصب، فصل فى حكم الغصب)

قال العلامة المرغينانىؒ: و من غصب ارضا فغرس فيها او بنى قيل له اقلع البناء و الغرس و ردها و فيه ايضاً فان كانت الارض تنقص بقلع ذٰلك فللمالك ان يضمن له قيمة البناء و قيمة الغرس مقلوعاً و يكونان له. (الهداية ج۳، ص۳۷۹، كتاب الغصب، فصل فيما يتغير بفعل الغاصب) و مثله فى مجلة الاحكام المادة ۹۰۵، ص۵۰۱، الفصل الثانى.

## د یوه ورور په نه شتون کښې د ګډ جائداد د فیصله کولو طریقه

**سوال:** د ورونو پخپل منځ کښې مشترکه جائداد وو۔ په دغه جائداد باندې چا د ملکیت دعوٰی وکړه۔ اوس له نوموړي ورونو څخه یو ورور موجود نه دی نو آیا د هغه د نه موجودیت په صورت کښې فیصله کیدلی شي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته غایب د خپل ځان له خوا څخه خپل کوم ورور ته د خپل جائداد د تنازعې په اړه مکمل اختیار ورکړی وي نو همدا ورور به د هغه له خوا څخه د وکیل په توګه باقاعده خصومت کولی شي او د هغه په موجودګي کښې قاضي فیصله کولی شي۔ لیکن که چېرته هغه د خپل ځان له خوا څخه خپل ورور ته اختیار نه وي ورکړی نو بیا چه کوم ورور موجود وي هغه د شریك غوندې ګرځي۔ د کومو شرائطو لاندې چه یو شریك د بل شریك له خوا څخه خصم جوړیدلی شي د همدغو شرائطو لاندې یو ورور د بل ورور خصم جوړیدلی شي۔ نو له دې وجهې که چېرته مشترکه زمکه د ورونو په قبضه کښې وي او تقسیم شوې نه وي او د کوم سبب له مخې تولو ورونو ته په دې باندې ملکیت حاصل وي نو کوم ورور چه موجود دی د هغه په موجودوالي کښې به فیصله کیږي او که چېرته په ذکر شوي شرائطو کښې کوم شرط موجود نه وي نو بیا د غائب په نه موجودوالي کښې فیصله جائزه نه ده۔

لما قال العلامة ابن عابدينؒ: انهٗ ينتصب احدهم عن الباقين بشروط ثلاثة كون العين كلها فى يده و ان لا تكون مقسومة و ان يصدق الغائب انها ارث عن الميّت. (رد المحتار ج۴، ص۳۷۳، كتاب القضاء)

قال العلامة قاضى سماوة: كون المدعى شيئين بينهما لا محالة فى هٰذه الصور يحكم على الغائب و فيه ايضاً و ذكر عامة المشائخ ان السببيّة تشترط فى ما كان المدعى شيئاً واحداً و هو الاشبه و الاقرب الى الفقه. (جامع الفصولين ج۱، ص۵۵، الفصل الخامس فى القضاء على الغائب الخ) و مثله فى فتاوى التنقيح الحامدية ج۱، ص۳۱۳، كتاب القضاء.

## د مکــــره په اقرار باندې د فیصلې حکم

**سوال:** په یوه سړي باندې د خپل پلار د قتل دعوٰی وشوه۔ د دعوې په اثبات باندې څوك ګواه هم وړاندې نه شو یواځې د پولیس له مظالمو څخه د بچ کیدو په غرض مدعي علیه د جرم اقرار وکړ۔ کله چه عدالت ته وړاندې شو نو هغه له خپل اقرار څخه رجوع وکړه نو آیا د پولیس په

وړاندې اقرار د مدار جوړولو په صورت کښې نوموړی سړی له میراث څخه د محرومولو فیصله صحیح ده او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په دې کښې هیڅ شك نشته چه قتل د میراث له موانعو څخه ده او د پلار په قتل کولو سره زوی د پلار له میراث څخه محروم ګرځي لیکن په دې شرط چه د قتل ثبوت په شرعي قواعدو او ضوابطو سره شوی وي او د قتل د ثبوت دوه صورتونه دي. یو د معائنه شهادت چه په قتل باندې د سترګو لیدلی ګواه وړاندې شي او دوهم دا چه پخپله خوښه د قتل اقرار وکړي. چونکه په نوموړي صورت کښې یواځې د پولیس له مظالمو څخه د بچ کیدو په خاطر زوی د پلار د قتل اقرار کړی دی نو ځکه دا سړی به د مکره د اقرار په حکم کښې وي لکه څنګه چه د مکره اقرار حجت نه دی نو ځکه د نوموړي سړي اقرار هم حجت نه دی. لهٰذا د دې سړي د پلار له میراث څخه محرومول جائز نه دي.

كما في الهندية: و كذا الرضا و الطوع شرط حتى لا يصح اقرار المكره كذا في النهاية. (الفتاوى الهندية ج٤، ص١٥٦، كتاب الاقرار، الباب الاول)

قال العلامة ابن نجيمؒ: اقرار المكره باطل. (الاشباه و النظائر ج٤، ص٤٩٦، باب الاقرار) و مثله في مجلة الاحكام المادة ١٥٧٥، ص٨٦٢، كتاب الاقرار، الباب الاوّل.

## د شــــریك په نه موجودیت کښې د قاضي د فیصلې تحقیق

**سوال:** د دوو سړو تر منځ یوه مشترکه زمکه وه. د یوه شریك په نه موجودیت کښې په بل باندې چا دعوه وکړه او پخپلې دعوې باندې ئې ګواه هم وړاندې کړ. قاضي د یوه شریك په نه موجودیت کښې د مدعي په حق کښې فیصله وکړه نو آیا چه کوم شریك موجود دی هغه د غائب شریك نائب ګرځول او په فیصله کول صحیح دي او که نه؟ او له فیصله وروسته غایب شریك هم راغلی او دوباره دعوه کول غواړي نو آیا د ده دعوٰی صحیح ده او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** کوم شریك چه حاضر دی که چېرته نوموړې زمکه د ده په قبضه کښې وي او تقسیم شوې نه وي او غایب شریك ئې اعتراف هم کاوه چه دا زمکه زمونږ په ګډه ده. نو په دې صورت کښې کوم شریك چه موجود دی د بل شریك له خوا څخه خصم جوړیدلی شي او ده لره د غایب شریك په نائب جوړولو سره د ده په حضور کښې فیصله کول درست دي. که چېرته د نوموړي شرائطو په پام کښې نیولو سره قاضي فیصله کړې وي نو دا فیصله به صحیح او نافذ العمله وي. په همدې بناء که چېرته غایب شریك بیرته راشي او دوباره د ملکیت دعوٰی وکړي نو دعوٰی ئې صحیح نه ده. لیکن که چېرته ئې د دغو شرائطو لحاظ نه وي کړی نو کوم شریك چه موجود دی هغه د غایب له خوا څخه د خصم د جوړېدو اهل نه دی نو ځکه په داسې صورت کښې که چېرته قاضي د غایب په نه موجودیت کښې فیصله وکړي نو دا فیصله به



صحیح نه وي او که چېرته ئې فیصله کړې وي بیا چه کله غایب شریك حاضر شي او دوباره دعوه کول وغواړي نو دعوه ئې صحیح ده.

لما قال العلامة التمرتاشي رحمه الله: لا يقضى على غائب و لا له الا بحضور نائبه حقيقة كوكيله و وصيه و متولي الوقف.

و في الدر المختار: افاد الكاف عدم الحصر فان احد الورثة كذلك ينتصب خصماً عن الباقين و كذا احد شريك الدين.

و في رد المحتار: انه ينتصب احدهم عن الباقي بشروط ثلاثة كون العين كلها في يده و ان لا تكون مقسومة و ان يصدق الغائب انها ارث عن الميت. (تنوير الابصار على هامش رد المحتار ج٤، ص٣٧٣، كتاب الحوالة)

قال العلامة قاضي سماوةؒ: كون المدعى شيئين بينهما سببية لا محالة في هٰذه الصور يحكم على الغائب و فيه ايضاً و ذكر عامة المشائخ ان السببية تشترط في ما لو كان المدعى شيئاً واحداً و هو الاشبه و الاقرب الى الفقه. (جامع الفصولين ج١، ص٥٥، الفصل الخامس في القضاء على الغائب) و مثله في تنقيح الحامدية ج١، ص٣١٣، كتاب القضاء.

## تر اقــــرار وروسته د مقروض له قرض نه انکــــار او په دې باندې یوې عدالتي فیصلې څېړنه

**سوال:** یوه سړي چا ته دولس سوه روپۍ پور ورکړې او هغه سړي د شاهدانو په وړاندې د دولسو سوو روپو د وصولولو اقرار هم وکړ. چه کله د پور چښتن له مقروض څخه د خپلو روپو غوښتنه وکړه نو مقروض دوه سړي د قرض په موده کښې د زیاتوالي لپاره ور ولیږل. چنانچه هغه د زیات وخت په ورکولو باندې راضي شو. څه وخت وروسته مقروض د قرض له ورکولو څخه واضح انکار وکړ. قرض غوښتونکی مجبور شو او په محکمې (عدالت) کښې ئې دعوٰی دائره کړه او د مقروض په اقرار باندې ئې باقاعده ګواهان هم وړاندې کړل. له دې سره سره قاضي د مقروض په حق کښې فیصله وکړه نو آیا د قاضي به دا فیصله صحیح وي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** کله چه یو بالغ او عاقل سړی د چا د حق اقرار وکړي نو هغه پخپل اقرار باندې مأخوذ دی او د هغه د اقرار مطابق په هغه باندې ضمان لازمیږي. په نوموړي صورت کښې کله چه مقروض یو ځل د خلکو په وړاندې د دولسو سوو روپو د قرض په توګه د اخیستلو اقرار کړی وي نو بیا د قرض له ورکولو څخه انکار جائز نه دی او برسیره پر دې د قرض د ادا کولو لپاره د زیات وخت د غوښتنې لپاره د دوو سړو لیږل پوروړي ته په دې سره د قرض د اقرار نور هم تائید کیږي. نو ځکه که چېرته قرض ورکوونکي د مقروض په اقرار باندې ګواه وړاندې کړي وي نو د ګواهانو د ګواهۍ سره سره د قاضي لپاره د مقروض په حق کښې فیصله کول صحیح نه دي.

قال العلامة طاهر بن عبد الرشيد البخاريؒ: و كذا لو قال اخّرها عنّي او صالحني فاقرار. (خلاصة الفتاوى ج٤، ص١٤١، كتاب الاقرار، الفصل الاول)

قال العلامة ابن نجیمؒ: لو قال لی علیك الف فقال اتزنه او انتقده او اجلی به او قضیتکه فهو اقرار. (البحر الرائق ج۷، ص ۲۵۱، کتاب الاقرار) و مثله فی شرح المجلة المادة۸۵۸، ص ۱۵۷۲، الکتاب الثالث عشر فی الاقرار.

## له عدالتي سزا څخه د پلار د ژغورلو په خاطر په جرم باندې د زوی د اعتراف حکم

**سوال:** په یوه قتل کښې پلار او زوی دواړه شریك وو. محکمې د جرم په ثبوت باندې دواړه د سزا مستحق وګرځول لیکن وروسته د پلار د بچ کولو په خاطر زوی ئې اعتراف وکړ چه ما مقتول له خپلې خور سره په قابل اعتراض (زنا) حالت کښې ولیده او قتل مې کړ لیکن زما پلار په دې کښې شریك نه وو. د هغه په دې بیان باندې عدالت د ده پلار له سزا څخه بري کړ او زوی ته ئې د عمر قید سزا واوروله په داسې حال کښې چه دا واقعه سراسر په دروغو باندې مبني ده نو آیا د زوی په دې بیان باندې پلار بري الذمه ګرځول صحیح دي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** شریعت مطهره شهادت یا ګواهۍ لره له هر ډول خطراتو څخه د تحفظ ورکولو په خاطر په احتیاط باندې مبني زرین اصول مرتب کړي دي ځکه چه د فیصلې اصل دارومدار په صحیح ګواهۍ باندې دی. په دې کښې د ذرې په برابر په تغیر او تبدل سره د فیصلې پوره نوعیت بدلیږي ځکه چېرته چه هم په دې کښې د شبهې احتمال موجود وي نو شریعت داسې شهادت غیر معتبر ګرځوي. په دې بناء باندې چه په کوم شهادت کښې ذاتي منفعت یا پخپل منځ کښې د نژدې خپلوۍ له وجهې بل چا ته د منفعت ورکولو تصور کښې موجود وي هغه شهادت مقبول نه دی. چونکه د پلار او زوی منافع اکثر یو وي نو له دې وجهې د هغوی د دواړو ګواهي د یوه بل په حق کښې قبوله نه ده. په نوموړي صورت کښې حسب بیان کله چه مجرم د جرم اعتراف وکړي نو له همدې وخت څخه هغه د سزا مستحق ګرځي لیکن د هغه د پلار په باره کښې د هغه ګواهي او شهادت قبول نه دی لهذا یوازې د زوی په بیان باندې پلار بري الذمه ګرځول صحیح نه دي.

لما قال العلامة ابو الحسن علی بن ابی بکر المرغینانیؒ: و لا شهادة الوالد لولده و ولد ولده و لا شهادة الولد لأبویه و لاجداده. (الهدایة ج۳، ص ۱۶۱، باب من یقبل شهادته و من لا یقبل)

قال العلامة طاهر بن عبد الرشید البخاری رحمه اللّٰه: لا یجوز شهادة الرجل لولده و لا لوالده و ان علی من قبل الاب و الأم و لحافده و ان سفل. (خلاصة الفتاوٰی ج۴، ص ۶۰، الفصل الثانی فی الشهادات) و مثله فی مجلة الاحکام المادة ۱۷۰۰، ص۱۰۲۳، الکتاب الخامس عشر، الفصل الثالث.

## د مدعي په بیانونو کښې د تعارض څیړنه

**سوال:** د یوه سړي زمکه د هغه د تره د زوی په قبضه کښې وه او هغه له نوموړې زمکې څخه فایده حاصلوله. وروسته هغه دعوٰی وکړه چه دا زمکه چونکه د هې شامله ده او دا زمکه ما آباده کړې ده نو ځکه دا زمکه اوس زما ده. وروسته بیا ده دا دعوٰی وکړه چه دا زمکه ما ته د



پلار او نیکه څخه په میراث کښې پاتې ده نو ځکه دا زما ملکیت دی نو د شریعت له مخې د دې سړي د ملکیت دعوه صحیح ده او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** فقهاء کرامو د یوې دعوې د صحت لپاره دا شرط لګولی دی چه د مدعي د خبرو او بیانونو تر منځ به تکر او تناقض نه وي. که چېرته د هغه په خبرو او بیانونو کښې تناقض راشي نو په دې سره د هغه دعوه ساقطیږي. په نوموړي صورت کښې کله چه مدعي یو ځل دا بیان ورکړ چه دا زمکه د کلي له شاملاتو څخه ده او ما آباده کړې ده نو د دې مطلب دا دی چه دا زمکه له اوله د چا مملوکه نه وه بلکه په آبادولو سره دا زما مملوکه شوه لیکن وروسته کله چه ده دا دعوه وکړه چه دا زمکه ما ته له پلرونو او نیکونو څخه پاتې ده نو له دې څخه دا معلومیږي چه دا زمکه له اول څخه زما د پلار او د نیکه مملوکه ده نو د مدعي د دواړو بیانونو پخپل منځ کښې تناقض دی نو ځکه ئې دعوٰی صحیح نه ده.

لما قال العلامة الکاسانیؒ: و منها عدم التناقض فی الدعوٰی و هو ان لا یسبق منه ما یناقض دعواه لاستحالة وجود الشیء مع ما یناقضه و ینافیه. (بدائع الصنائع ج۶، ص۲۲۳، کتاب الدعوٰی، فصل فی الشرائط المصححة للدعوٰی)

قال العلامة سلیم رستم بازؒ: التناقض یکون مانعا لدعوی الملکیة. (مجلة الاحکام المادة۱۶۴۷، ص۹۵۷) و مثله فی جامع الفصولین ج۱، ص۱۲۳، الفصل العاشر فی التناقض فی الدعوٰی.

## د مِلك او د بیع په دعوٰی کښې به فیصله د بیع په ګواهانو باندې کیږي

**سوال:** یوه سړي په بل باندې سل جریبه زمکه وپلورله او په سندونو کښې ئې د مشتري نوم ولیکه یعنې کاغذات ئې د مشتري یا اخیستونکي په نامه جوړ کړل او د دې په بدل کښې ئې اته سوه روپۍ وصول کړې. وروسته بائع یعنې خرڅوونکي دعوٰی وکړه چه ما اته سوه روپۍ د لسو جریبو زمکو په بدل کښې وصول کړي دي او باقي نوي جریبه مې د امانت په توګه درکړي وو په داسې حال کښې چه مشتري دعوٰی کوي چه ما پوره د سلو جریبو زمکو اته سوه روپۍ درکړي دي. دواړو پخپلو دعوو باندې ګواهان وړاندې کړل نو په دې صورت کښې د کوم یوه په ګواهانو به فیصله کیږي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په صورت مسئوله کښې مشتري د بیع قطعي دعوٰی کوي او بائع د ملکیت دعوٰی کوي او زمکه چونکه د مشتري په قبضه کښې ده نو ځکه مشتري ذو الید دی او بائع خارج. نو په عامه توګه د فقهاوو د بیان کړل شویو اصولو مطابق د خارج ګواه په ذو الید باندې مقدم وي. لیکن که چېرته ذو الید له خارج څخه د شراء دعوٰی وکړي نو بیا د ذو الید ګواه په خارج باندې مقدم کیږي. او د بیان مطابق چونکه مشتري ذو الید دی او د شراء دعوٰی کوي نو که چېرته دواړه خواوې پخپلو دعوو باندې ګواهان وړاندې کړي نو د مشتري ګواهانو ته به ترجیح ورکول کیږي او فیصله به د هغه د ګواهانو مطابق کیږي.

لما قال العلامة ابن نجیم المصریؒ: و لو برهن الخارج و ذو الید علی الشراء منه فذو الید احق. (البحر الرائق ج۷، ص۲۴۲، باب دعوی الرجلین)

قال العلامة المرغینانیؒ: و ان قام الخارج البینة علی المِلك المطلق و صاحب الید البینة علی الشراء منه کان صاحب الید اولٰی. (الهدایة ج۳، ص۲۲۲، کتاب الدعوٰی) و مثله فی مجلة الاحکام المادة ۱۷۶۳، ص۱۱۳۲، کتاب الدعوٰی، الفصل الثانی.

## د حدودو له بیانولو پرته په زمکې باندې د ملکیت د دعوٰی حکم

**سوال:** یوه سړي په چا باندې دعوٰی وکړه چه ما له ده څخه شپاړس جریبه زمکه اخیستې ده او دا زما ملکیت دی لیکن په دعوٰی کښې ئې حدود بیان نه کړل نو آیا د حدودو له بیانولو نه پرته د زمکې د ملکیت دعوٰی صحیح ده او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په هره یوه دعوٰی کښې دا ضروري دي چه مدعي ته پخپلې مدعٰی باندې علم وي او د خپل حق تعین کولی شي ځکه که چېرته مدعٰی معلومه نه وي نو د جهالت له وجهې د مدعي د حق تمیز او اثبات مشکل کیږي. چونکه په زمکه کښې د حق تعین او تمیز د حدودو په بیانولو سره کیږي نو ځکه فقهاوو په زمکه باندې د ملکیت په دعوٰی کښې د حدودو بیانول شرط ګرځولی دی چه د حدودو له بیان نه پرته د زمکې د ملکیت دعوٰی صحیح نه ده. نو له دې وجهې په نوموړي صورت کښې مدعي چه تر څو پورې پخپله دعوه کښې د زمکې حدود بیان نه کړي تر هغه وخته پورې به د هغه دعوٰی د اورېدو قابله نه وي.

لما قال العلامة ابن نجیمؒ: (و ان ادعی عقاراً ذکر حدوده) لانه لا تعذر التعریف با لاشارة لتعذر النقل فیصار الی التحدید و کما یشترط التحدید فی الدعوٰی یشترط فی الشهادة. (البحر الرائق ج۷، ص۱۹۷، کتاب الدعوٰی)

قال العلامة التمرتاشی رحمه الله: و یشترط التحدید فی دعوی العقار کما یشترط فی الشهادة علیه. (تنویر الابصار علی هامش رد المحتار ج٤، ص٤٦٩، کتاب الدعوٰی) و مثله فی مجلة الاحکام المادة ۱۶۲۳، ص۹۱۷، کتاب الدعوٰی.

## فصل ته د نقصان رسیدو له وجې له ګاونډي څخه د ونو له بیخه د ایستلو د غوښتنې حکم

**سوال:** د یوه سړي په زمکه کښې یوه ونه ده چه ښاخونه ئې د ګاونډي د زمکې په طرف غزیدلي دي کوم چه له سیوري څخه ئې د ګاونډي فصل ته نقصان رسیږي. اوس دا ګاونډي له هغه څخه دا غوښتنه کوي چه ونه له بیخ یعنې له ولیو څخه وباسه نو آیا د ګاونډي دا مطالبه او غوښتنه صحیح ده او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په اسلام کښې په معاشرتي ژوند انه کښې خپل منځي الفت او محبت ته لوی اهمیت حاصل دی ځکه چه د دې الفت او محبت نه پرته له سکون او اطمینان نه ډک ژوند انه تصور محال دی. او دا الفت او محبت په صحیح توګه په هغه وخت کښې قائمیدلی



شي چه د معاشرې هر غړی د نورو د حقوقو لحاظ وساتي او هر یو بل ته د تکلیف او اذیت له رسولو څخه لرې ګرځي. نو ځکه که چېرته د چا له تصرفاتو څخه بل ته د تکلیف د رسیدو خطره وي نو اسلام له داسې تصرفاتو څخه هغه ته د منع کیدو تاکید کړی دی. د دې لپاره په نوموړي صورت کښې که چېرته د ونې له ښاخونو څخه د ګاونډي فصل ته نقصان رسیده نو د ونې له مالك څخه دا غوښتنه کولی شي چه که چېرته د ښاخونو په پورته تړلو سره د ده د تکلیف لرې کیدل ممکن وو نو مالك به د ښاخونو په تړلو باندې مجبوروي او که چېرته په تړلو سره ئې ضرر نه لرې کیده نو مالك به د ښاخونو په پرې کولو مجبوروي. البته د ونې له بیخه د ایستلو غوښتنه صحیح نه ده.

لما قال العلامة سلیم رستم بازؒ: من امتدت اغصان شجر بستانه الی دار جاره او بستانه فلجاره ان یکلفه تفریغ هوائه با لربط او القطع. (شرح مجلة الاحکام، المادة ۱۱۹۶، ص۶۵۶)

قال الامام فخر الدین حسن بن منصورؒ: رَجلٌ لهٗ نخلة فی مِلکه و خرج سقفها الی ارض جاره کان الجار ان یقطع و یفرغ هواء مِلکه لان من ملك ارضاً ملك ما تحته الی الثرٰی و ما فوقه الی السماء فکان لهٗ ان یقطع و هٰذا اذا کان لا یمکنه تفریغ الهواء الا با لقطع. (الفتاوی الخانیة علی هامش الهندیة ج۳، ص۱۰۳، باب الصلح فی العقار الخ)

## عاریةً د چا په زمکې باندې د تصرفاتو په وجه د استحقاق دعوٰی

**سوال:** یوه قوم خپله څه زمکه د افغانستان حکومت ته په عاریت ورکړه حکومت په هغې زمکې باندې د پولیسو چوکۍ جوړه کړه. له دیرشو کلونو وروسته یوه افغان قومندان په دغې زمکې باندې قبضه وکړه او غواړي چه آبادي پرې جوړه کړي او وایي چه ما ته حکومت په دې زمکې باندې د آبادۍ اجازه راکړې ده نو د شریعت له مخې په دې زمکې باندې د نوموړي قومندان تصرفات جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** کومه زمکه چه غیر مملوکه وي په هغې باندې د وخت حکومت ته د تصرفاتو حق حاصل دی. که چېرته وغواړي چه له دغې زمکې څخه چا ته څه ورکړي نو ورکولی ئې شي لیکن کومه زمکه چه له اول څخه مملوکه وي نو د وخت حاکم ئې د اصل مالك له اجازې پرته چا ته نه شي ورکولی او نه ورته جائز دي. نو ځکه په نوموړي صورت کښې کله چه یو قوم خپله مملوکه زمکه حکومت ته په عاریت سره ورکړې نو په دې زمکې باندې د هغه قوم ملکیت په ځای پاتې دی او هغه چه کله هم د دې زمکې د واپسي غوښتنه وکړي نو هغوته به بیرته ورکول کیږي. لهذا د نوموړي قومندان په دغې زمکې باندې قبضه کول او آبادي پرې جوړول جائز نه دي او کومه آبادي ئې چه کړې وي هغه به ړنګیږي او زمکه به اصل مالك ته بیرته ورکول کیږي.

لما قال العلامة المرغینانیؒ: و اذا استعار ارضاً لیبنی فیها او لیغرس جاز و للمعیر ان یرجع فیها و یکلفه قلع البناء و الغرس. (الهدایة ج۳، ص۲۸۱، کتاب العاریة)

قال العلامة سليم رستم بازؒ: استعارة الارض لغرس الاشجار و البناء عليها صحيحة لكن المعير ان يرجع عن الاعارة متى شاء فاذا رجع لزم المستعير قلع الاشجار و رفع البناء. (مجلة الاحكام المادة ۸۳۱، ص ۴۶۰) و مثله فى خلاصة الفتاوى ج۲، ص۱۹۲، كتاب العارية.

## په مملوکه زمکې باندې د قبضې په اړه د فیصلې حکم

**سوال:** یوه سړي دیرش کاله مخکښې پخپلې مملوکه زمکې باندې تصرفات کول. د کوم عذر له مخې هغه خپل وطن پرېښود او بل ځای ته لاړ. د هغه په نه موجودوالي کښې د هغه د تره دریو زامنو پرې تصرف شروع کړی وو. کله چه نوموړی بیرته راغی نو ئې د بنو تعلقاتو له مخې هغوی له تصرف څخه منع نه کړل. اوس تقریبا لس کاله کیږي چه هغوی په دې زمکې باندې قابض دي او د زمکې له بیرته ورکول څخه انکار کوي. له مالك سره د زمکې په ملکیت باندې باقاعده ګواهان موجود دي نو فیصله به د چا په حق کښې کیږي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د اوږدې مودې لپاره د بل چا مملوکه زمکه یو ائې د تصرف له وجهې د چا په مِلك کښې نه شي راتلی بلکه د ملکیت لپاره باقاعده اسباب مقرر دي. په دغو اسبابو کښې د کوم سبب په نه موجودیت کښې په کوم شي باندې د ملکیت تصور هم نا ممکن دی. د دې لپاره که چېرته مالك په شرعي شهادت سره خپل ملکیت ثابت کړي نو هغه ته به خپله زمکه بیرته ورکول کیږي. په نوموړي صورت کښې د تره زامنو په د هغه په زمکې باندې جبراً قبضه کړې ده دوی ټول غاصبین دي او په غاصب باندې د غصب شوي شي واپس کول لازم دي. که چېرته هغوی په دغې زمکې باندې د تصرفاتو له وجهې هغې ته نقصان رسولی وي نو د هغه ذمه واري به هم په دوی باندې وي.

لما قال العلامة المرغينانيؒ: و من غصب ارضاً فغرس فيها او بنى قيل لهٗ اقلع البناء و الغرس و ردها (و فيه ايضاً) فان كانت الارض تنقص بقلع ذٰلك فللمالك ان يضمن لهٗ قيمة البناء و قيمة الغرس مقلوعاً و يكونان لهٗ. (الهداية ج۳، ص ۳۷۹، كتاب الغصب)

قال العلامة الكاسانيؒ: و من غصب ارضاً فبنى عليها او غرس فيها لا تنقطع ملك المالك و يقال للغاصب اقلع البناء و الغرس و ردها فارغة لان الارض بحالها لم تتغير و لم تصر شيئا آخر. (بدائع الصنائع ج۷، ص۱۴۹، كتاب الغصب، فصل فى حكم الغصب) و مثله فى مجلة الاحكام المادة ۹۰۵، ص ۵۰۱، الكتاب الثامن، الفصل الثانى)

## د مدعي لپاره دا ضروري نه ده چه د زمکې مالك دې هم وي

**سوال:** یو سړی له ډېرې مودې څخه د چا په زمکې باندې قابض دی او مالك ته باقاعده اجاره ورکوي. په دغو حالاتو کښې یو بل چا د دې زمکې په کومې حصې باندې قبضه وکړه. مزارع یا دهقان چه کله دعوٰی وکړه نو مدعي علیه ئې له پرېښودو څخه انکار وکړ او وئې ویل چه زمکه ستا نه ده زه تا ته ځکه د فصل حصه نه درکوم. مالك که چېرته دعوٰی وکړي نو بیا به ګورو. نو آیا په داسې حالاتو کښې د مزارع دعوٰی صحیح ده او که نه او مدعي علیه ئې له



دفعې څخه تر کومه ځایه پورې حق په جانب دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په صورت مسئوله کښې د مزارع دعوٰی صحیح ده او تر څو پورې چه په زمکې باندې مزارع تصرف کوي هغه ته د دعوٰی د کولو حق حاصل دی او له مدعي علیه له دې څخه د ځان خلاصول بې فائدې دي.

لما قال العلامة سليم رستم بازؒ: و لكن اذا غصب الوديعة او المستعار او الماجور او المرهون فللوديع و المستعير و المستاجر و المرتهن ان يدعى بها على الغاصب وحدهٗ و لا يلزم حضور المالك. و ليس للمالك ان يدعى بها وحدهٗ ما لم يحضر هٰؤلاء. (شرح المجلة الاحكام، المادة ۱۶۳۷، ص ۹۴۱، الفصل الثالث)

لما فى الهندية: اذا ادعى رجلٌ دارا فى يدى رجل انها فى اجارتى آجر فيها فلان و ادعى ذو اليد انها فى اجارتى آجرينها فلان آخر تسمع دعوى المدعى و ينتصب صاحب اليد خصماً. (الفتاوى الهندية ج۴، ص۱۳۷، الباب الخامس فيمن يصلح خصماً لغيره) و مثله فى خلاصة الفتاوى ج۴، ص ۸۴، كتاب الدعوى.

## د زمکې په نامعلومه برخه باندې د ملکیت د دعوې حکم

**سوال:** یوه سړي د چا د مملوکه زمکې په یوې حصې باندې دعوٰی وکړه چه په دې زمکه کښې زما حصه ده او پخپلې دعوې باندې ګواه هم وړاندې کوي چه د دې زمکې څه حصه زما پلار د زمکې مالك ته ورکړې وه لیکن نه ئې اندازه ورته معلومه وي او نه ئې حدود اربعه. په داسې حال کښې چه د زمکې مالك د ده له ملکیت څخه انکار کوي. نو آیا د نوموړي سړي دعوٰی صحیح ده او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** فقهاء کرامو د یوه چا د دعوې د صحت لپاره چه کوم شرائط بیان کړي دي په هغو کښې یو شرط دا دی چه مدعي چه په کوم شي باندې د ملکیت دعوٰی کوي هغه شی به معلوم وي او که چېرته مجهول وي نو بیا په هغه باندِې دعوٰی صحیح نه ده. ځکه که چېرته مدعي بها مجهوله وي نو بیا په هغې باندې نه صحیح شهادت قائمیدلی شي او نه صحیح فیصله کیدلی شي. په نوموړي صورت کښې مدعي ته نه د مدعي بها اندازه معلومه ده او نه ئې حدود اربعه. په داسې حال کښې چه د زمکې په دعوٰی کښې د حدود اربعه بیانول ضروري دي له دې وجهې د نوموړي سړي دعوٰی د اوریدو قابله نه ده.

قال العلامة الحصكفيؒ: معلومية المال المدعى اذ لا يقضى بمجهول و لا يقال مدعى فيه و به الا ان يتضمن الاخبار. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج۴، ص۴۶۷، كتاب القضاء)

قال العلامة ابو بكر الكاسانيؒ: و منها ان يكون المدعى معلوماً لتعذر الشهادة و القضاء با لمجهول. (بدائع الصنائع ج۶، ص۲۲۲، كتاب الدعوى، فصل الشرائط المصححة للدعوى) و مثله فى مجلة الاحكام المادة ۱۶۱۹، ص ۹۱۱، الباب الاول، الفصل الاول فى شروط صحة الدعوى.

## د عـــــاریت په توګه له اخیستل شوې زمکې څخه د معیر د تنګولو په خاطـــــر د ونو د نه وهلو په اړه فیصله

**سوال:** یوه سړي خپله زمکه چا ته په عاریت ورکړې ده۔ هغه سړي په دې زمکې باندې ونې ولګولې او بیائې وپلورلې لیکن د زمکې د واپس کیدو سره سره یوائې د تنګولو په غرض نه ونې پرې کوي او نه مشتري ته ئې د پرې کولو لپاره ورکوي چه له مخې ئې زمکې ته نقصان رسیږي۔ په دې باره کښې به فیصله په څه ډول سره کیږي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** چونکه په عاریت باندې د زمکې ورکوونکی د دغې زمکې مالك دی او پخپلې زمکې باندې د هر ډول تصرف حق لري نو لکه څرنګه چه د کومې زمکې په عاریه باندې د ورکولو اختیار لري همدا ډول دا زمکه له چا څخه د واپس اخیستلو اختیار هم لري۔ هر کله چه د خپلې زمکې د بیرته اخیستنې مطالبه وکړي نو پرته له کوم چون او چرا څخه هغه ته د خپلې زمکې بیرته ورکول د مستعیر ذمه واري ده نو له دې وجهې په عاریه باندې د ورکوونکي د تنګولو په غرض د خپلو لګول شویو ونو پرېښودل جائز نه دي او نوموړی به د ونو په پرې کولو باندې مجبور کیږي۔

كما قال العلامة سليم رستم باز: استعارة الارض لغرس الاشجار و البناء عليها صحيحة لكن للمعير ان يرجع عن الاعادة متى شاء فاذا رجع لزم المستعير قلع الاشجار و رفع البناء. (مجلة الاحكام المادة ۸۳۱، ص ۴۶۰، الفصل الثانى فى احكام العارية و ضمانها)

قال العلامة برهان الدين المرغينانى رحمه الله: و اذا استعار ارضاً ليبنى فيها او ليغرس جاز و للمعير ان يرجع فيها و يكلفه قلع البناء و الغرس. (الهداية ج۳، ص ۲۸۱، كتاب العارية) و مثله فى مجمع الضمانات،النوع الثالث ضمان العقار ص ۶۶.

## د والد د عقد بیع له اجازې څخه د انکار په اړه د فیصلې حکم

**سوال:** د یوه سړي خسر په کراچۍ کښې اوسیده او غوښت ئې چه خپل زوم ته د زمکې څه حصه د کور د جوړولو لپاره ورکړي لیکن زوم ئې له د اسې ویلو سره د زمکې له اخیستلو څخه انکار وکړ چه تر څو پورې خسر ما ته د غه ځای په قطعي بیع را نه کړي نو زه به کور پرې جوړ نه کړم۔ څو ورځې وروسته ئې د خسر زوی له کراچۍ څخه راغی او خپل اوښي ته ئې وویل چه ما ته مې پلار مکمل اختیار راکړی دی او اجازه نامه ئې هم راکړې ده نو ځکه که چېرته په قطعي بیع سره د زمکې غوښتل غواړې نو زه ورکولو ته تیار یم۔ چنانچه اوښي ئې د لسو زرو روپو په عوض زمکه واخیسته او بیع نامه ئې ولیکله۔ کله چه خسر ئې راغی نو خلکو و لمساوه چه له مخې ئې په بیع باندې د زمکې له ورکولو څخه انکار وکړ۔ نو آیا د شریعت له مخې ئې خسر د زمکې د واپس کولو حق لري او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د سوال د صحت په شرط سره که چېرته په رښتیا هم والد ئې خپل



زوی ته د بیعې اجازه ورکړې وي نو بیع نافذه ده او والد ته د بیع د واپس کولو اختیار نشته۔ لیکن مشتري به په ده باندې ګواه تیروي چه په رښتیا هم پلار ئې خپل زوی ته د بیعې اجازه ورکړې وه او که چېرته مشتري په ده باندې ګواه نه شو وړاندې کولی نو د هغه له مطالبې سره سم به د بائع والد ته قسم ورکول کیږي۔ که چېرته هغه له قسم څخه انکار وکړ نو بیع نافذه ګرځي او د واپسي حق نه لري او که چېرته قسم وکړي نو بیا به د بیع فضولي په حکم کښې راځي نو بیا به د والد په اجازې پورې موقوفه وي که چېرته هغه اجازه نه ورکوله نو بیع به نافذه نه وي۔

اخرج الامام البيهقى: فكتب ابن عباس ان رسول الله ﷺ قال لو يعطى الناس بدعواهم لا دعى رجال اموال قوم و دمائهم و لكن البينة على المدعى و اليمين على من انكر. (رواه البيهقى ج ۱۰، ص ۲۵۲، كتاب الدعوى)

و ذكر الامام مسلم: عن عمرو ابن شعيب عن ابيه عن جده ان النبى ﷺ قال البينة على المدعى و اليمين على المدعى عليه. (صحيح مسلم ج۲، ص ۷۴، كتاب الدعوى) و مثله فى الهداية ج۳، ص ۲۰۳، كتاب الدعوى.

## په مشترکې چینې باندې د ملکیت د دعوی په اړه فیصله

**سوال:** د دوو کسانو تر منځ په مشترکه زمکه وه چه څینې پکښې خرابه او څینې آباده وه. دواړو شریکانو له دې څخه فائده اخیستله۔ دغې زمکې ته نژدې یوه چینه ده کومه چه زمکه پرې خړوبه کیدله۔ اوس په هغو کښې یوه ئې په دې چینې باندې د ملکیت دعوی وکړه نو آیا په یوې جاري چینې باندې د ملکیت دعوی کول صحیح دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** چونکه له جاري اوبو سره د عامو خلکو حقوق تړلي وي نو که چېرته په هغې باندې د چا ملکیت تسلیم شي او یا د چا په قبضې کښې پاتې شي نو بیا د خلکو د حقوقو د تلف کیدو خطر دی۔ نو له دې وجهې شریعت مطهره د خلکو د حقوقو د تحفظ په خاطر هر یوه ته له هغې څخه د فائدې اخیستلو برابر اختیار ورکړی دی او هیچا ته هم په هغې باندې ملکاً د قبضه کولو اجازه نه ورکوي۔ لهذا د بیان مطابق په دې صورت کښې نوموړی سړی خپل شریك له دې چینې څخه نه شي منع کولی او نه پرې د ملکیت دعوی کولی شي۔

اخرج الامام ابو داؤد: عن رجل من مهاجرين من اصحاب النبى ﷺ قال غزوت مع النبى ﷺ ثلاثا اسمعه يقول المسلمون شركاء فى ثلاث فى الماء و الكلاء و النار. (ابو داؤد ج۲، ص ۱۳۶، باب فى منع الماء)

قال العلامة سليم رستم باز: الما و الكلاء و النار مباحة و الناس فى هذه الاشياء الثلاثة شركاء. (شرح مجلة الاحكام، المادة ۱۳۳۴، ص ۶۷۶، الباب الرابع ى شركة الاباحة، الفصل الاول) و مثله فى الهداية ج۴، ص ۴۸۳، كتاب الشركة.

## د تکلیف له وجې د اوبو د زرې لارې د بندولو په اړه فیصله

**سوال:** دوو ورونو خپله مشترکه زمکه پخپل منځ کښې سره تقسیم کړه او هر یوه پخپلې حصې باندې قبضه وکړه۔ یوه ورور پخپلې حصې باندې کور جوړ کړ او تقریبا دیارلس کاله ئې پکښې تیر کړل او وروسته ئې خپل کور په چا باندې وپلوره۔ مشتري هم تقریبا په دې کښې شپږ کاله تیر کړه۔ اوس د اول مالك ورور د خپل منځي اختلاف له وجهې د دغه سړي له کوره او له نورو

کورونو څخه اوبو بندي کړي دي نو آيا د چا په مِلك کښې له ۶۶ کالو څخه د اوبو جوړه شوې لاره بندولی شي او که نه؟ بينوا توجروا۔

30/30 **الجواب باسم ملهم الصواب:** کله چه له ډير وخت څخه د خلکو د کورونو د اوبو لاره قائمه وي نو د مِلك په بدليدو سره په دې کښې تغير نه راځي بلکه هر يو به د بل د حقوقو رعايت کوي تر څو چه پخپل منځ کښې د الفت او د محبت فضاء قائمه پاتې شي۔ که چېرته د مِلك په بدليدو سره هر يو په دې کښې تصرف وکړي چه کله ئې بندوي او کله ئې خلاصوي نو د دې په وجه سره په اهل محله کښې تشويش پيدا کيږي او د بې آرامۍ ښکار کيږي۔ نو له دې وجهې که چېرته په رښتيا هم د اوبو دا لاره له اوله جوړه شوې وي بيا دغه سړي ته د اوبو د لاري د بندولو حق نشته۔ او که چېرته دا معلومه نه وي چه د اوبو دا لاره له ډيره وخته جوړه ده او که نه نو بيا مشتري او د نورو کورونو خاوندانو ته د گواهانو په ذريعه په دې لاري باندې د اوبو د تيرولو حق ثابتوي۔

قال العلامة الحصكفيؒ: اذا كان لرجل ارض و للآخر فيها نهر و اراد رب الارض ان لا يجرى النهر فى ارضه لم يكن لهٗ ذٰلك و يترك على حاله. (الدر المختار على هامش رد المحتار ج۵، ص ۳۱۴، كتاب احياء الموات)

قال العلامة ابن نجيمؒ: رجل له ارض و للآخر نهر يجرى فيها فاراد رب الارض يمنع النهر ان يجرى فى ارضه لم يكن لهٗ ذٰلك. (البحر الرائق ج۸، ص۲۱۵، كتاب احياء الموات) و مثله فى مجلة الاحكام، المادة ۱۲۲۸، ص۶۷۳، كتاب احياء الموات.

## د شريك له اجازې پرته د هغه د زمکې د پلورلو حکم

**سوال:** يوه ټکړه زمکه مشترکه له شاملات ديهيه وو څخه ده کوم چه د حکومتي کاغذاتو له مخې درې سره کسان پکښې شريك دي۔ په هغو کښې يوه شريك د نورو شريکانو له اجازې پرته زمکه په چا باندې وپلورله۔ د شريکانو د بار بار خبرداري سره سره مشتري په دې زمکې باندې کورونه جوړ کړل۔ اوس د دغې زمکې نور شريکان د زمکې د خالي کولو غوښتنه کوي چه دا زمونږ ملکيت دی او حال دا چه مشتري د زمکې له خالي کولو څخه انکار کوي۔ هغه وايي چه چونکه دا زمکه ما اخيستې ده له دې وجهې دا زما مِلکيت دی نو په دې باره کښې به څرنگه فيصله کيږي؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته دا ټکړه زمکه له شاملات ديهيه وو څخه وي او د حکومت له خوا څخه کلي والو ته ورکړ شوې وي نو کومو خلکو ته چه په دې کښې حصه ورکړ شوې وي هغوی ټول د دې زمکې مالکان دي او دا زمکه د هغو ټولو په گډه سره ده او په مشترکه مال کښې هر يو شريك د بل د حصې په باره کښې د اجنبي حيثيت لري او اجنبي سړی د چا په مملوکه زمکې کښې د هغه له اجازې پرته د تصرف حق نه لري۔ نو له دې وجهې په نوموړې صورت کښې د شريکانو له اجازې پرته د هغوی د حصو پلورل جائز نه دي۔ لهذا د هغوی په



مطالبې باندې به د هغوی د حصو زمکه به خالي کوي او ور حواله کوي به ئې۔

كما قال العلامة سليم رستم بازؒ: كل من الشركاء فى شركة الملك اجنبى فى حصته سائرهم فليس احدهم وكيلاً عن الآخر و لا يجوز له من ثم ان يتصرف فى حصة شريكه بدون اذنه. (شرح مجلة الاحكام، المادة ۱۰۷۵، ص ۶۰۱، الباب الاول فى شركة الملك، الفصل الثانى)

قال العلامة الحصكفيؒ: و كل من شركاء الملك اجنبى فى الامتناع عن تصرف مضر فى مال صاحبه لعدم تضمنها الوكالة. (الدر المختار على هامش رد المحتار ج۳، ص۳۶۵، كتاب الشركة) و مثله فى بدائع الصنائع ج۶، ص۶۵، كتاب الشركة.

## د مـړ شوي ورور د زامنو په موجودوالي کښې د هغه جائداد د پلار په ترکه کښې په شاملولو سره د تقسيمولو حکم

**سوال:** يو سړی مړ شو او په وارثانو کښې ئې څلور زامن او دوه لونړې پاتې شوې دي۔ په نوموړي څلورو زامنو کښې يوه ئې د پلار له ترکې څخه پرته يوه ټکړه زمکه له بل چا څخه واخيستله کوم چه د نورو د شرکت نه پرته هغه زمکه د ده په مِلکيت کښې راغله۔ هغه د والد د ترکې له تقسيم څخه مخکښې وفات شو او په وارثانو کښې ئې دوه معصوم بچيان پاتې شول۔ د مرحوم زوی چه کله بالغ شو نو ئې له خپلو ترونو څخه د نيکه د ترکې د تقسيم غوښتنه وکړه۔ تر اوسه پورې هغو ته د خپل والد د اخيستل شوې زمکې معلومات نه وو کومه چه ئې له شرکت څخه پرته خپل ځان ته اخيستې وه او نه چا دوی ته د هغې زمکې په اړه معلومات ورکړي وو۔ لهذا د نيکه د ترکې د تقسيم په وخت کښې نوموړې زمکه د يوه تره په حصه کښې راغله۔ د نيکه ترکه ئې درې تقسيمه کړه او د مرحوم حصه ئې د هغو زامنو ته ورکړه۔ له تقسيم څخه تقريباً دولس کاله وروسته د مرحوم زامنو ته معلومات وشو چه کومه ټکړه زمکه چه د فلاني تره په حصه کښې راغلې ده هغه د هغو د پلار زرخريد خپل ذاتي مِلکيت وو او په دې منځ کښې ئې نوموړي تره هغه زمکه پخپل بل ورور باندې پلورلې وه۔ د مرحوم زامنو ته چه کله معلومات وشو نو هغو دعوی وکړه چه کومه زمکه چه زمونږ د پلار زرخريد مِلکيت دی هغه به مونږ ته نيکه له ترکې څخه پرته د خپل پلار په ترکه کښې به راکول کيږي۔ نو اوس پوښتنه دا ده چه آيا د شريعت له مخې د هغوی دعوی صحيح ده او که نه؟ په داسې حال کښې چه مدعي عليهم د دغې زمکې د مدعي د پلار له ترکې څخه نه مني او د نيکه له ترکې څخه ئې مني۔ د مرحوم زامنو سره هر ډول ثبوتونه موجود دي۔ که چېرته د شهادت ضرورت پيش شي نو گواه به د چا معتبر وي؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** محض د ډير وخت په تيريدو سره د چا حق نه باطليږي او په خاصه توگه په داسې حالت کښې چه هغوی ته د خپل حق معلومات هم نه وي او د لاعلمي په صورت کښې اگر که هر څومره ځنډ وشي نو د دعوی د سماعت لپاره مانع نه دی۔ چونکه لاعلمي له ړه

فقهاوو عذر ګرځولی دی او په وراثت کښې خو له خبرتیا سره سره هم په تاخیر کولو کښې د دعوې حق نه ساقطیږي نو ځکه په نوموړي صورت کښې د مړي د زامنو دعوٰی صحیح ده۔

قال العلامة ابن عابدینؒ: و یتحصص بزمان و مکان و حصومة لو امر السلطان بعدم سماع الدعوٰی بعد خمسة عشر سنة قسمها لم ینفذ الا فی الوقف و الارث و وجود عذر شرعی و به افتی المفتی ابو السعود. (رد المحتار ج٤، ص ٣٨٠، کتاب القضاء)

قال العلامة سلیم رستم بازؒ: لا تسمع دعوی الدَّین و الودیعة و العقار المملوك و المیراث بعد ان ترکت خمس عشرة سنة. (شرح المجلة المادة ١٦٦٠، ٩٨٤، الباب الثانی فی مرور الزمان) و مثله فی البحر الرائق ج٧، ص٢٢٨، باب التحالف.

او کله چه د دواړو سره ګواهان موجود وي نو د مړي زامن چونکه د زمکې د زرخرید والي مدعیان دي او د ترونه ئې د هغې د زرخرید والي منکرین دي نو په دعوٰی کښې چه کله د نفی او اثبات تقابل راشي نو په اثبات کښې د زیادت معنی موجوده وي او د زیادت ګواه چونکه د نقصان په ګواه باندې مقدم وي نو ځکه د اثبات ګواهانو ته به د نفی په ګواهانو باندې ترجیح ورکول کیږي۔ د دې لپاره په نوموړي صورت کښې د مړي د زامنو ګواهان مقدم دي او فیصله به د دوی په ګواهانو کیږي۔

لما قال العلامة الکاسانی رحمه الله: فا لاصل فیه ان البینة المظهرة للزیادة اولٰی. (بدائع الصنائع ج٦، ص ٢٤١، کتاب الشرکة)

قال العلامة سلیم رستم بازؒ: بینة الزیادة اولٰی. (شرح المجلة المادة ١٧٦٢، ص ١١٣١، الباب الرابع) و مثله فی الهندیة ج٣، ص ٥١٢، الباب التاسع فی الشهادة علی النفی و البینات الخ.

## د حکومت لـــه خوا ځخه په ورکړل شوې زمکې باندې د فریقینو د ملکیت په دعوٰی کښې د اختلاف په اړه فیصلـــه

**سوال:** د افغانستان حکومت په ۱۳۳۲ سنه هجري کښې دا فیصله وکړه چه د کومو کسانو چه زمکه نه وي هغو ته حکومت زمکه ورکوي۔ یوه قوم د چا په وکالت سره حکومت ته عریضه وکړه او حکومت ئې عریضه منظوره هم کړه او د مالکانه حقوقو سره ئې زمکه ورکړه او باقاعده اسناد ئې جاري کړل۔ د ۱۹۸٤ء سنه پورې نوموړي قوم د کر کیلې په توګه له دې زمکې ځخه فائده حاصلوله۔ کله چه دغه قوم پاکستان ته هجرت وکړ نو پورته ذکر شوې زمکه ئې یو بل قوم ته په اجاره ورکړه۔ اوس دا قوم په نوموړې زمکې باندې د مِلکیت دعوٰی کړې ده چه دا زمونږ زمکه ده او نه مونږ ځخه غصب شوې وه۔ شرعا به اوس زمکه د چا په مِلکیت کښې راځي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** کومه زمکه چه د چا مملوکه نه وي او د مواتو په حکم کښې وي او یا د بیت المال په تصرف کښې وي۔ د هغې زمکې په باره کښې د وخت حاکم ته مکمل اختیار حاصل دی چه په کومه طریقه ئې غواړي د مسلمانانو د خیر خواهی لپاره ئې استعمالولی شي نو ځکه که چېرته حکومت کوم قوم ته له دغو زمکو ځخه ځه ورکول وغواړي نو هغه ته د دې اختیار حاصل دی۔ او چا ته چه هم د وخت د حاکم له خوا ځه زمکه ورکړل شي نو هغه به د



هغې مالك ګڼل کیږي او د شرعي قواعدو او ضوابطو لاندې به د هغه د مړینې نه وروسته د هغه په وارثانو به هم تقسیمیږي۔ لهذا د وخت د حاکم له خوا ځخه غیر مملوکه زمکه چا ته له ورکولو ځخه وروسته هیڅوك هم د هغې د واپس کولو او په هغې باندې د قبضه کولو حق نه لري۔

لما قال العلامة ابن عابدینؒ: و للامام ان یقطع کل موات و کل ما لیس فیه ملك لاحد و یعمل بما یرٰی انه خیر للمسلمین و اعم نفعاً. (رد المحتار ج٣، ص ٢٩٠، فی احکام الاقطاعات من بیت المال، باب العشر و الخراج و الجزیة)

قال العلامة الکاسانیؒ: فا لامام یملك اقطاع الموات من مصالح المسلمین لما یرجع ذٰلك الی عمارة البلاد التصرف فیما یتعلق بمصالح المسلمین للامام. (بدائع الصنائع ج٦، ص١٩٤، کتاب الاراضی) و مثله فی شرح مجلة الاحکام المادة ١٢٧٢، ص٦٨٨.

## د کوم بل چـــا په نامه په درج شوي تر قبضې لانـــدې زمکه کښې د فریقینو د اختلاف فیصله

**سوال:** په حکومتي اسنادو کښې د یوه سړي په نامه ځه زمکه درج ده او په دې زمکې باندې کوم بل سړي په ۱۹۳۰ء سنه قبضه کړې ده۔ په دې زمکه کښې یوه ډېره غټه ونه هم وه کومه چه قابض رنګه کړه او کور ته ئې یوړه۔ د زمکې مِلکیت چه د کوم سړي په نامه درج دی اوس هغه په نوموړې زمکې باندې قبضه وکړه او په قابض باندې ئې د زمکې د مِلکیت او د ونې دعوٰی وکړه نو په نوموړي صورت کښې به فیصله د چا په حق کښې کیږي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته حکومتي اسناد صحیح وي او په هغو کښې د دوکه، جعل سازۍ او دروغو احتمال نه وي نو د هغو مطابق به عمل کیږي۔ نوموړې زمکه به د هغو اسنادو مطابق چه د چا په نامه وي د هغه مِلکیت ګڼل کیږي او ونه به هم د هغه وي۔ لیکن که چېرته په حکومتي اسنادو کښې د دروغو، او دوکې احتمال وي نو په نوموړې زمکې باندې به د مِلکیت دعوٰی کوونکی خارج ګڼل کیږي او قابض به ذو الید ګڼل کیږي۔ که چېرته دواړه خواوې ګواهان ودروي نو د خارج ګواه به مقدم وي او فیصله به د هغه په ګواهانو کیږي۔ او که چېرته د خارج ګواه نه وي نو بیا به د ذو الید په ګواهانو فیصله کیږي۔ او که چېرته په دواړو خواوو کښې له یوه سره هم ګواه نه وي نو بیا به ذو الید ته قسم ورکول کیږي او که چېرته ذو الید له قسم ځخه انکار وکړي نو زمکه به د خارج مِلکیت ثابت شي۔

لما قال العلامة الکاسانیؒ: فان قامت علی ملك مطلق عن الوقت فبینة الخارج اولٰی. (بدائع الصنائع ج٦، ص٢٣٢، کتاب الدعوٰی، فصل فی حکم تعارض الدعوتین)

قال العلامة علاؤ الدین التمرتاشیؒ: تقدم حجة خارج فی مِلك مطلق علی حجة ذوی الید. (تنویر الابصار علی صدر رد المحتار ج٤، ص٤٨٦، باب دعوی الرجلین) و مثله فی شرح مجلة الاحکام، المادة ١٧٥٧، ص١١١٦، کتاب الدعوٰی.

## د حکومت په اجازه د مړو زمکو د آبادولو حکم

**سوال:** یو ځل صوبايي حکومت اعلان وکړ چه هر څوك غير آباده يعني خرابه زمکه آباده کړه نو هغه به د هغې زمکې مالك وي. چنانچه په يوه علاقه کښې ځينو خلکو محنت وکړ او خرابه غرنۍ زمکه ئې آباده کړه او په ځينو برخو کښې ئې کورونه جوړ کړل ليکن د هغه ځای ځينو مخورو خلکو له نوموړي خلکو څخه زمکه په زور قبضه کړه او کورونه ئې هم ترې خالي کړل. نو اوس پوښتنه دا ده چه د وخت حکومت له باقاعده اعلان نه وروسته که چېرته يو څوك خرابه زمکه آباده کړي نو هغوی ئې مالکان جوړيدلی شي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته پورته ذکر شوې خرابه زمکه له اول څخه د چا مملوکه نه وي او نه هغې نژدې خلکو نوموړې زمکه پخپلو منافعو کښې استعمالوله نو د وخت د حکومت له اجازې نه وروسته چه څوك هم د اسې زمکه آباده کړي نو آبادوونکی به د هغې مالك جوړيږي. نو له دې وجهې په دې زمکې باندې د مِلکيت له ثابتولو پرته محض د متو په زور سره د غريبو خلکو زمکې قبضول سراسر ظلم او زياتی دی او له دې څخه د ځان ساتل ضروري دي.

قال العلامة سليم رستم بازؒ: من احيا ارضاً من الاراضی الموات با لاذن السلطان صار مالكاً لها. (شرح مجلة الاحكام المادة ١٢٧٢، ص٦٨٨، الباب الرابع فی شركة الاباحة)

قال العلامة ابو بكر الكاسانیؒ: فا لملك فی الموات يثبت با لاحياء باذن الامام عند ابی حنيفةؒ. (بدائع الصنائع ج٦، ص١٩٤، كتاب الاراضی) و مثله فی رد المحتار ج٥، ص٣٠٧، كتاب احياء الموات.

## د خرابه زمکې د آبادولو په وجـــه د چينې اوبو په نورو خلـــکو باندې د بندولو په اړه فيصله

**سوال:** يوه تکړه زمکه له ډيره وخته د يوه سړي تر تصرف لاندې ده او نژدې ورته په يوه غير آباد غره کښې يوه چينه ده کوم چه له هغې څخه زمکه خړوبيدله. اوس نوموړی غير آباده غر چا آباد کړ او د هغه په شاوخوا کښې چه کومې آبادې زمکې دي په هغو ئې اوبو بندې کړې نو آيا د دې سړي په نورو خلکو باندې د اوبو بندول جائز دي او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** کله چه يوه تکړه زمکه له بهيدونکې چينې څخه له ډيره وخته راهيسې اوبو کيږي نو د هغې په شاوخوا کښې د خرابه زمکې په آبادولو سره چه په شاوخوا کښې نورې څومره آبادې زمکې دي په هغو باندې د دغې چينې د اوبو بندول جائز نه دي ځکه چه د خرابې زمکې په آبادولو سره د هغې په شاوخوا پرتو زمکو باندې شرعا څه اثر نه پريووزي بلکه د متعلقه زمکې مخکښيني حقوق باقاعده قائم وي. لکه څرنګه چه په خرابه زمکې په مواتو کښې له اول څخه جوړه شوې لاره د مواتو د آبادولو په وجه څوك نه شي بندولی نو همدارنګه کښې له اول څخه جوړه شوې د نورو زمکو د اوبو د لارې بندول جائز نه دي.



و فی الهندية: رجل احيا ارضاً ميتة ثم جاء انسان و احيا اراضی حولها حتی احاط الاحياء بجوانبها الاربعة كان له ان يتطرق الی ارضه من الارض التی احياها آخر. (الفتاوی الهندية ج٥، ص٣٨٧، كتاب احياء الموات، الباب الاوّل)

قال العلامة سليم رستم بازؒ: اذا احيا رجل ارضا من اراضی الموات ثم جائه آخرون ايضاً فاحيوا الاراضی التی فی اطرافها الاربع يتعين طريق ذٰلك الشخص فی ارض المحی الاخير يعنی ان طريقه تكون منها. (شرح مجلة الاحكام المادة ١٢٧، ص٦٨٩، الباب الرابع فی شركة الاباحة، الفصل الخامس) و مثله فی تنوير الابصار ج٥، ص٣٠٧، كتاب احياء الموات.

## پـــــه مشترکه زمکه کښې د نورو شريکـــــانو له اجازې نه بغير د تصرف کولو حکم

**سوال:** په يوه علاقه کښې شپږ سوه جريبه زمکه د ديهيه له شاملاتو څخه ده کوم چه پنځه کسه پکښې شريکان دي. اوس په دې کښې څو شريکانو د نورو شريکانو له اجازې پرته کورونه جوړ کړل او باغونه ئې پرې ولګول نو آيا نور شريکان ئې نوموړي اشخاص له دې تصرف څخه منع کولی شي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته دا ثابته شي چه دا زمکه د چا مملوکه نه ده او د مواتو په حکم کښې ده نو د حکومت په اجازې سره آبادوونکي به د دې حقدار وي په دې کښې د نورو شريکانو د اجازې ضرورت نشته بلکه د هغو له اجازې پرته هم په دې کښې تصرف جائز دی. البته که چېرته دا زمکه حکومت دغو پنځو سوو کسانو ته ورکړې وي لکه څرنګه چه عامو مقامي خلکو ته شاملاتي زمکې په قرب او جوار کښې د موجوده زمکو په تناسب سره ورکول کيږي نو دا زمکه به د ټولو تر منځ شريکه وي او په مشترکه املاکو کښې د تصرف په کولو سره که چېرته د نورو شريکانو املاکو ته د نقصان د رسيدو خطر نه وي نو بيا پکښې د ځينو شريکانو تصرف صحيح ده. ليکن که چېرته د هغو د تصرف له وجهې د نورو شريکانو املاکو ته نقصان رسيده نو بيا د ځينو شريکانو په دې زمکې باندې خپل سري تصرف جائز نه دی او نور شريکان ئې دا حق لري چه د دوی تصرف له زمکې څخه منع کړي.

قال العلامة الحصكفیؒ: و كل من شركاء الملك اجنبی فی الامتناع عن تصرف مضر فی مال صاحبه لعدم تضمنها الوكالة. (الدر المختار ج٣، ص٣٦٥، كتاب الشركة)

قـــــال العلامة سليم رستم بازؒ: انتفاع الحاضر با لملك المشترك بوجه لا يضر الغائب يع رضی من الغائب. (شرح مجلة الاحكام المادة ١٠٧٩، ص٦٠٤، الباب الاول فی شركة الملك) و مثله فی بدائع الصنائع ج٦، ص٦٥، كتاب الشركة.

## تر ډیرې مودې د تګ او راتګ له وجې په لارې باندې د حق مرور د دعوٰی حکم

**سوال:** د دوو کسانو په یوه لار باندې تنازعه ده۔ یو ئې دا دعوٰی کوي چه چونکه له شپیتو کلونو څخه په دې لارې باندې زما تګ او راتګ دی نو څکه هیڅوك هم دا حق نه لري چه ما په دې لارې باندې له تیریدو څخه منع کړي په داسې حال کښې چه دا بل سړی دا دعوٰی کوي چه دا لاره زما مِلکیت دی لیکن محض مې د بنو تعلقاتو له وجهې ده ته په دې لارې باندې د تیرید لو اجازه ورکړې ده لهذا زه دا حق لرم چه دا سړی له دې لارې څخه منع کړم نو آیا د څمکې مالك نوموړی سړی په دغې لارې باندې له تیرید لو څخه منع کولی شي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** محض د تګ او راتګ له وجهې د تیریدو د حق دعوٰی کول صحیح نه دي بلکه په مدعي باندې لازم دي چه مدعي علیه په مملوکه زمکې کښې د خپل ځان لپاره د لارې د ثابتولو لپاره ګواهان وړاندې کړي۔ که چېرته مدعي د ګواهانو له وړاندې کولو څخه عاجز شي نو بیا د مدعي علیه په قول باندې به اعتماد کیږي او د هغه په حق کښې به فیصله کیږي۔

كما فى الهندية: لو ادعٰى على آخر حق المرور رقبة الطريق فى داره فا لقول صاحب الدار و لو اقام المدعى البينة انه فى هٰذه الدار لم يستحق بهٰذا شيئاً كذا فى الخلاصة. (الفتاوى الهندية ج۳، ص ۱۰۴، الباب التاسع فيما يجوز بيعه)

قال العلامة طاهر بن عبد الرشيد البخاريؒ: و لو ادعٰى على آخر حق المرور او رقبة الطريق فى داره القول قول صاحب الدار و لو اقام المدعى البينة انه كان يمر فى هٰذه الدار لم يستحق بهٰذا شيئاً و لو شهدوا ان له طريقاً فيها و بينوا حدوده...... يقضٰى لهٗ بذٰلك. (خلاصة الفتاوٰى ج۴، ص۹۵، كتاب الدعوٰى، الفصل الثانى) و مثله فى شرح المجلة للعلامة سليم رستم بازؒ المادة ۱۱۵۵، فصل فى دعوى الحائط و الطريق.

## له یوه سړي څخه په اخیستل شوې زمکې باندې د ملکیت په دعوٰی کښې د تاریخ د تقدیم او تاخیر حکم

**سوال:** یوه سړي خپله زمکه پخپل وراره باندې وپلورله او بیا ئې په پټه سره هغه زمکه پخپل ورور باندې وپلورله۔ د بائع وراره او ورور دواړه د خپل خپل مِلکیت دعوٰی کوي او پخپلو دعوو باندې ثبوت وړاندې کوي او حال دا چه بائع هم موجود نه دی نو د دغو دواړو تر منځ به فیصله څنګه کیږي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په یوه وخت کښې په دوو کسانو باندې د زمکې پلورل جائز نه دي۔ دا سراسر دوکه ده او د دغې دوکې له وجهې دواړه پخپل منځ کښې سره په جنګ دي۔ په نوموړي صورت کښې کله چه بائع زمکه په دوو کسانو باندې پلورلې ده نو که چېرته دواړو پخپلو دعوو او د خپلو دعوو په اثبات باندې ګواهان وړاندې کړل نو زمکه فی الحال چه د چا په قبضه کښې ده۔ د هغه ګواهانو ته به د بل په ګواهانو باندې به ترجیح ورکول کیږي۔ البته که



چېرته دواړه مختلف تاریخونه بیان کړي وي نو بیا چه د کوم یوه تاریخ مقدم وي د هغه ګواه به د هغه بل په مقابله کښې مقدم وي۔

قال العلامة محمد علاؤ الدين افندیؒ: و لو ادعٰى الخارج و ذو اليد بسبب من الاسباب نحو شراء وارثٍ و شبهه فلا يخلوا اما ان يدعيا تلقى الملك من جهة واحدا و من جهة اثنين فلو ادعياه من جهة واحد و برهنا حكم بهٖ لذى اليد لو لم يؤرخا او ارخا سواءً فلو ارخا و تاريخ احدهما اسبق فهو اولٰى. (تكملة رد المحتار ج۲، ص۱۸، باب دعوى الرجلين)

و فى الهندية: ان كانت فى يد احدهما فهى لذى اليد سواء ارخ او لم يؤرخ الا اذا ارخا و تاريخ الخارج اسبق فيقضى بها للخارج كذا فى الكافى. (الفتاوى الهندية ج۴، ص۷۴، الباب التاسع، الفصل الثانى فى دعوى الملك فى الاعيان) و مثله فى شرح مجلة الاحكام ۱۱۲۷، كتاب الدعوٰى.

## د مقتول د وارث لـــــه خوا څخه د قاتل د معاف کولو نه وروسته د قتل د دعوٰی څیړنه

**سوال:** یوه سړي په بل سړي باندې د خپل زوی د قتل دعوٰی وکړه او حال دا چه مدعي علیه له قتل څخه منکر دی۔ د ګواهانو له ګواهي څخه مخکښې مدعي علیه دعوٰی په دې الفاظو سره رفع کړه چه د مقتول له پلار څخه زما ورور د قتل په باره کښې پوښتنه وکړه نو هغه ځواب ورکړ چه زما زوی مدعي علیه نه دی قتل کړی او که چېرته هغه قتل کړی هم وي نو ما معاف کړی دی۔ نو آیا دغه معافي د دعوې د دفع لپاره کافي ده او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** قصاص جاري کول چونکه یوه سنګینه معامله ده څکه چه یوه چا د ژوند او مرګ سره تعلق لري نو د دې لپاره په دې باب کښې شریعت د مقتول د وارثانو عفو او تیریدنې ته ډیر اهمیت ورکړی دی۔ که چېرته د مقتول له وارثانو څخه یو ئې هم قاتل معاف کړ نو له هغه څخه قصاص ساقطیږي۔ د بیان مطابق که چېرته په شرعي توګه ثابت شي چه د مقتول یوه وارث دا اعتراف کړی دی چه زما زوی مدعي علیه نه دی قتل کړی او که چېرته ئې قتل کړی هم وي نو ما معاف کړی دی۔ نو دا معافي او اعتراف د دعوې د دفاع لپاره کافي ده او په دې سره د قتل دعوٰی ساقطه ګرځي۔

كما فى الهندية: و من عفا من ورثة المقتول عن القصاص رجلٌ و امرأةٌ او ام او جدة و من سواهن من النسآءِ او كان المقتول امرأة فعفا زوجها عن القصاص فلا سبيل الى القصاص. (الفتاوى الهندية ج۶، ص ۲۰، الباب السادس فى الصلح و العفو و الشهادة فيه)

قال العلامة الكاسانیؒ: فاما اذا كان اثنين او اكثر فعفا سقط القصاص عن القاتل لانه سقط نصيب العافى بالعفو فيسقط نصيب الآخر ضرورة انه لا يتجزأ. (بدائع الصنائع ج۷، ص۲۴۷، كتاب الدعوٰى) و مثله فى الهداية ج۴، ص۵۵۶، كتاب الدعوٰى.

## زوی ته په هبه شوې زمکې باندې د وارثـــــانو د ملکیت د دعویٰ حکم

**سوال:** یوه سړي څه زمکه واخیسته او د اخیستلو نه وروسته ئې څه حصه د خپل زوی په نامه کړه او مکمله ئې د هغه په قبضه کښې ورکړه۔ د هغه له مړینې وروسته کومه زمکه چه د ده په نامه وه هغه ئې په وارثانو باندې تقسیم شوه او کومه زمکه ئې د زوی په نامه وه هغه هم هغسې د هغه په نامه پاتې شوه۔ اوس ئې وارثان د دغې زمکې د وراثت دعویٰ هم وکړه چه د وراثت قانون لاندې مونږ هم په دې کښې حق لرو او حال دا چه زوی ئې پخپلې زمکې کښې هغوی ته حق له ورکولو څخه انکار کوي۔ په دې صورت کښې آیا په دغې زمکې باندې ئې د پلار د نورو وارثانو د ملکیت دعویٰ صحیح ده او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په حقیقت کښې د ژوند انه په حالت کښې پلار له خپل جائداد څخه چه څومره برخه خپل کوم زوی ته ورکوي نو هغه د پلار له خوا زوی ته هِبه وي او د هبې د پوره والي لپاره قبض شرط دی۔ که چېرته په موهوب له په هبه شوی شي باندې قبضه و نه کړې نو پرته له قبضې څخه هبه تامه نه ګرځي۔ د دې لپاره د بیان مطابق که چېرته په رښتیا هم پلار پخپل ژوند کښې د خپل زوی په نامه باندې زمکه منتقل کړې وي او د هغه په ژوند کښې زوی قبضه پرې کړې وي نو دا زمکه به یوائې د ده مِلکیت وي د نورو وارثانو حق پکښې نشته۔ د دې لپاره په دې زمکې باندې د نورو وارثانو د مِلکیت دعویٰ صحیح ده۔

لما قال العلامة ابن عابدینؒ: و منها ان یکون الموهوب مقبوضاً حتی لا یثبت الملك للموهوب له قبل القبض و ان یکون مقسوماً اذا کان مما یتحمل القسمة. (الفتاوی التنقیح الحامدیة ج۲، ص۹۳، کتاب الهبة)

لما قال العلامة سلیم رستم بازؒ: یملك الموهوب له الموهوب با لقبض. (شرح مجلة الاحکام المادة ۸۶۱، ص۴۷۳، الباب الثالث) و مثله فی بدائع الصنائع ج۶، ص۱۳۲، فصل حکم الهبة، کتاب الهبة.

## د هـــــلاك شوي مال په باره کښې د قرض او مضاربت د اختلاف حکم

**سوال:** یوه سړي چه د اسلحې کاروبار ئې کاوه له خپل یوه ملګري څخه څلور زره روپۍ او له بل ملګري څخه دوه زره او له دریم ملګري څخه یو زر روپۍ واخیستې او لاړ او تولې ۷۰۰۰ روپۍ ئې یو دلال ته ورکړې۔ دلال ورته وویل چه په فلانۍ تاریخ باندې په فلانې ځای کښې زه تا ته کارتوس درکوم۔ نوموړی چه کله د دلال معلوم شوي ځای ته ورسیده نو د ده په موجودوالي کښې پولیسو دلال ونیو یعنې ګرفتار ئې کړ او کارتوس او د اسې نور ئې ضبط کړل۔ دا سړی خالي لاس له هغه ځایه بیرته راغی او وروسته ورمعلوم شو چه دا ټول د دلال چل او فریب وو او دا واقعه له پخوا همداسې تنظیم شوې وه نو ځکه ئې له دلال څخه د پیسو غوښتنه وکړه لیکن دلال د پیسو له ورکولو څخه انکار وکړ او په ناهیلۍ سره بیرته راغی۔ کله ئې چه ملګرو ته معلومات وشو نو هغو له ده څخه د خپلو خپلو روپو د واپسي غوښتنه وکړه۔ په هغه وخت



کښې نوموړي دوی ته وویل چه تاسو پروا مه کوئ زه تاسو ته خپلې خپلې روپۍ بیرته درکوم او وروسته ئې بیا څېلو ملګرو ته وویل چه تاسو چونکه دا پیسې په مضاربت راکړې وې نو څکه له هلاکت څخه وروسته زه د هغو روپو ضامن نه یم او حال دا چه ملګري ورته وایي چه مونږ دا روپۍ د قرض حسنه په توګه درکړې وې۔ په دواړو خواوو کښې له یوه سره هم ګواهان موجود نه دي نو اوس فیصله به د چا په حق کښې کیږي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** صورت مسئوله ته په کتو سره د اسې معلومیږي چه ملګرو ئې دا پیسې ده ته د قرض په توګه ورکړې دي ځکه چه مدعي علیه چه کله دا وویل چه تاسو پروا مه کوئ زه تاسو ته خپلې پیسې واپس درکوم نو له دې څخه معلومیږي چه هغه د قرض قائل وو۔ اوس د ده دریواړه ملګري مدعیان دي او دی مدعي علیه ده۔ چونکه له ملګرو سره ئې شاهدان وجود نه لري نو ځکه د "البینة للمدعی و الیمین علی من انکر" تر قانون لاندې به هغه ته قسم ورکول کیږي۔ که چېرته هغه قسم وکړي چه ما دا روپۍ په مضاربت اخیستې وې نو د مضاربت له ثابتیدو نه وروسته به هغه له ضمان څخه بري الذمه ګرځي ځکه چه په مضاربت کښې مال د مضارب په لاس کښې امانت وي نو که چېرته په امانت کښې مال هلاك شي نو د ضمان موجب نه وي نو ځکه دلته هم ضمان نه لازمیږي۔

لما قال العلامة المرغینانیؒ: فان زاد الهالك علی الربح فلا ضمان علی المضارب لانه یمین. (الهدایة ج۳، ص۲۶۴، کتاب المضاربة، فصل فی العزل و القسمة)

قال العلامة سلیم رستم بازؒ: اذا تجاوز مقدار الربح سری الی رأس المال فلا یضمنه المضارب سواء کانت المضاربة صحیحة او فاسدة. (شرح المجلة المادة ۱۴۲۷، ص۷۵۷، الباب الرابع، الفصل الثالث) و مثله فی خلاصة الفتاویٰ ج۴، ص۱۸۸، کتاب المضاربة.

## په غیر اختیاري کارونو کښې د چا د ذمه وارۍ د قبلولو په اړه فیصله

**سوال:** یو سړی په سعودي عربستان کښې په یوې کمپنۍ کښې ملازم وو او تر نګرانۍ لاندې ئې تقریبا پنځه دیرش کسانو کار کاوه۔ دغه ټول کسان چونکه هلته په غیر قانوني توګه اوسیدل نو له دې وجهې حکومت ګرفتار کړل۔ اوس په هغو کښې یوه پخپل نګران باندې دعوې وکړه چه هغه زمونږ ذمه واري وهلې وه چه تاسو له دې ځای څخه مه ځئ او کوم نقصان چه ستاسو وشي زه ئې ذمه وار یم په د اسې حال کښې چه نګران انکار کوي او وایي چه ما هغوی ته ویلي وو چه تاسو وتښتئ لیکن تاسو پخپله نه شوای تښتیدلی له دې وجهې زه ستاسو د نقصان ذمه وار نه یم۔ اوس د مذکوره بیانونو مطابق فیصله به د چا په حق کښې کیږي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په اصل کښې چه کوم سړي د نوموړي خلکو ذمه وار شوی وو هغه د وی له خوا د کفیل درجه لري او د کفالت لپاره فقهاء کرامو دا شرط لګولی دی چه یوائې په

هغو امورو کښې کفالت معتبر دی کوم چه د کفیل په دائرهٔ اختیار کښې وي او کوم کار چه د هغه د اختیار له دائرې څخه د باندې وي په هغه کښې کفیل جوړیدل جائز نه دي۔ نو له دې وجهې په غیر قانوني توګه مقیمو خلکو ته د سکونت حق ورکول د حکومت ذمه واري ده او دا ذمه واري د کفیل په اختیار کښې نه ده نو ځکه په دې کښې د دې سړي لپاره د خپل ځان له خوا څخه وکیل جوړیدل صحیح نه دي۔ نو له دې وجهې چه کله کفالت صحیح نه وي نو دا ذمه واري هم په ده نه عائد کیږي۔

لما قال العلامة المرغیناني: و کل حق لا یمکن استیفاء ه من الکفیل لا یصح الکفالة به کا لحدود و القصاص. (الهدایة ج۳، ص ۱۲۰، کتاب الکفالة)

قال العلامة الکاساني: ان یکون المکفول به مقدور الاستیفاء من الکفیل لیکون العقد مفیداً فلا تجوز الکفالة با لحدود و القصاص لتعذر الاستیفاء من الکفیل فلا تفید الکفالة فائدتها. (بدائع الصنائع ج۶، ص۹، کتاب الکفالة، فصل شرائط الکفالة) و مثله فی مجلة الاحکام المادة ۶۳۲، ص ۳۴۴، الفصل الثانی فی شرائط الکفالة.

## د چا د بیع په عقد باندې د دوباره عقد کولو په اړه فیصله

**سوال:** له ۱۹۶۶ء څخه یوه سړي یو دوکان په کرایه باندې نیولی دی او د دستور او رواج مطابق به ئې دوکاندار ته کرایه ورکوله۔ د دوکان د مالك له فوت کیدو نه وروسته ئې زوی په مسلسله توګه کرایه له نوموړي کرایه دار څخه وصولوله۔ په ۱۹۷۷ء کښې د دوکان موجوده مالك د خپل دوکان د پلورلو خبره وکړه۔ نو کرایه دار د پنځوسو زرو روپو په بدل کښې د مالك سره د دوکان د اخیستو خبره وکړه۔ خپل نامه ته ئې نقل کولو ته درې ورځې پاتې وې چه یو سړي د دلال په ذریعه د دوکان مالك ته وراغی او په مذکوره اندازه روپۍ ئې ورکړې او په اسنادو کښې ئې دوکان پخپل نامه کړ۔ اوس هغه دوکان د کرایه دار په لاس کښې ده او هغه بل سړی په کرایه دار باندې دباو اچوي چه دوکان خالي کړه۔ په داسې صورت کښې دوکان د چا حق جوړیږي په دې باره کښې د مقدس شریعت په رڼا کښې فیصله صادره کړئ؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته د کرایه دار او د دوکان د مالك تر منځ بیع قطعي شوې وي نو کرایه دار په اولني عقد باندې د دوکان مالك جوړ شو او د دوکان اسناد اګر که د ده په نامه جوړ نه وي ځکه چه د بیع د عقد د مکمل والي لپاره شرعا په اسنادو کښې په نوم کول ضروري نه دي۔ کله چه په قطعي بیع سره کرایه دار د دوکان مالك شو نو هغه دوکان چه د ده له دوکان سره متصل دی که چېرته د هغه دوکان کوم شریك موجود نه وي او نه د هغه په حقوقو کښې څوك شریك وي نو د ګاونډي توب له وجهې په هغه دوکان باندې د شفعې حق هم لري او د شفعې د حق له مخې هم هغه دوکان واپس کولی شي۔

لما قال العلامة المرغیناني: الشفعه واجبة للخلیط فی نفس المبیع ثم للخلیط فی حق المبیع کا لشرب و الطریق ثم للجار. (الهدایة ج۴، ص۳۷۷، کتاب الشفعه)



قال العلامة سلیم رستم باز: الثالث ان یکون جاراً ملاصقاً للعقار المبیع. (شرح مجلة الاحکام المادة ۱۰۰۸، ص۵۶۳، کتاب الشفعه) و مثله فی خلاصة الفتاوٰی ج۴، ص ۴۵۴، کتاب الشفعه.

## د پلار تر وفات وروسته د بیع له عقد څخه د زامنو انکار

**سوال:** یو سړی دیرش کاله مخکښې خپله زمکه له شاملات دیهیه سره په چا باندې وپلورله۔ وروسته مشتري له بایع څخه څه پیسې د پور په توګه واخیستلې لیکن د قرض په ادا کولو باندې د نه قدرت له وجهې مشتري د پور په بدل کښې زمکه په بائع باندې دوباره وپلورله او د بیرته ورکولو وعده ئې ورسره وکړه لیکن له واپسۍ څخه مخکښې هغه وفات شو۔ اوس بائع د هغه له زامنو څخه د زمکې د واپسي غوښتنه وکړه لیکن زامنو ئې د زمکې له بیرته ورکولو څخه انکار وکړ او وايي چه زموږ پلار دوباره زمکه په بائع باندې نه ده پلورلې۔ اوس د بیع په عقد باندې له مدعي سره ګواه نشته نو فیصله به څنګه کیږي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته شاملات د مواتو یعنې خرابه زمکو په حکم کښې وي او د شرعي اصولو مطابق دغه سړي پرې قبضه کړې وي او آباده کړې ئې وي نو په دې زمکې باندې د هغه د ملکیت په ثابتیدو باندې بیع نافذه ده۔ کله چه وروسته مشتري له بائع څخه څه پیسې په قرضه واخیستې او پور په بیرته ورکولو باندې د نه قدرت له وجهې ئې زمکه بیرته په بائع باندې وپلورله نو بائع د دې عقد مطابق د زمکې د بیرته اخیستلو حق لري۔ اوس بائع چونکه د عقد بیع دعوٰی کوي نو ځکه د مشتري له مړینې نه وروسته په بائع باندې د ګواهانو وړاندې کول دي۔ او که چېرته ګواهان موجود نه وي نو د مشتري زامنو ته به د هغوی په علم باندې قسم ورکول کیږي او هغه چه داسې ووايي چه مونږ ته دا نه ده معلومه چه زموږ پلار د پیسو له ادا کولو څخه د عاجز والي په صورت کښې زمکه بیرته په بائع باندې پلورلې ده۔ نو که چېرته هغوی په دې باندې قسم وکړي نو فیصله به ئې د زامنو په حق کښې کیږي او که چېرته انکار وکړي نو زمکه به بائع ته بیرته ورکول کیږي۔

کما قال العلامة التمرتاشي رحمه اللّٰه: و التحلیف علی فعل غیره یکون علی العلم ای انه لا یعلم انهٗ کذٰلك لعدم علمه بما فعل غیره. (تنویر الابصار علی هامش رد المحتار ج۴، ص۴۷۳، کتاب الدعوٰی)

قال العلامة قاضی سماوة: و لو وقع الدعوٰی علی فعل الغیر من کل وجه یحلف علی العلم حتٰی لو ادعٰی علٰی وارث ان اباك اتلفه او سرقه او عصبه منی یحلف علی العلم و هٰذا مذهبنا. (جامع الفصولین ج۱، ص۱۹۴، الفصل الخامس عشر فی التحلیف) و مثله في فتاوٰی قاضی خان علی هامش الهندیة ج۲، ص ۴۱۴، فصل ما یتعلق با لنکاح من المهر و الولد و غیر ذٰلك.

## د عقد مضاربت په اړه د یوې فیصلې تصحیح

**سوال:** دوو کسانو په مضاربت باندې کاروبار شروع کړ۔ رب المال دوه لکه روپۍ مضارب ته ورکړې او مضارب په دغو روپو باندې دوکان کیښود او خپل یو ملګری ئې پکښې کښیناوه او اکثره وخت هغه دوکانداري کوله۔ رب المال په دې کار باندې څه ناڅه خفګان ښکاره کړ لیکن

له دې سره سره مضارب خپل ملګرې له دوکان څخه لرې نه کړ او په آخر کښې ئې په کار و بار کښې دیارلس زره روپۍ نقصان کړې وو۔ رب المال دعوی وکړه چه مضارب له خپل ملګري سره په ګډه دیارلس زره روپۍ غلا کړي دي۔ کله چه رب المال د خپلو روپو بیرته غوښتنه وکړه نو مضارب د پیسو له ورکولو څخه انکار وکړ او دا دعوی ئې وکړه چه په دې دوکان باندې زما ۴۵ زره روپۍ لګیدلي دي۔ دوی دواړو دریمان وټاکل او داسې فیصله ئې وکړه چه دوکان به له رب المال سره وي او مضارب به پنځه څلوېښت زره روپۍ مصرف ادا کوي۔ د دریمانو د دې فیصلې مطابق رب المال ته ۵۸ زره روپۍ نقصان رسیږي۔ نو آیا په شریعت کښې دا فیصله صحیح ده او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په اصل کښې مضارب په کاروبار او تجارت کښې د وکیل حیثیت لري نو ځکه رب المال د کومو شرائطو لاندې چه مضارب ته د تصرف اختیار ورکړی وي د هغو شرائطو پابندي په مضارب باندې لازمه ده۔ که چېرته د هغو شرائطو خلاف ورزي وکړي او څه نقصان وشي نو ضمان ئې په مضارب باندې لازمیږي۔ همدارنګه په صورت مسئوله کښې کله چه رب المال د هغه ملګرې په دوکان کښې له کښیناستو څخه منع کړ نو د هغه لپاره جائز نه دي چه له هغه وروسته خپل ملګرې په دوکان کښې کښینوي۔ لهذا که چېرته رب المال په شهادت باندې دا ثابته کړي چه مضارب په ریښتیا هم په دې کښې خیانت کړی دی نو د تجارت سامان به خرڅوي او رب المال ته به خپلې پیسې بیرته ورکوي او کومې پیسې چه زیاتې شي هغه به پخپل منځ کښې مساوي سره ویشي۔ مضارب چه د خپل مصرف لپاره کومې پیسې اخیستې وي هغه به د مضارب له ګټې څخه جدا کیږي۔

لما قال العلامة الكاسانیؒ: فاذا خالف شرط رب المال صار بمنزلة الغاصب و يصير المال مضمونا عليه. (بدائع الصنائع ج۶، ص۸۷، کتاب المضاربة، فصل فی حکم المضاربة)

قال العلامة سليم رستم بازؒ: و اذا تجاوز المضارب حد ماء ذو نيته و خالف الشرط كان غاصباً او فی هٰذه الحال يعود الربح و الخسار فی تجارته له و عليه و اذا تلف مال المضاربة كان ضامناً. (شرح مجلة الاحكام المادة ۱۴۲۹، ص۷۵۴، کتاب المضاربة) و مثله فی الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۴، ص۵۴۲، کتاب المضاربة.

## د ټیوب ویل (برمې) په نوکري باندې د فریقینو د تنازعې فیصله

**سوال:** یو سړي له اتیاوو کلونو څخه په یوې زمکې باندې تصرف کوي او د خپلې زمکې یوه حصه ئې حکومت ته د ټیوب ویل (برمې) د لګولو لپاره په دې شرط ورکړه چه د ټیوب ویل نوکري یا ملازمت به زما وي۔ د ټیوب ویل د لګولو نه وروسته هغه د نوکرۍ لپاره یو بل سړي ته خرڅ او مصرف او داسې نور څه ورکړل۔ هغه سړي د زمکې مالك په دوکه کښې واچاوه او د ټیوب ویل نوکري ئې پخپل نامه راوایسته۔ د زمکې مالك پرې دعوی وکړه چه نوکري خو زما حق دی ځکه چه دا زمکه خو مشترکه او له شاملاتو څخه ده کومه چه زما حصه هم پکښې



شته اګر که دا نه ده متعینه چه د ټیوب ویل زمکه زما ده یا د بل چا ده۔ د زمکې مالك دا ځواب ورکړ چه دا زمکه ما ته اتیا کاله مخکښې ټول قوم راکړې ده۔ نو په پورته ذکر شوي صورت کښې د ټیوب ویل د نوکرۍ زیات حقدار څوك دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته په یقیني توګه دا معلومه شي چه دا زمکه له شاملات دیهیه وو څخه ده او ټول قوم نوموړي سړي ته ورکړې وي نو دا سړی په دې زمکې باندې د قبضې او تصرف په کولو سره د نوموړې زمکې مالك ګرځیدلی دی۔ نو کله چه اتیا کاله ئې په نوموړې زمکې باندې تصرف کړی وي او هیچا هم د ملکیت دعوی پرې نه وي کړې نو په بل څوك په دې زمکې باندې د تصرف کولو حق نه لري۔ لهذا چه کله ئې خپله زمکه د ټیوب ویل د لګولو لپاره ورکړې ده نو دا زمکه وقف شوه او په وقفي زمکه کښې چه واقف کوم شرط لګولی وي د هغه رعایت به کیږي۔ نو لکه څرنګه چه د موقوفه زمکې منافع واقف د خپل ځان لپاره خاص کولی شي همدارنګه که چېرته د زمکې مالك په موقوفه زمکه کښې د ټیوب ویل نوکري او ملازمت د خپل ځان لپاره خاص کړی وي نو دا هم د هغه حق دی نو له دې وجهې چه دا د ده حق دی بل څوك ئې ملازمت حق نه لري۔

لما قال العلامة عالم بن العلاء الانصاریؒ: و ذكر الفقيه ابو جعفر انه لو شرط لنفسه ان يأكل من العلة يجوز عند محمدؒ و كذٰلك لو شرط الغلة لابيه فهو كاشتراطها لنفسه. (الفتاوی التاتارخانية ج۵، ص۷۲۲، الفصل الرابع فيما يتعلق بالشرط الوقف)

قال العلامة الحصكفیؒ: و جاز جعل غلة الوقف او الولاية لنفسه عند الثانی و عليه الفتوٰی. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۳، ص۴۲۴، کتاب الوقف) و مثله فی الهندية ج۲، ص۳۹۸، الباب الرابع فيما يتعلق بالشرط الوقف.

## د پلار په ترکه کښې د زوی له خوا د ځان لپاره د زمکې د څه حصې د هبه کولو د دعوی حکم

اول فریق

دوهم فریق

**د تحکیم حق:** پورتنۍ دوه ډلې پخپله حاضر نه شول لیکن خپل خپل نمائندګان یعنې وکیلان ئې ولیږل او د قرآن او سنت مطابق د فیصلې لپاره تیار شول لهذا د هغو د نمائندګانو په واسطه بیانونه واوریدل شول۔

**تنقیحات:** د پورتني ذکر شویو ډلو د وکیلانو په ذریعه بیانونه واوریدل شول له هغو بیانونو څخه څو خبرې مخته راغلې۔

﴿۱﴾ دواړه ډلې پخپل منځ کښې حقیقي ورونه دي او د دوی له بیان څخه په ناڅاپي توګه دا معلومیږي چه دواړو خپلې خویندې له جائداد څخه محرومې کړې دي۔ د جائداد ویش ئې یوائځې تر دواړو ورونو پورې محدود ساتلی دی۔ د دواړو د پلار له تصرفاتو یا له هغه نه وروسته د

وارثانو له عملي اقداماتو څخه دا ځرګندیږي چه د خویندو هیڅ یادونه پکښې نشته۔

﴿۲﴾ اوله ډله د دې خبرې دعوٰی لري چه پلار ئې پخپل ژوند کښې جائداد تقسیم کړی وو له نورو حصو څخه ئې پرته اتمه خسره اته سوه اوه (۸۰۷) کوم چه د ارتل په نامه یادیږي چه اندازه ئې ۸۰ کناله او اته مرلې ده ماته راکړل شوې ده کوم چه د ۱۹۶۶ء سنه او ۱۹۶۷ء سنه کلونو په بندوبست کښې پخپل حال پاتې شوی دی۔ د نومورې ډلې د بیان له مخې دا جائداد دوهمې ډلې خپل نامه ته منتقل کړی دی چه په خلاف ئې اولې ډلې عدالت ته عریضه وکړه او په دې وخت کښې یوه سرې د دوی ترمنځ صلح وکړه۔

﴿۳﴾ اولې ډلې په صلح کښې د زرو روپو د ورکولو یادونه کوي چه دوهمې ډلې په رضا او خوښۍ سره اخیستي دي او د بینه په توګه مهر شوی سند وړاندې کوي۔

﴿۴﴾ د دوهمې ډلې بیان دی چه پلار ئې پخپل ژوند کښې زمکه پخپلو زامنو تقسیم کړې وه البته د ښې او بیکاره زمکې په رعایتولو سره ئې یوه زوی ته ښه زمکه کمه او بل زوی ته بیکاره زمکه ډیره ورکړې وه۔ اولې ډلې له دوکې او فریب په کولو سره اته سوه اوومه (۸۰۷) خسره په جعلي توګه خپل نامه ته منتقل کړې ده کوم چه عدالت ته زمونږ د رجوع له مخې عدالت بیرته په حال کړې ده۔

﴿۵﴾ د دوهمې ډلې دفاعي بیان دا دی چه هغوی له اولې ډلې سره چه کومه صلح کړې ده هغه نافذه نه ده ځکه چه دوهمې ډلې خپل ټول جائداد د خپلو زامنو ترمنځ تقسیم کړی وو او د کوم جائداد په سر چه دوهمې ډلې صلح کړې وه هغه د ده جائداد نه وو بلکه د هغه د زامنو جائداد وو۔ همدا وجه ده چه دوهمې ډلې زر روپۍ اولې ډلې ته په بیرته ورکولو سره صلح کالعدم وګرځوله۔

**حقیقت حال:** په دغو نکاتو باندې له غور کولو څخه دا اندازه لګیږي چه دواړه خواوې د خویندو په محرومولو باندې متفق دي۔ دا د یوه جاهلانه او غیر شرعي اقدام له تایید سره برابر دی۔ که چیرته ئې پلار سره له علم او پوهې د زامنو په نامه جائداد منتقل کاوه او لونړې ئې له میراث څخه محرومې ګرځولې دي نو دا ناجائز او حرام حرکت دی اګر که قضاءً د اسې اقدامات نافذ ګرځي لیکن د خدای په حضور کښې له دې جرم څخه د خلاصون او نجات لپاره یوائینۍ لاره دا ده چه وارثان د مورث د ذمې د فارغولو لپاره هر د حق خاوند ته خپل حق ورکړي او که نه وي نو د بندګانو د حق له نه ورکولو سره د خدای له خوا د هغه نیول یقیني خبره ده۔ بیا هم قضاءً د پلار تصرفات جاري پاتې کیدلی شي۔

**شرعي فیصله:** ترکومه ځایه پورې چه د متعلقه جائداد په اړه د دواړو خواوو بیانونه اړه لري نو واضحه او ښکاره دې وي چه په حکومتي کاغذونو کښې یوائې په نامه اړولو سره د چا د ملکیت دعوٰی شرعي دلیل نه دی او نه په دې اسنادو باندې ملکیت موقوف دی۔ نو ځکه د دواړو خواوو د پلار د مالکانه تصرفاتو د نفاذ لپاره په حکومتي اسنادو کښې انتقال ضروري نه



دي او کومه قاعده چه په ګواهانو باندې ثابته شي هغې ته به اعتبار ورکول کیږي۔

قال العلامة سليم رستم بازؒ: و لا يعمل با لخط و الختم وحدهما الا اذا كان سالماً من شبهة التزوير و التصنيع فيعمل به يعنى انهٗ يكون مداراً للحكم و لا يحتاج الى الثبوت بوجهٍ آخر. (مجلة الاحكام المادة ۱۷۳۶، ص ۱۰۹۰)

لیکن وروسته له دې نه ترکومه ځایه پورې چه د دواړو خواوو د اختلاف خبره ده او بیا په دې کښې د صلح صورت هم راغلی دی نو د مصالحت ثبوت په باقاعده توګه په اقرار او یا عادلو ګواهانو په ګواهۍ باندې موقوف دی۔ نو ځکه که چیرته د دوهمې ډلې په رضاء او رغبت سره صلح یو ځل ثابته شي نو د باقاعده منلو نه وروسته نه پخپله دوهمه ډله او نه ئې وارثان له هغې څخه انکار کولی شي لیکن د داسې مصالحت لپاره دا ضروري دي چه دوهمې ډلې چه په کوم جائداد باندې مصالحت کړی وي هغه د هغه په ملکیت کښې وي۔ او که چیرته هغه په رښتیا هم دا جائداد پخپلو زامنو باندې باقاعده تقسیم کړی وي او د هغو په قبضه کښې ئې ورکړی وي او هبه کړی ئې وي نو بیا په قبضې سره هبه تامه ګرځي او د دوهمې ډلې ملکیت په ځای نه پاتې کیږي۔ نو ځکه یو سړی د بل چا په متنازعه جائداد باندې مصالحت نه شو کولای او نه بل چا ته د هغه جائداد ورکولی شي اګر که پلار او زوی دې ولې نه وي۔

قال العلامة الكاسانيؒ: و منها ان يكون مملوكاً للمصالح حتى انهٗ اذا صالح على مالٍ ثم استحق من يد المدعى لم يصح الصلح لانهٗ تبيّن انهٗ ليس مملوكاً للمصالح فتبيّن ان الصلح لم يصح. (بدائع الصنائع ج۶، ص۴۸، كتاب الصلح، فصل فى ما شرائط التى المصالح عليه)

بیا هم د صلح د کولو په وخت کښې د نومورې جائداد د دوهمې ډلې د ملکیت د ثبوت لپاره باقاعده د ګواهانو ګواهي ضروري ده او که نه نو دوهمې ډلې ته به پرې قسم ورکول کیږي۔ که چیرته د اولې ډلې په ملکیت باندې ګواه وړاندې شي نو بیا به هغه صلح قائمه پاتې کیږي چه پابندي ئې په دواړو ضروري ده۔ او که نه نو بیا د اولې ډلې په غوښتنه باندې د دوهمې ډلې له ملکیت څخه په انکار کولو باندې به قسم ورکول کیږي۔ که چیرته دوهمه ډله قسم وکړي نو د صلحې دعوٰی کالعدم ګرځي او اصل فیصله به د دواړو خواوو په مخکښینیو دعوو باندې وي چه په هغو کښې د مدعي لپاره ګواه او د ګواه د نه موجودوالي په صورت به کښې مدعي علیه ته قسم ورکول کیږي۔

قال العلامة ابن عابدينؒ: فالحاصل ان المدار على انتفاء الشبهه ظاهراً و عليه فما يوجد فى دفاتر التجار فى زماننا اذا مات احدهم و قد حرّر بخطّه ما عليه فى دفتره الذى يقرب من اليقين انهٗ لا يكتب فيه على سبيل التجربة و الهزل يعمل بهٖ. (فتاوى التنقيح الحامدية ج۲، ص۲۱، كتاب الدعوى) و مثله فى تقريرات الرافعى ج۲، ص۹۲، كتاب الدعوى.

لما قال العلامة سليم رستم بازؒ: يشترط ان يكون المصالح عليه مال المصالح و مِلكه فلو اعطى المصالح مال غيره ليكون بدلاً للصلح فلا يصح صلحهٗ. (شرح مجلة الاحكام المادة ۱۵۴۵، ص ۸۳۴، الباب الثانى) و مثله فى الهداية ج۳، ص۲۴۷، كتاب الصلح.

## د بیع په عقد کښې د اختلاف په اړه فیصلـــــه

**سوال:** د دواړو خواوو بیانونه

**فریق اول یا اوله ډله:** زه دعوی کوم چه فلانی محدوده زمکه کومه چه دیارلس جریبه ده له فریق ثاني یا دوهمې ډلې څخه مې په شپیته زره روپۍ اخیستې ده. د بیع په وخت کښې مې دوه زره روپۍ ورکړې او پاتې روپۍ مې په دوو قسطونو کښې ادا کولې. یو قسط مې چه دیرش زره روپۍ وې ادا کړې او پاتې قسط ئې غواړم چه ادا ئې کړم. لهذا زما نه دا روپۍ واخلی او چه کومه زمکه ما اخیستې ده هغه راکړی.

**دوهمه ډله:** زه اقرار کوم چه ذکر شوې ټکره زمکه چه زما او زما د ورور ترمنځ مشترکه ده د خپل ورور په اجازې سره مې په اولې ډلې باندې خرڅه کړې ده لیکن د پلورلو په وخت کښې ما دا شرط لګولی وو چه که چېرته فلانی ټکره زمکه کومه چه د بل سړي په ملکیت کښې ده په ما باندې وپلوري نو زه هم دا زمکه پلورم. اوس چونکه هغه سړي په ما باندې زمکه نه کړه خرڅه نو زه ئې هم نه خرڅوم.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** دعوی د دیارلس جریبه ټکرې زمکې په اړه

**مدعي:** مشتري (فریق اول)     **مدعي علیه:** بائع (فریق ثاني)

د فریقینو د بیان کړل شوي تفصیل مطابق که چېرته د مدعي علیه د ورور په حصه کښې د وکیل بالبیع کېدل مبرهن (ښکاره) او مسلم (تسلیم شده) وي نو د ټولې ټکرې زمکې بیع صحیح ده او که چېرته دا ولایت ثابت نه وي نو بیا د بائع پخپله حصه کښې د بیع د صحیح کېدلو او د ورور په حصه کښې ئې بیع د بیع فضولي په حکم کښې د کېدلو د هغه په اجازې پورې موقوفه ده. که چېرته مذکوره شرط موجود وي نو د ټولې زمکې بیع صحیح ده او بائع د بیع د ماتولو حق نه لري ځکه چه په بیع کښې نوموړی شرط نه د عقد له مقتضاوو او نه د عقد له مدعاوو څخه ده کوم چه ایفاء ئې ضروري وي او نه په دې کښې د بائع او مشتري او د مبیعې فائده ده چه له مخې ئې عقد فاسد شي.

قال العلامة ابن عابدينؒ: المراد با لنفع ما شرط من احد العاقدين على الآخر فلو على اجنبى لا يفسد و يبطل الشرط لما فى الفتح عن الوجيه بعتك الدار بالف على يقرضنى فلان الاجنبى عشرة دراهم فقبل المشترى لا يفسد البيع لانه لا يلزم الاجنبى و لا خيار للبائع. (رد المحتار ج۵، ص۷۵، باب البيع الفاسد. مطلب فى الشرط الفاسد اذا ذكر الخ)

قال العـــــلامة ابن نجيمؒ: و فى المنتقى قال محمدؒ كل شىء يشترطه المشترى على البائع يفسد به البيع فاذا شرطه على اجنبى فهو باطل (اى فا لشرط باطل) كما اذا اشترى دابة على ان يهبه فـــــلان الاجنبى كذا فهو باطل كما اذا شرط على البائع ان يهبه و كـــــل شىء يشترطه على البائع لا يفسد به البيع فاذا شرطه على اجنبى فهو جائز و هو با لخيار. (البحر الرائق ج٦، ص٨٦، باب البيع الفاسد) و مثله فى شرح المجلة للعلامة سليم رستم باز اللبنانىؒ تحت المادة ١٨٩، ص٨٩)



## د شفعې پـــه دعوی کښې د لارې شریک په ګاونډي باندې مقدم دی

فریق اول     فریق ثاني     فریق ثالث

**تنازعه:** د یوې ښځې له خوا څخه په فریق اول باندې د پلورل شوې زمکې چه حدود اربعه ئې دا دي غرباً د فریق اول د مور زمکه ده او شرقاً د فریق اول او ثالث خاصه لاره او د اسې نور، شمالاً د فریق ثالث کور او جنوباً جائد او د خاوند فریق اول کور واقع دی.

**حق تحکیم:** پورته ذکر شوي دواړه فریقه د خپلې علاقې د معززینو په نګرانۍ کښې دار العلوم حقانیه ته حاضر شول. د مذکوره ټولو خواوو د تنازعې د تصفیې په باره کښې د قرآن او حدیثو په رڼا کښې د فیصلې لپاره تیار شول او په تحریري توګه ئې حلفیه بیان وکړ او د قرآن او حدیثو په رڼا کښې د فیصلې د منلو لپاره تیار شول.

**تنقیحات:** له ټولو خواوو څخه څانته څانته د بل فریق په حضور کښې بیانونه واخیستل شول او ولیکل شول او له هر یوه څخه دستخطونه واخیستل شول او د فریقینو د بیاناتو په رڼا کښې کوم تنقیحات چه مخته راغلل په لاندې ډول دي.

﴿۱﴾ فریق اول چا چه دا مکان اخیستی دی هغه د اخیستل شوي کور په لاره کښې شریک دی او حال دا چه د نوموړي فریق او د دریمانو د بیان مطابق د عامې لارې څخه کومه خاصه لاره چه جلا شوې ده هغه مخکښې راځي نو د فریق ثالث او نورو کورونو څخه تیرېږي. د متنازعه خرڅ شوي کور او د فریق اول د کور په طرف ځي چه په دې لارې باندې د فریق اول هم تګ او راتګ شته. یعني فریق اول هم په دې لارې باندې ځي او راځي لیکن د دریمانو د بیان مطابق دا یوائې د دریو اشخاصو مخصوصه لار ده په دې معنې سره چه په دې لارې باندې عام سړی د تګ او راتګ حق نه لري ګواکه دا یوه خاصه لار ده.

﴿۲﴾ د فریق ثاني له بیان څخه معلومېږي چه هغه په نوموړي کور کښې د هیڅ ډول شرکت دعوی نه لري او نه د دې کور ګاونډي دی بلکه محض په دې وجه سره د شفعې دعوی کوي چه دا کور زما د ورور ملکیت وو کوم چه زه ئې وارث یم. دا کور زما ورور ته له پلار او نیکه څخه په میراث کښې پاتې وو چه د پلورلو په وخت کښې یوائې او یوائې زما حق دی نو ځکه زما له اجازې پرته بل څوک د دې کور د اخیستلو حق نه لري.

﴿۳﴾ د فریق ثالث له بیان څخه څرګندېږي چه هغه په نوموړي کور یا مکان کښې د شفعې دعوی یوائې د ګاونډي توب له وجهې کوي چه د دې لپاره د طلب مواثبت او طلب اشهاد د ټولو مراحلو د تکمیل دعوېدار دی. اګر که فریق اول د نوموړي د کور او د متنازعه کور په منځ کښې د جومات لپاره د باقاعده او مستقله وقفي لارې بیانوي او د ګاونډي توب څخه انکار کوي لیکن فریق ثالث په دې باندې ولاړ دی چه ما په دې لارې باندې هغو ته د تیریدو او راتیریدو عارضي اجازه ورکړې وه لیکن هغوی چه کله له ما څخه د مستقل وقفي لارې مطالبه

او غوښتنه وکړه او ما انکار وکړ نو له دې نه وروسته فریق اول او یا نور خلک په دې لار باندې نه تیریدل۔ چنانچه نوموړي د دې لارې په نشت والي باندې اصرار کوي او خپل موقف د اسې مضبوطوي چه د پلورل شوي کور سره زما د کور دیوال لګیدلی دی چه له مخې ئې ما ته د ګاونډیتوب په حیثیت سره زیات حق حاصل دی۔

**حقیقت حال:** د ذکر شوي تنقیحاتو په رڼا کښې دا نتیجه راووځي چه پلورل شوی مکان چه په جنوب کښې ئې دفریق ثالث مکان واقع دی۔ د ده د بیان مطابق هغه پیوسته یعني ورسره لګیدلی ګاونډي دی په داسې حال کښې چه فریق اول د متنازعه کور په لار کښې شریک دی په دې معنیٰ چه دا عامه لار نه ده بلکه یوه خاصه لاره ده چه په هغې باندې یواځې په دې ګلۍ کښې اوسیدونکي شریکان د تګ او راتګ حق لري او عام خلک د دوی له اجازې پرته په دې لارې باندې د تګ او راتګ حق نه لري۔

**فقهي نظائر:** د حدیث له مخې چېرته چه چا ته د شفعې حق ورکړ شوی دی نو په هغه کښې د لارې شریک ته ډیر اهمیت ورکړ شوی دی یعني د لارې شریک ته به په نورو ګاونډیانو باندې سبقت یعني وړاندې والی حاصل وي ځکه چه هغه د مبیعې په حقوقو کښې شریک دی لهذا تر څو پورې چه شریک في حقوق المبیعه دعوید ار وي نو ګاونډي ته به د شفعې حق نه ورکول کیږي۔

لما في الحديث: عن جابر قال قال رسول الله ﷺ الجار احق بشفعته ينتظر لها و ان كان غائباً اذا كان طريقهما واحداً. رواه الترمذي. (مشكوٰة ج١، ص٢٥٧، باب الشفعه)

په خاصه توګه هغه لاره چه د خاصو افرادو او کسانو وي چه په هغې ګلۍ کښې د اوسیدونکو له اجازې پرته عامو خلکو ته د تګ او راتګ حق هم حاصل نه وي۔

لما قال العـــلامة سليم رستم باز: الطريق الخاص هو الزقاق الذى لا ينفذ اى كما انهٗ لو فتح اصحاب الطريق الخاص منفذاً و وَصَلُوهٗ با لطريق العام كان لهم ان يمنع غيرهم من المرور فيه. (شرح المجلة مادة ٩٠٦، ص٥٣٧، كتاب الشفعه)

په دې حالت کښې چه کوم خلک د ګلۍ په سر کښې اوسیږي د هغوی استحقاق ختمیږي او د ګلۍ په آخر کښې اوسیدونکي په ټوله ګلۍ کښې د تګ او راتګ حق لرونکي دي۔

لما قال العلامة المرغيناني: فان كانت سكة غير نافذة ينشعب فيها سكة غير نافذة و هى مستطيلة فبعيت داراً فى السفلى فلاهلها الشفعه خاصة دون اهل العليا. (الهداية ج٤، ص٣٨٩، كتاب الشفعه)

ګاونډي پرته له شک او شبهې څخه د شفعې حق دار دی لیکن په هغه وخت کښې چه شریک في حقوق المبیعه موجود نه وي۔ لکه څرنګه چه شریک في نفس المبیعه ته په شریک في حقوق المبیع باندې سبقت حاصل دی۔

لما قال العلامة سليم رستم باز: حق الشفعه اوّلا للمشارك فى نفس المبيع ثانياً للخليط فى حق المبيع ثالثاً



للجار الملاصق و ما دام الاول طالباً ليس للاخرين حق الشفعه و ما دام الثانى طالباً فليس للثالث حق الشفعه. (مجلة الاحكام المادة ١٠٥٩، ص٥٦٤، كتاب الشفعه)

**شرعي فیصله:** د دې تنقیحاتو او فقهي نظائرو او حقیقت حال په رڼا کښې دا نتیجه راووځي چه فریق اول چا چه دا مکان په بیع قطعي اخیستی دی دا سکته غیر نافذه یعني په خاصه لار کښې د دې کور د شرکت حق لري او فریق ثالث اګر که د خپل ګاونډیتوب په ثابتولو کښې څه خاص دلائل وړاندې نه کړل لیکن د ګاونډیتوب د ثبوت باوجود په خاصه لار کښې د شرکاوو حق تر ده زیات دی او حال دا چه د فریق ثاني یواځې په دې سره چه وروړ ئې دی د شفعې د حق دعوی بې بنیاده ده۔ د ده هیڅ حق نشته نو ځکه د فریق اول د اخیستلو معامله درست او صحیح تسلیمو او کور ده په قبضه کښې پریږدو او همد افریق اول د دې زیات حقدار دی۔

## له فریقینو څخه د هر یوه په زمکې باندې د ملکیت او د قبضې د دعوې څیړنه، د زمکې په باره کښې دعوی

**د لومړي فریق بیان:** دا زمکه زما پلار له فریق ثاني څخه اخیستې ده نو ځکه دا زما ملکیت دی او اوس مې فریق ثاني ته په اجاره ورکړې ده او قبضه ئې زما په لاس کښې ده۔

**د دویم فریق بیان:** زما پلار دا زمکه په فریق اول باندې نه ده خرڅه کړې له اول څخه دا زما په ملکیت کښې او زما په قبضه کښې ده آن تر دې چه ستره محکمه هم زما په حق کښې فیصله کړې ده۔

**تنقیحات:** د واړه فریقه په نوموړې زمکې باندې د ملکیت او د قبضې دعوی کوي۔ فریق اول په دې وجهې د ملکیت دعوی کوي چه دا زمکه د ده د پلار د فریق ثاني له پلار څخه اخیستې ده او اوس مو محض ئې په اجارې باندې ورکړې ده او فریق ثاني په دې وجه د ملکیت دعوی کوي چه دا زمکه ما ته له پلار څخه په میراث کښې پاتې شوې ده او په فریق اول باندې ئې له پلورلو څخه انکار کوي او برسیره پر دې باندې د خپلې دعوې د اثبات لپاره د سترې محکمې فیصله هم وړاندې کوي۔

**د فیصلې طریقه:** که چېرته په رښتیا هم هائي کورټ یا ستره محکمه دا زمکه د فریق ثاني ملکیت تسلیم کړې وي نو په هغې فیصلې باندې به عمل کیږي ځکه چه که چېرته قبضه د فریق ثاني په لاس کښې نه وي نو د قبضې حق به هم هغه ته ورکول کیږي او که چېرته سترې محکمې فریق ثاني ته نه وي ورکړې او له فریق اول سره ګواه موجود وي نو د ګواه مطابق به فیصله د فریق اول په حق کښې کیږي او که چېرته فریق اول د ګواه د وړاندې کولو نه عاجز شي نو فریق ثاني چونکه د پلار په خرڅولو انکار کوي نو ده ته به د ده په علم باندې قسم ورکول کیږي چه ما ته دا نه ده معلومه چه زما پلار دا زمکه خرڅه کړې ده او که نه۔ که چېرته فریق ثاني قسم وکړي نو بیا په دې زمکې باندې د ده ملکیت ثابتیږي او قبضه ئې هم ده ته ورکول کیږي او که چېرته

له قسم کولو څخه انکار وکړي نو فیصله به د فریق اول په حق کښې کیږي۔

لما قال العلامة التمرتاشی: و التحلیف علی فعل غیره یکون علی العلم ای انهٗ لا یعلم کذٰلك لعدم علمه بما فعل غیره. (تنویر الابصار علی هامش رد المحتار ج٤، ص٤٧٣، کتاب الدعوٰی)

قال العلامة قاضی سماوة: لو وقع الدعوٰی علی فعل الغیر من کل وجه یحلف علی العلم حتّٰی لو ادعٰی علی وارث ان اباك اتلفه او سرقهٗ او غصبه منّی یحلف علی العلم هٰذا مذهبنا. (جامع الفصولین ج١، ص١٤٠، الفصل الخامس عشر فی التحلیف و ما یتعلق به) و مثله فی فتاوٰی قاضی خان ج٢، ص٤١٤، کتاب الحدود.

## له فریقینو څخه هر یوه د بل په مقبوضه جائداد باندې د ملکیت د دعوٰی خېړنه، د زمکې په باره کښې دعوٰی

**د مدعي بیان:** زه دعوٰی کوم چه دا ذکر شوې زمکه چه محدوده په لاندې حدود اربعه وو باندې ده شرقاً تر زیړي خاورې پورې او غرباً تر شنې ونې پورې، جنوباً د زیتون تر ونې پورې او شمالاً له ویاله څخه تر لاندې حصې پورې۔ دا زما ملکیت دی چا چه په هغې باندې قبضه کړې ده ظلم او غصب ئې کړی دی او ثبوت ئې دا ده چه څلورو کسانو زما د زمکې د تجدید په وخت کښې په دې باندې قسم کړی دی او پخپله له ما څخه په دې باندې قسم اخیستلی شوی دی۔

**د مدعي علیه بیان:** زه وایم چه مدعي د دعوٰی هیڅ حق نه لري بلکه هغه زما په زمکې باندې په ظالمانه توګه قبضه ساتلې ده کوم چه تر مشترك غره پورې زما حق دی او زما له خوا څخه په دې باندې څلورو تنو هم قسم کړی دی او له ما څخه په دې باندې قسم اخیستل شوی دی۔

فریق اول (مدعي)　　　فریق ثاني (مدعي علیه)

**د تحکیم حق:** پورته ذکر شوې دواړه خواوې د منطقې د مشرانو او معززینو په سرپرستۍ کښې ئې دار العلوم حقانیه ته د خپلې فیصلې لپاره د علماوو د یوې ډلې د تشکیل او له دوی سره د ورلیږلو درخواست وکړ او د خپلې تنازعې د تصفیې په باره کښې د قرآن او سنتو په رڼا کښې د فیصلې لپاره تیار شول او د علماوو ډله ئې د موقع او ځای د کتلو لپاره خپلې علاقې ته بوتله۔ علماء چه هغه ځاي ته لاړل او متنازعه زمکه ئې وکتله۔ چونکه دواړه خواوو له اول څخه خپل بیانونه لیکلي وو او یو دریم ته ئې ورکړی وو نو ځکه دوی پخپلو مخکښینیو بیانونو باندې اکتفاء وکړه او د نوي بیانونو د ورکولو ضرورت ئې محسوس نه کړ۔ کمیټې د دواړو خواوو د بیانونو په اړه څه اهمې او ضروري پوښتنې وکړې تر څو چه د فریقینو له خوا څخه د بیانونو په پوهنه کښې ممد او معاون وګرځي۔

**تنقیحات:** د فریقینو له بیانونو څخه څو خبرې ښکاره شوې:

﴿۱﴾ فریق اول د خپل بیان له مخې چه د کومې محدودې دعوٰی کړې ده په هغې کښې څه زمکه داسې ده چه د فریق مخالف یا فریق ثاني قبضه ده۔



﴿۲﴾ د فریق ثاني له بیان څخه دا معلومیږي چه هغه یوازې دا نه چه د مدعي د دعوې رد ئې کړی دی بلکه په هغه باندې ئې دا دعوه هم کړې ده چه له مخې ئې فریق اول یعنې مدعي قابض ګرځولی دی۔ په دې صورت کښې ګواکه دواړو د یوه او بل د دعوې د رد کولو سره سره د څه زائدې زمکې دعوې هم کوي کومه چه هر یو خپل فریق مخالف پرې قابض بولي اګر که د ځای له لیدلو څخه څرګندیږي چه دواړه خواوې پخپلو خپلو دعوو کښې له وسعت یا پراخوالي څخه کار اخیستی دی۔

**حقیقت حال:** دواړه خواوې د یوه او بل قبضه په ظالمانه او غاصبانه الفاظو سره تعبیر کوي او حال دا چه د فریقینو په منځ کښې نسبي قرابت او خپلوي هم شته او چونکه فریقین په خپلوي کښې په یوه نیکه کښې سره یو ځای کیږي۔ د قرب او جوار د حالاتو او موقعیت ته په کتو او نورو قرائنو ته په نظر کولو سره دا څرګندیږي چه د فریقینو په منځ کښې دا تنازعه د کورنۍ دښمنۍ نتیجه ده۔ او که نه نو دواړه خواوې تر پرونه پورې له یوه او بل سره په امن او امان کښې اوسیدل۔ آن تر دې پورې چه خپل مړي ئې هم په یوه قبرستان کښې سره ښخول او د یوه او بل په خوښۍ، ښادي او غم کښې سره شریکیدل۔ د فریقینو دعوو ته په کتو سره دا ویل کیدلی شي چه هر فریق د خپل ارث دعوٰی کوي۔ ګواکه هر فریق په دې خبرې باندې اصرار کوي چه دا زمکه ما ته له پلار او نیکه څخه په میراث کښې راپاتې ده او بل څوك په دې کښې هیڅ حق نه لري۔

**د فقهي نقطهٔ نظر له مخې د اختلاف خېړنه:** د شریعت له مخې په داسې حالت کښې چه دوه خواوې په یوه جائداد باندې قبضه وکړي او په داسې جائداد باندې د وراثت په وجه د ملکیت دعوٰی وکړي کومه چه د فریق مخالف په ملکیت کښې وي نو داسې دعوٰی د رجلینو په دعوٰی سره تعبیر کیږي۔ په داسې حالت کښې به له دواړو خواوو څخه ګواهان غوښتل کیږي لیکن په نوموړې تنازعه یا شخړه کښې په ظاهره سره د ګواهانو ګواهي او شهادت مشکل دی ځکه چه له احوالو څخه معلومیږي د منطقې ټول قومونه قولاً یا فعلاً د د دواړو خواوو په طرفدارۍ کښې سره ویشل شوي دي۔ آن تر دې پورې چه د نږدې شاوخوا اوسیدونکي خلك او له حالاتو نه خبر خلك هم له حقیقت حال څخه سترګې پټولو ته مجبور شوي دي او کوم خلك چه د دریمانو په حیث کردار ادا کوي هغو ته صحیح معلومات نشته۔ برسیره پر دې په دې علاقه کښې یو بل قوم کوم چه په دعوٰی کښې شریك نه وي د یوه بل قوم لپاره د شهادت یا ګواهي نه ورکوي ځکه چه له دې څخه بیا خپل منځي دښمنۍ جوړیږي۔ په خاصه توګه چه کله په ګواهي کښې د قسم له خوړلو سره بیان ورکول وي نو د دې لپاره په عامو خلکو کښې هیڅوك هم نه تیاریږي۔ په داسې حال کښې چه د قسم په خوړلو سره د بیان ورکولو دوهم نوم ګواهي ده۔ له دې وجهې چه کله ګواهان پیدا نه شي نو بیا د بل د دعوې د دفع کولو لپاره د مدعي په غوښتنه مدعي علیه ته به قسم ورکول کیږي۔

لما قال العلامة المرغیناني: و ان عجز عن ذٰلك و طلب یمین خصمه استحلف علیها لما روینا و لا بد من طلبه لان الیمین حقهٗ انهٗ کیف اُضیف الیه بحرف اللام فلا بد من طلبه. (الهدایة ج۳، ص ۲۰۱، کتاب الدعوٰی)

او بیا په خاصه توګه په د اسې صورت کښې چه دواړه خواوې قابضې هم وي او د یوه او بل په مقبوضه جائداد باندې دعوې هم کوي نو په د اسې حالت کښې هر یو د قسم له خوړلو نه وروسته بل به پخپلې حصې باندې برحاله او په ځای پاتې کیږي۔

لما قال العلامة سلیم رستم باز: ادعیا ملکاً ارثاً من ابیهما و العین فی ایدیهما و فیه ایضاً ان لم یورخا یقضٰی بینهما او ارخا تاریخا واحداً یقضٰی بینهما. (شرح مجلة الاحکام المادة ۱۷۶۱، ص ۱۱۲۵، الفصل الثانی)

**آخري فیصله:** د دې حالاتو په رڼا کښې دا فیصله کیدلی شي چه له دواړو خواوو څخه به پنځه پنځه کسان منتخب کیږي او له دواړو خواوو څخه خوښ کړل شوي سړي به د بل فریق د حق په نشت والي باندې قسم کوي او کوم جائداد چه د دواړو خواوو له قبضې څخه د باندې وي نو د قسم له ورکولو نه وروسته به هغه د فریقینو ترمنځ به په مساوي توګه سره ویشل کیږي او کوم نقصانات چه شوي وي د هغو به عوض ورکول کیږي۔

قال العلامة سلیم رستم باز: فاذا ظهر المدعی العجز عن اثبات دعواه حلف المدعی علیه بطلبه. (شرح مجلة الاحکام المادة ۱۷۴۲/۱۰۹۳، الفصل الثالث فی التحلیف)

و فی الهندیة: دارٌ فی یدی رجل ادعاها رجلان کل واحد منهما یدعی انها داره ورثها عن ابیه فلانٌ و اقام علی ذٰلك بینةً فان لم یؤرخا او ارخا و تاریخهما علی السواء یقضٰی بدار بینهما. (الفتاوی الهندیة ج۴، ص۷۴، الباب التاسع، الفصل الثانی فی دعوی الملك فی الاعیان)

## په زړه لار باندې د شخـــــړې په اړه فیصله

**سوال:** ﴿د فریق اول بیان﴾ مونږ دا دعوٰی کوو چه زمونږ د ګاونډی د مشرقي خوا په آخر کښې زمونږ د پټیو او کورونو یوه زړه لاره وه چه په هغې باندې خلکو تګ او راتګ کاوه او مغربي خواته ئې یوه لویه ویاله هم وه۔ او د دې لارې په څنډو کښې ونې هم وې چه اوس هم موجودې دي۔ دا لاره له ویالې سره سره د ګاونډي له زمکې څخه په تیریدو سره د جنوب په طرف له یوې ژورې او لویې کوهی څخه تیریدله۔ له څه وخت څخه په دې لارې باندې د تګ او راتګ د کم والي له وجهې ګاونډي د دې لارې ورو ورو ختمول شروع کړل تر دې پورې چه دا لاره بالکل بنده شوه او مونږ په لارې باندې د تګ او راتګ او وسعت غوښتنه وکړه لیکن ګاونډي له دې څخه انکار وکړ نو مونږ غواړو چه مونږ ته دې پخپلې زړې لارې باندې د تګ او راتګ او پراختیا حق راکړی شي۔

﴿د فریق ثاني بیان﴾ زما په زمکه کښې زړه لاره نه وه البته څه وخت مخکښې زما په زمکه کښې یوه لار وه او په هغې باندې د خلکو تګ او راتګ جاري وو لیکن ما د احسان په توګه دوی ته په دې لارې باندې د تیریدلو او راتیریدلو اجازه ورکړې وه ځکه چه ماته د زمکې د



اخیستلو په وخت کښې نه دلته چا د لارې د شتون خبره کړې وه او نه په دې زمکې باندې د زړې لارې څه نښې نښانې موجودې وې۔ لهذا زما په زمکه کښې د زړې لارې دعوٰی بې ځایه ده او دا زما حق دی چه پخپله زمکه کښې خلك له تګ او راتګ څخه منع کړم۔

**الجواب و منه الصدق و الصواب:** د پورتنیو دواړو خواوو د بیانونو او د قوم د مشرانو د ګواهۍ په رڼا کښې دا حقیقت ښکاره کیږي چه فریق اول چه د کومې لارې دعوٰی کوي هغه لاره د څو میاشتو او کلونو جوړه شوې لاره نه ده بلکه دا له قدیمه څخه یوه جوړه شوې لاره ده بلکه د ځینو سپین ګیرو خلکو او مشرانو د بیانونو مطابق له پنځوسو شپیتو کلونو څخه دا خلك نوموړې لاره استعمالوي۔ بلکه فریق اول چه د کومې لارې نښې نښانې ښیې په هغې باندې ونې هم شته او په خاصه توګه چه له ویالې څخه په تیریدو سره چه د زړې لارې کومه نښه چه له کوم ځایه شروع کیږي هلته ونې ولاړې دي او له دې نه مخکښې چه تیر شی د کومې کوهۍ په شاوخوا کښې چه د لارې تیریدو خبره کوي هلته هم په اوس وخت کښې د کومې زړې لارې نښانه نه تر سترګو کیږي۔ د دې په مقابله کښې په مطلوبه لاره باندې د تګ او راتګ اقرار پخپله فریق ثاني له څه مودې راهیسې کوي۔ اګر که دا خلك (فریق ثاني) دا هم وایي چه د دې زمکې د اخیستلو په وخت کښې مونږ ته د هیڅ ډول لارې موجودیت نه دی په ګوتو شوی لیکن د شریعت له مخې کومه لاره چه له اول څخه موجوده وه هغه به پخپل اصلي حالت پریښودل شي او له هغې څخه فریق ثاني د منع کولو حق نه لري په د اسې حال کښې چه تر اوسه پورې دا لاره د تګ او راتګ لپاره استعمالیدله۔ اوس دې هم پخپل اصلي حالت پریږدي او په راتلونکي کښې به هم خلك په دې باندې تګ او راتګ کوي۔

قال العلامة سلیم رستم باز: اذا کان لرجل نهر فی ارض رجلٍ او میزاب فی دار رجل فاختلفا فی ذٰلك و انکر صاحب الارض و الدار ثبوت حقه فا لقول قوله و علی المدعی البینة ان له حق السبیل الاجراء الماء فیه الا اذا کان الماء جاریاً زمان الخصومة فحینئذ القول قول صاحب الماء. (شرح المجلة المادة ۱۷۷۷، ص ۱۱۵۰، کتاب الدعوٰی، الفصل الثالث)

قال العلامة برهان الدین المرغیناني: اذا کان نهر لرجلٍ یجری فی ارض غیره فا لدار صاحب الارض ان لا یجری النهر فی ارضهٖ ترك علی حاله لانهٗ مستعمل لهٗ باجراء مائه فعند الاختلاف یکون القول قوله. (الهدایة ج۴، ص۴۸۶، کتاب احیاء الموات، فصل فی الدعوٰی و الاختلاف) و مثله فی الهندیة ج۵، ص۴۰۲، الباب الرابع فی الدعوٰی فی الشرب.

او بیا هم د موجوده لارې څخه مغرب خواته د فریق ثاني په زمکې باندې به تصرف نه کیږي او کـــــه چېرته په لاره کښې د وسعت ضرورت پیدا شي نو د مشرقي طـــــرف ویاله دې په لارې کښې ګډه کړي۔

## په ګواهـــــانو باندې د جرح په اړه د قاضي د فيصلې څېړنه

**سوال:** ﴿د مدعي بيان﴾ زه دعوىٰ لرم چه فلاني سړي زما په وښو کښې په قصد سره ز هرجنه دوا اچولې ده چه له وجهې ئې زما يوه ميښه او يوه غوا او يوه خسۍ هلاك شوي دي او نومړي د خلكو په مخكښې اقرار هم كړى دى چه ما د مدعي په وښو کښې ز هرجنه دوا اچولې ده۔

﴿د مدعي عليه بيان﴾ ما نه د مدعي په وښو کښې دوا اچولې ده او نه مې د خلكو په مخكښې د دې اقرار كړى دى۔

**د قاضي فيصله:** مدعي پخپل دعوې باندې دوه ګواهان وړاندې كړل او هغوى ګواهي وكړه چه زمونږ په مخكښې مدعي عليه دا اقرار كړى دى چه ما د مدعي د وښو په ډيرۍ کښې ز هرجنه دوا اچولې ده او د مدعي څناور ما هلاك كړي دي۔ له دې وروسته مدعي عليه څلور ګواهان وړاندې كړل ليكن قاضي صاحب دا وويل چه د جرح ګواه په شريعت کښې منع ده نو له دې وجهې فيصله د مدعي په ګواه باندې وشوه۔ نو آيا د قاضي دا فيصله صحيح ده او كه نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د قضاء معامله چونكه حساسه معامله ده نو ځكه قاضي ته په كار دي چه د مكملې ذمه وارۍ له احساس سره د هرې مسئلې حل وباسي۔ چنانچه د هرې مسئلې حقيقت حال ته تر رسيدو پورې شريعت بهترين اصول وضع كړي دي تر څو چه په دې باره کښې د هر يوه تسلي وشي او يو طرف هم د عدم اطمينان ښكار نه شي۔ چونكه د فريقينو تر منځ په كومه تنازعه کښې د مدعي ګواهان لوى اهميت لري نو ځكه د ده د ګواهانو به د شريعت د بيان كړل شوي صفتونو ضرور حامل وي۔ لهذا په پورتني مذكوره صورت کښې كه چېرته د قاضي په نزد د مدعي د ګواهانو تعديل ظاهر شوى وي او د هغه پرې اعتماد وي نو په هغو ګواهانو باندې مدعي عليه ته د جرح او د اسې نورو حق نشته۔ بلكه قاضي به د هغو ګواهانو د ګواهۍ مطابق فيصله كوي او كه چېرته له اول څخه د مدعي د ګواهانو تعديل ثابت شوى نه وي نو بيا مدعي عليه په ګواهانو باندې د جرح حق لري۔

لما قال العلامة علاؤ الدين الحصكفى رحمه اللّٰه: لا تقبل الشهادة على جرح مجرد من اثبات حقٍ للّٰه تعالىٰ او للعبد بعد التعديل و لو قبله قبلت اى الشهادة بل الاخبار و لو من واحد على الجرح المجرد. (الدر المختار على هامش رد المحتار ج٤، ص٤٢٨، كتاب الشهادات، باب القبول و عدمه)

قال العلامة ابن نجيم المصرى رحمه اللّٰه: لا تقبل الشهادة على الجرح المجرد اذا اقام البينة على العدالة اما اذا لم يقم للبينة عليها فاخبر مُخبر ان الشهود فساق او اكلوا الربٰوا فان الحكم لا يجوز قبل ثبوت العدالة لا سيما اذا اخبر مخبر ان الشهود فساق. (البحر الرائق ج٧، ص١٠٠، كتاب الشهادة) و مثله فى شرح المجلة للعلامة سليم رستم بازؒ المادة ١٧٢٤، ص١٠٧١، الفصل السادس.



## لـــــه نوي (۹۰) كلونو څخه تر قبضې لاندې زمكې باندې د ملكيت د دعوې په اړه فيصلـــــه

**سوال:** ﴿د زمكې په اړه دعوىٰ﴾

**د لومړي فريق بيان:** زه دا دعوىٰ كوم چه فريق ثاني له شپيتو، اويا كلونو څخه زمونږ په پلرني جائداد باندې ناجائزه قبضه كړې ده او څه حصه ئې په بل چا باندې پلورلې هم ده لهذا پلورل شوې زمكه او د فريق ثاني په قبضه کښې توله زمكه زما ده۔

**د دويم فريق بيان:** دا ټكړه زمكه زمونږ نيكه د فريق اول له نيكه څخه اخيستې وه چه له نوي كلونو څخه زمونږ په قبضه کښې ده او فائده ترې اخلو او څلويښت كاله مخكې د دې زمكې څه حصه مونږ په بل چا باندې پلورلې ده او په بيع باندې له خبرتيا سره سره مدعي هيڅ دعوىٰ و نه كړه۔ د غو بيانونو ته په نظر كولو سره به فيصله څنګه كيږي؟ بينوا توجروا۔

**الجوا باسم ملهم الصواب:** د شرعي اصولو لاندې دا څرګندول په كار دي چه فريق اول په دعوىٰ كولو کښې ولې تاخير كړى دى؟ كه چېرته هغه له علم سره سره بغير له عذره په دعوې کښې دومره تاخير كړى وي نو د هغه دعوىٰ د اوريدو قابله نه ده۔ او كه چېرته هغه د بې خبرۍ ويرې او يا بل شرعي عذر له وجهې دومره تاخير كړى وي نو بيا ئې دعوىٰ صحيح ده۔ چونكه فريق ثاني د قطعي بيع دعوىٰ كوي نو ځكه په هغه باندې لازم دي چه د خپلې دعوې د اثبات لپاره سل كلن دوه معتمد ګواهان وړاندې كړي۔ كه چېرته فريق ثاني د ګواهانو له وړاندې كولو څخه عاجز شي نو بيا فريق اول ته د هغوى په علم باندې قسم وركول كيږي چه آيا تاسو ته معلومه ده چه ستاسو نيكه د فريق ثاني په نيكه باندې زمكه پلورلې وه؟ كه چېرته فريق اول قسم وكړي نو د هغه په قسم باندې به د هغه په حق کښې فيصله كيږي او كه چېرته هغه له قسم څخه انكار وكړ نو بيا به فيصله د فريق ثاني په حق کښې كيږي۔

قال العلامة محمود بن اسماعيل الشهير بقاضى سماوةؒ: و لو وقع الدعوىٰ على فعل الغير من كل وجه يحلف على العلم حتىٰ لو ادعىٰ علىٰ وارث ان اباك اتلفه او سرقه او غصبه منى يحلف على العلم هٰذا مذهبنا. (جامع الفصولين ج١، ص١٤٠، الفصل الخامس عشر فى التحليف و متعلقه)

قال العلامة التمرتاشىؒ: و التحليف على فعل غيره يكون على العلم اى انه لا يعلم كذٰلك لعدم علمه بما فعل غيره. (تنوير الابصار على هامش رد المحتار ج٤، ص٤٧٣، كتاب الدعوىٰ) و مثله فى فتاوىٰ قاضى خان ج٢، ص٤١٤، كتاب الحدود.

## د پلرونو او نیکونو د شرکت له وجهې د وارثانو د شریك جائد اد په څه حصې باندې د ملکیت د دعوې څېړنه

فریق اول    فریق ثاني

**حق تحکیم:** پورته ذکر شوي دواړه خواوې په رضاء او رغبت سره خپله تنازعه د یو سل او پنځوس جریبو تکړې زمکې په اړه له خپلو اسنادو سره د شرعي فیصلې لپاره د دار العلوم حقانیه دار الافتاء ته وړاندې کړه. د یوه معزز سړي په واسطه له دواړو خواوو څخه په فیصله باندې د پابند اوسیدو لپاره درې درې سوه روپۍ د ضمانت په توګه واخیستل شوې چه د معزز سړي سره د امانت په توګه کېښودل شوي او د فیصلې د منلو نه وروسته یعني چه کله فیصله په یقیني توګه ومني نو د ټاکل شوي تاریخ مطابق به نوموړې روپۍ بیرته ورکول کیږي.

**تنقیحات:** د فریقینو د بیانونو له اوریدلو نه وروسته لاندیني امور مخته راځي.

﴿۱﴾ فریق ثاني په متنازعه تکړه زمکې باندې قابض شو او فریق اول په هغې کښې د یو پر څلورمې حصې باندې د ملکیت دعوېدار دی. او دا بیان چه د مدعي علیه پلرونو او نیکونو زمونږ له پلرونو او نیکونو سره مشترك کاروبار کاوه او دا متنازعه جائد اد ئې په مشترکو روپو باندې اخیستي وو چه په دې کښې زمونږ پلار د مدعي علیهم له پلار او د اسې نورو سره د 1/4 حصه کښې حقدار دی.

﴿۲﴾ فریق اول د خپلې دعوې د اثبات لپاره یوه لیکنه وړاندې کوي چه د مدعي علیهم پلار ته منسوب دی. د هغې لیکنې مطابق هغه مني چه د مدعي پلار زمونږ سره په دې اخیستل شوي زمکه کښې برابره حصه لري اګر که ئې په اسنادو او سرکاري کاغذاتو کښې نوم له ذکر کولو څخه پاتې شوی دی لیکن په ټاکلي وخت باندې به د ده نوم درج کیږي. بیا هم په تحریر باندې د موقعه تاریخ لیکل شوی دی البته وروسته د ۱۹۷۵ء کال لیکلی شوی دی او حال دا چه توثیق ئې په ۱۹۸۷ء کښې شوی دی.

﴿۳﴾ فریق اول سربیره پر دې چه د حاصلاتو وصولي د مالك والي په حیثیت سره او د هغه د حصه لرلو دعوی کوي چه مونږ ډیره وخته پورې د دې حاصلات اخیستي دي او حال دا چه فریق ثاني محض د تبرع او احسان او د خریداری په وخت کښې د یوې معاهدې لاندې تر څه وخته پورې د هغه دا کولو قائل دی لیکن د مدعي علیهم د پلار له مرګ څخه دا مراعات هم ختم شول. یعني د فریق ثاني بیان دی چه دا مراعات هغوی ته د دې معاهدې لاندې ورکړ شوي وو چه له اخیستلو نه وروسته د زمکې د قبضې تر وصولي پورې هغه له دې څخه فائده اخلي ځکه چه فریق اول له پلار سره د جائد اد په هغه وخت کښې رهن وو.

**فیصله:** د شرعي قانون له مخې فریق اول مدعي ده نو ځکه د دعوې د اثبات لپاره له هغه څخه



ګواه وغوښتل شو او هغه د خپلې دعوی ملکیت د اثبات لپاره د ګواه له وړاندې کولو څخه پاتې راغی د دې لپاره چه په تحریري بیان کښې چه د کومو ګواهانو نومونه ثبت دي له هغوی څخه د بیان مطابق د مدعي یو ګواه د مخالف فریق سره د تعلقاتو له وجهې مونږ ته ګواهي را نه کړه او حال دا چه دوهم ګواه یوائې ناکافي وي. نو ځکه فریق اول یعني د مدعي په مطالبه او غوښتنې باندې فریق ثاني ته قسم ورکړی شو. چونکه دا د بل چا په علم باندې قسم دی نو ځکه فریق ثاني ته قسم بالفعل ورکړی شو. د قسم له کولو نه وروسته جائد اد د ذکر شوي فریق ثاني سره پاتې شو او فریق اول د خپلې دعوې په اثبات کښې ناکام شو.

قال العلامة التمرتاشي: و التحلیف علی فعل غیره یکون علی العلم ای انه لا یعلم انه کذلك لعدم علمه بما فعل غیره. (تنویر الابصار علی هامش رد المحتار ج٤، ص٤٧٣، کتاب القضاء)

قال العلامة محمود بن اسماعیل الشهیر بقاضي سماوة: و لو وقع الدعوی علی فعل الغیر من کل وجه یحلف علی العلم حتی لو ادعیٰ علی وارث ان اباك اتلفه او سرقه او غصبه مني یحلف علی العلم هذا مذهبنا. (جامع الفصولین ج١، ص١٤٠، الفصل الخامس عشر فی التحلیف و متعلقه) و مثله فی فتاوی قاضي خان علی هامش الهندیة ج٣، ص٤١٤، باب ما یکره من الثیاب و الحلي و الزینة.

## د شفعې د دعوی په اړه شرعي فیصله

### دعوی

### مفتاح الدین ولد عبد المالك سابق سپه سالار دیر سکنه مینګلور تحصیل مینګوره ضلع سوات

### بنام

﴿۱﴾ رحمت الله جان ولد نورا جان سکنه محله رحمانیه نزد رحمانیه مسجد عیدګاه میدان، تیان کالوني، منګهو پیر روډ کراچي.

﴿۲﴾ خان بهادر ولد عبد المالك سابق سپه سالار دیر سکنه مینګلور، تحصیل مینګوره، ضلع سوات، (مدعا علیهم) دعوی و خلیابي به نفاذ حق شفعه اراضي زرعي مشتمل په پنځو قطعو باندې چه مشهور دي په (۱) کس (۲) شولګره (۳)للمه (٤)جماعت باړي (٥)ناغه غیر آباده په لاندې حدودو سره.

اوله قطعه یا تکړه "کس": شرقاً د مدعي زمکه، غرباً د ګل محمود زمکه، شمالاً د عبد الظاهر زمکه، جنوباً د محمد ظاهر شاه زمکه چه د مدعي ورور دی.

دوهمه قطعه "شولګره": شرقاً د مفتاح الدین زمکه (مدعي)، غرباً د محمد ظاهر شاه زمکه، شمالاً د مدعي زمکه، جنوباً د مدعي زمکه.

دریمه قطعه یا تکړه "للمه": شرقاً د مدعي زمکه، غرباً باراني ویاله، شمالاً د محد

ظاهر شاه زمکه، جنوباً د محمد ظاهر شاه زمکه.

څلورمه قطعه "جماعت باړې": شرقاً د نیك محمد زمکه، غرباً د گل اعظم خان زمکه، شمالاً عامه لاره، جنوباً د عبد الظاهر زمکه چه شگه مجد کښي واقع ده او سرايي رقبه لري تحصيل و ضلع دير په بدل د اصل زر ثمن يو لك روپۍ يا کوم درست قيمت چه فاضل عدالت وټاکي.

---

محترمه وړانديز په لاندې ډول دی.

﴿۱﴾ دا چه مدعي عليه (۱) هره پنځه ټکره زمکه متدعو به له هغه څخه مدعا عليه (۲) په عوض د مبلغ يو لك روپۍ په خفيه توگه بيع کړې ده او تول لين دين ئې پټ ساتلی دی او د قانون مطابق مرجوه مدعي ته مخکښي له بيع نه خبر نه دی ورکړی.

﴿۲﴾ دا چه مدعا عليهم د مدعي حقوقو ته د نقصان رسولو لپاره که چېرته پخپله کورنی بيع نامه کښي زياتې پيسي ليکلي او درج کړي وي نو هغه به فرضي اندراج وي او حالانکه بيع په اصل کښي د يو لك روپو په عوض کښي شوې ده او همدا قيمت د دغې زمکې بازاري قيمت هم دی.

﴿۳﴾ دا چه مدعي ته د مذکوره بيع معلومات په تاريخ ۱۸/۸/۹۸ د گهيځ په اتو بجو پخپل کور کښي د دير په مقام کښي وشو داطلاع ورکوونکی مسمی عبد الظاهر سکنه شگی په مخکښې په هغه ساعت او موقع د خپل حق شفعه اعلان وکړ او ورسره ورسره په همدې ورځ اطلاع ورکوونکي متدعو به زمکو ته لاړ او مشفوع کړونکي هر يو عبد الحميد او محمد طيب د شگی اوسيدونکو څخه پرته د عباس خان، اجمير خان او حميد الله خان د سيرائي اوسيدونکي په موجوده والي کښي د خپلي شفعې د حق بيان اعلان وکړ.

﴿۴﴾ دا چه وروسته له دې نه مې د ۲۲/۸/۹۸ تاريخ د ليکنې له مخي مدعٰی عليه ته د رجسټري په ذريعه اې، ډي نوټس ليږلی او تول اسلامي طلبات مې پوره کړي دي.

﴿۵﴾ دا چه مدعي د حق شفعه په مقابل کښي د مدعٰی عليه (۱) څخه په هر لحاظ سره فائق دی.

((الف)) دا چه متدعويه زمکه خانداني زمکه ده.

((ب)) دا چه متدعويه زمکه د مدعي له زمکو سره لگيدلې ده.

((ج)) دا چه له مشفوعه زمکو سره د مدعي تول حقوق اوبو او لاره هم لگيدلې ده. د متدعويه زمکه او د مدعي زمکې په يوې ويالې باندې خړوبې کيږي.

((د)) دا چه مدعٰی عليه (۱) غير مالك او همدا رنگه غير باشنده هم دی او د حق شفعه يو وصف هم پکښي نشته.

((ر)) دا چه د مدعي حقوق په هر لحاظ سره فائق او برتر دي.

﴿۶﴾ دا چه هر له مدعي عليه څخه هر څومره غوښتنه وشوه چه د مدعي حقوق ومني او له



متدعويه زمکو څخه د مدعي لپاره دې د اصل ثمن په ادا کولو سره لاس واخلي ليکن هغه نه مني چه له مخې ئې د دې دعوې ضرورت پيښ شو.

﴿۷﴾ د دعوې بناء او د دعوې ماليت په لاندېني عنوان باندې عرض دعوی ده.

﴿۸﴾ دا چه متدعويه زمکې د دير په تحصيل کښي واقع دي څکه د هم هغه ځای عدالت ته د اوريدو اختيار حاصل دی. لهذا ادرخواست کوو چه په حق د نفاذ د شفعې کښي د اصل زر ثمن ادا کول مبلغ د يوه لك روپۍ يا کوم قيمت چه د همدې عدالت فاضل وټاکي په حق دې مدعي کښې دې سره له خرڅې صادر کړي.

العـــــارض:

مفتاح الدين ولد عبد المالك سابق سپه سالار سکنه دير (مدعي)

بيان حلفي: حلفاً عرض دی چه تول مراتب د دعوې درست دي.

## د دعوې ځواب د مدعي عليهم له خوا څخه

عالي قدر! د دعوې ځواب په لاندې ډول وړاندې کوو.

**تمهيدي عُذرات:**

﴿۱﴾ مدعي ته زمونږ برخلاف مدعي عليه د دعوې هيڅ بناء حاصله نه ده.

﴿۲﴾ د مدعي دعوی مبهم او ناقصه ده.

﴿۳﴾ د مدعي دعوی سازشي ده او په بدنيتۍ او ضرر رسولو مبني ده.

﴿۴﴾ حدود ئې غلط ليکلي دي.

﴿۵﴾ متدعو به زمکه مدعي عليه (۲) او کشر ورور (بهادر زيب) کوم چه گذر وهلی وو د هغه په حصه کښي رسيدلی ملکيت وو. د مدعي او د هغه د نورو ورونو په انکار باندې مجبوراً د علاج په غرض سره په نوموړي مسمی باندې د مدعي عليه په نزد په عوض د مبلغ درې لکه شپيته زره روپو باندې پلورلی وو او همدا قيمت د هغه وخت بازاري قيمت وو.

﴿۶﴾ د مدعي دعوی په وجه د عدم د اشتمال د فريق ضروري د سماعت قابل نه دی او د اخراج قابل دی.

﴿۷﴾ مدعي ته د مبيعې نه علم وو او په وخت باندې د قانون مطابق ئې دعوی ونه کړه او اوس دا دعوی د عبد الظاهر په اشارې سره د سازش او ضرر رساني په خاطر تر سره شوې ده.

﴿۸﴾ مدعي د قانون مطابق شفعه نه ده پوره کړې، يعنې د شفعې قانون ئې نه دی پوره کړی.

﴿۹﴾ د مدعي په دې وجه سره چه د هغه په قول او فعل کښي تضاد دی پخپله د دغې دعوې مانع دی.

﴿۱۰﴾ په دې وجه سره چه د کورټ فيس نه وو لگيدلی د مدعي دعوی ناقابل سماعت او د اخراج قابل دی.

﴿۱۱﴾ د مدعي دعوی پخپله زائد الميعاد ده.

**واقعاتي عُذرات:** ﴿۱﴾ اوله فقره: لکه څرنګه چه مرتب شوي ده غلطه او تش په نامه او انکار دی چه متدعو به زمکه مدعا علیه (۲) او ورور مسمّی بهادر زیب په حصه رسیدلي ملکیت وو مسمّی بهادر زیب ګذر وهلی وو او د علاج معالجې لپاره د اخیستلو له اطلاع څخه وروسته د مدعي او د نورو ورونو د انکار په وجه سره مجبوراً نزد مدعٰي علیه (۱) په عوض دې مبلغ درې لکه شپیته زره روپو باندې پلورلې ده نقل د بیعنامه لف هذا دی۔

﴿۲﴾ دوهمه فقره: غلط بې له جوازه او په دروغو باندې مبني ده ځکه انکار دی د متدعو به زمکې قیمت په هغه وخت کښې درې لکه شپیته زره روپۍ وې او همدا د هغه وخت بازاري قیمت وو۔

﴿۳﴾ دریمه فقره: غلطه، د قانون او د شرعي خلاف دی او حلفي په دې باره کښې لف دی۔

﴿۴﴾ څلورمه فقره: غلطه، د قانون او شرعې خلاف دی مدعي د قانون مطابق اسلامي طلبات نه دي پوره کړي۔

﴿۵﴾ د پنځمې فقرې په تفصیل سره ځواب په لاندې ډول دی۔

((الف)) دا جز غلط او بې له جوازه ده۔

((ب)) دا جز هم غلط دی، حدود ات ئې غلط درج کړي دي۔

((ج)) دا جز غلط او بې له جوازه ده۔

((د)) دا جز هم غلط دی۔

((ر)) دا جز غلط دی مدعي په دې وجه چه پخپل ویل او عمل کښې تکر دی د دې عذر مانع دی۔

﴿۶﴾ شپږمه فقره: غلطه او د قانون او شرعي خلاف ده ځکه انکار دی او مدعي ته د دعوی بناء حاصله نه ده۔

﴿۷﴾ د متدعو به قیمت په لکونو روپۍ دی۔.......... او د مدعي د کورټ د فیس دعویٰ ناقابل سماعت او د اخراج قابل دی۔

## فیصلــــــه

په اسلامي قانون کښې شفعه یو ثابت کړل شوی حقیقت دی چه مشروعیت ئې د چا له ضرر څخه د بچ کیدو په خاطر شوي ده۔ دا حق یواځې دریو کسانو لره حاصل شوی دی۔ یو شریک في نفس المبیع ته، بل شریك في حق المبیع، ته او بل ګاونډي ته۔

لما قال العلامة المرغینانیؒ: الشفعه واجبة للخلیط فی نفس المبیع ثم للخلیط فی حق المبیع کا لشرب و الطریق ثم للجار. (الهدایة ج٤، ص٣٨٧، کتاب الشفعه)

﴿۱﴾ دغو دریو ته به په هغه وخت کښې د شفعې حق حاصل وي چه په هغه باندې د علم په وخت کښې طلب د مواثبت یا د اسې الفاظ ووایي چه د هغه په وجه سره د شفعې د حق غوښتنه ښکاره شي۔ په دې طلب کښې د ګواه د نیولو ضرورت نشته لیکن بهتر خامخا دی۔



لما فی الهـــــداية: اذا علم الشفیع اشهد فی مجلسه ذلك علی المطالبة و اعلم ان الطلب علی ثلاثة اوجه طلب المواثبة و هو ان یطلبها کما علم حتی لو بلغ الشفیع البیع و لم یطلب شفعته بطلت الشفعة. (الهدایة ج٤، ص٣٩٠، کتاب الشفعه)

مخکښې لیکي: و الاشهاد فیه لیس بلازم انما لنفی التجاهد. (الهدایة ج٤، ص٤٩١، کتاب الشفعه)

قال العلامة البابرتیؒ: و الاشهاد فی ذلك لیس بشرط. (العنایة شرح الهدایة) و فی شرح المجلة و یلزم الشفیع ان یقول کلاماً یدل علی طلب الشفعه فی الطلب الذی سمع فیه عقد البیع فی الحال کقوله انا شفیع المبیع او اطلبه با لشفعه و یقال لهذا لطلب المواثبة. (درر الحکام شرح مجلة الاحکام ج٢، ص٧٨٩، الفصل الثالث)

﴿۲﴾ د طلب مواثبت نه وروسته په شفیع باندې د تقریر او اشهادو طلب ضروري دی۔ د دې صورت دا دی چه شفیع د بائع یا مشتري او یا د مشفوعه زمکې او د اسې نورو په نزد خپل د شفعې د طلب غوښتنه ظاهره کړي اګر که د خط په ذریعه دې ولې نه وي۔ لیکن له کوم شرعي عذر څخه پرته تاخیر کول د شفعې باطلوونکی دی۔

لما فی شرح المجلة: و مدة هذا الطلب لیس علی الفور کطلب المواثبة بل هی مقدرة بمدة التمکن من الاشهاد و هذا الطلب لا بد منه بعد طلب المواثبة حتی لو تمکن و لو بکتاب او رسول و لم یشهد بطلت شفعته آه. (شرح المجلة لرستم باز ص٥٩١، المادة ١٠٣٠)

په دې طلب التقریر باندې د ګواه جوړول ضروري دي تر څو چه خصم څه خبره و نه شي کړی۔

لما فی شرح المجلة: و یجب علی الشفیع بعد طلب المواثبة ان یطلب التقریر و ان یشهد بان یقول فی حضور رجلین عند العقار المبیع. (درر الحکام شرح مجلة الاحکام ج٢، ص٧٩٥، کتاب الشفعه)

او که نه نو په اصل کښې په دواړو طلباتو کښې د ګواه نیول څه شرط نه دي۔

لانه قدر جرح فی الخانیة و البدائع بان الاشهاد لیس شرطاً فی صحة الطلب المذکور بل انما تجب الاشهاد للتمکن من الاثبات باقامة الشهود فیما اذا انکر الخصم الذی هو المشتری وقوع طلب التقریر و الاشهاد حتی ان الشفیع لو اجری طلب التقریر بلا اشهاد و اقربه المشتری و صدقه او نکل المشتری عن الیمین المکلف بها فیثبت و یتحقق طلب التقریر. (درر الحکام شرح مجلة الاحکام ج٢، ص٧٩٥، کتاب الشفعه)

﴿۳﴾ له دې څخه د فارغیدو نه وروسته په شفیع باندې طلب الخصومه ضروري ده چه د قاضي او یا د منطقوي مجستریټ په نزد د شفعې دعوی د ائره کړي لیکن دا طلب په هغه وخت کښې ضروري ده چه کله مشتري شفیع ته د مشفوعه زمکې له ورکولو څخه انکاري وي۔ او که چېرته مشتري پرته له عدالتي کاروایي څخه شفیع ته مشفوعه شی حواله کاوه نو د دې طلب څه ضرورت نشته۔

کما فی شرح المجلة: و یلزم ان یطلب الشفیع و یدعی فی حضور الحاکم بعد طلب التقریر و الاشهاد و یقال لهذا طلب الخصومة و التملیك یجب علی الشفیع اذا لم یسلمه المشتری العقار المشفوع بعد طلب التقریر و الاشهاد ان یطلب الشفعه و یدعی فی حضور الحاکم......... لو سلم المشتری العقار المشفوع برضائه للشفیع

بناء علی شفعته فلا حاجة لطلب الخصومة بعد. (درر الحکام شرح مجلة الاحکام ج ۲، ص ۷۹۶)

په دې طلب کښې د یوې میاشتې څخه تر کم وخت پورې پرته له شرعي عذر څخه تاخیر کول جائز دي او تر یوې میاشتې پورې بې له کوم شرعي عذر څخه تاخیر کول د شفعې مبطل دی او د شرعي عذر څه حد نشته۔

لما فی شرح المجلة: و اخر الشفیع طلب الخصومة بعد طلب التقریر و الاشهاد من دون عذر شرعی ککونه فی دیار یسقط حق شفعته. (درر الحکام شرح مجلة الاحکام ج ۲، ص ۸۰۴، مادة ۱۰۳۴)

قال البابرتیؒ: معناه اذا ترکها من غیر عذر لانهم اجمعوا علی انهٗ اذا ترك بمرض او حبس او غیر ذٰلك و لم یمکنه التوکیل بهٰذا الطلب لا تبطل شفعته و ان طالت المدة. (العنایة شرح الهدایة)

له دې وجهې د مثل له مطالعې څخه معلومېږي چه مفتاح الدین ولد عبد المالك سابق سپه سالار دیر د شفعې په باب کښې تولې شرعي تقاضاوې پوره کړي دي۔

﴿۱﴾ د زمکې له بیان کړل شوي حدودو څخه معلومېږي چه نوموړی مفتاح الدین د عبد المالك زوی د دې زمکې په حق الشرب و الطریق کښې اشتراك لري او ور سره ورسره د دې زمکې ګاونډی هم دی۔ او د ا د پورته ذکر شوي تصریحاتو په رڼا کښې د شفعې د حق اسباب دي۔

﴿۲﴾ او بیا موصوف د المواثبت غوښتنه د علم په وخت کښې کړې ده او ورسره ئې د طلب التقریر و الاشهاد باندې له مشفوعه زمکې سره د زمکې د کرونکو په مخکښې مسمٰی اجمیر خان، عباس او حمید الله ئې ګواه جوړ کړي وو او د شفعې د حق اظهار ئې کړی وو۔ لهذا که چېرته مدعي علیه رحمت الله خان له دغو طلباتو منکر وي او ذکر شوي ګواهان د مسمٰی مفتاح الدین (مدعي) په دې طلب التقریر باندې ګواهي وکړي نو دعوٰی ئې قابل د سماعت دی۔

﴿۳﴾ او د طلب الخصومت په دعوٰی کښې ئې تاخیر زائد المیعاد نه دی ځکه چه له یوې میاشتې څخه تر کم وخت پورې پرته له شرعي عذره هم تاخیر کول جائز دي او د شفعې باطلوونکی نه دی او حال دا چه موصوف له یوې میاشتې څخه کم تاخیر کړی دی او دا تاخیر ئې پخپل منځ کښې د اصلاح لپاره کړی وو لکه څرنګه چه له تحریري نوټس او د منطقوي جرګې له تحریري بیان څخه معلومېږي۔

﴿۴﴾ او ورسره ورسره ئې د ده دا غوښتنه مدعي علیه مسمٰی رحمت الله خان د منطقوي جرګې په وړاندې منلې هم ده۔ او د جرګې والو هم فیصله د مدعي مفتاح الدین په حق کښې کړې ده چه په هغې باندې د مرسوله بیان لیکل شاهد دي۔

له دې وجهې د دغو وجوهاتو په بناء باندې د اسلامي شریعت په رڼا کښې د دې زمکې د شفعې حق مدعي مسمٰی مفتاح الدین د عبد المالك زوی ته حاصل دی۔

بیا هم که چېرته مدعي علیه په دې خبرې باندې ګواه وړاندې کړي چه مدعي مفتاح الدین د عبد المالك زوی د دې زمکې د بیع اطلاع د طلب المواثبت له تاریخ څخه مخکښې



ور کړې وه او هغه په دې باندې غلی پاتې شوی وو او یا ئې انکار کړی وو نو بیا مفتاح الدین د شفعې حق نه لري ځکه چه هغه د هغه د خاموشۍ او یا انکار له وجهې باطل شوی وو۔ لکه څرنګه چه له مخکښېنیو تصریحاتو څخه څرګند شول۔ و الله اعلم و علمه اتم۔

## تر راضي کېدو وروسته دعوٰی کول او له مدعي علیه څخه قسم اخیستل

**سوال:** غلام رسول، غلام حسین او بخت رسول درې وروڼه دي او د دوی تر منځ یوه کاروباري تنازعه وه۔ په تاریخ د ۱۴ اپریل ۲۰۰۰ء سنه د هغو په منځ کښې د ګواهانو په مخکښې دا فیصله د راضي نامې په توګه طې شوې پېداکړه چه په راتلونکې کښې له مونږ درېواړو څخه له کوم یوه سره نقدې روپۍ، تقاعد، یا له زر خریدې زمکې څخه د چا په نامه باندې بیعه نامه لیکل شوې وي هغه به ټول د هغه وي او په مونږ کښې به یو هم په بل باندې هیڅ ډول اعتراض او دعوٰی به نه کوو۔ په راضي نامې باندې د درېواړو وروڼو برسېره د ګواهانو دستخطونه هم موجود دي۔ اوس د راضي نامې له لیکلو نه اته میاشتې وروسته بخت رسول له راضي نامې څخه د اعراض په کولو سره د خپل وروسر غلام حسین په خلاف په ابتدائیه محکمه کښې دعوٰی دائره کړې ده چه د غلام حسین سره زمونږ مشترکې روپۍ او زر خریده زمکه ده۔ که چېرته ئې هغه نه مني نو قسم دې وکړي چه له ما سره مشترکې روپۍ او زر خریده زمکه نشته۔ اوس پوښتنه دا ده چه د بخت رسول دا دعوٰی صحیح ده او که نه؟ او آیا دی د دعوې د کولو او پخپل ورور باندې د قسم د کولو حق لري او که نه؟ په داسې حال کښې چه دا ټول کارونه د خپل ورور د رسوایي او ذلت لپاره کوي نو مهرباني وکړی د قرآن او سنتو په رڼا کښې ځواب عنایت وفرمایی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د شرعي قانون مطابق چه کله د کومې معاملې حل په کار وي نو البینة علی المدعي و الیمین علی من انکر (الحدیث) له مخې د مدعي په ذمې باندې د خپلې دعوې د اثبات لپاره د ګواهانو وړاندې کول لازم وي او که چېرته مدعي د ګواهانو له وړاندې کولو نه پاتې راشي نو د مدعي په غوښتنه به مدعي علیه ته قسم ورکول کیږي۔ لیکن بیا هم داسې فیصله به په هغه وخت کښې صحیح او درست وي او په دې طریقې باندې به فیصله هغه وخت کیږي چه دعوٰی د اورېدو قابله وي۔

په صورت مسئوله کښې د فیصله نامې یعنې راضي نامې له ټولو کاغذاتو څخه دا معلومېږي چه د بخت رسول د خپل ورور په خلاف دا دعوٰی له هغې صلحې او راضي نامې له تاریخ یعنې ۱۴ اپریل ۲۰۰۰ء سنه (کومه چه د ګواهانو په وړاندې شوې وه) نه وروسته کړې ده۔ د دې لپاره چه بخت رسول خپله دعوٰی په ابتدائي عدالت کښې دائره کړې له دې وجهې دا دعوه هیڅ شرعي حیثیت نه لري او نه د مدعي لپاره د خپلې دعوې د اثبات لپاره د ګواه د وړاندې کولو ضرورت شته او نه په غلام حسین باندې د قسم د کولو حق لري۔ خو په دې شرط چه

نوموړې صلح نامه د شرعي قوانینو مطابق ثابته شي۔ ځکه چه کله چېرته د یوه نزاع په اړه د شرعي قواعدو او ضوابطو مطابق په دواړو خواوو کښې یو ځل صلح وشي نو بیا د دواړو خواوو له رضاء پرته یو فریق هم پخپل سر هغه نه شي فسخ کولی۔ لهذا د بخت رسول د صلح نامې نه وروسته په غلام حسین باندې دعوٰی شرعا غیر مسموع او د اعتبار وړ نه ده او غلام حسین ته د قسم د ورکولو هیڅ ضرورت نشته۔

قال العلامة خالد الآتاسیؒ: اذا تم الصلح فلیس لواحد من الطرفین فقط الرجوع و یملك المدعی با لصلح بدله و لا یبقی له حق فی الدعوٰی و لیس للمدعی علیه ایضاً استرداد بدل الصلح. (شرح المجلة لخالد آتاسی ج٤، ص٥٦٩، المادة ١٥٥٦)

قال العلامة سلیم رستم بازؒ: تحت هذه القاعدة سواء کان الصلح عن اقرار او انکار او سکوت حتی لو ادعٰی علیه شیئاً فانکر فصالحه علی شیء ثم اقر المدعی علیه لا یلزمه ما اقربه و کذا لو برهن المدعی بعد صلحه لا یقبل لان الصلح عقد لازم لیس لاحدهما نقضه الخ. (شرح مجلة الاحکام لسلیم رستم بازؒ ص٨٤٥، الباب الرابع)

## د مدعٰی بِه په مقدار کښې غلطي د دعوې ساقطوونکی نه دی

**سوال:** یوه سړي د دیر په علاقه کښې د قاضي په وړاندې په یوه ټکړه زمکې باندې دعوٰی وکړه چه حدود اربعه خو ئې صحیح بیان کړل لیکن په بدقسمتۍ سره ئې د زمکې په اندازه کښې غلطي وکړه۔ په اسنادو کښې هغه زمکه پنځه ایکړه ده او مدعي په دعوې کښې څلور ایکړه ذکر کړې ده چه له دې وجهې قاضي دروغجن وباله او دعوه ئې ناقابل سماعت وګرځوله۔ نو آیا واقعي شرعا دا دعوٰی د اوریدو قابله نه ده؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د داسې دعوې کولو په وخت کښې د حدود اربعه صحیح بیانول ضروري دي او د مقدار بیانول ئې ضروري نه وي نو ځکه که چېرته یو مدعي د دعوې په وخت کښې د مقدار په بیانولو کښې غلطي وکړي او حدود اربعه صحیح بیان کړي نو دعوٰی به ئې د اوریدو قابله وي۔ په نوموړي صورت کښې قاضي له تحقیق او له شرعي عذر پرته د نوموړې دعوه ناقابل سماعت ګرځولې ده۔

لما فی مجلة الاحکام: اذا اصاب المدعی فی بیان الحدود و اخطأ فی بیان مقدار ذراع العقار او دونه لا یمنع صحة دعواه. (مجلة الاحکام العدلیة المادة ١٦٢٤)

## د هبې د دعوې لپاره معتبره ګواهي ضروري ده

**سوال:** د زید په یوه ټکړه زمکه باندې قبضه او تصرف شوی دی او د قابض دعوٰی ده چه دا زمکه ما ته له پلار څخه په میراث کښې را پاتې شوې ده لهذا دا زما حق دی نو اوس پوښتنه دا ده چه شرعا دا زمکه د چا حق دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته زید د هبې خپله دعوٰی په معتبر شهادت سره ثابته کړي نو دا زمکه د ده حق دی او که نه وي نو د بکر زویٔ ته به قسم د هغه په علم باندې ورکول کیږي۔

قال العلامة محمد کامل الطرابلسیؒ: سئلت رجل ادعٰی علی آخر عقاراً انه ملکه تلقاه با لارث من ابیه فاجابه



المدعٰی علیه بانی اشتریته من ابیك حال حیاته و انهٗ فی حوزی و تصرفی مدة تزید علی خمسین سنة مع حضورك و علمك و سکوتك بلا عذر شرعی هل یکون جواب المدعٰی علیه من باب الاقرار با لتلقی من ابیه فیحتاج الی بینة تشهد له با لشراء لا ینفعه وضع الید و التصرف فی المدّة المذکورة و لا تکون الحادثة من قبیل ما مضی علیه خمس عشرة سنة فاجبت نعم جواب المدعٰی علیه من قبیل دعوی التلقی من مورث المدعی و دعوی التلقی من مورثه اقرار لهٗ با لملك ثم دعواه الانتقال الیه منه تحتاج الٰی بینة لان کل مدع یحتاج الی البینة و لا ینفعه الید المدة المذکورة مع الاقرار المذکور و لیس هٰذا من باب ترك الدعوٰی بل من باب المؤاخذة با لاقرار و من اقر بشیء لغیره اخذ باقراره و لو کان فی یده احقاباً کثیرة لا تعد افادة المحقق الرملی فی فتاوٰی الخیریة. و اللّٰه تعالٰی اعلم. (فتاوٰی کاملیة ص١٢٣، کتاب الدعوٰی)

قال العلامة سلیم رستم بازؒ: اذا اراد الرجل ان یحلف علی فعل نفسه یحلف علی البتات یعنی یحلف علی القطع بان هٰذا الشیء کذا و لیس بکذا اما اذا اراد ان یحلف علی فعل غیره یحلف علی عدم العلم یعنی یحلف علی عدم علمه بذٰلك الشیء. (شرح المجلة ص١١٠١، المادة ١٧٤٨)

## د "الحق لا یسقط بتقادم الزمان" مطلب

**سوال:** یوه سړي له نن څخه شپږ دیرش کاله مخکښې څه زمکه د خپلو زامنو په نامه کړې وه یعنې د خپلو زامنو نومونو ته ئې منتقل کړې وه او هغوی هم پرې مالکانه تصرفات کول۔ اوس د هغه له وفات نه وروسته نورو وارثانو ئې د حقداري دعوٰی وکړه نو آیا د هغوی دا دعوٰی صحیح ده او که نه؟ په داسې حال کښې چه په فتاوٰی انقرویه کښې دي چه: و فی المبسوط رجل ترك الدعوٰی ثلاثا و ثلثین سنة و لم یکن لهٗ مانع من الدعوٰی ثم ادعٰی لهٗ لا تسمع دعواه لان ترك الدعوٰی مع التمکن علیه یدل علی عمد الحق ظاهراً. انتهٰی (فتاوٰی انقرویة ج٢، ص٥٨)

جناب مفتي صاحب! د نوموړې مسئلې د مقدس شریعت له مخې ځواب عنایت وفرمایی؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په شرح مجله کښې دي چه: اذا ترك المورث الدعوٰی مدة و ترکها الوارث ایضاً مدة و بلغ مجموع المدتین حد مرور الزمان فلا تسمع. (ج٥، ص١٨٧، المادة ١٦٧)

له دې څخه ښکاره ګندیږي چه مورث او د هغه وارث کله چه خپله دعوٰی تر شپږو دیرشو کالو پورې پریږدي او څه شرعي عذر هم نه وي نو د داسې دعوٰی د نه اوریدو قابله ده۔ البته که چېرته مدعي علیه دا خبره منله چه د مدعي د ارث حق زمونږ په ذمې باندې باقي پاتې دی نو بیا د سلګونو کلونو په تیریدو سره به هم دعوٰی اوریدل کیږي او حق به ئې ورکول کیږي او د فقهاوو د دې قول چه "الحق لا یسقط بتقادم الزمان".

لما فی مجلة الاحکام: لا یسقط الحق بتقادم الزمان فاذا اقر المدعٰی علیه و اعترف صراحه فی حضور الحاکم بان حق المدعی عنده فی الحال علی الوجه الذی یدعیه و کان قد مر الزمان علی الدعوٰی فلا یعتبر مرور الزمان و یحکم بموجب اقرار المدعٰی علیه. (شرح المجلة ص٩٩٦، المادة ١٦٧٤)

## دعوٰی تر کوم وخت پورې د اورېدو قابله وي

**سوال:** یوه سړي په یوه ټکړه زمکه باندې له پنځوسو او یا له دې څخه د زیاتو کلونو څخه قابض دی او په هغې کښې مالکانه تصرفات کوي۔ اوس یوه بل سړي په دغې زمکې باندې د ارث دعوٰی کوي نو آیا شرعاً د دې سړي دعوٰی د اورېدو قابله ده او که نه؟ او آیا په دې تاخیر سره د دې سړي استحقاق باطلېږي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د دعوې د اورېدو لپاره ضروري ده چه په هغې کښې دومره تاخیر و نه شي چه شپږ دیرشو کلو ته ورسیږي او همدا ډول مدعي علیه یو ډول مقر هم نه وي او نه مدعي په دې وخت کښې غائب، هلك یا لیونی (کوم چه ولي ئې نه وي) نه وي۔ او که چېرته په دعوٰی کښې شپږ دیرش کاله او یا له دې څخه ډېر وخت تیر شي او همدا رنګه ځینې نور شرائط چه د دعوٰی د قبلولو لپاره وي مفقود وي نو بیا به دعوٰی د اورېدو قابله نه پاتې کیږي۔ نو له دې وجهې په صورت مسئوله کښې هم د دغه بل سړي له پنځوسو کلونو او یا له دې څخه د زیاتې مودې نه وروسته د ارث دعوٰی د اورېدو قابله نه ده لیکن بیا هم د زمانې د تیرېدو له وجهې د چا استحقاق نه باطلیږي۔ ځکه چه "الحق لا یسقط بتقادم الزمان"

قال العلامة خالد الآتاسی رحمه الله: قال المتاخرون من اهل الفتوٰی لا تسمع الدعوٰی بعد ستّ و ثلثین سنة الا ان یکون المدعی غائباً او صبیاً او مجنوناً و لیس لهما ولیّ و المدعٰی علیه امیرا جابراً. (شرح المجلة ج۵، ص۱۷۷، المادة ۱۶۶۳)

اذا ترك المورث الدعوٰی مدّة یترکها الوارث ایضاً مدة و بلغ مجموع المدتین حد مرور الزمان فلا تسمع. (شرح المجلة ج۵، ص۱۸۷، المادة ۱۶۷۰)

قال العلامة ابن عابدینؒ: اذا ترك الدعوٰی ثلاثاً و ثلاثین سنة و لم یکن مانع من ترك الدعوٰی الخ. (رد المحتار ج۴، ص۳۴۴، مطلب اذا ترك الدعوٰی ثلاثة و ثلاثین سنة لا تسمع) و مثله فی فتاوٰی کاملیة ص۱۱۳، کتاب الدعوٰی.

## د لیوني د دعوٰی حکم

**سوال:** یوه لیوني یا کم عقله سړي د چا د شرارت او اشارې په صورت کښې د کلي په یوه معزز او شریف سړي باندې د لسو زرو روپو دعوٰی وکړه او حال دا چه له لیوني سره د خپل اهل د ګیډې د مړولو پیسې هم نه وې نو آیا د نوموړي دا دعوٰی به شرعاً صحیح وي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د شرعي قوانینو مطابق هغه دعوٰی د اورېدو قابله او صحیح وي کوم چه د عاقل او بالغ سړي نې د چا په خلاف دائره کړي او که چېرته مدعي عاقل او بالغ نه وي نو شرعاً د هغه دعوٰی به مسموع او صحیح نه وي۔ لهذا که چېرته په رښتیا هم همدا سې وي او نوموړي لیوني سړي د چا له اشارې او تحریك نه پرته پخپله دعوٰی دائره کړې وي او د ده کوم ولي ځان د ده له ولي ګڼلو سره د ده د دعوې طرفداري نه کوله نو شرعاً د اسې دعوٰی د اورېدو قابله او صحیح نه ده۔



لما فی مجلة الاحکام: یشترط ان یکون المدعی و المُدعٰی علیه عاقلین فدعوی المجنو و الصبی غیر الممیز لیست بصحیحة و لکن ان یکون اولیاؤهما و اُوصیاؤهما مدعین او مدعٰی علیهم فی محلهما. (شرح المجلة لخالد آتاسی ج۵، ص۹، الباب الاول فی شروط الدعوی)

## د نابالغ زوی په ځای پلار ته د قسم ورکولو حکم

**سوال:** زید په بکر باندې د غلا دعوٰی وکړه او حال دا چه بکر له غلا څخه انکار کوي او قسم کولو ته تیار دی لیکن دی تر اوسه بالغ نه دی۔ نو اوس پوښتنه دا ده چه آیا نابالغ هلك قسم کولی شي او که نه؟ او که چېرته ئې نه شي کولی نو د هغه په ځای ئې پلار قسم کولی شي او که نه؟ او که چېرته په دواړو باندې قسم نه راځي نو بیا مدعي قسم کولی شي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په صورت مسئوله کښې که چېرته مدعي (زید) سره د عوې د اثبات لپاره ګواه نه وي نو بیا به بکر ته قسم ورکول کیږي او پلار ته ئې قسم نه ورکول کیږي ځکه چه د قسم د کولو لپاره بلوغ شرط نه دی او نه د مدعي قسم کول شرعاً معتبر دی۔

قال العلامة علی حیدر: (تحلیف الصبی) اذا کان المدعٰی علیه صبیاً و کان غیر ماذون لهٗ یتوجه علیه الیمین فاذا وجه و لکل فلا یحکم علیه بل یجب تحلیفه بعد البلوغ اما اذا کان ماذوناً فیتوجه الیمین علیه عند بعض الفقهاء و یحکم بیمینه و بنکو له عن الیمین و هٰذا هو المفتی بهٖ الخ. (دُرر الحکام شرح مجلة الاحکام ج۴، ص۴۵۹، الباب الثانی فی بیان التحلیف)

و فی الهندیة: الصبی الماذون یحلف کا لبالغ و به ناخذ. (الفتاوی الهندیة ج۴، ص۲۵، کتاب الدعوٰی، الباب الثالث فی الیمین و فیه ثلاثة فصول)

## تر مصالحت وروسته د ارث د دعوٰی کولو حکم

**سوال:** جناب مفتي صاحب! زمونږ والد صاحب پخپل ژوند کښې د جائداد د ویشلو فیصله کړې وه چه زما آباد او جوړ کور به زما د دریو زامنو حبیب جان، قادر خان او افضل خان وي او دا خالي زمکه چه یو جریب او ۹ بسوې ده د نورو دوو زامنو غلام خان او محمد طفیل وي او له دې سره ئې دا شرط هم ولګاوه چه مسمٰی غلام خان خپل کشر ورور محمد طفیل ته به د دوو کوټو لرونکی کور جوړوي او هغه ته به واده هم کوي او له دې وروسته به د نورې زمکې مالك ګرځي۔ د والد صاحب له وفات څخه وروسته غلام خان خپل ورور محمد طفیل ته د دوو کوټو لرونکي کور په ځای د دریو کوټو لرونکی کور جوړ کړ او هغه ته ئې واده هم وکړ او له دې وروسته ئې والده شریفه او ټولو ورونو مشترکه فیصله وکړه چه هغه فیصله ټولو قبوله کړه چه سند ئې دا دی او ګواه پرې هم موجود دی۔ لیکن له دې فیصلې نه وروسته ئې ورونو انکار وکړ چه بیا منطقوي جرګې دوباره فیصله وکړه چه په هغې باندې ټولو ورونو خوښي او رغبت ښکاره کړ کوم چه تحریري ثبوت ئې هم شته او ګواهان پرې هم موجود دي۔ له دې ټولو سره

سره دریو ورونو (حبیب خان، قادر خان او افضل خان) بیا په دغې خالي زمکې باندې د ارث دعوی وکړه- اوس پوښتنه دا ده چه د نوموړي بیان په رڼا کښې د دریواړو ورونو د ارث دعوی صحیح ده او که نه او همدارنګه د اسلامي شریعت په دې باره کښې څه حکم دی؟ بینوا توجروا-

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د پورته ذکر شوي بیان او ملفوفو اسنادو څخه ځرګندیږي چه پلار ئې پخپل ژوند کښې د زامنو تر منځ د جائداد د تقسیم چه کومه فیصله کړې وه په هغه وخت کښې ټول ورونه په دې فیصله باندې راضي وو- او له هغې وروسته ئې د منطقوي جرګې فیصله هم قبوله کړې وه او پخپل منځ کښې ټولو ورونو صلح هم کړې وه لهذا له مصالحت نه وروسته یوه وارث ته هم له خپلې صلحې څخه د رجوع کولو شرعا حق نه لري- نو ځکه مذکوره سپین ډاګ یعنې خالي زمکه یا میدان د محمد طفیل د کور له جوړولو نه وروسته پاتې حصه به یواځې د مسمٰی غلام خان وي- له دې پرته بل هیڅ یو وارث په دې کښې د شراکت دعوی نه شي کولی او دا زمکه به د غلام خان ملکیت ګڼل کیږي-

لما فی المجلة الاحکام تحت المادة ۱۵۵۶: اذا تم الصلح فلیس لواحد فقط من الفریقین الرجوع عنه. قال الشیخ سلیم رستم باز تحته سواه کان الصلح عن اقرار او انکار او سکوت حتی لو ادعی علیه شیئاً فانکر فصالحه علی شیء ثم اقر المدعٰی علیه لا یلزما ما اقر به و کذا لو برهن المدعی بعد صلحه لا یقبل لان الصلح عقد لازم لیس لاحدهما نقضه. (شرح المجلة ص۸۴۵، الباب الرابع فی احکام الصلح)

و فی الهندیة: فوقوع الملك فی البدل و ثبوت الملك فی المصالح عنه ان کان مما یحتمل التملیك کا لمال و وقوع البرأة عنه للمدعٰی علیه ان کان لا یحتمل التملیك کا لقصاص هٰذا اذا کان الصلح علی الاقرار الخ. (الفتاوی الهندیة ج۴، ص۲۲۹، کتاب الصلح)

## د دعوې د اثبات لپاره شرعي ضابطه

**سوال:** زید له عمر څخه غلا کړې ده- اوس زید په عمر باندې دعوی کول غواړي نو د دې لپاره هغه ته څه کول په کار دي؟ او که چېرته زید د شرعي تقاضو مطابق عمر لره غل ثابت کړي نو څومره مال چه عمر غلا کړی دی زید له هغه څخه تر دې زیات اخیستلی شي او که نه؟ بینوا توجروا-

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د دعوې د اثبات لپاره شرعي ضابطه دا ده چه مدعي د قاضي په وړاندې معتبر شهادت وړاندې کړي او په مدعی علیه باندې حلف یعنې قسم کول لازم دي لیکن قسم کول په هغه وخت کښې وي چه مدعي ګواه نه شي وړاندې کولی او له مدعی علیه څخه د قسم غوښتنه وکړي- په حدیث شریف کښې راغي چه "البینة علی المدعی و الیمین علی من انکر". (صحیح مسلم ج۲، ص۲۴، کتاب الاقضیة)

عن النبی ﷺ قال البینة علی المدعی و الیمین علی المدعٰی علیه. رواه الترمذی. (مشکوٰة ص۳۲۷، باب الاقضیة و الشهادات، الفصل الثانی)

او د بل په فعل باندې د قسم کولو په صورت کښې به قسم علی العلم کیږي او د



شهادت او یا له قسم څخه د انکار کولو په صورت کښې د مدعي لپاره به یواځې هغه شی ثابتیږي چه دی د هغه دعویدار دی- له هغه څخه د زیات مال اخیستل ورته شرعا صحیح نه دي-

## له تامې هبې څخه وروسته د ارث دعوی د اورېدو قابله نه ده

**سوال:** جناب مفتي صاحب! زمونږ والده صاحبه پخپل ژوند کښې خپله ټوله ترکه د خپل یوه زوی په نامه کړه چه په دې باندې ګواهان او سرکاري کاغذات او اسناد لف هذا دي- نو اوس هغې له وفات څخه وروسته د هغې نور زامن د والدې په ترکه کښې د خپلې حصې دعویدار دي نو آیا د هغوی د ارث دعوی صحیح ده او که نه؟ بینوا توجروا-

**الجواب باسم ملهم الصواب:** هر سړي شرعا دا حق لري چه پخپل ژوند کښې خپل جائداد پخپل اولاد کښې یوه ته تملیکا هبه کړي- د هغه له وفات څخه وروسته په داسې تملیك شوي جائداد کښې د یوه وارث د ارث دعوی د اورېدو قابله نه وي- په صورت مسئوله کښې کله چه ستاسو مور پخپل ژوند کښې خپل ټول جائداد خپل یوه زوی ته تملیکا ورکړی دی او په دې باندې د مروجه قانون له مخې لیکنه او ګواهان موجود دي نو اوس د هغې له وفات څخه وروسته د نورو وارثانو به دې کښې هیڅ حق نه پاتې کیږي-

لما فی الهندیة: رجل وهب فی صحته کل المال للولد جاز فی القضاء و یکون آثما فیما صنع. (الفتاوی الهندیة ج۴، ص۳۹۱، کتاب الهبة)

قال العلامة قاضی خان رحمه الله: رجل وهب فی صحته کل المال للولد جاز فی القضاء و یکون آثماً فیما صنع. (الفتاوی قاضی خان علی هامش الهندیة ج۳، ص۲۷۹، فصل فی هبة الوالد لولده الخ)

## د الحاج نواب خان مرحوم پلوسي پښاور د میراث د تقسیم شخړه

**سوال:** ﴿د مدعي بیان﴾ مونږ پخپل حق کښې یو عدد وصیت نامه او یو عدد هبه نامه منسلك کړې ده او له هغې سره مو پوره بیان هم ورکړی دی لهذا زه پخپل بیان کښې مزید دا هم شاملول غواړم چه:

﴿۱﴾ چه دا زمکه د اخیستلو په وخت کښې زما د ورور عالم زیب عمر ۹ کاله وو زمکه په لسم اکتوبر ۱۹۶۷ء کښې اخیستل شوې وه او د عالم زیب پیدائښت په لسم اکتوبر ۱۹۵۸ء کښې شوی دی له دې وجهې زما مشر ورور به له دې نه څلور یا پنځه کاله مشر وي- دواړو ورونو د زمکې د اخیستلو په وخت کښې د ګټې نه وو او په مکتب کښې به ئې سبقونه ویل چه د دې ثبوت هم ورسره لګیدلی دی-

﴿۲﴾ دا چه د وړو ماشین یعنې ژرنده زما د والدې شریفې ده کومه چه مې والد صاحب هغې ته په مهر کښې ورکړې وه لیکن هغه په مخکښینې بیان کښې نه ده یاده شوې ځکه چه ما ته ویل شوي وو چه دا تنازعه یواځې او یواځې په اخیستل شوې زمکې پورې محدوده ده-

﴿۳﴾ مزید څه ثبوت یا ګواه که چېرته زما د بیان په باره کښې ستاسو په کار وي نو ستاسو په امر باندې ئې وړاندې کوم.

﴿٤﴾ کومه یوه فیصله چه د جرګې د ممبرانو یعنې جناب سعید جان صاحب او عبد الحمید صاحب له خوا دستخط شوې وي هغه قبلوم.

زه د خپلې مور او کوچنیو خویندو او وروڼو او د ځان له طرفه دا اقرار کوم چه د شریعت له مخې کومه یوه فیصله وشي هغه ما ته قابل قبول ده.

(عطاء الرحمٰن د حاجي نواب خان زوی د پلوسي پښاور اوسیدونکی)

﴿د مدعي علیه بیان﴾ مونږ دواړه وروڼه عالم زیب او اورنګزیب د حاجي نواب خان مرحوم زامن د پلوسي ضلع پښاور اوسیدونکي دا بیان کوو چه زمونږ والد محترم په کال سنه ۱۹۶۷ء کښې تهکال نمبر(۱) چه له تاج آباد سره نژدې واقع ده ۲۲ جریبه او اوه نیمې بسوې زمکه پخپلو نقدو پیسو باندې اخیستې وه. والد محترم د نوموړې زمکې دا حصه مساوي انتقال څه داسې کړی وو چه (۱)د حاجي نواب خان د سربلند زوی د ۷ جریبو او نهه نیمو بسوو او (۲)د عالم زیب د حاجي نواب خان د زوی د ۷ جریبو او نهو بسوو او (۳)د اورنګزیب د حاجي نواب خان د زوی د ۷ جریبو او نهو بسوو باقبضه مالکان دي.

د زمکې د انتقال په وخت کښې زمونږ دوه سکنۍ خویندې، میره او دوه میرنۍ خویندې هم موجودې وې. له دې نه وروسته ۳۱ کاله والد صاحب ژوندی وو او په دې زمانه کښې زمونږ له میرې نه نور ۷ وروڼه او څلور خویندې پیدا شوې. وروسته له دې نه زمونږ والد صاحب څه نورې زمکې هم واخیستې چه د هغو اسناد ئې پخپل نامه جوړ کړي وو. زمونږ انا محترمه زمونږ والدې صاحبې ته څه زمکه ورکړې وه چه زمونږ والد صاحب آباده کړې وه او یوه ژرنده ئې پکښې هم لګولې وه چه زمونږ د دواړو وروڼو او د دوو خویندو ملکیت دی.

د پورتني بیان مطابق زمونږ د میرني خویندې او وروڼو د حصو په باره کښې شرعي حکم صادر کړی.

یادونه: له دې نه مخکښې بیان کښې مونږ د خپل والد صاحب جائداد او کورونه په تفصیل سره ذکر کړي دي.

اورنګزیب ——— عالم زیب

## شـــرعي فیصله

﴿۱﴾ فریق اول: عالم زیب خان او اورنګزیب خان د حاجي نواب خان زامن.

﴿۲﴾ فریق ثاني: عطاء الرحمٰن سره له وروڼو د حاجي نواب خان زامن.

د دواړو خواوو د بیان مطابق حاجي نواب خان مرحوم په کال سنه ۱۹۶۷ء کښې په تـــاج آباد تهکال (پښاور) کښې ۲۲ جریبه او اوه نیمې بسوې زمکه اخیستې وه. په دغو کښې ئې ۷ جریبه او نهه نیمې بسوې ځمکه ده پخپل نامه باندې کړې ده او ۷ جریبه او ۹ بسوې زمکه ئې د خپـــل زوی عالم زیب په نامه کړې ده او ۷ کناله او ۹ بسوې ئې د خپل زوی اورنګزیب په نامه کړې وه.

چونکه حاجي نواب خان د اخیستل شوې زمکې ۱٤ جریبه او ۱۸ بسوې د خپلو دوو زامنو په نامه د هغوی په کم عمرۍ کښې د مالکانه حقوقو سره انتقال کړی وو لهذا د ده اوس نوموړي دوه زامن یعنې اورنګ زیب او عالم زیب د دغې انتقال شوې زمکې باقاعده مالکان دي او انتقال شوې زمکه د دوی ملکیت ګڼل کیږي ځکه چه په کوچنیوالي کښې په موهوبه شي باندې قبضه ضروري نه ده. د پلار په قبضې سره هبه تامه ګرځي او د دوی مقابل عطاء الرحمٰن او وروڼه ئې د خپل پلار حاجي نواب چه کوم خط وړاندې کړی دی د شریعت له مخې هغه څه حیثیت نه لري او هیڅ اعتبار ورلره نشته.

﴿۱﴾ لما فی الفتاوی الخیریة علی هامش العقود الدریة ج۲، ص۱۰۶.

﴿۲﴾ ځکه چه د دې خط په ثبوت کښې ګواهان نشته.

﴿۳﴾ دا وړاندې کړل شوی خط وصیت نامه ده چه واضح پکښې لیکل شوي دي چه زه وصیت کوم چه زما جائداد به زما له مرګ څخه وروسته په لاندینۍ طریقې سره ویشل کیږي او په شرعي اعتبار سره د خپل وارث په حق کښې وصیت کول جائز نه دي. دلایل په لاندې ډول دي:

﴿۱﴾ قال العلامة قاضی خانؒ: رجل وهب فی صحته کل المال للولد جاز فی القضاء و یکون آثما فیما صنع، رجل قال جعلت هٰذا لولدی فلان کانت هبة، رجل وهب لابنه الصغیر داراً و هی مشغولة بمتاع الاب. قال ابو نصرؒ جاز و لا یحتاج الی التفریغ لانها مشغولة بمتاع القابض و هو الاب. (فتاوٰی قاضی خان علی هامش الهندیة ج۳، ص۲۷۹، کتاب الهبة، فصل فی هبة الوالد لولده و الهبة للصغیر)

﴿۲﴾ قال العلامة الزیلعیؒ: و هبة الاب لطلفه تتم با لعقد لانهٗ فی قبض الاب فینوب عن قبض الصغیر لانه ولیه. (تبیین الحقائق ج۵، ص۹۵، کتاب الهبة)

﴿۳﴾ لما فی الهندیة: رجل اتخذ لولده او لتلمیذه ثیاباً ثم اراد ان یدفع الی ولده للآخر او تلمیذه الآخر لیس لهٗ ذٰلك الا اذا بین وقت الاتخاذ انها عاریة. (الفتاوی الهندیة ج٤، ص۳۹۲، کتاب الهبة، الباب السادس فی الهبة للصغیر)

﴿٤﴾ قال العلامة الزیلعیؒ: قال و انما یصح الرجوع بتراضیهما او بحکم الحاکم لان مِلك الموهوب لهٗ ثابت فی العین فلا یخرج عن مِلکه الا با لرضاء او با لقضاء. (تبیین الحقائق ج۵، ص۱۰۱، کتاب الهبة)

﴿۵﴾ قال العلامة ابن نجیمؒ: و کتبنا فی القضاء من الفوائد انه یعمل بدفتر البیاع و السّمسار و الصیاف فا لخط فیه حجة. (الاشباه و النظائر ج۲، ص۱۲۵)

﴿۶﴾ قال العلامة قاضی خانؒ: رجل کتب صك وصیّة و قال للشهود اشهدوا بما فیه و لم یقرأ وصیته علیهم قال علماؤنا لا یجوز للشهود ان یشهدوا بما فیه و قال بعضهم وسعهم ان یشهدوا و الصحیح انه لا یسعهم ان یشهدوا. (فتاوٰی قاضی خان علی هامش الهندیة ج۲، ص۴۸۲، کتاب الشهادات، فصل فی الشاهد یشهد بعد ما اخبر بزوال الحق)

﴿٦﴾ قال العلامة فخر الدين الزيلعيؒ: و اما الثالث فلقوله عليه الصلوٰة و السلام ان الله تعالىٰ اعطى كل ذى حق حقهٗ فلا وصيّة لوارث. (تبيين الحقائق ج٦، ص١٨٢، كتاب الوصايا)

﴿٨﴾ قال العلامة برهان الدين المرغينانيؒ: و لا تجوز لوارثه لقوله عليه السلام ان الله تعالىٰ اعطى كل ذى حق حقهٗ الا و لا وصية لوارث. (الهداية ج٤، ص٦٥٧، كتاب الوصايا، باب فى صفة الوصية الخ)

## ﴿٢﴾ حق مهر ﴿٣﴾ د وړو ماشين (ژرنده)

جناب الحاج نواب خان مرحوم مسمات حسن اراء د اول خان له لور سره د عقد نكاح په وخت كښې د مهر په حق كښې چه كوم يو عدد د استوګنې كور او يو د وړو ژرنده وركړې وه د هغه ادا كول په نواب خان مرحوم باندې لازم دي. كه چېرته هغه پخپل ژوند كښې ادا كړي نه وي نو اوس به د هغه له ټولې تركې څخه وركول كيږي او د حق مهر له ادا كولو وروسته باقي تركه به په وارثانو باندې ويشل كيږي. بيا هم كومه دعوٰی چه عالم زيب خان او اورنګ زيب خان كوي چه د اوړو د ماشين زمكه زمونږ انا محترمه زمونږ والدې محترمې ته وركړې ده او هغه زمونږ والد صاحب آباده كړې ده او په هغې باندې ئې ژرنده لګولې ده. نو كه چېرته هغوی د دې دعوې صحيح ثبوت د جرګې د شريكانو په وړاندې پيښ كړه نو د جرګې شريكان به زمكه قيمت كوي. او بيا كه چېرته اورنګ زيب او عالم زيب خان د دې زمكې په قيمت باندې راضي وي نو د نواب خان مرحوم له ټولې تركې څخه به د هغې قيمت منفي كوي او دوی ته به ئې وركوي او د وړو ژرنده سره له زمكې به د حاجي نواب خان ښځې ته په حق مهر كښې وركوي. او كه چېرته عالم زيب خان او اورنګ زيب خان د زمكې په قيمت باندې راضي نه وو نو زمكه به خالي كوي ځكه چه هغه د دوی د ميرې حق دی او هيڅوك هم دا حق نه لري چه د بل چا حق د هغه له اجازې پرته چا ته وركړي. ليكن كله چه د عالم زيب خان او اورنګ زيب خان والده له خپل خاوند څخه مخكښې فوت شوې ده نو د هغې په ملكيت كښې چونكه د ژرندې زمكه يا د اسې نور شيان وي نو د هغو به يو په څلورمه حصه د هغې خاوند نواب خان ته هم په ميراث كښې وركول كيږي او پاتې درې په څلورو حصې به ئې د هغې اولاد اورنګ زيب خان او عالم زيب خان ته په ميراث كښې وركول كيږي. اوس چونكه خاوند هم وفات شوی دی نو د دې لپاره په هغې يو په څلورمې حصې كښې هم (كوم چه خاوند ته ئې له خپلې ښځې په ميراث كښې رسيدلې وه) د نواب خان ټول وارثان (عالم زيب او د هغه سكه ورونه او خويندې سره د ميره او ميرني ورونه او خويندې) به شريك وي. او كه چېرته مدعي په معتبر شهادت سره خپله دعوٰی ثابته نه كړي نو مدعي عليه ته به قسم وركول كيږي. "البينة على المدعى و اليمين على المدعى عليه". (مشكوٰة شريف ص٣٢٧، كتاب الاقضية و الشهادات) حواله ئې په لاندې ډول ده.

لما فى الهندية: و اذا تزوجها على هذا العبد و هو ملك الغير او على هذه الدار و هى ملك الغير فا لنكاح جائز و التسمية صحيحة فبعد ذلك ينظر ان اجاز صاحب الدار و صاحب العبد ذلك فلها عين المسمىٰ و ان لم يجز المستحق لا



يبطل النكاح و لا التسمية حتى لا يجب مهر المثل و انما تجب قيمة المسمى كذا فى المحيط. (الفتاوى الهندية ج١، ص٣٠٣، كتاب النكاح، الباب السابع فى المهر)

و قال ايضاً: و لو تزوجها على شىء بعينه و هلك قبل التسليم او استحق فان كان ذلك من ذوات الامثال رجعت على الزوج با لمثل و الا فبا لقيمة كذا فى المحيط. (الفتاوى الهندية ج١، ص٧١٦، الباب السابع فى المهر، الفصل التاسع)

## ﴿٤﴾ د ميراث د تركې تقسيم

په كوچنيوالي كښې د عالم زيب او اورنګزيب په نامه باندې په مالكانه توګه انتقال شوې زمكه او د نواب خان مرحوم د ښځې د حق مهر څخه پرته د نواب خان مرحوم په ملكيت كښې څومره سامان او اسباب چه وي كه منقوله وي او كه غير منقوله جائداد په ټولو كښې به د هغه ټول وارثان شريك وي. او ميراث به د اسې ويشل كيږي چه په ټوله تركه كښې يو په اتمه حصه د هغه كونډې ته وركول كيږي او پاتې اوه حصې به د نواب خان مرحوم د دواړو ښځو په ټولو اولادونو باندې به د اسې ويشل كيږي چه هر يوه ورور ته دوه دوه حصې او هرې يوې خور ته يوه يوه حصه وركول كيږي.

د الله تعالىٰ ارشاد دی: يُوْصِيْكُمُ اللّٰهُ فِيْۤ اَوْلَادِكُمْ لِلذَّكَرِ مِثْلُ حَظِّ الْاُنْثَيَيْنِ. (سورة النساء، آيت ١٢)

و فى الهندية: و اذا اختلط البنون و البنات عصب البنون و البنات فيكون للابن مثل حظ الانثيين. (الفتاوى الهندية ج٦، ص٤٤٨، كتاب الفرائض، الباب الثانى)

## د حيات شاه د زامنو هر يو سيد يوسف خان او سلطان شاه ترمنځ شرعي فيصله

**لومړی فريق:** سيد يوسف شاه د حيات شاه زوی د بلند كوټ، بټګرام، مانسهره اوسيدونكی.

**دويم فريق:** سيد سلطان شاه د حيات شاه زوی د بلند كوټ، بټګرام، مانسهرې اوسيدونكی.

**د لومړي فريق نمائنده:** ګل علي شاه د سيد يوسف شاه زوی.

**د دويم فريق نمائنده:** سيد فرمان شاه د سيد سلطان شاه زوی

د پورتنيو دواړو خواوو بيانونه د دوی د نمائندګانو له خوا واوريدل شول. د دواړو نمائندګانو د بيانونو څخه څو خبرې مخته راغلې:

﴿١﴾ د دواړو خواوو له بيانونو څخه په ناڅاپي توګه څرګنديږي چه د حيات شاه لونړې ئې د هغه له جائداد څخه محرومې پريښې دي. د جائداد ويش يوائې د هغه د زامنو پورې محدود پاتې شوی دی. د والد له خپلو تصرفاتو او يا د وروستني وارثانو له عملي اقداماتو څخه د لونړو هيڅ يادونه دواړه خواوې نه كوي بلكه له دې څخه به ئې څنګ كاوه.

﴿٢﴾ فريق اول سيد يوسف شاه دا دعوه لري چه د هغه پلار پخپل ژوند كښې جائداد تقسيم كړی وو. له نورو حصو برسيره ئې خسره نمبر (٨٠٧) كوم چه د ارتل په نامه سره ياديږي چه رقبه ئې تقريبا اتيا جريبه او اته بسوې ده سيد يوسف شاه ته وركړې ده كوم چه د ١٩٦٦ء سنه نه تر ١٩٦٧ء سنه

په بندوبست کښې بحال شوی دی. د فریق مذکور د بیان له مخې سلطان شاه دا زمکه پخپل نامه اړولې ده چه سید یوسف شاه ئې په خلاف محکمې ته درخواست ورکړی دی. په دې دوران کښې شاد علي خان د دواړو ترمنځ مصالحت هم کړی دی.

﴿۳﴾ فریق اول په مصالحت کښې د زرو روپو نقدو د ورکولو یادونه کوي کوم چه فریق ثاني په رضا او رغبت سره وصول کړي دي او د سند په توګه تحریري ستامپ وړاندې کوي.

﴿٤﴾ د فریق ثاني یعنې سلطان شاه بیان دی چه حیات شاه پخپل ژوند کښې زمکه د خپلو زامنو ترمنځ تقسیم کړې وه. بیا هم د ښې او بیکارې زمکې ترمنځ د رعایت له مخې ئې یوه زوی ته ښه زمکه کمه او بل زوی ته ئې بیکاره زمکه زیاته ورکړې و. فریق اول سید یوسف شاه سازوباز کړی وو او د خسره نمبر (۸۰۷) انتقال ئې په غلطې طریقې سره پخپل نامه باندې کړی وو کوم چه عدالت زما په درخواست باندې بیرته زما نامه ته واړولو.

﴿٥﴾ د فریق ثاني دفاعي بیان دی چه سلطان شاه د سید یوسف شاه سره کوم مصالحت کړی دی هغه نافذ نه دی ځکه چه سلطان شاه خپل ټول جائداد د خپلو زامنو ترمنځ ویشلې ده او په کوم جائداد باندې چه سلطان شاه مصالحت کړی دی هغه ئې خپل جائداد نه دی بلکه د هغه د زامنو جائداد دی. همدا وجه ده چه سلطان شاه یو زر روپۍ فریق اول ته بیرته ورکړي دي او مصالحت ئې کالعدم ګرځولی دی.

**د بیانونو نتیجه:** په دغو نکاتو باندې د غور له کولو څخه دا اندازه کیږي چه فریقین په څه نا څه طریقې سره لونړې له جائداد څخه په محرومولو باندې متفق دي کوم چه یو جاهلانه او غیر شرعي اقدام دی. که چیرته پلار سره له علمه خپل جائداد زامنو ته منتقل کړی وي او لونړې ئې له میراث څخه محرومې پریښي وي نو دا د هغه یو ناجائز او حرام حرکت دی اګر که قضاءً داسې اقدامات نافذ کیږي لیکن د خدای په نزد له دې جرم څخه د خلاصون او نجات لپاره دا ضروري دي چه مورث د خپلې غاړې خلاصولو لپاره د حق هر خاوند ته خپل حق ورکړي او که نه نو د حقوق العباد د حق تلفۍ په وجه انسان په الٰهي عذاب کښې ضرور مبتلا کیږي. بیا هم د والد تصرفات قضاءً نافذ کیږي. (الفتاوٰی الهندیه ج٤، ص١٤٩)

## د اصل دعوې په باره کښې شـــــرعي فیصله

تر کومه ځایه پورې چه د متنازعه جائداد په باره کښې د فریقینو بیانونه اړه لري نو ښکاره دې وي چه په حکومتي اسنادو کښې یواځې انتقال شرعاً نه د چا د ملکیت دلیل دی او نه په هغه پورې د ملکیت حق موقوف دی. نو ځکه د حیات شاه پخپل جائداد کښې د مالکانه تصرفاتو د نفاذ لپاره په سرکاري کاغذاتو کښې انتقال ضروري نه ده او کوم چه په باقاعده توګه په ګواهانو باندې ثابت شي هغه لره به اعتبار ورکول کیږي. لیکن تر کومه ځایه پورې چه وروسته له هغه څخه د یوسف شاه او سلطان شاه ترمنځ د تنازعه مسئله ده او بیا په هغې باندې



مصالحت هم شوی دی نو د هغه ثبوت په باقاعده توګه د ګواهانو په ګواهي پورې اړه لري. نو ځکه که چیرته د سلطان شاه په رضا او رغبت سره مصالحت یو ځل ثابت شي نو د باقاعده تسلیم څخه وروسته نه هغه او نه د هغه وارثان له هغه څخه انکار کولی شي. لیکن د دې مصلحت د نفاذ لپاره ضروري دي چه سلطان په کوم جائداد باندې مصالحت کوي هغه جائداد د سلطان شاه خپل ملکیت وي. او که نه نو بیا هغه په رښتیا هم دا جائداد پخپلو زامنو باندې ویشلی وي او هغوی ته به ئې هبه کړی او په قبضه کښې ورکړی وي. نو بیا په قبضې سره هبه تامه ګرځي او په دې جائداد باندې د سلطان شاه ملکیت نه پاتې کیږي ځکه چه یو څوک د بل چا په جائداد کښې مصالحت نه شي کولی او نه بل چا ته جائداد ورکولی شي اګر که پلار او زوې دې ولې نه وي. بیا هم د مصالحت د کولو په وخت کښې د مذکوره جائداد د سلطان شاه په ملکیت والي کښې د ثبوت لپاره باقاعده د ګواهانو ګواهي ضروري ده او که نه نو فریق ثاني ته په دې باندې قسم ورکول کیږي. که چیرته فریق اول د سلطان شاه په ملکیت باندې ګواهان ودروي نو بیا مصالحت قائم پاتې کیږي چه بیا ئې پابندي د دواړو لپاره ضروري ده او که ګواهان و نه دروي نو بیا د هغوی په غوښتنې باندې به فریق ثاني ته له ملکیت څخه په انکار باندې قسم ورکول کیږي. که چیرته فریق ثاني قسم وکړي نو د مصالحت دعوٰی کالعدم ګرځي او اصل فیصله به د فریقینو په قدیمو دعوو باندې کیږي. چه په هغې کښې د مدعي لپاره د ګواه د نه پیدا کیدو په صورت کښې مدعي علیه ته قسم ورکول کیږي نو ځکه متعلقه حاکم دې له فریقینو څخه د ګواهانو غوښتنه وکړي او یا دې د هغوی په قسم باندې فیصله وکړي.

## په مـــــدعي او مدعي علیه کښې قسم په کوم یوه دی

**سوال:** خالد په واجد باندې دعوٰی کړې ده چه تا له ما څخه یوولس زره روپۍ په قرض اخیستي دي او حال دا چه واجد ترې انکار کوي او له مدعي سره هیڅ ګواه هم نشته نو اوس به قسم مدعي ته ورکول کیږي او که مدعي علیه ته؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** قسم به شرعاً مدعي علیه کوي او د مدعي په اختیار کښې د دعوې د اثبات لپاره د ګواهانو وړاندې کول لازم وي. په صورت مسئوله کښې د دې تنازعې د حل لپاره به له مدعي څخه د ګواهانو غوښتنه کیږي. که چیرته هغه ګواهان نه شو وړاندې کولی نو مدعي علیه ته به قسم ورکول کیږي خو په دې شرط چه مدعي د قسم د ورکولو غوښتونکی وي.

قال رسول اللهﷺ البینة علی المدعی و الیمین علی من انکر. و فی روایة و الیمین علی المدعٰی علیه. (جامع الترمذی ص ١٦٠، ابواب الاحکام، باب ما جاء فی ان البینة علی المدعی و الیمین علی المدعٰی علیه)

عن ابن عباسؓ ان رسول اللهﷺ قال لو یعطی الناس بدعواهم ادعی ناس دماء رجال و اموالهم و لکن الیمین علی المدعٰی علیه. (سنن ابن ماجة ص١٦٨، ابواب الاحکام، باب البینة علی المدعی و الیمین علی المدعٰی علیه) و مثله فی صحیح المسلم ج٢، ص ٧٤، کتاب الاقضیة، باب الیمین علی المدعٰی علیه.

## د زمکي په تنازعه (شخړه) کښي د فریقینو تر منځ شــــــرعي فیصله

**سوال:** څه فرمایي علماء کرام چه د زمکي په یوې ټکړې باندې د دوو فریقینو ترمنځ شخړه ده۔ فریق اول امیر حمزه او د اسي نور دعوی کوي چه دا متنازعه زمکه زمونږ ده او فریق ثاني دلبر دین او د اسي نور د فریق اول د دعوې په رد کښي فرمایي چه دا زمکه د دوی پلار زمونږ پلار ته د دې مشترك مال د حق په بدل کښي چه د مشترك مالونو څخه هغه ته رسیده ورکړې ده یعني زمونږ په والد باندې ئې دا زمکه پلورلې ده۔ لهذا اله تاسو څخه هیله کیږي چه د فریقینو ترمنځ د قرآن او سنتو په رڼا کښي دا تنازعه فیصله کړئ؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په صورت مسئوله کښي فریق اول امیر حمزه او د اسي نور مدعیان دي او فریق ثاني دلبر، دین محمد او د اسي نور مدعي علیهم دي۔ فریق ثاني د فریق اول د دعوې په رد کښي دا ویلي دي چه د زمکي دا متنازعه ټکړه ستاسو مورث (پلار یا والد) زمونږ د پلار د حق په بدل کښي (یعني زمونږ د والد د هغه مال په بدل کښي چه له مشترکه مال څخه هغه ته رسیده او کوم چه ستاسو مورث (والد) مصرف کړي وو) ورکړې ده۔ نو اوس د شرعي ضابطي مطابق د فیصلي صورت به داوي چه د دافع به خپله دفع په معتبره ګواهي سره ثابتوي۔ د دفع د اثبات په صورت کښي فیصله به د مدعي علیهم په حق کښي کیږي۔ او په بل صورت کښي به مدعي یعني فریق اول ته قسم په علم باندې ورکول کیږي۔

قال العلامة محمد کامل الطرابلسیؒ: سئلت فی رجل ادعی علی آخر عقاراً انهٗ تلقاه با لارث من ابیه فاجابه المدعی علیه بانّی اشتریته من ابیك حال حیاته بکذا و کذا من القروش و انه فی حوضی و تصرفی فی مدة تزید علی خمسین سنة مع حضورك و علمك و سکوتك بلا عذر شرعی هل یکون جواب المدعی علیه من باب الاقرار با لتلقی من ابیه فیحتاج الی بیّنة تشهد لهٗ با لشراء و لا ینفعه وضع الید ع التصرف المدة المذکورة و لا تکون الحادثة من قبیل ما مضی علیه خمس عشرة سنة، فاجبت نعم جواب المدعی علیه من قبیل دعوی التلقی من مورث المدعی و دعوی التلقی من مورثه اقرارٌ له با لملك ثم دعواه الانتقال الیه منه تحتاج الی بیّنة لان کل مدع یحتاج الی البینة و لا ینفعه وضع الید المدة المذکورة مع الاقرار المذکور و لیس هٰذا من باب ترك الدعوی بل من باب المؤاخذة با لاقرار و من اقر بشیء لغیره اخذ باقراره و لو کان فی یده احقاباً کثیراً لا تعد الخ. (الفتاوی الکاملیة ص۱۲۳، کتاب الدعوی)

و فی مجلة الاحکام: اذا ثبت من ادعی دفع الدعوی دفعه تندفع دعوی المدعی و لا یحلف المدعی الاصلی بطلب صاحب الدفع. فان نکل المدعی عن الیمین یثبت دفع المدعی علیه و ان حلف تعود دعواه الاصلیة. (المجلة الاحکام العدلیة المادة ۱۶۳۲، کتاب الدعوی، الفصل الثانی فی دفع الدعوی)

قال العلامة خالد الاتاسیؒ: و ان کان فعل غیره کما اذا کان بقوله او دعنیه الغائب او آجرنیه الٰی قوله یحلفه علی العلم ای علی انهٗ لا یعلم بقول صاحب رد المحتار و یحلفه علی العلم لانه علی فعل الغیر. (شرح المجلة ج۵، ص۷۵، کتاب الدعوی، الفصل الثانی فی دفع الدعوی)

قال العلامة علی حیدرؒ: و اذا حلف المدعی تعود دعواه الاصلیة و فی هٰذه الحال یکون فی اصل الدعوی



احتمالان. الاحتمال الاوّل ان تثبت دعوه المدعی نظراً لکون دفع المدعی علیه یتضمن الاقرار و فی هٰذا الحال یحکم باصل الدعوی کما فی المثال المذکور آنفاً حیث ان دفع المدعی علیه الاداء و حلف المدعی الیمین علی عدم الاداء یحکم علی المدعی علیه باد المبلغ المدعی به للمدعی. (درر الحکام شرح مجلة الاحکام ج۴، ص۲۲۴، کتاب الدعوی، الفصل الثانی)

د درر الحکام له عبارت څخه دا ځرګنده شوه چه د مُدعي فریق د قسم د کولو په صورت کښي چه کله مدعي علیهم د خپلي دفع له اثبات څخه عاجز شي نو دعوه به مُدعي فریق وګټي یعني په دې صورت کښي به فیصله د هغه په حق کښي کیږي۔

## مُدعي مدعي علیه ته له قسم ورکولو څخه وروسته د ګواه وړاندې کول

**سوال:** د دې مسئلي په باره کښي علماء دین څه فرمایي چه د دوو کسانو ترمنځ یوه ټکړه متنازعه زمکه ده۔ مدعي د څه عذر له مخې ګواهان نه شو حاضرولی نو مدعي ته د قسم له ورکولو څخه وروسته فیصله وشوه او له فیصلي وروسته د مدعي ګواهان پیدا شول نو آیا اوس مدعي ګواهان وړاندې کولی شي او که نه او آیا د هغو شهادت به قبلیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د نزاع د حل لپاره ګواهان اصلي او بنیادي حیثیت لري او که مدعي په څه وجه په مقدمه کښي ګواهان وړاندې نه کړي شو او قاضي مدعي علیه ته قسم ورکړي او فیصله ئې وکړه او وروسته له دې نه مدعي ګواهان پیدا کړل او غواړي چه وړاندې ئې کړي نو شرعا ئې وړاندې کولی شي او د هغو ګواهي به قبلیږي او تیره شوې فیصله به کالعدم وګرځي۔

لما قال العلامة ابن عابدینؒ: (سوال) هل تقبل البیّنة لو اقامها المدعی بعد یمین المدعی علیه؟
(الجواب) تسمع البیّنة و تقبل علی ما هو الصواب کما صرح به فی شرح الملتقی و التنویر و غیرهما من الدعوی.

قال فی التنویر: و تقبل البیّنةُ لو اقامها المدعی بعد یمین المدعی علیه عند العامة و هو الصحیح. (العقود الدریة فی الفتاوی التنقیح الحامدیة ج۲، ص۲۱/۲۲، کتاب الدعوی)

قال العلامة الحصکفیؒ: و تقبل البیّنة لو اقامها المدعی و ان قال قبل الیمین لا بیّنة لی بعد یمین المدعی علیه کما تقبل البیّنة بعد القضاء با لنکول عند العامة و هو الصحیح....... و لان الیمین کا لخلف عن البیّنة فاذا جاء الاصل انتهی حکم الخلف کانهٗ لم یوجد اصلاً. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۴، ص۴۷۲، کتاب الدعوی) و مثله فی البحر الرائق ج۷، ص۲۰۶، کتاب الدعوی.

## د مـــــدعي علیه په تصرفاتو باندې د خوښۍ له ښکـــــارولو څخه وروسته د دعوې حکم

**سوال:** د یوه سړي له جومات سره لګیدلې یوه کوټه ده۔ د کلي خلکو ورته وویل چه دا کوټه مونږ ته راکړه چه مونږ ئې په جومات کښي داخله کړو او خلك به لمونځونه پکښي وکړي۔ د کوټي مالك ورته وویل چه زه پیسې نه اخلم بلکه دا کوټه د خدای په نامه وقف کوم۔ په دې باندې د

## د زمکې په تنازعه (شخړه) کښې د فریقینو تر منځ شـــــرعي فیصله

د زمکې په یوې ټکړې باندې د دوو فریقینو ترمنځ شخړه ده.

**سوال:** څه فرمایي علماء کرام چه د زمکې په یوې ټکړې باندې د دوو فریقینو ترمنځ شخړه ده او فریق ثاني دلبر دین او داسې نور د فریق اول د دعوې په رد کښې فرمایي چه دا زمکه د دوی پلار زمونږ پلار ته په بدل کښې د مشترك مالونو څخه هغه ته رسیده ورکړې ده یعني د دې مشترك مال د حق په بدل کښې چه د مشترك مالونو څخه هغه ته رسیده ورکړې ده یعني زمونږ په والد باندې ئې دا زمکه پلورلې ده. لهذا له تاسو څخه هیله کیږي چه د فریقینو ترمنځ د قرآن او سنتو په رڼا کښې دا تنازعه فیصله کړی؟ بینوا توجروا.

فریق اول امیر حمزه او داسې نور دعوٰی کوي چه دا متنازعه زمکه زمونږ ده او فریق ثاني دلبر

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په صورت مسئوله کښې فریق اول امیر حمزه او داسې نور مدعیان دي او فریق ثاني دلبر، دین محمد او داسې نور مدعي علیهم دي. فریق ثاني د فریق اول د دعوې په رد کښې دا ویلي دي چه د زمکې دا متنازعه ټکړه ستاسو مورث (پلار یا والد) زمونږ د پلار د حق په بدل کښې (یعني زمونږ د والد د هغه مال په بدل کښې چه له مشترکه مال څخه هغه ته رسیده او کوم چه ستاسو مورث (والد) مصرف کړي وو) ورکړې ده. نو اوس د شرعي ضابطې مطابق د فیصلې صورت به داوي چه دافع به خپله دفع په معتبره ګواهي سره ثابتوي. د دفع د اثبات په صورت کښې فیصله به د مدعي علیهم په حق کښې کیږي. او په بل صورت کښې به مدعي یعني فریق اول ته قسم په علم باندې ورکول کیږي.

قال العلامة محمد کامل الطرابلسیؒ: سئلت فی رجل ادعٰی علی آخر عقاراً انهٗ تلقاه با لارث من ابیه فاجابه المدعی علیه بانّی اشتریته من ابیك حال حیاته بکذا و کذا من القروش و انه فی حوضی و تصرفی فی مدة تزید علی خمسین سنة مع حضورك و علمك و سکوتك بلا عذر شرعی هل یکون جواب المدعی علیه من باب الاقرار با لتلقی من ابیه فیحتاج الٰ بیّنة تشهد لهٗ با لشراء و لا ینفعه وضع الید ع التصرف المدة المذکورة و لا تکون الحادثة من قبیل ما مضی علیه خمس عشرة سنة، فاجبت نعم جواب المدعٰی علیه من قبیل دعوی التلقی من مورث المدعی و دعوی التلقی من مورثه اقرارٌ لهٗ با لملك ثم دعواه الانتقال الیه منه تحتاج الی بیّنة لان کل مدع یحتاج الی البینة و لا ینفعه وضع الید المدة المذکورة مع الاقرار المذکور و لیس هٰذا من باب ترك الدعوٰی بل من باب المزاخذة با لاقرار و من اقر بشیء لغیره اخذ باقراره و لو کان فی یده احقاباً کثیراً لا تعد الخ. (الفتاوی الکاملیة ص۱۲۳، کتاب الدعوی)

و فی مجلة الاحکام: اذا ثبت من ادعٰی دفع الدعوٰی دفعه تندفع دعوی المدعی و لا یحلف المدعی الاصلی بطلب صاحب الدفع. فان نکل المدعٰی عن الیمین یثبت دفع المدعٰی علیه و ان حلف تعود دعواه الاصلیة. (المجلة الاحکام العدلیة المادة ۱۶۳۲، کتاب الدعوٰی، الفصل الثانی فی دفع الدعوی)

قال العلامة خالد الآتاسیؒ: و ان کان فعل غیره کما اذا کان بقوله او دعنیه الغائب او آجرنیه الٰی قوله یحلفه علی العلم ای علی انهٗ لا یعلم بقول صاحب رد المحتار و یحلفه علی العلم لانه علی فعل الغیر. (شرح المجلة ج۵، ص۷۵، کتاب الدعوٰی، الفصل الثانی فی دفع الدعوٰی)

قال العلامة علی حیدرؒ: و اذا حلف المدعی تعود دعواه الاصلیة و فی هٰذه الحال یکون فی اصل الدعوٰی



احتمالان. الاحتمال الاوّل ان تثبت دعوه المدعی نظراً لکون دفع المدعٰی علیه یتضمن الاقرار و فی هٰذا الحال یحکم باصل الدعوٰی کما فی المثال المذکور آنفاً حیث ان دفع المدعٰی علیه الاداء و حلف المدعی الیمین علی عدم الاداء یحکم علی المدعٰی علیه باد المبلغ المدعی به للمدعٰی. (درر الحکام شرح مجلة الاحکام ج٤، ص٢٢٤، کتاب الدعوٰی، الفصل الثانی)

د درر الحکام له عبارت څخه دا ښکاره شوه چه د مُدعي فریق د قسم د کولو په صورت کښې چه کله مدعي علیهم د خپلې دفع له اثبات څخه عاجز شي نو دعوه به مُدعي فریق وګټي یعني په دې صورت کښې به فیصله د هغه په حق کښې کیږي.

## مُدعي مدعي علیه ته له قسم ورکولو څخه وروسته د ګواه وړاندې کول

**سوال:** د دې مسئلې په باره کښې علماء دین څه فرمایي چه د دوو کسانو ترمنځ یوه ټکړه متنازعه زمکه ده. مدعي د څه عذر له مخې ګواهان نه شو حاضرولی نو مدعي ته د قسم له ورکولو څخه وروسته فیصله وشوه او له فیصلې وروسته د مدعي ګواهان پیدا شول نو آیا اوس مدعي ګواهان وړاندې کولی شي او که نه او آیا د هغو شهادت به قبلیږي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د نزاع د حل لپاره ګواهان اصلي او بنیادي حیثیت لري او که مدعي په څه وجه په مقدمه کښې ګواهان وړاندې نه کړی شو او قاضي مدعي علیه ته قسم ورکړ او فیصله ئې وکړه او وروسته له دې نه مدعي ګواهان پیدا کړل او غواړي چه وړاندې ئې کړي نو شرعا ئې وړاندې کولی شي او د هغو ګواهي به قبلیږي او تیره شوې فیصله به کالعدم وګرځي.

لما قال العلامة ابن عابدینؒ: (سوال) هل تقبل البیّنةُ لو اقامها المدعی بعد یمین المدعی علیه؟ (الجواب) تسمع البیّنة و تقبل علی ما هو الصواب کما صرح به فی شرح الملتقٰی و التنویر و غیرهما من الدعوٰی.

قال فی التنویر: و تقبل البیّنةُ لو اقامها المدعی بعد یمین المدعٰی علیه عند العامة و هو الصحیح. (العقود الدریة فی الفتاوی التنقیح الحامدیة ج۲، ص۲۱/۲۲، کتاب الدعوٰی)

قال العلامة الحصکفیؒ: و تقبل البیّنة لو اقامها المدعی و ان قال قبل الیمین لا بیّنة لی بعد یمین المدعٰی علیه کما تقبل البیّنة بعد القضاء با لنکول عند العامة و هو الصحیح...... و لان الیمین کا لخلف عن البیّنة فاذا جاء الاصل انتهٰی حکم الخلف کانهٗ لم یوجد اصلاً. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج٤، ص٤٧٢، کتاب الدعوٰی) و مثله فی البحر الرائق ج۷، ص۲۰۶، کتاب الدعوٰی.

## د مـــــدعي علیه په تصرفاتو باندې د خوښۍ له ښکــــــارولو څخه وروسته د دعوې حکم

**سوال:** د یوه سړي له جومات سره لګیدلې یوه کوټه ده. د کلي خلکو ورته وویل چه دا کوټه مونږ ته راکړه چه مونږ ئې په جومات کښې داخله کړو او خلك به لمونځونه پکښې وکړي. د کوټې مالك ورته وویل چه زه پیسې نه اخلم بلکه دا کوټه د خدای په نامه وقف کوم. په دې باندې د

کلي خلکو دا کوټه په جومات کښې شامله کړه او تقریبا تر دوو کلونو پورې د کلي خلکو او پخپله د دغې کوټې مالکان او نور ورونه ئې لمونځونه پکښې کول۔ جومات باقاعده امام هم لري۔ له دوو کلونو وروسته د کوټې د مالك نورو ورونو دعوی وکړه چه دا کوټه کومه چه په جومات کښې شامله شوې ده زما ده او له خپل ورور او نورو کلي والي سره په جګړه ده او خلك په جومات کښې د لمونځونو له کولو څخه هم منع کوي۔ په داسې حال کښې چه دغه سړې پخپله هم تر دوو کلونو پورې په همدې جومات کښې لمونځونه ادا کړي دي او د خپل ورور په فیصله باندې هم لومړی خوښ وو او هیڅ ډول اعتراض ئې پرې و نه کړ۔ نو اوس له دوو کلونو وروسته د ده دعوی کول او د مقدمې چلول څنګه دي آیا شرعائې د دعوی د اوریدو قابله ده او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د صورت مسئوله مطابق کله چه د کلي خلك کوټه په جومات کښې شامله کړه او مالك ئې د خدای په نامه وقف کړله او ټول ورونه ئې پرې راضي هم وو او تر دوو کلونو پورې ئې اعتراض هم پرې و نه کړ نو د دې رضامندی له مخې د هغه د دعوې حق له منځه تللی دی۔ نو څکه که چېرته په هغوی کښې اوس کوم یو دعوی وکړي نو دعوی به ئې شرعا د اوریدو قابله نه وي۔

لما قال العلامة محمد کامل الطرابلسیؒ: سئلت فیمن باع عقاراً و سلمه للمشتری و تصرّف فیه زماناً و جاره او غیره حاضر یری البیع و التسلیم و التصرّف و هو ساکتٌ بلا مانع ثمّ یقوم و یدعی انهٗ کله او بعضه هل لا تسمع دعواه هٰذه. فالجواب: لا تسمع لما تقرر ان من یری غیره یبیع ارضاً او داراً فتصرّف فیه المشتری زماناً و الرائی ساکتٌ تسقط دعواه. (التاوی الکاملیة ص ۱۱٤، کتاب الدعوٰی، مطلب لا تسمع دعوی من رأی البیع و التصرف)

قال العلامة خیر الدین الرملیؒ: (سئل) فیما لو باع شیئاً و بعض اقاربه یطلع علی بیعه و قبضه و تصرف المشتری فیه زماناً ثم ادعی فیه ملکاً هل تسمع دعواه ام لا. (اجاب) قال کثیرٌ من علمائنا اذا باع شخص عقالاً او حیواناً او ثوباً او نحو ذٰلك و قبضه المشتری و تصرف فیه تصرف الملاك و بعض اقاربه مطلع علی ذٰلك ثم ادعاه او ادعی بعضه انه ملکه لا تسمع دعواه لان ذٰلك اقرارٌ منه بانه ملك البائع قطعا للاطماع الفاسدة و سدّ الباب التزویر و التلبیس الخ. (الفتاوی الخیریة علی هامش تنقیح الحامدیة ج۲، ص۷٦، کتاب الدعوٰی و مطالبه، مطلب لو باع شیئاً الخ) و مثله فی فتاوٰی تنقیح الحامدیة ج۲، ص۱۵، کتاب الدعوٰی، باع داراً و قریبه حاضرٌ تترك الدار....... الخ

## د کـــــاغذي ثبوت (د اسنادو له وړاندې کولو) څخه وروسته د مـــــدعي علیه انکار کول

**سوال:** څه فرمایي علماء کرام د دې مسئلې په باره کښې چه فریقین (فریق اول محمد خان او د اسې نور او فریق ثاني اجمل خان او د اسې نور) په تحریري توګه ولیکل چه مونږ په متفقه توګه په شرعي فیصله راضي یو او شرعي فیصله کوو۔ بیا یوې دیني مدرسې ته راغلل علماوو ته



ئې داسې لیکل وړاندې کړل چه مونږ فریق اول محمد خان او د اسې نور به تر شپږو میاشتو پورې د خپل حق د ثبوت لپاره کاغذات او اسناد وړاندې کوو او که مو چېرته په اسنادو سره خپل حق نه شو ثابتولی نو خپله قبضه پرېږدو۔ فریق ثاني (اجمل خان او د اسې نور) هم په دې خبرې باندې خوښي ښکاره کړه چه صحیح ده۔ که چېرته فریق اول کاغذات او اسناد وړاندې کړل نو مونږ له خپلې دعوې تیرېږو۔ له دې وروسته فریق اول (محمد خان او د اسې نور) تر شپږو میاشتو پورې د خپل حق کاغذي ثبوت وړاندې کړ نو فریق ثاني (اجمل خان او د اسې نور) وویل چه اوس مونږ هم د خپل حق ثبوت وړاندې کوو۔ دا ئې وویل او خبره ئې معطله یعني ځنډمنه کړه او له خپلې لیکل شوې وعدې څخه په شا شو۔ اوس تاسو د مقدس شریعت له مخې دا مسئله واضحه کړی چه د داسې سړي په باره کښې د مقدس شریعت څه حکم دی؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د داسې سړي دا حکم دی چه حاکم به ئې مجبوروي چه دعوی او مقدمه به چلوي او بیا به کتل کیږي چه فیصله به د کوم فریق په حق کښې کیږي۔

قال العلامة خالد آتاسی رحمه اللّٰه: اذا اصر المدعی علیه علی سکوته الخ فیحبس حتی یقر او ینکر. (شرح المجلة تحت المادة ۱۸۲۲، ج۲، ص۱۱۹، باب فی بیان احکام کتاب القاضی)

قال العلامة الحصکفیؒ: و اذا قال المدعی علیه لا اقر و لا انکر لا یستخلف بل یحبس لیقر او ینکر الخ. (الدر المختار ج٤، ص٤۷۱، کتاب الدعوٰی) و مثله فی البحر الرائق، ج٤، ص٤۷۱، کتاب الدعوٰی) و مثله فی البحر الرائق ج۷، ص۲۰۳، کتاب الدعوٰی.

## د مدعٰی به د موجودوالي په صورت کښې یو ائحې اشاره کافي ده

**سوال:** د افغانستان د اسلامي امارت د خوست په ولایت کښې په یوه متنازعه زمکه باندې د دوو ډلو ترمنځ دعوی ده۔ فریق اول (مدعي) محمد قاسم دی او فریق ثاني (مدعي علیه) محمد قیوم دی۔ د دې دعوې د تصفیې لپاره دواړه په مشترکه توګه دوه کسان محکمین مقرر کړل۔ یو محکم مولانا نور الحق صاحب او بل محکم مولانا سید ګلزار صاحب دی۔ مدعي او مدعي علیه دواړو نومړي محکمان علماء متنازعه زمکې ته بوتلل او پخپل لاس سره د اشارې په کولو سره دوی ته وښودله او محکمینو حضراتو پخپله مشاهده وکړه او زمکه ئې وکتله۔ له دې نه وروسته په همدې موقع باندې مدعي چه محمد قاسم دی خپله دعوی ولیکله او په همدې ځای کښې ئې محکمینو حضراتو ته ورکړه تر څو چه هغوی دا تحریر ولولي او څه فیصله وکړي۔ تحریري دعوی ئې چه وکتله له محکمینو څخه یوه محکم مولانا سید ګلزار صاحب وویل چه دا دعوی بالکل د اوریدو قابله نه ده څکه چه په دې کښې د زمکې حدود اربعه نه ده لیکل شوې۔ د حدود اربعه لیکل ضروري دي او دلیل ئې دا دی چه: معلومة المدعی به ان کان عقاراً تعیین ببیان حدوده. (شرح المجلة لخالد الآتاسی ج۵، ص۱٤)

په دې باندې دوهم محکم مولانا نور الحق صاحب وویل چه صورت دعوی صحیح ده

ځکه چه په دې متنازعه زمکه کښې مونږ ولاړ او حاضر یو او پخپلو سترګو ئې وینو لهذا د حدودو د لیکلو ضرورت نشته۔ او د ده دلیل دا دی چه: و التعریف با لاشارة یکون صحیحاً فی کل نوع من المدعی به الموجود منقولاً او کان عقاراً و الوصف و التعریف یکون فی المدعی به الغائب و غیر الموجود. (درر الحکام ج٤، ص١٦١)

نو اوس پوښتنه دا ده چه:

﴿۱﴾ که چېرته متنازعه زمکه کښې پخپله قاضي یا محکم حاضر وي او وئې ګوري بیا د حدودو لیکل ضروري دي او که نه؟

﴿۲﴾ په پورتني دواړو صورتونو کښې د کوم یوه محکم دلیل د فقه حنفي موافق دی او کوم صورت دعوٰی چه دوی ته وړاندې کړی شوې ده هغه صحیح ده او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** کومه متنازع شی چه کله د قضاء په مجلس کښې د تصفیې لپاره حاضر وي نو د هغې د تعین لپاره یواځې اشاره کافي وي او د نورو صفاتو او حدودو د بیانولو ضرورت ئې نه وي۔ یواځې د اشارې په کولو سره مدعٰی بهٖ متعین کیږي۔ بیا هم که چېرته متنازعه شی د قضاء په مجلس کښې حاضر نه وي نو د حکمینو یا په محکمه کښې د قاضي په مخکښې د هغه شي له اوصافو سره تعریف او د حدود اربعه بیانول ضروري دي تر څو چه د نزاع د ختم کولو لپاره مدعٰی بهٖ تولو ته ښکاره شي۔

په صورت مسئوله کښې چونکه حکمین د مدعٰی بهٖ زمکې سره ولاړ دي او په اشارې سره د هغې تعین ممکن دی او له هغې وروسته جهالت او د اسې نور نه پاتې کیږي نو ځکه د حکم مولانا نور الحق صاحب خبره صحیح ده۔

لما فی شرح المجلة: معلومیة المدعی به تکون با لاشارة او الوصف و التعریف هو اذا کان عیناً منقولاً و کان حاضراً فی مجلس المحاکمة فا لاشارة کافیةٌ. (المادة ١٦٢٠، دُرر الحکام ج٤، ص١٨٥، کتاب الدعوٰی)

و فیه ایضاً: کذٰلك لا یشترط بیان حدود العقار اذا کان مستغنیاً عن التحدید لشهرته. (المادة ١٦٢٣، درر الحکام ج٤، ص١٩٦، کتاب الدعوٰی)

و فیه المسئلة الثانیة لا یشترط عند الاممین بیان حدود العقار اذا کان مستغنیاً عن التحدید لشهرته لان الشهرة مغنیة عن التحدید و قد حصل المقصود بلا تحدید. (درر الحکام ج٤، ص١٩٩، کتاب الدعوٰی)

## د مدعٰی بهٖ په مقدار کښې غلطي

**سوال:** جناب مفتي صاحب! د زمکې په یوه تنازعه کښې فریقینو زه حکم جوړ کړی یم۔ اوس مدعي چه په کومې زمکې باندې دعوٰی کړې ده په هغې کښې حدود اربعه خو صحیح بیان کړي دي لیکن د زمکې په اندازه کښې ئې غلطي کړې ده۔ دا زمکه په اصل کښې شل جریبه ده په داسې حال کښې چه مدعي شپاړل جریبه یاده کړې ده۔ د مدعي علیه وکیل یو مولوي صاحب دی او هغه وایي چه متنازعه زمکه شل جریبه ده او مدعي څوارلس جریبه یاده کړې ده نو له دې وجهې دا دعوٰی صحیح نه ده نو آیا واقعي دا دعوٰی صحیح نه ده او که صحیح نه ده نو په کوم دلیل صحیح نه ده؟ بینوا توجروا۔



**الجواب باسم ملهم الصواب:** شرعا د دعوې د صحت لپاره مدعي لره په کار دي چه د مدعٰی بهٖ صحیح او درست حدود اربعه بیان کړي یعنې د حدود اربعه صحیح بیانول ئې ضروري دي۔ که چېرته له مدعي څخه د زمکې په مقدار کښې غلطي وشي نو دا غلطي د دعوې په صحت باندې کوم اثر نه کوي او دعوٰی به ئې درسته وي۔ لهذا په صورت مسئوله کښې د مدعي دعوه صحیح ده او دا صحیح نه ده چه د مدعي علیه وکیل د مدعي دعوه رده کړي۔

لما فی مجلة الاحکام: اذا اصاب المدعی فی بیان الحدود و اخطأ فی بیان مقدار ذراع العقار او دونه لا یمنع صحة دعواه. (مجلة الاحکام المادة ١٦٢٤)

## د فریقینو تر منځ شرعي فیصله

**فریق اول:** فاروق شاه د احمد شاه زوی۔

**فریق ثاني:** عرب خان د شیر علي خان زوی د پانی متني اوسیدونکي۔

د فقهاء اسلام د مدعي او مدعي علیه له تعریف: المدعی من یلتمس خلاف الظاهر و المدعی علیه من یلتمس بظاهر. (شرح المجلة لخالد آتاسی ج٥، ص٥) و فی الهدایة: المدعی من یتمسك بغیر الظاهر و المدعی علیه من یتمسك بظاهر الٰی آخره (ج٣، ص٣٠٠) و قال محمد: المدعی علیه هو المنکر. (الهدایة ج٣، ص٣٠٠)

څخه څرګندیږي چه په دې تنازعه کښې دواړه فریقه مدعیان دي۔ لهذا مونږ لومړی د دواړو ډلو د دعوو جائزه اخلو چه په دوی کښې د کوم یوه دعوٰی د شرعي اصولو مطابقه او کوم یو د براهینو له مخې خپل مقصد ثابتوي۔

د فاروق شاه دعوٰی دا ده چه نعیم شاه خپل تول جائداد زما د پلار احمد شاه د انبالي زوی څو کاله مخکښې د خپل ورور په نامه کړی وو او سند ئې له ما سره موجود دی۔

**څېړنه:** دا دعوٰی د څو وجوهاتو له مخې د خپل مقصد په ثابتولو کښې ناقصه ده۔

﴿۱﴾ د کوم استام حواله چه مدعي پخپله دعوې کښې ورکړې ده او له بیان سره هغه ستام منسلك دی په هغه کښې ګواهان درج نه دي۔ په داسې حال کښې چه یواځې استام د دعوې د اثبات لپاره د قبول وړ نه دی۔ د فقهاء کرامو فیصله ده چه یواځې په لیکلو به اعتماد نه کیږي۔

کما قال العلامة ابن عابدینؒ: لا یعتمد علی الخط و لا یعمل بمکتوب الوقف الذی علیه خطوط القضاة الماضین. (رد المحتار ج٥، ص٤٣٥)

د دې لپاره چه الخط یشبه الخط له وجهې تحریر یا لیکل د خبر واحد په حکم کښې راځي او نا قابل احتجاج دی۔

﴿۲﴾ مدعي فاروق شاه د خپل ارث د دعوٰی لپاره ګواهان هم نه شو وړاندې کولی په داسې حال کښې چه د مدعي په ذمه د شرعي قانون مطابق د دعوې د اثبات لپاره د ګواهانو وړاندې کول

لازمي دي. لقوله علیه الصلٰوة و السلام: البینة علی المدعی و الیمین علی من انکر. (الحدیث)

﴿۳﴾ که چېرته نعیم شاه خپل ټول جائداد خپل ورور احمد شاه ته ور هبه کړې هم وي لیکن هغه خپله ورور ته موهوبه زمکې په قبضه کښې نه وي ورکړې په داسې حال کښې چه د هبې د تام والي لپاره شرعي قبضه ضروري ده او له قبضې پرته هبه نه صحیح کیږي. چونکه مدعي هم دا اقرار کوي چه په قبضه کښې مې نه دی ورکړی لهذا هبه نه ده تامه شوې نو ځکه مدعي علیه ته د قسم د ورکولو حاجت پاتې نه شو.

کما قـــال ابراهیم الحلبیؒ: الهبة هی تملیك عین بلا عوض و تصح بایجاب و قبول و تتم با لقبض الکامل. فان قبض فی المجلس بلا اذن صح و بعده لا بد من الاذن. (ملتقی الابحر علی صدر مجمع الانهر ج۳، ص۴۸۹ الی ۴۹۲، کتاب الهبة)

قال العلامة المرغینانیؒ: الهبة عقد مشروع و تصح با لایجاب و القبول و القبض. اما الایجاب و القبول فلانه عقد و العقد ینعقد با لایجاب و القبول. و القبض لا بد منه لثبوت الملك........ و لنا قوله علیه السلام لا یجوز الهبة الا مقبوضة...... فان قبضه الموهوب له فی المجلس بغیر اذن الواهب جاز استحساناً و ان قبض بعد الافتراق لم یجز. (الهدایة ج۳، ص۲۸۱، کتاب الهبة)

و فی مجلة الاحکام: تنعقد الهبة با لایجاب و القبول و تتم با لقبض قال سلیم رستم باز تحتها الکامل لانها من التبرعات و التبرع لا یتم الا با لقبض. (شرح المجلة ص۴۶۲)

﴿۴﴾ په مکتوب (استام) کښې راغلي چه احمد شاه د انبالي زوی د نعیم شاه د انبالي زوی یو اځنی وارث دی او حال دا چه احمد شاه ولد انبالي له نعیم شاه څخه مخکښې وفات شوی دی او د وراثت تعلق له مرګ څخه وروسته وي. لهذا کله چه احمد شاه د نعیم شاه پخپله وارث نه شي جوړېدلی نو د ده اولاد خو په طریقه اولٰی سره وارث نه شي جوړېدلی ځکه چه د نعیم شاه ورور شیر علي ولد انبالي ژوندی دی لهذا د نعیم شاه له مړینې وروسته به د هغه جائداد د شیر علي په نامه کیږي.

د عرب خان ولد شیر علي دعوٰی دا ده چه نعیم شاه ولد ابنالي د خپل هوش او حواس د سالمیت په حالت کښې ۱۵ جریبه مارکیټ چه دولس دوکانونه پکښې شتون لري او درې جریبه زمکه چه اوبه هم لري سره له اوبو په ما باندې خرڅه کړې ده او له ما سره ګواهان، استام پیپر او د سرکاري اسناد و فوټوسټیټ او د نعیم شاه د خپل آواز کیسټ هم موجود دی.

**څېړنه:** د شرعي قانون مطابق د یوې شخړې د حل لپاره اصول دا دي چه مدعي د خلاف ظاهر د اثبات لپاره ګواه وړاندې کوي او که چېرته له هغه سره ګواهان موجود نه وي نو بیا د مدعي په غوښتنه به مدعي علیه ته قسم ورکول کیږي. لما قال علیه الصلٰوة و السلام: البینة علی المدعی و الیمین علی من انکر. (الحدیث)

نو ځکه په عرب شاه باندې د دعوې د اثبات لپاره ګواه وړاندې کول دي کوم چه هغه وړاندې کړ.



(۱) چمن خان (۲) عبد الرحمٰن د قدرت الله زامن د پانی. اوسیدونکو کلمه وویله او ګواهي ئې ورکړه چه نعیم شاه مرحوم ۱۵ جریبه مارکیټ او درې بسوې زمکه په مسمٰی عرب خان د شیرعلي په زوی باندې پلورلې ده. مونږ د دې ګواهي ورکوو.

د دغو دواړو ګواهانو نه پرته واحد شاه، راحت شاه او ګل نبي هم ګواهي ورکړه چه نعیم شاه د خپل مارکیټ او درې بسوې زمکه مالك عرب خان ګرځولی دی. او نعیم شاه مونږ ګواهان کړي وو. مونږ هم د دې ګواهي ورکوو چه نعیم شاه پخپل ژوند کښې د مذکوره جائداد مالك عرب خان ګرځولی وو. او له دې سره ئې اقرار نامه نمبر ۱۶۷۴۶ په تاریخ د ۱۹۹۸/۴/۳ ء سنه کښې لیکل شوې د ګواهانو له دستخطونو سره وړاندې کړه چه په هغې کښې لیکلي دي چه زه مسمٰی نعیم شاه ولد انبالي خان ۷۵ کلن د دې لیکنې په ذریعه اقرار کوم چه زما د ذاتي ملکیت ۱۵ جریبه مارکیټ کوم چه په پاني چوك کښې واقع دی او دولس دوکانونه پکښې دي په عوض د پنځه ویشتو زرو روپو في دوکان چه ټول قیمت درې لکه روپۍ کیږي او سربیره پر دې یوه ټکړه زمکه چه درې بسوې آبي او فصلي ده في بسوه په عوض د دوه نیمو زرو روپو چه ټول قیمت ئې یو نیم لك روپۍ کیږي او څلویښت دقیقې د یوو لسم نمبر برمې اوبو د دې زمکې د خړوبولو لپاره چه قیمت ئې مبلغ ۷۰۰۰ روپۍ کیږي په قطعي بیع باندې پلورم او دا ټولې روپۍ ۴۵۷۰۰۰ نقدې د مارکیټ، پټي. او اوبو د سپارلو په وخت کښې وصولوم. پورته ذکر شوی جائدادمې په عرب خان ولد شیر علي د پاني اوسیدونکي باندې خرڅ کړ. په دې لیکنه کښې زه مقر سره له عقل سلیمه پخپله خوښه دا جائداد ور حواله کوم. دا ملکیت د چا له شراکته پرته زما ذاتي ملکیت دی که چېرته چا دعوٰی وکړه نو زه ئې هر ډول ذمه وار یم.

العبد نعیم شاه ولد انبالي راقم الحروف ملك سردار احم نمبر دار

ګواه مسلم علي، امیر زیب ولد ظهور علي، چمن خان ولد قدرت الله، عبد الرحمٰن ولد قدرت الله.

له دې نه علاوه ئې د سرکاري انتقالاتو او سرکاري کاغذونو فوټو کاپیانې وړاندې کړې او له دې سره ئې هغه کیسټ هم وړاندې کړ په کوم کښې چه نعیم شاه ولد انبالي خپل مارکیټ، درې بسوې زمکه سره له اوبو په عرب خان باندې د پلورلو اقرار کړی دی او څو کسان ئې مخاطب کړي او ګواهان ئې جوړ کړي دي.

شرعي قانون دا دی چـــه کله یو مدعي پخپله دعوٰی بینه وړاندې کړي نو شرعا په قاضي باندې لازم دي چه د هغه په حق کښې فیصله وکړي کمـــا في مجله الاحکام المادة ۱۸۱۸) ان اثبت المدعی دعواه با لبینة حکم القاضی له بذٰلك. قال علی حیدر تحت هٰذه المادة ان اثبت المدعی دعواه با لبینة ای اذا شهد شهود و جرت تزکیهم سرا و علانیة فظهر انهم عدول و مقبولة الشهادة حکم القاضی بذٰلك. (درر الحکام ج۴، ص۶۴۵)

لهذا د گواهانو گواهي د تحرير په ډول سره او د تائيد په توگه په استام کښې تحرير شوې اقرار نامه چه په هغې باندې د گواهانو دستخطونه موجود وي او د سرکاري انتقالاتو تصديق کړل شوي فوتو کاپي او ټيپ شوي بيان څخه په وضاحت سره دا ښرگنديږي چه نعيم شاه ولد انبالي د پانئي اوسيدونکي له هوش او حواس سره خپل ذاتي ملکيت ۱۵ مرلې مارکيټ چه دولس دوکانونه پکښې دي او درې کناله زمکه سره له اوبو په عرب خان ولد شير علي د پانئي په اوسيدونکي باندې پلورلي ده. او پخپل حيات کښې ئې د هغه په قبضه کښې ورکړي ده. په شريعت مقدسه کښې چه کله دوه فريقه پخپل رضا او رغبت سره يو ځل ايجاب او قبول باندې عقد وکړي نو بيا وروسته هيڅا ته هم شرعاً دې عقد د فسخ کولو اختيار نشته.

كما في الهداية: و اذا حصل الايجاب و القبول لزم البيع و لا خيار لواحد منهما الخ. (ج۳، ص۲۵)

و في الملتقى الابحر و اذا وجد الايجاب و القبول لزم البيع بلا خيار. (بحواله مجمع الانهر ج۴، ص۱۰) و هٰكذا في الهندية (ج۳، ص۸) و كذا في فتح القدير (ج۵، ص۴۶۴)

نو زمکه تولة مدعٰی بهٖ (درې کناله زمکه سره له اوبو او ۱۵ مرلې مارکيټ) د عرب خان ولد شير علي زرخريد ملکيت دی د چا په ده باندې د ارث او د اسي نورو دعوٰی شرعاً صحيح نه ده.

## شـــــرعي فيصله

**لومړی فريق:** فاروق شاه بن احمد شاه د احمد شاه زوی

**دويم فريق:** شير علي، نعيم شاه او د اسي نور د انبالي زامن.

**لومړی فريق:** د فاروق شاه ولد احمد شاه دعوٰی ده چه انبالي کوم چه د شير علي، نعيم شاه او د اسي نورو پلار دی او د هغه وروړ مير علي له نن څخه تقريباً ۵۰، ۶۰ کاله مخکښې زما د پلار احمد شاه ولد انبالي د اولې بي بي مرحومه امرو بي بي کومه چه ۵۰، ۶۰ کاله مخکښې وفات شوې ده جائداد پخپل منځ کښې سره تقسيم کړی دی او حال دا چه د هغه جائداد حقدار زما والد صاحب دی نو د دې لپاره ما ته دې هغه جائداد بيرته راکړی شي په د اسي حال کښې چه مدعٰی عليهما د مدعي د ارث له دې دعوې څخه منکر دي.

**څيړنه:** د شرعي قانون د ننه د ارث، وقف او د اسي نورو د دعوٰی د اوريدو لپاره ضروري دي چه دعوٰی د ۳۶ کلونو په منځ کښې وکړی شي. که چيرته له شرعي عذر څخه پرته تر شپږو ديرشو کلونو پورې ځنډ پکښې وکړی شي نو شرعاً هغه دعوٰی د اوريدو قابله نه پاتې کيږي. د دومره وخت له ځنډ څخه معلوميږي چه مدعٰی بهٖ د مدعي حق نه دی او که وای نو دومره تاخير به ئې نه وو کړی.

كما قال العلامة ابن عابدين: عن المبسوط اذا ترك الدعوٰى ثلاثا و ثلاثين سنة و لم يكن مانع من الدعوٰى لم



ادعى لا تسمع دعواه لان ترك الدعوٰى مع التمكن يدل على عدم الحق ظاهرا و في الجامع الفتوٰى لا تسمع الدعوى بعد ستة و ثلاثين سنة الا ان يكون المدعى غائباً او صبياً او مجنوناً و ليس لها ولي او المدعى عليه اميراً جائراً الى آخره. (رد المحتار ج۶، ص۴۲۲)

و قال العلامة سليم رستم باز: اذا مضى على الدعوى ثلاثون سنة بلا عذر فلا تسمع و ان امر السلطان بسماعها. (شرح المجلة ص۹۸۳)

و قال علي حيدر: لذٰلك فالدعوى التي تترك ستة و ثلاثين سنة بلا عذر لا تسمع مطلقاً حيث ان ترك الدعوى تلك المدة مع الاقتدار عليها و فقدان العذر يدل على عدم الحق. (درر الحكام شرح المجلة ج۴، ص۲۹۵)

و قال العلامة خالد آتاسي: عن جامع الفتاوٰى ان المتاخرين من اهل الفتوٰى قالوا لا تسمع بعد ستة و ثلاثين سنة الا ان يكون المدعى غائباً او صبياً او مجنوناً و ليس لهما ولي او المدعى عليه اميرا جائرا يخاف منه و عللوا ذٰلك بان ترك الدعوٰى جميع هٰذه المدة مع تمكن منها دليل على عدم الحق ظاهراً. شرح المجلة ج۵، ص۱۶۷)

له دې وجهې دغو دلائلو ته په نظر کولو سره د فاروق شاه ولد احمد شاه د ارث په دعوٰی باندې چونکه شپيته کاله تيريږي. او کوم شرعي عذر چه له دعوې څخه مانع وای موجود نه وو نو ځکه شرعاً د دوی دا دعوٰی د سماعت قابله نه ده. مدعٰی بهٖ د انبالي او د هغه د ورور ميرعلي به ګنل کيږي او له هغوی څخه وروسته د هغو د وارثانو حق دی.

# باب التحکیم

## (د ثالثي یا دریمګړي احکام او مسائل)

## د ثالث (دریمګړي) د مقررولو شرعي حیثیت

**سوال:** د یوې شخړې د تصفیې لپاره د ثالث مقررول جائز دي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په شریعت کښې چونکه هر مستحق ته د هغه حق ورکول مطلوب او مقصود وي او حق دار ته چه له کوم ځای څخه د خپل حق د حصول اطمینان حاصلیږي که د قاضي په ذریعه وي او که په کومه بله ذریعه وي نو په دې کښې شریعت دواړو خواوو یعني فریقینو ته اختیار ورکړی دی چه لکه څنګه چه هر یوه سړي ته په نورو معاملاتو کښې پخپل ځان باندې ولایت حاصل دی نو همدا ډول په شخړو کښې هم که چېرته هغه خپل ولایت په کار واچوي او د یوې شخړې د تصفیې لپاره څوك حکم مقرر کړي نو دا جائز دي لیکن په دې کښې د فریقینو پخپلو کښې رضامندي او د رایې یو والی ضروري دي. او که چېرته هر یو فریق د ثالث د مقررولو څخه انکار وکړي نو یو اځې د یوه فریق په رایه باندې د ثالث مقررول جائز نه دي.

کما قال الله تبارك و تعالیٰ: وَاِنْ خِفْتُمْ شِقَاقَ بَيْنِهِمَا فَابْعَثُوْا حَكَماً مِّنْ اَهْلِهٖ وَ حَكَماً مِّنْ اَهْلِهَا اِنْ يُّرِيْدَا اِصْلَاحاً يُّوَفِّقِ اللّٰهُ بَيْنَهُمَا. (سورة النساء، آیت ۳۵)

قال العلامة برهان الدین المرغینانیؒ: اذا حکم رجلان رجلاً فحکم بینهما و رضیا بحکمه جاز. (الهدایة ج۳، ص۱۴۳، باب التحکیم، کتاب ادب القاضی) و مثله فی مجلة الاحکام، المادة ۱۸۴۱، ص۱۱۹۳، الباب الرابع فی المسائل المتعلقة با لتحکیم.

## د فاسق سړي د ثالث مقررولو شرعي حیثیت

**سوال:** په شرعي امورو کښې د غفلت مرتکب سړی د یوې تنازعې د تصفیې لپاره ثالث مقررېدلی شي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** له یوه چا څخه په هغه وخت کښې د انصاف توقع کېدلی شي چه کله په هغه کښې زهد او تقویٰ په کامله توګه موجوده وي. او د دې زهد او تقویٰ له مخې د خلکو د تصفیه طلب معاملاتو کښې له احتیاط څخه کار اخلي او د چا حق تلفي نه کوي. او کوم سړی چه له زهد او تقویٰ څخه خالي وي نو له هغه څخه د صحیح انصاف تصور هم ممکن نه دی. نو ځکه ثالث په هغه وخت کښې صحیح فیصله کولی شي چه هغه د شرعي امورو پابند وي او د شرعي احکاماتو په ځای کولو کښې بې پروایي نه کوي. لهذا په ابتداء کښې د فاسق سړي مقررول صحیح نه دي لیکن که چېرته د فریقینو په رضاء او رغبت سره مقرر شوی وي او



فیصله ئې د شرعي قواعدو او ضوابطو موافقه وي نو هغه به شرعاً نافذ العمل وي. چونکه له فریقینو څخه هر یوه ته له فیصلې څخه د رجوع حق حاصل دی نو ځکه هر یو فریق له فیصلې څخه مخکښې هغه زائل کولی شي.

لما قال العلامة ابن نجیم المصریؒ: و افاد بقوله لو صلح قاضیاً جواز تحکیم المرأة و الفاسق لصلاحیتهما للقضاء و الاولیٰ ان لا یحکما فاسقاً. (البحر الرائق ج۷، ص۲۶، باب التحکیم)

قال العلامة المرغینانی رحمه الله: و الفاسق اذا حکم یجب ان یجوز عندنا کما مر فی المولیٰ. (الهدایة ج۳، ص۱۴۳، باب التحکیم، کتاب آداب القاضی) و مثله فی ردّ المحتار ج۴، ص۳۷۶، کتاب القضاء، باب التحکیم.

## له دیني امورو څخه ناخبره سړي لره د ثالث مقررولو حکم

**سوال:** آیا له دیني امورو څخه د ناخبره سړي ثالث (دریمګړی) مقررول جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په اصل کښې د فریقینو د تنازعې د حل د لارې پیدا کول او هر یو ته په هغوی کښې خپل خپل حق ورکول د ثالث اهمه ذمه واري ده او ثالث دا ذمه واري په هغه وخت کښې په صحیح توګه په ځای کولی شي چه هغه له دیني امورو څخه خبر وي. ځکه چه د قرآن او سنت له تعلیماتو څخه د واقفیت نه پرته د هغوی د حقوقو د تحفظ تصور هم ممکن نه دی. نو ځکه په دیني امورو باندې د واقف عالم د موجود والي په صورت کښې یو غیر عالم یعني جاهل ثالث مقررول مناسب نه دي. البته که چېرته څوك یو غیر عالم ثالث مقرر کړي نو جائز خو دي لیکن په هغه باندې لازم دي چه د تنازعاتو په تصفیه کښې د ذاتي رأیې له قائمولو څخه ځان وساتي او په مسائلو کښې علماوو ته رجوع وکړي. دا ځکه چه که چېرته د هغه فیصله د شرعي قوانینو او ضوابطو موافقه وي نو فیصله به ئې نافذه وي او که نه وي نو نه به وي نافذه.

لما قال العلامة المرغینانی رحمه الله: انه یمکنه ان یقضی بفتویٰ غیره و مقصود القضاء یحصل به و هو ایصال الحق الی مستحقه. (الهدایة ج۳، ص۱۳۲، ادب القاضی)

قال العلامة الکاسانیؒ: لانه یمکنه ان یقضی بعلم غیره با لرجوع الی فتویٰ غیره من العلماء. (بدائع الصنائع ج۷، ص۳، فصل التحکیم، کتاب آداب القاضی) و مثله فی خلاصة الفتاویٰ ج۴، ص۳، کتاب القضاء.

## د شرعي اصولو په خلاف د ثالث د فیصلې حکم

**سوال:** دوو ورونو له مشترکه مال څخه ۵۰۰ کناله زمکه واخیسته. په هغو کښې یو وفات شو او په وارثانو کښې ئې یو نابالغ هلك پاتې دی. د ورور له انتقال نه وروسته ئې بل ورور په دې زمکې باندې تصرف کاوه کله چه د متوفی زوی بالغ شو نو هغه د خپلې حصې د زمکې مطالبه وکړه. دواړو د فیصلې لپاره یو ثالث مقرر کړ هغه دا فیصله وکړه چه ۱۱۵ کناله زمکه به د متوفی ورور زوی ته ورکوي او پاتې زمکه به د نورو ورونو په ملك کښې پاتې کیږي. په دې

وخت کښې په دې فیصله باندې دواړه خواوې راضي وې لیکن د متوفی زوی وروسته انکار وکړ- نو آیا د شریعت له مخې د ثالث دا فیصله به شرعا نافذه وي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** شریعت مطهره چه ثالث ته په یوه متنازعه زمکې او یا په یوه متنازعه معاملې کښې فریقینو ته د فیصلې د ورکولو اختیار ورکړی دی نو په هغې کښې ئې دا شرط لازمي ګرځولی دی چه دا فیصله به د قرآن، سنتو او اجماع خلاف نه وي- که چېرته دا فیصله په دغو دریواړو کښې د یو هم خلاف وي نو د هغه فیصله به نافذه نه وي- بیا هم په فریقینو کښې یوه خوا د خپل حق په معاف کولو سره د ثالث فیصلې ته دوام ورکولی شي- نو ځکه د بیان مطابق د نوموړي ثالث فیصله د شرعي اصولو منافي ده ځکه که چېرته متوفي او ژوندی ورور ئې له مشترکه مساوي مال څخه زمکه اخیستې وي نو په دې زمکه کښې متوفی د نیمې حصې حقدار دی او د هغه دا نیمه حصه به د هغه په وارثانو باندې د وراثت د شرعي اصولو مطابق ویشل کیږي- په صورت مسئوله کښې د ثالث فیصله چونکه د قرآن او سنتو د اصولو منافي ده ځکه شرعا نافذه نه ده او کله چه یوه فیصله بالکل نافذه نه وي نو له فریقینو څخه هر یو هغه فسخ کولی شي-

لما قال العلامة ابو بکر بن مسعود الکاسانیؒ: فان وقع فصل فیه نص مفسر من الکتٰب او الخبر المتواتر او الاجماع فان وافق قضائه ذٰلك نفذ و لا یحل له النقص لانه وقع صحیحاً قطعاً و ان خالف شیئًا من ذٰلك یردّہ لانهٗ وقع باطلاً قطعاً. (بدائع الصنائع ج۷، ص۱٤، کتاب آداب القاضی، فصل و اما بیان ما ینفذ من القضایا...... منها)

قال العلامة ابن قاضی سماوةؒ: قضایا القضاة ثلاثة اقسام. (۱) حکَم بخلاف نص او اجماع و هذا باطل فلکل من القضاة نقضه اذا رفع الیه و لیس لاحد ان یجیزه. (جامع الفصولین ج۱، ص۳۳، الفصل الثانی فی القضاء فی المجتهد فیه) و مثله فی البحر الرائق ج۷، ص۱۱، کتاب ادب القضاء، باب التحکیم.

## د قاضي او د حکَم تر منځ فرق

**سوال:** په ځینو علاقو کښې د پلار او د نیکه د قانون مطابق خلك خپلې فیصلې په عدالتونو کښې کوي چه په هغو کښې د حکومت له خوا څخه باقاعده قاضي مقرر وي او ځینې خلك له شریعت سره د موافقې فیصلې لپاره باقاعده یو عالم مقرر کړی وي چه خلکو ته د جُمعې او اخترونو لمونځونه هم ورکوي- نو آیا شرعا داسې خلك قاضي ګڼل کیږي او که نه؟ بینوا توجروا-

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د قاضي لپاره دا ضروري دي چه هغه د فیصلو د نافذولو په باره کښې پوره اختیار ولري او په هر خاص او عام باندې ولایت ورته حاصل وي ځکه چه په اختیاراتو کښې د معمولي کمی او زیاتی له وجهې په خلکو کښې د صحیح فیصلې کول مشکل وي چه له مخې ئې د قضاء مقصد نه شي پوره کیدلی- او قاضي ته دا اختیارات په هغه وخت کښې حاصلیږي چه د وخت حکومت مقرر کړی وي ځکه چه په شریعت کښې قاضي د حکومت له خوا څخه وکیل وي او چه فریقینو پخپله خوښه څوك د فیصلې لپاره مقرر کړی وي هغه ته



یوازې په هغو کسانو اختیارات حاصل وي چا چه مقرر کړی وي- له هغو څخه پرته په نورو باندې اختیارات ورته حاصل نه وي نو له دې وجهې که چېرته خلك د خپلو معاملو د فیصله کولو لپاره څوك مقرر کړي نو هغه به قاضي نه بلکه حکم وي-

لما قال العلامة اکمل الدین محمد بن محمود البابرتیؒ: ان المحکم ادنٰی مرتبة من القاضی لاقتصار حکمه علی من رضی یحکمه و عموم ولایة القاضی. (العنایة علی هامش فتح القدیر ج٦، ص٤٠٦، باب التحکیم، کتاب آداب القاضی)

لما قال العلامة الحصکفیؒ: عرفاً تولیة الخصمین حاکماً یحکم بینهما و رکنه علیه مع قبول الآخر. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج٤، ص٣٨٦، باب التحکیم، کتاب القضاء) و مثله فی البحر الرائق ج٧، ص٢٤، کتاب آداب القاضی، باب التحکیم.

## د معزول ثالث فیصله نافذه نه ده

**سوال:** فریقینو د زمکې په تنازعه کښې دوه کسان ثالثان مقرر کړل وروسته له کومې وجهې د یوه فریق په دواړو ثالثانو باندې اعتماد ختم شو او هغه له فیصلې څخه مخکښې دواړو لره د معزولولو باقاعده اظهار وکړ لیکن له دې سره سره ثالثانو فیصله وکړه نو آیا د ثالثانو فیصله به نافذ العمل وي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په صورت مسئوله کښې چونکه فریقین دغه دواړه کسان له خپلې خوا څخه ثالثان مقرر کړي دي لهذا که چېرته له فریقینو څخه هر یو دوی معزول کړي یعنې وغواړي چه فیصله پرې و نه کړي نو هر یو دا حق لري- کله چه یو فریق دواړه ثالثان د عدم اعتماد یا د ناخوښۍ له وجهې هغوی معزول کړي نو د دوی تحکیم کالعدم یعنې هیڅ وګرځي او فیصله ئې نافذ العمله نه وي-

لما قال العلامة طاهر بن عبد الرشید البخاریؒ: لو عزل احد الخصمین قبل الحکم لم ینفذ حکمه علیه. (خلاصة الفتاوٰی ج٤، ص٢٩، الفصل الخامس فی التحکیم، کتاب القضاء)

قال العلامة ابن نجیمؒ: و قال انه یخرج عن الحکومة باحد اسباب ثلاثة با لعزل او بانتهاء الحکومة نهایتها بان کان موقتاً فمضی الوقت او بخروجه من ان یکون اهلاً للشهادة. (البحر الرائق ج٧، ص٢٨، باب التحکیم) و مثله فی الدر المختار علی هامش رد المحتار ج٤، ص٣٨٧، کتاب القضاء، باب التحکیم.

## د فریقینو له تحکیم څخه تر رجوع وروسته د حکم لپاره د اجرت اخیستلو حکم

**سوال:** فریقین د یوې فیصلې لپاره یو قاضي ته لاړل او هغه په فیصله باندې پنځلس روپۍ د پیشګي اجرت په توګه واخیستې- د فریقینو د سُستي له وجهې هغه فیصله تر اوسه پورې و نه شوه- اوس فریقین له قاضي څخه د اجرت د بیرته ورکولو غوښتنه کوي لیکن هغه د اجرت د بیرته ورکولو څخه انکار کوي او وایي چه سُستي ستاسو له خوا ده ځکه زه تاسو ته مخکښې

اخیستل شوی اجرت بیرته نه درکوم نو آیا د قاضي لپاره د فیصلې له کولو څخه مخکښې اجرت اخیستل جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** نوموړی قاضي شرعي قاضي نه دی ځکه چه قاضي د حکومت له خوا څخه تاکل کیږي۔ کله چه فریقین یو څوك د فیصلې لپاره مقرر کړي نو هغه قاضي نه وي بلکه محکم وي۔ او په تحکیم کښې چونکه له فیصلې څخه مخکښې فریقین د رجوع حق لري نو له دې وجهې که چیرته په هغو کښې یو فریق یا دواړه رجوع وکړي نو دا تحکیم فسخ کولی شي۔ او کله چه تحکیم فسخ شي نو محکم د اجرت مستحق نه پاتې کیږي۔ د هغوی په منځ کښې اجاره په تحکم باندې وي کله چه فریقین رجوع وکړي نو اجاره هم فسخ کیږي ځکه چه اجاره محض په عقد باندې نه لازمیږي بلکه چه کوم شرط په دې کښې لګول شوی وي د هغه پوره کول ضروري وي لهذا په صورت مسئوله کښې د حکم لپاره د دې پیسو اخیستل جائز نه دي۔

قال العلامة التمرتاشی: و الاجر لا یلزم با لعقد فلا یجب تسلیمه بل بتعجیله او شرطه فی الاجارة. (تنویر الابصار علی هامش رد المحتار ج۵، ص۷، کتاب الاجارة)

قال العلامة سلیم رستم باز: لا تلزم الاجرة با لعقد المطلق یعنی لا یلزم تسلیم بدل الاجارة حالاً بمجرد انعقادها. (شرح مجلة الاحکام، المادة ۴۶۶، ص ۲۶۱، الفصل الثانی فی المسائل المتعلقة الخ) و مثله فی الهدایة ج۳، ص۲۹۲، کتاب الاجارة، باب الاجر متی یستحق.

## د منطقوي اصلاحي کمیټې شرعي حیثیت

**سوال:** د مروجه اصلاحي کمیټې شرعي حیثیت څه دی آیا د هغوی له فیصلې څخه انکار جائز دی او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د منطقوي اصلاحي کمیټې چه د منطقې له معززینو خلکو څخه جوړې وي چه د خلکو د تنازعاتو او معاملو په ختمولو کښې اهم کردار ادا کوي لیکن د حکومت له خوا څخه د فیصلو لپاره نه وي مقررې بلکه فریقین چه کله په هغوی باندې فیصله کوي له خپلې خوا څخه هغوی ته د فیصلې اختیار ورکوي او په کومې فیصلې کښې هم چه اختیار د حکومت په ځای خلکو ته ورکول کیږي نو د هغو اختیاراتو لاندې د فیصله کوونکو شرعي حیثیت د حکمانو غوندې وي۔ نو لکه څرنګه چه د حکم له فیصلې څخه مخکښې فریقین د رجوع حق درلودلی شي همدارنګه چه حکم کله فیصله وکړي نو بیا د فریقینو لپاره د هغې تسلیمول لازم ګرځي۔ د دې لپاره که چیرته د اصلاحي کمیټې فیصله د شرعي اصولو سره ټکر نه وي نو له هغې څخه انکار جائز نه دی۔

قال العلامة المرغینانی رحمه اللّٰه: اذا حَکَمَ لزمهما لصدور حکمه عن ولایة علیهما. (الهدایة ج۳، ص۱۴۳، باب التحکیم، کتاب آداب القاضی)



قال العلامة الکاسانی: اذا حَکَم صار لازماً. (بدائع الصنائع ج۷، ص۳، کتاب آداب القاضی) و مثله فی شرح مجلة الاحکام، المادة ۱۸۴۸، ص۱۱۹۸، الباب الرابع فی المسائل المتعلقة با لتحکیم.

## د یوه فریق په نه شتون کښې د ثالثانو د فیصلې حکم

**سوال:** له فریقینو څخه یو فریق غائب دی یعنې نشته او ثالثانو د هغه په نشت والي کښې فیصله د بل فریق په حق کښې وکړه نو آیا د ثالثانو دا فیصله به نافذه وي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چیرته فریقین ثالثانو ته باقاعده د فیصلې کولو اختیار ورکړی وي او له فیصلې څخه مخکښې یو فریق هم رجوع نه وي کړې نو د ثالثانو لپاره ضروري دي چه د هغوی بیانونه او دلیلونه واوري او د هغه مطابق فیصله وکړي۔ او که چیرته ثالثانو په فریقینو کښې له دواړو څخه بیانونه او دلیلونه نه وي اوریدلي او یواځې د یوه فریق په بیان باندې ئې فیصله کړې وي نو دا دې فیصله جائزه نه ده۔ او لکه څرنګه چه په قضاء کښې دا ضروري دي چه مدعي علیه د قضاء په وخت کښې به په محکمه یا عدالت کښې حاضر وي او که چیرته هغه پخپله نه حاضریده او د خپل ځان له خوا څخه ئې وکیل مقرر کړی نو بیا د وکیل حاضریدل ضروري دي ځکه چه د مدعي علیه او یا د هغه له خوا څخه د ټاکل شوي خصم په نه موجود والي کښې د مقدمې د صورت حال وضاحت مشکل وي۔ نو کله چه په قضاء کښې د مدعي علیه موجود والی ضروري وي په تحکیم کښې چه له قضاء څخه په لاندې درجه کښې ده خو په طریقهٔ اولٰی سره د هغه موجودوالی ضروري دی۔ له دې وجهې د یوه فریق په نه موجود والي کښې د ثالثانو یو طرفه فیصله به نافذ العمله نه وي۔

قال العلامة المرغینانی: و لا یقضی القاضی علی غائب الا ان یحضر من یقوم مقامه. (الهدایة ج۳، ص۱۴۲، باب کتاب القاضی الی القاضی)

قال العلامة الکاسانی رحمه اللّٰه: اما الذی یرجع الی المقضٰی علیه فحضرته حتٰی لا یجوز القضاء علی الغائب اذا لم عنه خصم حاضر و هٰذا عندنا. (بدائع الصنائع ج۷، ص۸، کتاب آداب القاضٰی، فصل و اما شرائط القضاء فانواعٌ الخ) و مثله فی البحر الرائق ج۷، ص۱۷، باب کتاب القاضی الی القاضی.

## د ثالث له فیصلې څخه د انکار کولو حکم

**سوال:** د دوو کسانو تر منځ د زمکې د حدودو په باره کښې اختلاف راغی او د دواړو تر منځ جرګې فیصله وکړه او دواړه پرې راضي وو۔ په هغوی کښې یوه قسم او اقرار هم وکړ چه زما دا فیصله منظوره ده او حدود ئې نه ماتوم لیکن د دریو او څلورو میاشتو له تیریدو څخه وروسته هغه له خپلې وعدې څخه په شا شو او د فیصلې له منلو څخه ئې انکار وکړ او حدود ئې هم مات کړه۔ نو آیا د جرګې له فیصلې څخه وروسته د هغه انکار صحیح دی او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته هغوی دواړو پخپله خوښه ثالثان مقرر کړي وي او د تحکیم د مودې په د ننه کښې ثالثانو فیصله کړې وي او د هغو فیصله له شریعت سره برابره هم وي نو بیا نافذ العمله ده ځکه چه د تحکیم له وجهې ثالثانو ته په دواړو باندې مکمل اختیار حاصل دی له دې وجهې په دواړو باندې د دوی د فیصلې تسلیمول لازم دي۔ لهذا له فیصلې څخه وروسته د یوه فریق هم له هغې څخه انکار کول درست نه دي او د قسم د ماتولو په بدله کښې پرې کفاره لازمیږي۔

لما قال العلامة المرغینانیؒ: اذا حکم لزمهما لصدور حکمه عن ولایة علیهما. (الهدایة ج۳، ص۱۴۳، باب کتاب القاضی الی القاضی)

قال العلامة الکاسانیؒ: و اذا حکم صار لازماً. (بدائع الصنائع ج۷، ص۳، کتاب ادب القاضی) و مثله فی مجلة الاحکام، المادة ۱۸۴۸، ص۱۱۹۸، کتاب الدعوٰی.

## د ثـــــالث د معزولولو حکم

**سوال:** که چېرته فریقین څوك ثالث مقرر کړي نو آیا نوموړی ثالث یو فریق هم معزولولی شي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** کله چه فریقین پخپله خوښه څوك ثالث مقرر کړي او هغه ته د فیصلې اختیار ورکړي نو ثالث ته چونکه د فیصلې اختیار د دوی د دواړو له خوا ورکړ شوی وي نو ځکه که چېرته د ثالث له فیصلې څخه مخکښې د یوه فریق اعتماد پرې ختم شي او یا له کومې بلې وجهې ئې معزولول غواړي نو لکه څنګه چه قاضي ته د فیصلو اختیار د حکومت له خوا څخه ورکول شوی وي او حکومت ته هر وخت د هغه د معزولولو اختیار حاصل وي همدارنګه له فریقینو څخه هر یوه ته د ثالث د معزولولو اختیار حاصل دی۔

قال العلامة سلیم رستم باز اللبنانیؒ: لکل من الخصمین عزل المحکم قبل الحکم لانهٗ مقلد من جهتهما فکان لکل منهم عزله و هو من الامور الجائزة فینفرد احدهما بنقضه کما ینفرد احد العاقدین فی مضاربة و شرکة و وکالة. (شرح مجلة الاحکام، المادة ۱۸۴۸، ص۱۱۹۷، الباب الرابع فی المسائل المتعلقة با لتحکیم)

قال العلامة علاؤ الدین الحصکفیؒ: (و ینفرد احدهما بنقضه) ای التحکیم بعد وقوعه (کما) ینفرد احد العاقدین (فی مضاربة و شرکة و وکالة) بلا التماس طالب. (تنویر الابصار علی هامش رد المحتار ج۴، ص۳۸۷، باب التحکیم) و مثله فی خلاصة الفتاوٰی ج۴، ص۲۹، کتاب القضاء.

## د فیصلې لپاره د تاکـــــل شوي ثالثانو د کمیټي د خپـــــل منځي اختلاف حکـــــم

**سوال:** فریقینو د تنازعې د فیصلې اختیار له څو کسانو څخه جوړې شوې کمیټې ته وسپارله۔ د فیصلې په باره کښې د کمیټې په غړو کښې اختلاف پیدا شو۔ ځینو غړو له مخالفت سره له



خپلې خوا څخه د یوه فریق په حق کښې فیصله وکړه نو آیا د دوی دا فیصله به نافذه وي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** چونکه د تنازعې په باره کښې کمیټې ته د فیصلې اختیار د فریقینو له خوا څخه ورکړ شوی دی نو ځکه د دې کمیټې حیثیت د حکم غوندې دی او فریقین ثالثانو ته د فیصلې د اختیار د ورکولو په وخت کښې چه په ثالثانو باندې کوم شرائط هم عائد کړي په ثالث باندې د هغو پوره کول لازم دي۔ که چېرته ثالث په هغو شرائطو کښې له یوه شرط څخه سرغړونه وکړي نو هر یو فریق د دوی د فیصلې د ردولو اختیار لري۔ نو له دې وجهې په مذکوره صورت کښې کله چه فریقین د خپلې فیصلې لپاره یوه کمیټي وټاکي نو د دې مطلب دا دی چه فریقین د کمیټې تولو ارکانو ته د فیصلې اختیار ورکړی وي او په فیصله کښې د کمیټې د تولو غړو د رأیې یو والی شرط ګرځول شوی دی۔ همدا وجه ده چه فقهاء کرامو دا تصریح کړې ده چه که چېرته له ګنو ثالثانو څخه یو ثالث هم د فیصلې مخالفت وکړي نو هغه فیصله به نافذه نه وي۔

لهذا که چېرته په رښتیا هم همدا سې وي کله چه د کمیټې په اعضاوو کښې اختلاف پیدا شي نو د اختلاف په موجود والي کښې ځینو غړو ته د خپل ځان له خوا فیصله کول جائز نه دي او که وئې کړي نو نافذه به نه وي۔

لما قال العلامة سلیم رستم باز اللبنانیؒ: اذا تعدد المحکمون علی ما ذکر آنفاً یلزم اتفاق رای کلهم و لیس لواحد منهم ان یحکم وحده. (شرح مجلة الاحکام، المادة ۱۸۴۴، ص۱۱۹۶، الباب الرابع فی المسائل المتعلقة با لتحکیم)

قال العلامة ابن نجیم المصری رحمه اللّٰه: و لو حکما رجلین فحکم احدهما لم یجز و لا بد من اتفاقهما علی المحکوم به لو اختلفا لم یجز. (البحر الرائق ج۷، ص۲۶، باب التحکیم)

34/34

## د اسلامي قوانینو جامعیت او اهمیت

په دنیا کښې د ملکي نظام د چلولو، ښه حکومت په رعیت باندې د کولو او په هیواد او ملت کښې د امن او امان د پیدا کولو لپاره د مختلفو نظریاتو لاندې مختلف قوانین جوړ شوي دي او د هغو د اجراء او نفاذ لپاره ئې هر ممکن کوششونه کړي دي۔ لیکن تر اوسه پورې هغوی څه خــاصه خاطره او ډاډمنه نتیجه نه ده ترلاسه کړې بلکه په بد امنۍ او لاقانونیت کښې له پخوا څخه هم زیاتوالی راغلی دی۔ د چا ځان، مال او ناموس نه مخکښې محفوظ وو او نه اوس محفوظ دی۔ په دې باره کښې له غور او فکر څخه څرګندیږي چه چونکه دا قوانین د انساني ذهنونو خپل اختراع دی ځکه په هر راتلونکي ورځ په هغو کښې څه نا څه بدلونونه او انقلابونه راځي چه د دغو بدلونونو له وجهې د امن او امان مسئلې نورې هم کړکیچنې کیږي۔

او اسلامي قوانین چونکه د الله تعالی له خوا رالیږل شوي دي نو ځکه د انساني فطرت عین مطابق دي او په هغو باندې د عمل کولو په وجه امن و امان او د دهشت ګردۍ غوندې د بین المللي او بین الاقوامي مسائلو حل راووځي۔ دې اهمیت ته په نظر کولو سره د جامعه حقانیه مفتي او د حدیثو استاذ حضرت مولانا غلام الرحمٰن صاحب یوه مقاله د "اسلامي قوانین" تر عنوان لاندې ولیکله چه د شائع کولو او خپرولو اعزاز ئې ماهنامه "الحق" هم حاصل کړ او اوس ئې له فقهې او فتاوې سره د مناسبت له وجهې د عوامو او خواصو د عامې افادې لپاره په فتاوٰی دار العلوم حقانیه کښې شامليږي۔

از مرتب



## د اسلامي قوانینو جامعیت او اهمیت

### له مولانا غلام الرحمٰن صاحب څخه

انسان چونکه مدني الطبع دی ځکه ئې له معاشرې سره تعلق لازمي دی او تجرد، انفرادیت (یوائځې والی) او رهبانیت شرعا او عقلا په هــــــر لحاظ سره قبیح ګڼل کیږي۔ انسان د کائناتو ښکلا او زینت دی او دا ښکلا د یوې ښې معاشرې په صورت کښې پاتې کیدلی شي۔ د انسان له ضروریاتو او حوائجو څخه دا څــــــرګندیږي چه انسان خپل ټول ضروریات پخپله نه شي پوره کولی بلکه په معاشره کښې چه اوسیږي نو دوی ته له یو او بل څخه د افادې او استفادې خامخا ضرورت وي۔

### د قانون حقیقت

په افاده او استفاده کښې که چیرته انسان ته مکمله اجازه ورکړې شي او څه بندیزونه پرې و نه لګول شي نو په دې سره د انسان ژوند تباه کیږي۔ په داسې صورت کښې جبر او تشدد، حرص او لالچ، ظلم او ستم او شوک مار بازار ګرم کیږي۔ د انساني ژوند د تیرولو لپاره د انسانــــــــي معاشرې ضابطۀ حیات ضروري خبره ده چه له مخې ئې معاشره له بربادۍ او تباهۍ څخه محفوظه پاتې کیږي۔ د انساني ژوند یوه مرحله هم داسې نه ده چه په هغې کښې هغوی ته د کوم قانون ضرورت نه وي مثلا که چیرته د انسان ابتدایي ژوند یعنې له وړوکوالي څخه د هغوی تحفظ په قانوني توګه نه وي نو له مخې ئې د هغوی د تعلیم او تربیت هغه خوږه مرحله ضائع کیږي۔ که چیرته په ځوانۍ کښې د کومې ضابطې د پابندۍ احساس نه وي نو له وجهې ئې د ځوانۍ په وخت کښې داسې لارې ته د برابریدو امکــــــــان دی چه همیشه به له خطر او تباهۍ سره مخامخ وي۔ که چیرته په د زوړوالي او کمزورۍ په وخت کښې انسان ته مکمل تحفظ میسر نه وي نو له وجهې ئې د خود کُشۍ غوندې د قبیحو امورو د ارتکاب خطره پیدا کیږي۔ غرض دا چه انسان د ژوند په هره مرحله کښې د حیات یعنې ژوند انه د یوې ضابطې محتاج دی۔

د انساني ژوند د ښائسته کولو لپاره د ژوند د دې ضابطې بل نوم "قانون" او "آئین" دی۔ علماوو د دې جامع تعریف داسې کړی دی:

"قانون د داسې مجموعې نوم دی چه په هغه کښې مروجه، مسلمه، سماجي، اقتصادي، اخلاقي او سیاسي اقدارو تحفظ موجود وي"۔

### د قـــــــانون ضرورت

د اسلام په نظر کښې خو مکلف انسان د قانون او ضابطې پابند دی۔ په یوه حدیث شریف کښې رسول الله ﷺ فرمایلي دي چه" " (دنیا د مسلمانانو لپاره جیلخانه ده) چیرته

چه د هغه هر حرکت د قانون او ضابطې لاندې وي۔ د مذهب په لحاظ سره دا پابندي لازمي خبره ده۔ د نن صبا په نامه جمهوريت خوښوونکي او حريت خوښوونکي خلك هم له قانون څخه پرته يو قدم نه شي اخيستلی۔ د هغوی په نزد هم د قانون پابندي لازمه ده۔ اګر که د آزادۍ ښکلې نعرې د دوی په ژبه خلکو ته د دوکې ورکولو لپاره هر وخت جاري وي ليکن د دوی د آزادۍ حقيقت يوائې او يوائې له مذهب او عقيدې د آزادۍ څخه عبارت دی۔ نن که چېرته د يوه يورپي ملك مثال ورکړل شي نو هلته له ټولو نه زيات د قانون ضرورت محسوسيږي۔ مثلاً په زرګونو خلك دا غواړي چه زه دې په يورپ کښې اوسيږم ليکن د قانوني مشکلاتو له وجهې هلته نه شي اوسيدلی۔ ځکه چه قانون هلته د لکونو خلکو د خواهشاتو د تکميل په لاره کښې خنډ دی۔ که چېرته د انساني خواهشاتو بندول او په هغو باندې بنديز لګول جرم وي نو بيا له ټولو نه لوی مجرمين نن صبا پر مخ تللي هيوادونه دي چه هغوی د غريبو ممالکو د خلکو په مخ کښې خپلې دروازې بندې کړي دي۔ په هغو ممالکو کښې د تاجر، مالك، کارخانه لرونکي او د مزدور په منځ کښې د تعلقاتو د جوړولو يوائنۍ ذريعه قانون ګڼل کيږي۔ نو کله چه د پر مخ تللي ملکونو بيړۍ له قانون څخه پرته نه شي چليدلی نو ترقي پذير ممالکو ته له دې نه هم زيات د قانون ضرورت دی۔

## د قانون ابتـــــــداء

د اسلامي نقطۀ نظر له مخې د قانون ابتداء د آدم عليه السلام له پيدائښ نه شروع شوی دی ګواکه چه کله انسان خليفه جوړ کړی شو او دنيا ته راوليږل شو نو د خلافت د نظم او نسق لپاره د قانون ضرورت پخپله محسوس شو۔ د موجوده دور د قانوني ماهرينو رأيه ده چه د خاندان او قبيلې له وجود سره په دنيا کښې د قانون ظهور وشو۔

انسان چه کله د حرص او لالچ له وجهې د خپل هم نوع په حقوقو باندې تيری شروع کړ نو د حقوقو د حفاظت فطري جذبه په خلکو کښې د قانون د شته والي احساس پيدا کړ۔ چنانچه په غير اختياري توګه په خاندانونو او قبيلو کښې عرف، رواج يا نور داسې قواعد او ضوابط پيدا شو چه د هغو لاندې ژوند تيرول ضروري وګرځول شو۔ څومره چه په قبيلو او قومونو کښې پراخوالی راته نو د قانون ضرورت هم سختيده او په قانون کښې د معاشرې د تقاضو او حالاتو په بناء بدلونونه لازمي ګرځيدل۔ دا د قانون لپاره اګر که د طفوليت (کوچنيوالي) ادوار وو ليکن بيا په يوه کورنۍ او قبيله کښې قانون يو لازمي خبره وګرځيده۔ او له کورنۍ او قبيلو څخه چه کله انساني معاشره په رياست بدل شو نو قانون هم هلته قدم پورته کړ او کله چه له رياست څخه ئې د سلطنت او حکومت صورتونه غوره کړل نو له مخې ئې په قانون کښې نور هم جدت پيدا شو۔ ګواکه د انساني ژوند له اولو ورځو څخه قانون ته اهم حيثيت حاصل دی۔



## د قـــــانون قسمونه

د تاريخ له مطالعې څخه دا نتيجه را ووځي چه د انساني معاشرې د اصلاح لپاره دوه قسمه قوانين وضع شوي دي۔ اول قسم قانون هغه دی چه انسان ئې د خپل ځان لپاره پخپله جوړ کړي او مقنن پخپله هم په هغه باندې پابند پاتې شي۔ په دې قانون کې عموماً د وخت او د حالاتو رعايت او لحاظ کيږي او مقنن د معاشرې د حالاتو د څارنې په نتيجه کښې قانون مرتب کوي کله چه د حالاتو بدلونونه لازمي امر وو نو په هغو قوانينو کښې هم ترميم، کموالی او زياتوالی ورځنی معمول جوړ شو۔ د قانون دغه قسم ته مونږ "انساني قانون" وايو ځکه چه جوړوونکی ئې پخپله انسان وي او د انساني دماغو په نتيجه کښې منځ‍ته راغلی وي۔

دوهم قسم قانون هغه قانون دی چه جوړوونکی ئې د لوړ او عالي قوت څښتن دی يعنې مقنن د خپلو ضروریاتو لپاره نه بلکه د نورو د ضروریاتو لپاره قانون وضع کړی وي۔ په دې قانون کښې د وختي حالاتو رعايت نه وي بلکه ابدي ضرورت ته په نظر کولو سره قانون جوړ وي نو ځکه د وخت او ضرورت په بدلون سره د دې قانون په حيثيت باندې هيڅ اثر نه پريوځي او دا قانون د ټول عمر لپاره د عمل قابل وي او دې قانون ته "رحماني قانون" ويل کيږي۔

## د انســـــــاني قانون حقيقت

نن صبا د قانون لفظ چه څوك له خولې نه باسي په معاشره کښې له هغه څخه اول الذکر قانون مراد وي بلکه ځينې خلك چه د ذهني جمود ښکار وي د هغوی په نزد باندې قانون يوائې انساني قانون وي۔ د مذهب او عقيدې له قانون سره ئې هيڅ تړاو نه وي۔ د هغو خلکو په نزد قانون د اجتماعي ژوند محافظ دی او مذهب د انسان ذاتي معامله ده۔ ځينې خلك دا هم وايي چه قانون د يوه انسان له بل انسان سره د تعلقاتو تعين کوي او مذهب د انسان او د خدای په منځ کښې د تعلقاتو تعين کوي۔ دا له حقيقت او واقعيت څخه صريح خلاف دی۔ لهذا داسې رأيې ته هيڅ اهميت نه ورکول کيږي۔ بيا هم له دې څخه انکار نه شي کيدلی چه انساني قانون هم ځينې ښې نتيجې هم لري ليکن و اثمهما اکبر من نفعهما يعنې له ثمراتو څخه مضرات (تاوانونه) زيات وي۔ د قانون دا شکل په هر دور کښې مختلف پاتې شوی دی۔ په مخکښې زمانه کښې قانون د امير او يا د قبيلې د سردار خبره وه۔ قبيلوي سردارانو چه کومه قاعده او ضابطه مقرروله هغې ته به د قانون درجه حاصله وه۔ هيچا به هم له هغه څخه مخالفت نه شو کولی او د مخالفت په صورت کښې به له ډيرې سختۍ سره د هغه محاسبه کيدله۔

د اتلسمې پيړۍ په آخر کښې چه کله د انساني حقوقو د تحفظ نعره اوچته شوه او د جمهوريت بنياد کيښودل شو نو له مخې ئې د قانون د جوړولو په طريقۀ کار کښې لوی بدلون راغی۔ د موجوده وخت قانوني ذخيرو، حالاتو او واقعاتو خاص جمهوري اصولو ته په نظر کولو

سره د اویلی شو چه په موجوده دور کښې چه د انساني قانون جوړوونکي درې شعبې دي۔

## د مقننه مختلفې شعبې

د انساني قانون په جوړولو کښې د دریو شعبو دخل دی ګوا که چه د غه درې شعبې د انساني قانون مأخذ او مراجع دي او هغه دا دي۔

﴿۱﴾ سرابراه مملکت (د هیواد بادشاه)

﴿۲﴾ آئین جوړوونکي اداري۔

﴿۳﴾ عدالتي نظائر۔

## د هیواد بادشاه یا سربراه

دا شعبه له قدیم څخه د کورنۍ سرداري یو نوی شکل دی۔ البته په مخکښیني دور کښې کورنۍ سربراهي به مختار کل وو او حال دا چه په نننۍ زمانه کښې دغې شعبې ته محدود اختیارات جاصل دي۔ د هیواد سربراه عامه مفاد ته په نظر کولو سره په اضطراري حالاتو کښې د ضرورت د نظریې لاندې څه نا څه قانون د "فرمانونو" په صورت کښې نافذ کولی شي اګر که د دې د منظورۍ لپاره د پارلیمان خوا ته رجوع کول ضروري وي لیکن بیا هم د قانون په جوړولو کښې د هیواد د سربراه کافي دخل وي۔

## قـــــانون جوړوونکي اداري

د قانون د جوړولو دوهمه اهمه شعبه "قانون جوړوونکي اداري" دي او په جمهوري هیوادونو کښې دغې اداري ته لوی اهمیت حاصل دی۔ د دې اداري په محنت او سعی سره جوړ شوی قانون د جدیدو ذهنونو درلودونکي خلك او روشن فکـــــران د آسماني صحیفو سره برابر ګڼي۔ په دې کښې د ترمیم او منسوخی حق هم همدې اداري ته حاصل وي۔ نن صباء قومي او صوبایي او د سینټ اداري د دې نمونې دي۔ په دغو دورونو کښې د رأیو په کثرت سره چه کومې خبرې مخته راځي هغه ته د ملك قانون ویل کیږي۔ په دې کښې د سرونو کثرت ته اعتبار ورکول کیږي۔ د کومې خبرې په حمــــایت کښې چه ووټونه ډیر شي نو هغه قانون جوړیږي ګوا که چه په دې کښې اکثرې فیصلې د رأیې په کثرت سره کیږي۔ اګر که په دې کښې د قانوني شکل د نفاذ لپاره د (بیل) او داسې نورو مراحلو څخـــــه تیریدل ضروري وي۔ لیکن د آخري منظوري نه وروسته هغه په قانوني قالب کښې اچول کیږي او د ملك د قانون مستقله برخه جوړیږي۔

## عدالتي نظائـــــر

د انساني قانون دریم مأخذ عدالتي نظائر وي۔ د یوه جمهوري ملك عدالت عالیه د خپل صوابدید مطابق د قانون په تشریح کولو سره کومه فیصله چه کوي نو ماتحت عدالتونه



هم د هغې په رڼا کښې فیصله کوي۔ مثلاً زمونږ په هیواد پاکستان کښې اعلی عدالت (سپریم کورټ) کله چه یوه فیصله وکړي نو هایي کورټ او یا تحتو عدالتونه له دې فیصلې څخه متاثره کیږي او هغوی هم پخپلو فیصلو کښې د هغې لحاظ کوي او هغې فیصلې ته د مستقل قانون حیثیت حاصل وي۔

په اوسنۍ زمانه کښې انساني قانون او یا قانون سازي د انسانانو د بنیادي حقوقو یوه برخه ګڼل کیږي۔

## د رحمانـــــــي قانون حقیت

د قانون دوهم قسم یعنې د رحماني قانون حقیقت دا دی چه الله تعالی کله حضرت آدم علیه السلام له جنت څخه و ایست او زمکې ته ئې کوز کړ نو په دې وخت کښې ئې حضرت آدم علیه السلام ته وفرمایل چه: فَاِمَّا یَاْتِیَنَّکُمْ مِّنِّیْ هُدًی. (سورة البقرة، آیت۳۷) یعنې زما له طرفه تاسو ته هدایت نامه او د ژوند ضابطه درځي ستا د اولاد لپاره به د هغې تابعداري ضروري وي۔ د انساني هدایت دا حقیقت په بل ځای کښې د اسې فرمایل شوي دي: یٰبَنِیْۤ اٰدَمَ اِمَّا یَاْتِیَنَّکُمْ رُسُلٌ مِّنْکُمْ یَقُصُّوْنَ عَلَیْکُمْ اٰیٰتِیْ. (سورة الاعراف، آیت ۳۴)

"ای د آدم علیه السلام اولاده تاسو ته به زما رسول درځي کوم چه زما آیتونه بیانوي"

د دغو دوو آیتونو له لوستلو څخه معلومیږي چه الله تعالی د آدم علیه السلام د اولاد لپاره د ضابطهٔ حیات د تقرري او تعین په لاره کښې دوه لارې متعینې کړي دي یوه لاره د "هدٰی" او دوهمه لاره د "رسول" ده ګوا که د رحماني قانون مأخذ او مراجع په اصولي توګه دغه دواړه ګرځول شوي دي۔

## د رحماني قانون ماخذ

حضرت ابو ذر غفاري رضی الله تعالی عنه فرمایي چه ما له رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وکړه چه الله تعالی د انسانانو د هدایت لپاره څو کتابونه نازل کړي دي؟ نو رسول الله ﷺ وفرمایل چه یو سل او څلور کتابونه الله تعالی نازل کړي دي۔ لس صحیفې په حضرت آدم علیه السلام، پنځوس صحیفې په حضرت شیث علیه السلام، دیرش صحیفې په حضرت ادریس علیه السلام او لس صحیفې په حضرت ابراهیم علیه السلام۔ او څلور ئې لوی لوی کتابونه لکه تورات، انجیل، زبور او قرآن مجید نازل کړي دي۔

دا یو سل او څلور کتابونه په حقیقت کښې د رحماني قانون مختلفې نسخې دي او بیا د قانون دا اهم کار د یو لك او څلور ویشت زرو انبیاء کرامو څخه واخیستل شو۔ ګوا که چه په ماضي کښې هم دغه دوه لارې یعنې هدٰی او رسول متعین وو۔ لیکن کله چه د رحماني قانون آخري کامله او مکمله نسخته د قرآن مجید په شکل کښې په خاتم الرسل حضرت محمد

رسول الله ﷺ باندې نازله شوه او د راتلونکي لپاره ئې د نبوت اورسالت سلسله ختمه کړه الله تعالی له دغو دواړو طریقو سره دوه نورې طریقې هم شاملې کړې چه هغو ته "اجماع د امت" او "قیاس" ویل کیږي۔

الله تعالی فرمایلي دي: يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا أَطِيعُوا اللَّهَ وَأَطِيعُوا الرَّسُولَ وَأُولِي الْأَمْرِ مِنْكُمْ فَإِنْ تَنَازَعْتُمْ فِي شَيْءٍ فَرُدُّوهُ إِلَى اللَّهِ وَالرَّسُولِ. (سورة النساء، آیت ۵۹)

"ای د ایمان خاوندانو! د الله تعالی او د هغه د رسول اطاعت وکړی او د اولی الامر تابعداري وکړی او که چېرته په یوه شي کښې ستاسو په منځ کښې جګړه جوړه شي نو د الله تعالی او د هغه د رسول ﷺ د احکامو خواته رجوع وکړی"۔

په دې آیت کښې د رحماني هدایت څلور واړو ماخذونو ته اشاره شوې ده چه د اسلامي قانون او د رحماني هدایت څلور مأخذه دي۔ له اطیعوا الله څخه کتاب الله او له اطیعوا الرسول څخه سنت او له اولی الامر څخه اجماع او له فَرُدُّوه الی اللهِ و اِلی الرَّسُولِ څخه د قیاس خواته اشاره شوې ده۔ ګواکه چه اسلامي قانون کله د آدم علیه السلام او د آدم علیه السلام د مصحف په شکل کښې، کله د شیث علیه السلام د پنځوسو صحیفو په شکل کښې، کله د ادریس علیه السلام د دیرشو صحیفو په شکل کښې، کله د ابراهیم علیه السلام د لسو صحیفو په شکل کښې، کله د داوودؑ او د زبور په شکل کښې، کله د موسٰی علیه السلام او د تورات په شکل کښې او کله د عیسٰی علیه السلام او د انجیل په شکل کښې راغلی دی۔ او آخري ناقابل ترمیم قانون د قرآن عظیم الشان په شکل کښې نازل شو چه تفصیل ئې د سنت رسول، اجماع امت او په قیاس سره شوی دی۔

## د اســــــلامي قانون په باره کښې د غیر مسلمو (کفارو) تأثرات

د اسلامي قانون خصوصیات او امتیازات د تقابلي مطالعې نه پرته زمونږ د مسلمانانو دا دعوٰی ده چه د انساني قانون په مقابله کښې "رحماني قانون" د انساني معاشرې لپاره ډېر موزون دی او دا یواځې مونږ نه بلکه ډېرو غیر مسلمو هم دا اقرار کړی دی چه له اسلامي قانون څخه زیات بل قانون د وخت او حالاتو لپاره مناسب نه دی۔

(۱) ډاکټر سمونیل لیکي چه د قرآن مقاصد او مطالب د هرې زمانې لپاره داسې جامع او موزون دي چه ټول آوازونه هغه لره قبلوي او په محلونو، ریګستانونو، ښارونو او سلطنتونو کښې زمزمه کوي۔

(۲) مسټر ولف وایي چه وسیع جمهوریت، رشد او هدایت، انصاف او عدالت، فوجي تنظیم، مالیات او د غریبانو د حمایت او ترقۍ اعلی آئین په قرآن کښې موجود دی۔

(۳) ډاکټر مولیس فرانسیسي لیکي چه د قدرت مهربانیو چه کوم کتابونه انسانانو ته ورکړي دي قرآن کریم له هغو ټولو څخه افضل دی۔ (علوم القرآن ص ۴۳)



## د اسلامــــــي قانون اهمې شعبې

اګر که د قانون شعبه "دستوري قانون" انتظامي قانون او د خارجه پالیسۍ مکمله یادونه په قرآن او حدیثو کښې موجود دی او عملي تجربه ئې د خلفاء راشدینو د خلافت په زمانه کښې ښکاره ده۔ دستوري قانون او انتظامي قانون ئې تر لمر روښانه دی چه زمونږ دستور قرآن او سنت دی او په دې کښې د هر یوه اختیارات محدود دی او خارجه پالیسي هم واضحه ده چه د تعلقاتو د جوړولو او ختمولو لپاره اسلام بنیادي سبب ګرځول شوی دی۔ بیا هم د غیر مسلمو ممالکو سره د معاملاتو او تعلقاتو په لړلو کښې رخصت ورکړی دی او له ټولې دنیا سره ئې د خارجه پالیسۍ د جوړولو اجازه ورکړې ده لیکن د دوستۍ لاس به یواځې اسلامي ممالکو ته اوږدوي۔

په موجوده وخت کښې د بین الاقوامي او یا د ملکي قوانینو له مطالعې څخه دا څرګندیږي چه د قانون دوه شعبې ډېرې اهمې ګڼل کیږي۔ د رعیت خوشحالۍ او ترقي او د امن او امان مسئله د دغو دواړو شعبو سره اړه لري چه په هغه کښې اوله شعبه ئې شخصي قانون Personal Law او دوهمه شعبه ئې د ملکي قوانینو Publec Law ده۔ مونږ د پوره تفصیل له بیانولو پرته د دغو دوو شعبو یوه لنډه غوندې جائزه اخلو تر څو چه دا معلومه شي چه د انساني معاشرې د خوشحالۍ راز یواځې په اسلامي قانون کښې پټ دی۔

## د اسلام شخصي قانون

شخصي قانون په عمومي توګه له افرادو او کورنیو سره تعلق لري۔ په اسلام کښې د فرد د اصلاح لپاره درې شیان په خصوصي توګه بیان شوي دي چه له لمونځ، روژې او حج څخه عبارت دي۔ د دغو دریو عبادتونو سره د نفس اصلاح کیږي۔ مفسرین دغو دریو امورو ته مصلحه النفس وایي۔ په دغو دریو عبادتونو کښې په باقاعدګۍ سره په انسان کښې د اتباع قانون یعنې د قانون اتباع او د ایثار او د همدردۍ جذبه پیدا کیږي۔ همدا وجه ده چه د حدیثو او د فقه په کتابونو کښې د دغو عبادتونو یادونه په شروع کښې کیږي۔

د دغو دریو امورو نه وروسته د کورنۍ او خاندان د جوړولو لپاره نکاح، مهر، نفقه، حضانت او د طلاق دفعات په کتاب النکاح کښې بیانیږي تر څو چه په دې سره انسان په یوې خوشحالې کورنۍ کښې خوشحاله ژوند تیر کړي۔ او د طلاق په قانون سره سهولت ورکړی شو چه د نارضایتي په صورت کښې خلاصون ممکن دی۔ او د وخت د تیریدو لپاره په اسباب ملك کښې بیع، شراء، وصیت، هبه، شفعه او داسې نور قوانین په معاملاتو کښې بیان کړل تر څو چه د مِلکیت اسباب متعین وي او چا ته د چا په جائداد باندې د ناجائزې قبضې د کولو موقع پیدا نه شي او د وفات په صورت کښې د میت په جائداد کښې زور آزمایي، ظلم، ستم او زیاتی څخه د ساتنې لپاره د وراثت عظیم قانون موجود دی۔

## د اسلام ملکي قانون

په دې قانون کښې د څو شیانو رعایت ضروري ګڼل کیږي او د دغو شیانو حفاظت ته په قانون کښې بنیادي اهمیت حاصل دی او هغه په لاندې ډول دي:

﴿۱﴾ د نفس حفاظت ﴿۲﴾ د نسب حفاظت ﴿۳﴾ د مذهب حفاظت

﴿۴﴾ د مال حفاظت ﴿۵﴾ د عقل حفاظت ﴿۶﴾ د عزت حفاظت

په اسلامي قانون کښې الحمد لله چه دغو شپږو شیانو ته کوم تحفظ او ساتنه حاصله ده چیرته هم په بل نظام کښې ورته میسر نه دی۔

**د نفس حفاظت:** د نفس د حفاظت لپاره قرآن کریم واضح اعلان کړی دی چه كُتِبَ عَلَيْكُمُ الْقِصَاصُ فِي الْقَتْلٰى په دې سره د قصاص منصفانه قانون نافذ شو ترڅو چه د چا وینه ضائع نه شي۔ آن تر دې پورې چه الله تعالی په نورو امورو کښې سهو او خطاء معاف کړې ده یعنې په حقوق الله کښې که چیرته له یوه انسان څخه غلطي وشي نو الله تعالی ئې معاف کوي۔ د رسول الله ﷺ ارشاد ګرامي دی چه: رفع عن أمتي الخطاء و النسیان. (یعنې زما له امت څخه خطاء او نسیان معاف دی)

لیکن په انساني قتل کښې د خطاء په صورت کښې کفاره او دیت واجب ګرځول شوی دی بیا هم که چیرته د قاتل وس و نه رسیږي نو بیا ئې د کلي والو لپاره د "قسامت قانون" نافذ کړ او د دیت د وصولولو لپاره ئې عام کلي وال ذمه وار وګرځول۔ انساني نفس خو یوې خوا ته پریږده د انسان د یوې وړې ګوتې هم حفاظت شوی دی چه د یو بند په عوض کښې د دیت یو په دریمه برخه به واجب وي۔

**د نسب حفاظت:** نن صبا د ترقي یافته ممالکو حالات وګورئ چه هغوی د جنسي خواهشاتو غلامان جوړ شوي دي چه له وجهې ئې هلته نسب محفوظ نه دی۔ اسلام د نسب حفاظت تر دې اندازې پورې کړی دی چه څو کاله مخکښې د هندوستان اعلی عدالت دا فیصله وکړه چه "که چیرته د چادر او چاردیواري حفاظت مقصود وي نو د مسلمانانو د رجم او حد په قانون دې عمل وشي" د زنا او حرام کاریو د ممانعت برسیره د نسب له فساد څخه د بچ کیدو لپاره ئې د نظر حفاظت لازمي ګرځولی دی چه مسلمان ښځې او نر ته په کار دي چه خپل نظر لاندې وساتي او پرده ئې لازمي ګرځولې ده او همدارنګه له نامحرمې ښځې سره خلوت او ناجائز اختلاط ئې ممنوع ګرځولی دی او د فحش او بې حیایي بیخ کني پکښې شوې ده۔ د زنا د جرم د ثبوت په صورت کښې شادي شده سړي او ښځې ته د رجم او غیر شادي شده ته د سلو دُرو د وهلو حکم ورکړ شوی دی۔ د الله تعالی ارشاد دی: اَلزَّانِيَةُ وَ الزَّانِيْ فَاجْلِدُوْا كُلَّ وَاحِدٍ مِّنْهُمَا مِائَةَ جَلْدَةٍ. (سورة النور، آیت ۲)
"یعنې زناکار سړي او زناکارې ښځې ته سل سل دُرې ورکړئ"۔

**د مذهب حفاظت:** له مذهب او عقیدې سره د انسان ډیره مینه وي۔ په اسلام کښې د "ذمي" د حقیقت له منلو نه وروسته د هغوی په مذهبي او اعتقادي مسائلو کښې مداخلت ممنوع



ګرځول شوی دی لیکن اسلام کوم چه ابدي او ازلي مذهب دی د هغه مخالفت په صورت کښې د ارتداد حد ورته تاکل شوی دی۔ من بدل دینه فاقتلوه. (چا چه خپل دین بدل کړ هغه قتل کړئ)۔

**د مال حفاظت:** د مال او دولت حفاظت د نننۍ زمانې یوه لویه مسئله جوړه شوې ده۔ نن دولت زمونږ حفاظت نه شي کولی بلکه مونږ د دولت حفاظت کوو۔ او اسلام له اول څخه انسان ته د حلالې روزۍ ترغیب ورکړی دی۔ د هغه د حلال مال حفاظت ئې داسې کړی دی چه د یوه مسلمان مال په غیر شرعي طریقې سره خوړل حرام دي۔ همدا وجه ده چه چور، چپاول، غلا او دوکه ورکول ئې جرم ګرځولی دی۔ که چیرته یو سړی د چا حلال مال وخوري نو په هغه باندې د سرقې حد جاري کیږي او د دې مستقل حکم ورکړ شوی دی چه: اَلسَّارِقُ وَ السَّارِقَةُ فَاقْطَعُوْا اَيْدِيَهُمَا. (سورة النور، آیت )

**د عقل حفاظت:** عقل د انسان هغه جوهر دی چه د هغه ساتل د وخت اهم ضرورت دی۔ په عصر حاضر کښې د منشیاتو وباء په عالمي سطح د حکومتونو لپاره یوه لویه مسئله جوړه شوې ده۔ له امریکې سره ټوله دنیا حیرانه ده چه په ملیونونو خلك د دغې بدې نشې ښکار شوي دي او په خودکُشۍ باندې مجبور شوي دي لیکن بحیث مسلمان زما دا عقیده ده چه که چیرته د شراب خورۍ حد مطالعه کړي او یوائې د باب الاشربه د باب قانون نافذ کړي او د شرابو د چښلو د حد اجراء وکړی شي نو په ټول هیواد کښې د هیروئینو له نشه کوونکو څخه به یو کس هم پاتې نه شي او د عقل دا حفاظت د شرب الخمر د حد د اجراء په صورت کښې ممکن دی۔

**د عزت حفاظت:** د انسان له ټولو نه قیمتي جوهر عزت دی۔ د دنیا تقریبا په هر ملك کښې د عزت د ساتنې قانون شته لیکن د اسلام دا قانون له ټولو څخه اهم او ضروري دی۔ په دې کښې یو سړی د زاني یا غله غوندې په قبیحو الفاظو سره نه شي بللی او که نه نو حد قذب به ورباندې جاري کیږي۔ له دې برسیره هره هغه کلمه چه له مخې ئې د یوه مسلمان عزت او وقار پرې زخمي کیږي د مؤاخذې وړ جرم ګرځولی دی۔

## په غیر اسلامي ممالکــــو کښې د قضاء د اجراء طریقه

غیر اسلامي ممالکو پخپلو عدالتونو او محکمو او د هغو د قضاء په طریقهٔ کار باندې ډیر غره او ناز کوونکي دي۔ او د خپلې قضاء د طریقې لپاره هر یوه ته دعوت ورکوي لیکن دا تولې ژبنۍ خبرې دي۔ له اخبارونو، رسائلو، جرائدو او د اسې نورو خبري رسنیو څخه په ښکاره توګه څرګندیږي چه د هغوی د قضاء په طریقه کښې د ثروت او اثر و رسوخ خاوندانو ته هر ډول تحفظ حاصل دی او حال دا چه غریبانو، نادارو، کمزورو او ناتوانو خلکو ته له ذلت، رسوایي څخه پرته نور هیڅ شی پکښې نشته۔

اسلام د فطرت دین دی او د هغوی د قضاء طریقه د فطرت عین مطابق دی۔ چه په هغه کښې هر یوه ته پوره په عدل او انصاف سره د هغوی حق د هغوی په کوروڼو کښې ورکول کیږي۔ د غیر اسلامي ممالکو د پروپیګنډې په ځواب کښې د دار العلوم حقانیې نائب مفتي حضرت مولانا غلام الرحمٰن صاحب یو مضمون د ”غیر اسلامي ممالکو د قضاء طریقهٔ کار“ تر عنوان لاندې ولیکه چه ماهنامه ”الحق“ هم شائع کړی وو۔ او اوس ئې د افادې او له فقه او فتاوٰ سره ئې د مناسبت په وجه په فتاوٰی دار العلوم حقانیه کښې هم شامل کړی شو۔

از مرتب مد ظله العالیه

## په غیر اسلامي ممالکو کښې د قضاء طریقهٔ کار

قضاء د اسلامي تشخص د تکمیل یوه اهمه حصه ده چه له هغې نه پرته اسلامي ژوند ناقص او نامکمل دی۔ د قضاء د نظام په ذریعه د مؤاخذې او محاسبې دا اهمه ماده روښانه کیږي کومه چه د اسلامي زندګۍ بنیاد پرې قائم دی۔ که چېرته د انسان په انفرادي او اجتماعي افعالو باندې خپل ځان او یا د کوم قابل تعظیم شخص نظر نه وي او یا هغه آزاد پریږدي او د هغه په کړلو افعالو باندې څه پوښتنه ګرویژنه نه وي نو په دې سره د بهیمي قوت د حوصله افزایۍ د اسې موقع پیدا کیږي چه له وجهې ئې انساني ویاړونه مجروح (زخمي) کیږي۔

د اسلام د نظام قضاء او قانون له مطالعې څخه څرګندیږي چه قضاء یوازې یو معاشرتي ضرورت نه ده چه حاجت ئې په اجتماعي معاشرې کښې محسوسیږي بلکه دا د مسلمانانو یوه د اسې دیني او مذهبي فریضه ده چه ضرورت ئې قدم په قدم محسوسیږي۔ قضاء د نورو عباداتو غوندې یو مستقل عبادت دی۔ حضرت عبد الله ابن مسعود رضی الله عنه فرمایي چه د دوو کسانو په منځ کښې د فیصلې د کولو لپاره کښیناستل ما ته د اویا کالو عبادت څخه ډیر خوښ دی۔ چنانچه علماء کرامو قضاء د الٰهي تقرب یوه ذریعه ګڼي۔



قال الشیخ وهبة الزحیلیؒ: قال بعضهم القضاء امر من امور الدین و مصلحة من مصالح المسلمین تجب العنایة به لان با لنّاس الیه حاجة عظیمة و هو من انواع القربات الی الله عزّ و جلّ و لذا تولاه الانبیاء علیهم السلام. (الفقه الاسلامی و ادلته ج۶، ص۷٤، کتاب القضاء)

”ځینې علماء فرمایي چه قضاء د دین په امورو کښې یو اهم امر دی او د مسلمانانو د بهترۍ یوه شعبه ده چه باید ډیر ښه اهتمام ئې وشي ځکه چه خلکو ته ئې ضرورت دی او د الله تعالی ته د رسیدلو له ذرائعو څخه یوه ذریعه ده۔ همدا وجه ده چه انبیاء کرام علیهم السلام هم د اذمه واري قبوله کړې وه“۔

نو ځکه په اسلامي معاشره کښې انفرادي او اجتماعي غرض دا چه د ژوندانه په هره شعبه کښې د قضاء رعایت ضروري دی۔ د هغې له ادا کولو نه پرته مسلمان د مسئولیت له ذمه واری څخه بري الذمه نه شي ګرځیدلی۔

## د قضاء د نظام د تنفیذي قوت ضرورت

په د اسې صورت کښې د قضاء د نظام د نفاذ او اجراء لپاره د یوه ولایت عامه یا تنفیذي قوت په وجود پورې موقوف نه دی۔ همدا وجه ده چه تحکیم یعنې یو ثالث ته د فیصلې د کولو اختیار ورکول د قضاء د نظام یوه برخه ده۔ په دې کښې اګر که د حکم یعنې ثالث ولایت ناقص وي او یوازې تر طرفینو پورې محدود وي۔ او طرفین (دواړه خواوې) هم د فیصلې له کولو نه مخکښې د کومې وجهې له بیانولو څخه پرته قضاءٔ د رجوع حق لري۔ لیکن کله چه یو ځل د ثالث فیصله صادره شي نو دا مستقله قضاء جوړیږي او د بل اعلیٰ قاضي په عدالت کښې د مرافعې په وخت کښې له کوم خاص ضرورت څخه بغیر ئې څوک د فسخ کولو حق نه لري۔ طرفین به د معاهدې مطابق د دې فیصلې پابند پاتې کیږي۔

له دې څخه معلومه شوه چه د قضاء نظام په جزوي توګه د طاقت او قوت په استعمال پورې موقوف نه دی۔ دا ځانته خبره ده چه د شر القرون په دې دوران کښې انسان د طبعي حرص او لالچ په وجه د بل چا د حق او د ادا کولو لپاره په آسانتیا سره نه تیاریږي او د خپل حق منلو لپاره تول وسائل په کار اچوي۔ نو ځکه د قضاء د نظام د مثبتو نتائجو د مشاهدې لپاره تنفیذي قوت ته ضرورت پیدا کیږي تر څو چه د ”وَ اَنزَلْنَا الحَدِیْدَ فِیْهِ بَاْسٌ شَدِیْدٌ وَّ مَنَافِعُ لِلنَّاسِ“ په برکت سره د شرعي فیصلې تقدس او عظمت پخپل حال پاتې شي۔

## په غیر اسلامي ملکونو کښې د قضاء د نظام څو نمونې

د مسلمانانو د ممالکو غوندې په غیر اسلامي ممالکو کښې هم چېرته چه د کفارو غلبه وي او مسلمانان په اقلیت کښې وي مسلمان د خپل مذهبي تشخص د قائمولو پابند دي۔ لکه څنګه چه له عباداتو څخه مسلمانان بري الذمه نه شي جوړیدلی نو همدارنګه د خپل

طاقت مطابق مسلمانان خپل مسائل په اسلامي طرز حیات باندې د فیصله کولو پابند دي- الله تعالی ارشاد فرمايي: فَلاَ وَ رَبِّكَ لاَ يُؤْمِنُوْنَ حَتّٰى يُحَكِّمُوْكَ فِيْمَا شَجَرَ بَيْنَهُمْ ثُمَّ لاَ يَجِدُوْا فِيْٓ اَنْفُسِهِمْ حَرَجاً مِّمَّا قَضَيْتَ وَيُسَلِّمُوْا تَسْلِيْماً☆ (سورة النساء، آیت ۶۵)

"پس ستا په رب باندې قسم هغه څوك به مؤمن نه وي تر هغه وخته پورې چه تا منصف و نه بولي په هغې جګړې کښې چه د هغوی تر منځ پورته شوې وي- او بیا ستا په فیصله باندې پخپل زړه کښې تنګي پیدا نه کړي- او په رضاء او رغبت سره ئې قبوله کړي"-

د مکي ژوند له جائزې څخه دا اندازه لګیږي چه له هجرت څخه مخکښې مسلمانانو ته په دې ځای باندې غلبه حاصله نه وه بلکه د اقلیت په حیثیت سره دلته اوسیدل- لیکن له دې سره سره مسلمانانو پخپل منځ کښې خپلې فیصلې کولې او یو غیر اسلامي فیصله کوونکي ته هیڅ کله نه لاړل او نه ئې د تللو ضرورت محسوس کړی دی-

او همدارنګه په مدني ژوند کښې اګر که په خاصو علاقو باندې د مسلمانانو غلبه وه لیکن کومې علاقې چه د مسلمانانو له قبضې څخه د باندې وې او د هغه ځای اوسیدونکي د اسلام په عظیم نعمت باندې مشرف کیدل نو خپلې معاملې به ئې پخپل منځي مشورې سره حل کولې-

## د فقهي جزئیاتو تائید

فقهاء کرامو د دې خبرې تصریح کړې ده چه که چېرته په یو ځای کښې د کفارو غلبه وي او مسلمانان په اقلیت کښې وي نو هغوی به د خپل منځي منازعاتو د فیصله کولو لپاره قاضي مقرروي- علامه کمال ابن الهمام فرمايي چه:

هذا اذا لم يكن سلطان و لا من يجوز منه كما فى بعض بلاد المسلمين غلب عليهم الكفار كقرطبه فى المغرب الان و بنسيه و بلاد الحبشه و اقروا المسلمين عندهم على مال يؤخذ منهم يجب عليهم ان يتفقوا على واحدٍ منهم يجعلونه واليا فيولّى قاضياً و يكون هو الذى يقضى بينهم و كذا ينصبوا لهم اماً ليصلّى بهم الجمعة. (فتح القدير ج۶، ص۳۶۵، كتاب القضاء)

"دا حکم هغه وخت دی په کوم وخت کښې چه حاکم نه وي یا له کوم کافر څخه د قضاء د قبلولو هیڅ صورت نه وي لکه څرنګه چه په ځینو مغربي او حبشي ممالکو کښې دی- نو چه کله مسلمان په باقاعده توګه د مال د اداکولو په معاهده باندې ولاړ وي نو دا پرې ضروري ده چه پخپل منځ کښې په یوه چا باندې اتفاق وکړي او قاضي ئې مقرر کړي تر څو د دوی تر منځ فیصلې وکړي او د هغو لپاره امام وټاکي تر څو چه د جُمعې او اخترونو لمونځونه ورکړي"-

## د مسلمانانو په اتفاق سره د قاضي ټاکنه

په داسې حالت کښې که چېرته مسلمانانو په اتفاق سره یو معتمد سړی خپل فیصل او قاضي وټاکي نو د هغه حیثیت به د قاضي وي- مسلمانان به د هغه د فیصلې پابند او منونکي وي- چنانچه په رؤیت هلال کښې په صوم او افطار کښې به د هغه فیصله نافذه وي او د جُمعې



او عیدینو لمونځونه به د نورو شرائطو له رعایت څخه وروسته د هغه په موجودوالي کښې ادا کیږي- شیخ بدر الدین محمود بن اسمٰعیل الشهیر بابن قاضي سماوۃ فرمايي چه:

و اما فى بلاد عليها ولاة كفار فيجوز للمسلمين اقامة الجمع و الاعياد و يصير القاضى قاضياً بتراضى المسلمين. (جامع الفصولين ج۱، ص۱۴، الفصل الاوّل فى القضاء)

"په کومو ځایو باندې چه د کفارو غلبه وي نو د مسلمانانو لپاره د جُمعې او عیدینو د لمونځونو اداکول جائز دي او د مسلمانانو پخپل منځي رضامندي سره ټاکل شوی قاضي به باقاعده قاضي وي"-

علامه علاؤ الدین الحصکفي د دې د نور اهمیت په بیانولو سره فرمايي: و لو فقد وال الغلبة على كفار و جب على المسلمين تعين وال. (الدر المختار على هامش رد المحتار ج۴، ص۳۰۸، كتاب القضاء)

"که چېرته د کفارو په غلبې سره مسلمانان له ولایت عامه څخه محروم شوي وي بیا هم د خپل ځان لپاره د والي ټاکنه په هغوی باندې ضروري ده"-

## په عصر حاضر کښې په غیر اسلامي ملکونو کښې د قضاء څو صورتونه

نن صبا دنیا د مذهب او عقیدې، رنګ او نسل او د سوچ او فکر په بنیاد سره تقسیم شوې ده- په عامه محاوره کښې کوم ته چه جمهوري دور ویل کیږي په دې کښې که چېرته مسلمان په اکثریت کښې وي او حکومت کوي نو د خپلو ټولو وسائلو په کار اچولو سره په دې ملك کښې د مکمل اسلامي نظام د نفاذ لپاره د دې ملك د هر اوسیدونکي ذمه واري ده- لیکن چېرته چه مسلمانان په اکثریت کښې نه وي بلکه د یو غیر اسلامي نظام حیات تابع وي نو په هغو ملکونو کښې هم د بشري طاقت په اندازه به مسلمانان د خپلو مذهبي اقدارو د رعایت کولو پابند وي- د عقائدو او اعمالو درست والی او د اسلامي طرز حیات لاندې ژوند تیرول خو انفرادي معامله ده چه په هغه کښې د هغوی یو عذر هم د اورید و قابل نه دی- په خاصه توګه په هغو ملکونو کښې چه په هغوی کښې مذهبي آزادي وي لیکن د خپل منځي جګړو د اسلامي تعلیماتو په رڼا کښې د فیصله کولو په ظاهر کښې دوه صورتونه دي-

**اول صورت:** اول صورت دا دی چه مسلمانان که چېرته په اجتماعي توګه د دې نظام له قیام څخه عاجز وي نو د خپلې مذهبي جذبې په رڼا کښې دې په انفرادي توګه خپل معاملات د قرآن او حدیثو په رڼا کښې طی کړي- په داسې صورت کښې د یوه غیر اسلامي حکومت لپاره د هیڅ ډول قانوني مشکلاتو د پیدا کولو ضرورت نشته بلکه له دې څخه مخکښې چه یو غیر مروجه قانون ته ضرورت پیښ شي مسلمانان دې خپل معاملې د یوه داسې عالم په ذریعه فیصله کوي چه د اسلامي تعلیماتو مطابق د متنازعه معاملاتو د فیصله کولو اهلیت پکښې وي- په دې سلسله کښې د یوه فعال اسلامي تنظیم څخه هم کار اخیستلی شي چه هغه تنظیم د مسلمانانو د معاملاتو د فیصله کولو انتظام وکړي او یا ئې د بل چا په ذریعه د فیصلٰه کولو انتظام او بندو بست وکړي-

## د انفرادي طریقۀ کار کمـــــزوري

له دې طریقو څخه د ښو نتائجو توقع کیدلی شي لیکن بیا به ئې هم دائره ډیره محدوده وي ځکه چه د هغه حیثیت له "تحکیم" څخه پرته د بل شي نه دی. او د تحکیم دائره ډیره محدوده ده. برسیره پر دې په د اسې صورت کښې په سیاسي توگه د مسلمانانو لپاره د مشکلاتو د پیدا کیدو امکان دی. لومړی دا چه د مسلمانانو سره د داسې نظام د تنفیذ لپاره د یو مروجه قانون اسره نه وي نو محض په دیني جذبې سره د هغه د تابع پاتې کیدو ډیر کم نتائج مخې ته راځي. انسان په طبعي توگه باندې د نقصان د برداشت کولو او یا په یوه معامله کښې د ناکامۍ د منلو لپاره په آسانۍ سره نه تیاریږي. عین ممکن دی چه که چېرته یوه مسلمان ته په شرعي فیصله کښې خپل نقصان ور معلوم شي نو بیا د یوه مسلمان فیصله کوونکي خوا ته د تللو ضرورت نه محسوسوي بلکه نورې ذریعې لټوي او رائج الوقت قانون د خپل ځان لپاره اسره گرځوي. برسیره پر دې په شرعي توگه د "محکم" اختیار تر څو مسائلو پورې محدود وي. قصاص، دیت او حدودو غوندې مسائلو د فیصله کولو اهلیت په محکم کښې نشته. او که چېرته د یوه فعال اسلامي تنظیم او یا دیني جذبه لرونکي مسلمانانو په کوششونو سره دغه نظام کامیاب شي او ښه نتائج ئې محسوس شي نو دا به د مسلمانانو د سیاسي استحکام دلیل وي او له هغه څخه رائج الوخت حکومت د خپل ځان لپاره په راتلونکي کښې خطره محسوسوي. ممکن دی چه د دې خپل منځي تعاون په وجه سره مسلمانان په ځینو علاقو کښې په دې درجه کښې منظم وي چه هغوی ته په معاشرتي میدان کښې په عملي توگه تنفیذي قوت حاصل وي او مسلمانان په جبر او زور سره د اسلامي فیصلې د منلو لپاره تیاروي. دا صورت اگر که پخپل ذات کښې د ډیرو ښو نتائجو حامل دی لیکن په سیاسي اعتبار سره د مسلمانانو کوششونه متاثر کیدلی شي چه له وجهې ئې غیر اسلامي اعلیٰ اقتدار په داسې کامیابیو کښې د خپلو ځانونو لپاره خطر محسوسوي.

**دوهم صورت:** په داسې غیر اسلامي ممالکو کښې مسلمانان خپلې ذمه وارۍ په یوه بلې طریقه هم پوره کولی شي او هغه دا چه د سلامي نظام قضاء د تحفظ او ساتنې لپاره د رائج الوقت قوانینو څخه کار واخلي او دا په موجوده وخت کښې د شخصي قوانینو لاندې هم قابل عمل دی. ځکه که چېرته مسلمانان محنت وکړي او په سیاسي میدان کښې دومره مقام پیدا کړي چه د وخت په حکومت باندې خپل حقوق ومني او مسلمانان د داسې قوانینو په جوړولو باندې زور واچوي چه په رائج الوقت قوانینو کښې مسلمانانو ته د خپل مذهب مطابق د فیصله کولو حق ورکړی شي یعنې کوم چه مسلمانان وي هغوی به د خپل مذهب مطابق فیصلې کوي. ممکن دی چه اعلیٰ اقتدار په هره مسئله کښې د داسې فیصلې د کولو اجازه ور نه کړي لیکن په ځینو امورو کښې دا حق هم د مسلمانانو لپاره د غنیمت موقع دی. ځکه چه "ما لا یدرك کله لا



یترك کله" قاعدې ته په نظر کولو سره څومره چه کید ای شي له هغه څخه دې اعراض نه کوي. په د اسې صورت کښې د علاقایي تحدید غوندې که چېرته تر ځینو مسائلو پورې د قاضي د ائرۀ اختیار محدود وي نو په دې کښې هیڅ حرج نشته. ځکه چه د قضاء په نظام کښې د دې گنجائش شته چه د یوه قاضي د ائرۀ اختیار دې د ایامو او یا د حکامو په اعتبار سره محدود وي چنانچه علامه الماورديؒ فرمایي:

و یجوز ان تکون ولایة القاضی مقصورة علی حکومة بینهما بین خصمین و لا یجوز ان ینفذ النظر الی غیرهما من الخصوم و تکون ولایة علی النظر بینهما باقیة ما کان التشاجر بینهما باقیاً فاذا بت الحکم بینهما زالت ولایة........ فلو لم بعین الخصوم و جعل مقصوراً علی الایام و قال فلا تك النظر بین الخصوم فی یوم السبت وحده جاز نظره فیه بین الخصوم فی جمیع الاعاوی. (الاحکام السلطانیة و الولایات ص۷۳)

"دا جائزه ده چه د یوه قاضي د ائرۀ اختیار دې د خاصو افرادو تر فیصلې پورې محدود وي او له هغو نه پرته په نورو باندې هغه ته د فیصلې اختیار حاصل نه وي. د هغو مخصوصو افرادو ترمنځ تر څو پورې چه معامله باقي وي قاضي ته د فیصلې د کولو حق حاصل وي او کله ئې چه فیصله وشي نو د قاضي اختیار هم ختم کیږي. که چېرته د طرفینو تعین نه وي بلکه په خاصو ایامو کښې قاضي ته د فیصله کولو اختیار ورکړی شي مثلا دا چه ورته ووایي چه تا د هفتې په ورځ د فیصله کولوحق حاصل دی نو د هفتې په ورځ به هغه ته د ټول فیصلو حق حاصل وي".

## له غیر اسلامي حکومت څخه د قضاء د منصب د قبلولو شرعي حیثیت

په دې باندې دا شك او شبهه کیدلی شي چه له یوه غیر اسلامي حکومت څخه د قضاء د منصب قبلول تر کومه ځایه پورې جائز دي. ځکه چه په دې کښې غیر اسلامي حکومت ته دوام وربخښل او له هغه سره د تعاون یو صورت دی کوم چه د تعاون علی المعصیت سره برابر دی؟ لیکن د دې ځواب دا دی چه تر څو پورې د مذهبي عقیدې او تشخص د مجروح کیدو اندیښنه نه وي نو بیا د داسې عهدې په قبلولو کښې څه حرج نشته. په کوم ځای کښې یعنې په یوه غیر اسلامي حکومت کښې چه مسلمانان پخپلو پښو باندې د دریدلو صلاحیت و نه لري نو د خپلو حالاتو مطابق فیصله کولی او شرکت کولی شي او که چېرته د یوه غیر اسلامي قانون په ذریعې سره اسلامي قضاء ته د وام ور وبخښل شي نو د داسې قاضي فیصله به د مسلمانانو په حق کښې واجب العمل وي. لکه څرنگه چه علامه ابن عابدینؒ فرمایي:

و لکن اذا ولی الکافر علیهم قاضیاً و رضیه المسلمون صحت تولیة بلا شبهة. (رد المحتار علی الدر المختار ج۴، ص۳۰۸، کتاب القضاء)

"که چېرته یو کافر د مسلمانانو لپاره د دوی د مرضي مطابق قاضي مقرر کړي نو د هغه دا تولیت له شبهې پرته جائز دی".

د اسې قاضي د مسلمانانو لپاره هغه ټول امور جاري کولی شي کوم چه په د ار الاسلام کښې د یوه قاضي په د ائرۀ اختیار کښې وي- چنانچه شیخ بدر الدین فرمایي:

و کل مصر فیه وال مسلم من جهة الکفار تجوز فیه اقامة الجمع و الاعیاد و اخذ الخراج و تقلید القضاء و تزویج الایامی لاستیلاء المسلم علیهم. (جامع الفصولین ج ۱، ص ۱٤، الفصل الاول فی القضاء)

"هغه علاقه چه په هغې کښې د کافر بادشاه لخوا مسلمان والي وټاکل شي نو په هغې کښې هغه ته د جُمعې او عیدینو اقامت، خراج، د قضاء تقرري او یتیمانو ته د ودونو د برابرولو حق حاصل دی ځکه چه په دوی باندې په مقامي توګه د مسلمانانو حکومت دی"-

په هر حال د کفارو د غلبې په وخت کښې د هغوی قوت منل په شریعت کښې ناجائز نه دي لیکن که چېرته د مسلمانانو په ترك موالات سره کفري حکومت متزلزل کیده او د خپل ژوند د پوره کیدو په حالت کښې وي نو بیا د کفارو دې بیړۍ ته چه د ډوبیدو په حال کښې وي تکیه او اسره ورکول د تعاون علی المعصیت سره برابر دی- نو په د اسې حالت کښې د ا بیړۍ یو پوه او وفادار ملاح ته حواله کول په کار دي تر څو چه هغه د هغوی د بهترۍ په باره کښې سوچ وکړی شي-

## د انصاف د نه رعایت کیدو په وخت کښې د قضاء د منصب قبلول جائز نه دي

لیکن د ا طریقه په یوه د اسې اسلامي ملك کښې خپلول په هغه وخت کښې مرخص دی چه کله د وخت حکومت د دوی په مذهبي معاملاتو دخل اندازي او لاس وهنې نه کوي- او که چېرته په د اسې حالت کښې مسلمان انصاف نه شو قائمولی نو بیا دې د ظلم او ستم لپاره آلۀ کار نه جوړیږي او که نه نو د خپل مذهبي تشخص له خرابولو څخه پرته بله فائده نه پکښې معلومیږي- چنانچه علامه ابن نجیم المصريؒ فرمایي:

ما ذکر المصنف من جواز التقلید من الجائر مقید بما اذا کان یمکنه من القضاء با لحق اما اذا لم یمکنه فلا کما فی الهدایة لان المقصود لا یحل به. (البحر الرائق ج ٦، ص ۲۷٤، کتاب القضاء)

"مصنفؒ چه له ظالم څخه د قضاء د قبلولو کومه مسئله بیان کړې ده د ا په هغه وخت کښې دی چه کله قاضي په انصاف سره فیصله کولی شي او کله چه د ا ممکنه نه وي نو بیا قضاء او د قضاء د منصب او د عهدې قبلول جائز نه دي لکه څرنګه چه په هدایه کښې راغلي دي ځکه چه په د اسې صورت کښې د قضاء مقصود نه حاصلیږي"-



## د اسلام د عـــــدل او انصاف نظام

## له مولانا مفتي غلام الرحمٰن څخه

په هر دور کښې د دنیا د هر ملك د حکمرانانو لخوا څخه د ا آواز پورته کیږي چه مونږ هر یوه ته انصاف فراهم کوو او زمونږ فیصلې به د عدل او انصاف له تقاضو سره عین مطابق وي- په دې آواز کښې مسلم او غیر مسلم ټول شریك دي لیکن تر ننه پورې هیچا هم د عدل او انصاف ټولې تقاضاوې پوره نه کړې- بلکه برعکس ئې د عدل او انصاف له نظام سره ئې تمسخر وکړل- د ټولې دنیا د قوانینو په نظامونو کښې یوائخنی اسلامي نظام قانون دی چه په هغه کښې امیر، فقیر، آقا، غلام، بادشاه، رعایا، کوچنیان او لویانو ته په یوه نظر کتل کیږي- اسلامي قانون ته د ا شرف حاصل دی چه په هغه کښې د عدل او انصاف د تقاضو مطابق فیصلې کیږي- د اسلامي او غیر اسلامي نظام عدل او انصاف د حقیقت د واضح کولو لپاره د دار العلوم حقانیې سابق نائب مفتي حضرت مولانا غلام الرحمٰن صاحب مد ظله یو جامع مضمون ولیکه چه بیا وروسته د دار العلوم حقانیې ترجمان ماهنامه " الحق" هم شائع کړ- اوس د ا مضمون د اسلامي قانون او فقهې سره د مناسبت په وجه د عمومي فائدې لپاره په فتاوٰی حقانیه کښې هم شاملیږي-

از مرتب

د عدل ټکی د قرآن او حدیث په مختلفو ځایونو کښې استعمال شوی دی چه په مقابله کښې ئې د ظلم ټکی راغي- د اهل لغت په نزد ظلم "گذاشتن چیزی در غیر محل آن" (غیاث اللغات) ته وايي- د ظلم د دې مفهوم په اعتبار سره په دې کښې ډیر وسعت موجود دی چه له ادنٰی څخه ادنٰی ګناه نه ئې را واخله تر لویو او آن تر شرکه پورې ټولو ته شامل دی- مثلاً خداوند عالم چه د کوم مقصد لپاره انسان ته ژبه او د ویلو قوت ورکړی دی که چېرته د ژبې استعمال په همدې قوت کښې استعمال نه شي نو د ا ظلم دی- نو د ظلم د مفهومي اعتبار له مخې د هغه په مقابله کښې چه عدل دی هم همدارنګه وسعت موجود دی-

## د عدل جامعیت او چارپیروالی

انسانئي اندامونو او خدایي انعامونو لره پخپل خپل ځای کښې استعمالول عدل دی- په قرآن مجید کښې چه چېرته د عدل د قیام مطالبه له بني آدم څخه شوې ده په هغه ځای کښې له عدل څخه د هغه همدا عمومي مفهوم مراد دی- همدا وجه ده چه د پاکستان مفتي اعظم مفتي محمد شفیع صاحبؒ پخپل مشهور تفسیر معارف القرآن کښې فرمایي:

"د انصاف قائمول او په هغه باندې کلك دریدل یوائخې د عدالت او حکومت یوائخې د

عدالت او حكومت فريضه نه ده بلكه هر انسان د هغه مكلف او مخاطب دى چه هغه به پخپله هم په انصاف باندې قائم ولاړ وي او نورو ته به هم په انصاف باندې د دريدلو امر كوي. هو! د انصاف يوه درجه او شعبه د حكومت او حكامو سره مخصوصه ده او هغه دا چه كله يو شرير او سركشه انسان د انصاف په خلاف سر پورته كړي نو پخپله په انصاف باندې قائم وي او نه نور خلك د انصاف كولو ته پريږدي نو هغوى ته د حاكمانه سزا او تعزير ضرورت دى. د انصاف او عدل دا اقامت ښكاره خبره ده چه حكومت ئې كولى شي چه د چا په لاس كښې اقتدار وي. او نن صبا په دنيا كښې جاهل عوام خو پريږده تعليم يافته او پوهان خلك هم دا گڼي چه انصاف كول يوائې د عدالت او حكومت فريضه ده او عوام ئې ذمه وار نه دي. او دا تر ټولو لويه وجه ده چه په هر ملك او سلطنت كښې عوام او حكومت په دوو متضادو ډلو باندې ويشل شوي دي". (معارف القرآن ج۲، ص۵۷۱/۵۷۲)

دعدل د قيام د غوښتنې تعلق د انسان د انفرادي او اجتماعي ژوند د هرې شعبې سره دى. او د انسان په اخلاق او كردار (Character)، ظاهر او باطن، عبادات و معاملات، سياست او مذهب خلاصه دا چه په هرې يوې شعبې كښې د عدل شتون ضروري دى. دغه عام تعلق ته په كتو سره خداوند عالم چه كله انبياء او رسولان عليهم السلام دنيا ته وليږل او د هغوى په وجه ئې انسان ته د رشد او هدايت د درس وركولو اراده وكړه نو د انبياء كرامو عليهم السلام په وجه سره ئې د عدل د قيام اراده هم وكړه چه تكميل ئې په آسماني كتابونو باندې وكړى شو. په قرآن حكيم كښې د الله تعالى ارشاد دى:

لَقَدْ اَرْسَلْنَا بِالْبَيِّنٰتِ وَ اَنْزَلْنَا مَعَهُمُ الْكِتٰبَ وَ الْمِيْزَانَ لِيَقُوْمَ النَّاسُ بِالْقِسْطِ. (سورة الحديد، آيت ۲۵)

"مونږ خپل رسولان له ښښو نښانو سره وليږل او له هغو سره مو كتاب او تله نازله كړه تر څو چه خلك په انصاف باندې سيده و اوسي".

شيخ الاسلام و المسلمين مولانا بشير احمد عثماني صاحبؒ فرمايي:

"يعني الله تعالى كتاب ځكه نازل كړ چه انسان په عقائدو، اخلاقو او اعمالو كښې د صحيح انصاف او عدل په لارې باندې روان شي. او د افراط او تفريط په لارې باندې قدم وا نخلي. (تفسير عثماني ص۷۰۱)

الغرض د انبياوو د بعثت له نورو مقاصدو برسيره يو اهم مقصد د عدل قيام هم دى.

## مروجه بين المللي قوانين او د هغو نتائج

نن صبا چه د دنيا په هر قوم باندې نظر واچول شي نو د عدل دا مطالبه به د مختلفو نعرو او مختلفو آوازونو په صورت كښې واورى. كله د مساوات او برابرۍ، او كله د انصاف او د حقوقو د بحالۍ په عنوان سره د عوامو او خواصو په ژبو باندې جاري دي. ليكن عملاً دا آواز له عنقاء سره برابر دى. بلكه ورځ په ورځ په جرائمو او مظالمو كښې له حده زيات ترقي راځي.



قانون عملاً معطل دى. نن صبا په هر ملك كښې د قانون د جوړولو لپاره پارلمانونه جوړ شوي دي او د جرائمو د انسداد لپاره مختلف قوانين وضع كيږي ليكن د دې په ځاى چه په جرائمو كښې كمى راشي زياتوالى پكښې راځي. شعر:

نگاہ خلق میں دنیا کی رونق بڑھتی جاتی ہے
میری نظروں میں پھیکا رنگ محفل ہوتا جاتا ہے

تاسو صاحبان د دوو دقيقو لپاره خپل ذهنونه خالي كړى او په عالمي سطحې سره د جرائمو په معيار باندې نظر واچوى نو دا حقيقت به درته واضح شي چه په ۱۹۸۰ء كښې د بين الملل د يوه راپور مطابق په بين المللي سطحې باندې په تير شوي كلونو كښې په لار وهنې كښې ۷۹٪ په غلا كښې ۴۶٪ او په قتل كښې ۲۰٪ فيصده زياتوالى راغلى دى. (روزنامۂ جنگ، ۱۵ نومبر ۱۹۸۰ء)

كه څېرته يوې خوا ته په سائنسي دور كښې د جرائمو د مخنيوي لپاره سائنسي آلات استعماليږي بلې خوا ته مجرم هم نوې طريقې ايجادوي او ډير بې له ويرې جرم ترسره كوي. له دې څخه دا خبره په ښكاره توگه واضحه كيږي چه د داسې امورو ترسره كول ضرور په كار دي چه جرائم له بيخه ورك كړي. او د امن معاشره (Peaceful Society) مهيا كړي. تاسو د دنيا د قومونو په عقائدو او مذاهبو باندې هم نظر واچوى او د تش په نامه ترقي يافته قومونو د قوانينو مطالعه وكړى. ليكن يقين وكړى چه د هغه يوائنى علاج به له نن څخه څوارلس سوه كاله مخكښې په كوه صفا باندې د "يا ايها الناس قولوا لا اله الا الله تفلحوا" د داعي كيمياوي نسخه در معلوم شي. څېرته چه مجرم د جرم له كولو څخه وروسته پخپله د خپل جرم د اعتراف په كولو سره اعلان كوي او د قانون او انصاف غوښتونكى معلوميږي.

## د عدل د نظام مـــــركزي ټكى

په اسلام كښې د عدل د قيام بنيادي نكته (Basic Point) خوف خداوندي ده چه د دې تعلق له فرد څخه واخله بيا تر معاشرې پورې او له رعيت نه واخله تر بادشاه پورې دى. كه څېرته په زړه او دماغو كښې خدايي ويره موجوده وي او نظريه دا وي چه زه چه كوم كار كوم صبا ته د قيامت په ورځ د خداى په دربار كښې به له ما څخه د دې پوښتنې او گرويږنه كيږي او زه به ئې ضرور حساب و كتاب وركوم نو له دې عقيدې څخه وروسته هر انسان به قدم په قدم خيال، سوچ او فكر كوي چه چيرته داسې غلطي را نه و نه شي چه د قيامت په ورځ زما لپاره د خسارې، ذلت او رسوايى سبب جوړ شي.

په عدالت كښې د عدالت په كرسۍ باندې ناست حاكم او قاضي كه څېرته دا عقيده ولري او مخته ئې د ندامت او پښيماني په حالت كښې ولاړ مجرم هم د خوف خداوندي په اسلحې باندې مسلح وي نو يقين وكړى چه د ظلم او بې انصافي نوم به هم له دنيا څخه ورك شي. ليكن خيال وكړى چه دا يوائې فرضي او تصوري خيال نه دى بلكه په اسلام او زمونږ د اسلافو په تاريخي ژوند كښې د دې څرگند ثبوتونه موجود دي.

## د حضرت ماعزؓ واقعه

د حضور اقدس ﷺ د زماني واقعه ده چه یو ځل حضرت معاعز ابن مالك رضی الله عنه د نبي کـــــــریم ﷺ په خدمت کښي حاضر شو او عرض ئي وکړ چه یا رسول الله ﷺ ما پاك کړی. ده مبارك وفرمایل چه ای ماعزه وګرځه او د الله تعالی په دربار کښي توبه او استغفار وکړه. راوي وايي چه ماعزؓ چه لږ لرې لاړ نو بیا وګرځید او راغی او بیا ئي عـــــرض وکړ چه ای د الله رسوله ما پاك کړی. نبي کریم ﷺ بیا هم هغه ځواب ورکړ. درې واري همد اسي وشو په څلورم ځل ده مبارك ﷺ ورته وفرمایل چه زه تا څنګه پاك کړم؟ هغه عرض وکړ چه له زنا څخه. حضور ﷺ له خلکو څخه پوښتنه وکړه چه د ا سړی خو لیونی نه دی؟ په جواب کښي ورته وویل شول چه نه لیونی نه دی. ده بیا پوښتنه وکړه چه آیا شراب خو به ئي نه وي چښلي؟ په دې باندي یو سړی جګ شو او د ماعز خوله ئي بوی کړه او له خولې څخه ئي د شرابو بوی نه تلو. ده مبارك ﷺ له ماعزؓ څخه بیا پوښتنه وکړه چه آیا په ریښتیا هم تا زنا کړې ده؟ ماعزؓ عرض وکړ چه هو! له ما څخه زنا شوې ده. وروسته بیا د حضور ﷺ په حکم ســــــــره ماعزؓ رجم شو یعني په تیږو وویشتل شو. د دې واقعې به درې ورځې وتلي وي چه رسول الله ﷺ تشریف راوړ او ارشاد ئي وفرمایه چه د ماعز بن مالك رضی الله لپاره د مغفرت دعا وکړی هغه د اسي توبه وکړه چه که چېرته په ټول امت باندې وویشل شي نو د ټولو لپاره کافي ده. (ترجمه العد اله الاجتماعیه في الاسلام ص۲۸۸/۲۸۹)

همد ارنګه د حضور ﷺ په مقدسې زماني کښي د ازد د قبیلې د بطن خامه یوې ښځې هم د جرم اقرار کړی وو چه له مخې ئي د حضور ﷺ په حکم سره سنګسار شوه.

## د شپې په تیاره کښي د خدای د ویرې اثر

خلیفهٔ راشد حضرت عمر رضی الله عنه د شپې د ګشت په وخت کښي د یوه کور تر څنګ تیریده چه د یوې ښځې غږ ئي واوریده چه ویل ئي چه زه په شیدو کښي اوبه ګډوم. لیکن لور ئي انکار کاوه او دا ئي ویل چه د حضرت عمرؓ حکم دی چه په شیدو کښي اوبه مه ګډوی. مور ئي وویل چه په دې وخت کښي حضرت عمرؓ چیرې دی؟ لور ئي ځواب ورکړ چه که حضرت عمرؓ په دې وخت کښي دلته موجود نه وي نو علیم او خبیر خدای خو موجود دی. اسلامي تاریخ د خوف خداوندي له دې جذبې څخه د شدت احساس دومره نمونې یو ځای کړي دي چه د هغوی با لاستیعاب (له یوې مخې) حسابول د انسان په طاقت کښي نشته. د عرض کولو یوائحني مقصد دا دی چه د عدل د قیام لپاره خوف خداوندي مرکزي حیثیت لري. آخر د شپې په تیاره کښي د کور د چار دیوالي د ننه له خدایه ویریدونکي نجلی له شیدو سره د اوبو نه ورګډول، د ماعز بن مالكؓ پخپل کار باندې پښیمانه کیدل او له بارګاه نبوت څخه د بار بار



شرلو سره سره د خپل جرم اقرار کول آخر د کومې جذبې څخه دا خلك ړك وو؟ دا هغه جذبه ده چه هغې ته مونږ خوف خداوندي یعني د خدای ویره بولو.

## د عدل په مخ کښي خنډونه

د عدل دې اهمیت ته په نظر کولو سره قرآن مجید په واضحه توګه هغه امور په ګوته کړي دي چه د عدل د قیام لپاره له ټولو څخه لوی مانع دي په خاصه توګه په شهادت او قضاء کښي دا امور انسان له انصاف څخه لرې کوي او په ظلم باندې د تیارولو ترغیب ورکوي او هغه امور په لاندې ډول دي.

﴿۱﴾قرابت (Relation) ﴿۲﴾عداوت (Enmity) ﴿۳﴾مال او دولت (Wealth)

**﴿قرابت﴾** ډیر واري یو انسان د تعلقاتو، قرابت او خپلوي له ماحول څخه متاثر شي او په صحیح فیصله کولو کښي نه شي کامیابیدلی. مثلا ګواه پخپل شهادت کښي د دې تعلقاتو په بناء باندې دروغ ووایي او د ناجائز او غیر مشروع کارونو مرتکب شي. لاندې افسران د خپلو پورته افسرانو د رعب له وجهې غلطو کارونو ته آماده شي او په دې ډول سره عدل پریږدي او د ظلم مرتکب جوړ شي. په قرآن مجید کښي دې کار ته د اسي اشاره شوې ده.

يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا كُونُوا قَوَّامِينَ بِالْقِسْطِ شُهَدَاءَ لِلَّهِ وَلَوْ عَلَى أَنْفُسِكُمْ أَوِ الْوَالِدَيْنِ وَالْأَقْرَبِينَ.

"ای د ایمان خاوندانو! په انصاف باندې کلك او ټینګ ودریږی او د خدای لپاره ګواهي ورکړی اګر که په دې کښي ستاسو د ځان، مور او پلار او خپلوانو نقصان هم وي".

## حق شهادت او خپلوي

خداوند عالم د ایمان خاوندانو ته د اسي وفرمایل:

"ای د ایمان خاوندانو! په ټولو معاملاتو کښي د حق د اداء په وخت کښي هم او د فیصلې په وخت کښي هم په انصاف باندې ښه کلك دریدونکي او د الله د رضاء لپاره د ریښتوني ګواهي ورکوونکي جوړ شی. اګر که ګواهي او اظهار ستاسو د خپل ذات په خلاف هم وي او یا د والدینو یا نورو خپلوانو په مقابل کښي هم وي". (بیان القرآن)

ګواکه د قانون او انصاف په وړاندې خپلوي هیڅ ارزښت نه لري. د پلار ګني او زوی ګني غوندې محبوبه خپلوي به هم قربانیږي. پخپله د رسالت مآب ﷺ په حیات مبارکه کښي د دې رهنما اصول او عملي کارنامې مَوجودې دي.

## د حضرت اسامه په سفارش باندې د دربار نبوت رد عمل

د ام المؤمنین سیده حضرت عائشه صدیقه رضی الله عنها څخه روایت دی چه د قریشو د مخزومي قبیلې له یوې ښځې څخه د غلا عمل تر سره شو. قریشو پخپل منځ کښي مشوره وکړه چه د دې ښځې د لاس پریکولو له سزا څخه د بچ کیدو لپاره په کار دي چه

حضورﷺ ته سفارش وکړو او د دې کار لپاره ئې په ټولو سره حضرت اسامه رضی الله عنه خوښ او وټاکه. ځکه چه هغه د رسول اللهﷺ محبوب ملګرې وو. حضورﷺ چه د شفقت په کوم نظر سره حضرت حسنین رضی الله عنهما ته کتل حضرت اسامهؓ ته ئې هم په هغه سترګه کتل. حضرت اسامه رضی الله عنه چه کله سفارش وکړ نو د دربار نبوت څخه یو جلالي ارشاد صادر شو چه:

اتشفع في حد من حدود الله ثم قام فاختطب فقال يايها الناس انما هلك الذين قبلكم انهم كانوا اذا سرق فيهم الشريف تركوه و اذا سرق فيهم الضعيف اقاموا عليه الحد و ايم الله لو ان فاطمة بنت محمد سرقت لقطعت يدها.

(دعوات حق ج۱، ص۹۵)

"آیا تاسو د الله په حدودو کښې سفارش کوی بیا جګ شو او خطبه ئې وویله چه ای خلکو! بیشکه له تاسو څخه مخکښیني خلک ځکه هلاك شول چه کله به په هغو کښې کوم شریف سړي غلا وکړه نو هغه به ئې پریښود او چه کله به یوه غریب سړي غلا وکړه نو په هغه باندې به ئې حد جاري کاوه. په خدای قسم! که چېرته زما لور بي بي فاطمې رضی الله عنها (خدای مکړه) غلا کړې وای نو ما به خامخا هغې لاس ور پرې کړی وو".

یو انسان ته چه کله یو اعلیٰ منصب یا عهده ورکول کیږي نو د ده تعلقات او خپلوي زیاتیږي. بیګانګان هم خپل جوړیږي. او له ډیره وخته څخه د هغه پرېښنودل شوي رشتې بیا دوباره پیدا کیږي. لیکن له مسلمانانو څخه د اسلام د مذهب دا غوښتنه ده چه شریعت د قانون په مقابلې کښې هیڅ ته هم ترجیح نه ورکوي.

## د فاروقي عدل یو پړک

په خلفاء راشدینو کښې د حضرت عمر په مبارك دور کښې دا سوال هم نه پیدا کیده چه د حکمرانانو عزیزانو او خپلوانو ته دې د رعیت د نورو افرادو په مقابله کښې امتیازي مقام حاصل وي. چنانچه د ده صاحبزاده حضرت عبد الرحمٰن چه کله شراب وڅښل نو په هغه باندې هم حد جاري کول لازمي وګرځیده. (العدالة الاجتماعیه)

همدارنګه حضرت عمر رضی الله عنه خپل یو نږدې خپل حضرت قدامه بن مطعون ته چه یو معزز صحابي هم وو د شرابو د څښلو په جرم کښې اتیا دُرې ورکړې. (تاریخ اسلام ص۲۰۷)

یو ځل ده له چا سره د یوه اس سودا وکړه. بیا د ازموینې په توګه په هغه اس باندې سپور شو. د اس پښه بنده شوه ولویده او زخمي شو. حضرت عمر وغوښت چه اس مالك ته بیرته واپس کړي لیکن مالك د بیرته اخیستلو څخه انکار وکړ. دواړو فیصله د قاضي شریح عدالت ته یوړه. قاضي د فریقینو د دلائلو له اوریدو څخه وروسته وویل چه "ای امیر المؤمنین! کوم شی چه تاسو اخیستی دی هغه واخلی او که نه نو په کوم حالت کښې دې چه اخیستی وو په هغه حالت ئې بیا بیرته ورکړې.



دا ئې واوریدل حضرت او چت شو. "دې ته وایي فیصله کول" او بیا ئې شریح په عدل او انصاف سره د فیصله کولو په بدل کښې د کوفې قاضي مقرر کړ. (تاریخ اسلام ص۳۴۴)

## امیر المؤمنین د قاضي په عدالت کښې

همدارنګه حضرت علي رضی الله تعالی عنه په یوې مقدمې کښې فریق جوړ شو او عدالت ته حاضر شو فیصله د امیر المؤمنین په خلاف وشوه او د ده مبارك محسوسه هم نه کړه چه تفصیل ئې په لاندې ډول دی.

یو ځل د حضرت علي رضی الله عنه زغره ولویده چه د یوه نصراني لاس ته ورغله. حضرت علي چه ولیده نو وئې پیژندله او د قاضي شریح په عدالت کښې ئې مقدمه دائره کړه. د نصراني دعوی وه چه دا زما خپله زغره ده. قاضي شریح د قاعدې مطابق د حضرت علي رضی الله عنه نه پوښتنه وکړه چه له تاسره د خپلې دعوې د اثبات لپاره ګواهان شته؟ نو حضرت علي رضی الله عنه دوه ګواهان چه یو ئې زوی وو او بل ئې آزاد کړی شوی غلام وو حاضر کړل.

د حضرت علي په رأیه کښې د زوی ګواهي د پلار لپاره صحیح وو لیکن قاضي شریح وفرمایل چه ستا د زوی ګواهي ستا لپاره صحیح نه ده او بل ګواه چه ستا آزاد کړی شوی غلام دی هغه د دې لپاره چه یو دی نو ځکه د یوه سړي په شهادت سره ستا دعوی نه ثابتیږي.

چنانچه د زغرې فیصله د نصراني په حق کښې وشوه او دې فیصلې په نصراني باندې دومره تاثیر وکړ چه په هم هغه وخت کښې مسلمان شو او زغره ئې حضرت علي رضی الله عنه ته بیرته ورکړه. لیکن حضرت علي رضی الله هغه زغره بیرته نصراني ته ورکړه او ورسره ئې یو اس هم ورکړ. (نور الانوار ص۲۲۲)

د دې خبرې د عرض کولو مقصد دا دی چه د عدل د نظام په قیام کښې انسان ته نه دې په کار چه له چا څخه متأثر شي بلکه آقا او غلام، امیر او غریب، حاکم او محکوم ټولو ته په یوه سترګه کتل کیږي. لیکن د تعجب خبره دا ده چه که چېرته نن یو لوړ افسر یا رئیس د ماتحت رئیس په خلاف باندې مقدمه دائره کړي نو معلومه نه ده چه د داسې انصاف په وجه سره به دغه فیصله کوونکي ته کومې کومې سزاګانې ورکړی شي؟ که چېرته ئې د څه ویرې له وجهې معزول هم نه کړي لیکن د انتقام اور به ئې هر وخت د محکوم علیه په ذهن کښې بلیږي او فیصله کوونکی به هم د انتظار ساعتونه شماري.

## د انصاف په نظر کښې عمر فاروق رضی الله عنه او یو عام سړی سره برابر دي

لیکن د اسلام د عاشقانو ته چه کوم شی حق په نظر وراغلی دی هلته ئې د خپلو ځانونو په خلاف په فیصلې باندې هم راضي او خوشحاله وو.

لکه څرنګه چه یو ځل د حضرت عمر فاروق رضی الله عنه د حضرت ابی بن کعب

رضی الله عنه سره څه اختلاف پیدا شو، حضرت ابی بن کعب رضی الله عنه د حضرت زید بن ثابت رضی الله عنه سره مقدمه دائره کړه۔ حضرت عمر رضی الله عنه د مدعا علیه په حیث عدالت ته وړاندې شو نو حضرت زید د ده تعظیم وکړ۔ په دې باندې حضرت عمر رضی الله عنه ورت وفرمایل چه دا ستا اول ظلم دی۔ دائې ووېل او د خپل مدعي حضرت زید بن ثابت رضی الله عنه سره کېښناست۔ د حضرت ابی بن کعب رضی الله عنه سره هیڅ ثبوت نه وو او حضرت عمر رضی الله عنه له دعوې څخه منکر وو۔ ابی بن کعب د قاعدې مطابق له حضرت عمر رضی الله عنه څخه د قسم غوښتنه وکړه نو زید ابن ثابت رضی الله عنه د ده د لحاظ له مخې حضرت ابی بن کعب رضی الله عنه ته ووېل چه امیر المؤمنین د قسم له کولو څخه معاف کړی۔ حضرت عمرؓ له دې ترجیحي سلوك څخه خفه شو او وئې فرمایل چه تر څو پورې ستاسو په نزد د یوه عام سړي او عمرؓ دواړه برابر نه وي تر هغه وخته پورې ته د قضاء د منصب لائق نه ئې۔ (کنز العمال ج۳، ص۱۷٤)

## د عدل اسلامي نظام د وخت بادشاهان هم نه دي معاف کړي

دا مثالونه او واقعات یوائې د خلفار راشدینو له دور سره خاص نه دي بلکه د حقانیت او حق ګویی دا جذبه همیشه په اسلافو کښې او د دین په بزرګانو کښې شیوه او طریقه پاتې شوې ده۔ چېرته چه حق په نظر وراغلی دی هلته ئې د وخت بادشاه هم نه دی معاف کړی۔

قاضي ابو یوسف د عدالت په چوکۍ ناست وو یوه سړي هغه ته خپله نزاع وړاندې کړه چه د عباسي بادشاه له هادي سره په یوه باغ باندې زما جګړه ده۔ قاضي ابو یوسف رأیه قائموي چه حق خو د همدې سړي دی لیکن مشکل دا دی چه ګواهان له بادشاه سره دي۔ هغه ووېل چه د مدعي مطالبه ده چه هادي دې قسم وکړي چه زما ګواهان رښتوني دي۔ هادي قسم کول د خپل ځان لپاره توهین وګانه او انکار ئې ترې وکړ او باغ ئې خپل مالك ته بیرته ورکړ۔

﴿عداوت﴾ دوهم شی کوم چه د عدل د نظام لپاره مانع دی او انسان د ظلم او زیاتی خوا ته بیایي هغه عداوت او پخپل منځ کښې دښمني ده۔ قرآن کریم دې تکي ته د اسې اشاره کړې ده۔

وَلَا يَجْرِمَنَّكُمْ شَنَآنُ قَوْمٍ عَلٰى اَنْ لَّا تَعْدِلُوْا اِعْدِلُوْا هُوَ اَقْرَبُ لِلتَّقْوٰى وَاتَّقُوا اللّٰهَ اِنَّ اللّٰهَ خَبِيْرٌ بِمَا تَعْمَلُوْنَ☆ (سورة المائدة، آیت۸)

"د کوم قوم د دښمنۍ په سبب سره انصاف هیڅکله هم پرېږدی او عدل وکړی، دا خبره ډېره تقوٰي ته نژدې ده او له الله تعالی څخه ووېرېږی، بې شکه الله تعالی ښه خبر دی په هغه څه چه تاسو ئې کوی"۔

## د اهل اسلام طرۀ امتیاز (د امتیاز شان)

شیخ الاسلام حضرت مولانا شبیر احمد عثماني رحمه الله فرمایي د اسې فرمایي چه:

"د عدل مطلب دا دی چه له یوه سړي سره له افراط او تفریط څخه پرته د اسې معامله



وشي چه د هغې معاملې واقعي مستحق وي۔ د عدل او انصاف تله د اسې صحیح او برابر په کار دی چه له عمیق څخه عمیق محبت او له شدید څخه شدید عداوت هم د تلې په دواړو طرفونو کښې د یوه طرف د درنوالي سبب نه شي"۔ (تفسیر عثماني)

او دا هغه رسم او رواج دی چه اهل اسلام د تل لپاره قائم ساتلی دی۔ او په هرې علاقې کښې د اسلام معامله د همیشه لپاره په انسانیت باندې مبني پاتې شوې ده۔ په معاملاتو او نورو حقوقو کښې غیر مسلمو ته پوره پوره حق ورکړ شوی دی۔

## د اهل مغرب منافقانه کردار یا رویه

مونږ چه کله د دنیا په قومونو باندې او د تیرو شویو ورځو په تاریخي واقعاتو باندې نظر اچوو نو په آسانۍ سره دې نتیجې ته رسیږو چه نور مذاهب او دینونه د غیر مذهب له خاوندانو سره د چارپایانو یعنې حیواناتو غوندې سلوك کوي او یوائې دا نه بلکه که چېرته د اسلام مقابله د ننني زمانې له مغربي تهذیب سره وکړی شي نو یقینا اسلام د خپل تاریخ په هر دور کښې ډېر وسیع او پاکیزه معلومیږي۔

اهـــــل مغرب چه نن صبا د کومې آزادۍ ساه اخلي او ژوند تیروي له دې نه مخکښې هغوی یو د اسې دور هم تیر کړی دی چه په هغه کښې د اندلس د تحقیقاتي عدالتونو بهیمانه سزاګانې او په مشرق کښې د صلیبي جنګونو تورې شپې معلومیږي۔ اهل مغـــــرب پخپلو نظریاتو سره په اختلاف کوونکو باندې په اور کښې تر سوزولو پورې سزاګانې جائزې ګرځولي دي۔ او دا وجه وه چه له مذهبي دښمنانو څخه د انتقام د اخیستلو لپاره د احتساب عدالتونه قائم شول کوم چه دښمنانو ته ئې پرته له کومې وجهې سزاګانې ورکړي دي چه مثال ئې په ټولې دنیا کښې نه پیدا کیږي۔

دا عدالتونه او د احتساب محکمې د یوې اندازې مطابق دوه دیرش زره انسانان ژوندي وسوزول چه په هغوی کښې د هیئت او طبیعاتو مشهور عالم برونو(Brunoe) او ګلیلو (Galilo) ته ئې هم دغه سزا ورکړه۔ (په انساني دنیا باندې د عروج او زوال اثر ص۲۶۵/۲٦٤)

اهل مغرب په یوې مفتوحې علاقې باندې د مخالفینو وجود هم نه شو برداشت کولی۔ کومه علاقه ئې چه فتح کوله هلته به ئې اعلان کاوه چه کوم خلك زمونږ د خیالاتو او نظریاتو سره متفق نه دي هغوی دې له ملك څخه ووځي لکه څنګه چه فرانسیسي جنرل کاسترو په ۱۹٤۰ء کښې د دمشق په تیر شوي انقلاب کښې اعلان کړی وو چه "مونږ د صلیبي مجاهدینو لمسیان یو د چا چه زمونږ حکومت خوښ نه وي هغه دې له دې ځای څخه ووځي"۔ او د دې په شان خبره د جنرل کاسترو یو هم منصبه په ۱۹٤۵ء کښې په الجزائر کښې کړې وه۔ (العدالة الاجتماعیه فی الاسلام ص۳۲۵)

## د روسي کمونستانو له مسلم اقلیتونو سره ظالمانه سلوک

په اوسنی زماني کښې دوهم عظیم طاقت د روسیانو کمونست بلاك د غیر کمونستانو د وجود د ختمولو کوششونه کوي. د مذهبي رسومات او عبادت خانو د ختمولو غوښتونکي دي. له اقلیتونو سره د ناروا سلوك انداز ه تاسو د روسي مسلمانانو له مساجدو او مدارسو سره د کړل شوي حشر څخه لګولی شی. په روس کښې له کمونستي انقلاب څخه مخکښې د یوې اندازې مطابق د مسلمانانو پنځه ویشت زره مدرسې وې لیکن له کمونستي انقلاب څخه وروسته دا مدرسي بندې کړی شوې او استاذ ان ئې ونیول شول او د مدارسو هغه عمارتونه چه له هغوی څخه د قال الله او قال الرسول نعرې اوچتیدلې ځینې ړنګ او ځینې ضبط کړل او په غوجلو یا اصطبلونو ئې بدل کړل. او د پنځه ویشتو کلونو په موده کښې یوه مدرسه هم پاتې نه شوه.

همدا حال د جوماتونو هم وو. یو دیرش زره جوماتونه آباد وو د لیکن ۱۹۴۲ء په یوه راپور کښې اوس په تولې روسیې کښې یوائې ۱۳۱۲ جوماتونه باقي پاتې شوي دي. پاتې تول شهید ان شوي دي. (په تاریخ کښې مسلمان قومونه)

## د برطانوي دورې ظلمونه

روسیه او یورپ خو یوې خوا ته پریږده پخپله د لوی هند تاریخ وګوری. برطانوی حکومت د مسلمانانو او هندوانو له مذهبونو سره څه نه وکړل؟

د کراچۍ په مقدمې کښې رئیس الاحرام حضرت مولانا محمد علي صاحب مرحوم او شیخ الاسلام و المسلمین حضرت مولانا سید حسین احمد مدني رحمه الله او د نورو اکابرینو آخر جرم څه وو؟ یوائې دومره قدر چه د اسلام د مذهب مطابق مسلمان فوج د ترکې د مسلمان فوج په مقابله کښې استعمال نه شي.

د دې واقعاتو او حالاتو له وړاندې کولو څخه زما یوائې مقصد دا دی چه له اسلام څخه پرته نورو مذاهبو له اقلیت او خپلو دښمنانو سره هغه کوم ناروا سلوك نه دي چه دوی ورسره کړي نه دي. د دعداوت او دښمنی په بناء سره هغه کومې بې انصافی دي چه دوی نه دي استعمال کړي؟

## له دښمنانو سره د اسلام د لورینې سلوك

لیکن اسلام له خپلو مخالفینو او اقلیتونو سره چه کوم حسن سلوك کړی دی د هغه انداز ه تاسو د خلفاء راشدینو له طرز عمل او کردار څخه لګولی شی. پخپله حضور ﷺ تر آخري وخته پورې د غیر مسلمانانو او ذمیانو د حقوقو د حفاظت ډیر تاکید کړی دی. د ذمیانو لپاره ئې باقاعده حقوق مقرر کړي وو او د خلافت راشده په دور کښې ئې هم همدا اصول خپل



کړي وو. یعنې په دغو اصولو باندې تلل آن تر دې چه خلیفه الرسول سیدنا حضرت ابو بکرصدیق رضی الله عنه پخپل دور خلافت کښې هغوی ته هغه حقوق ورکړل کوم چه د هغوی لپاره تاجد ار حرم محمد مصطفی ﷺ مقرر کړی وو.

## د حقوقو اقسام

د یوه قوم حقوق یوائې د دریو شیانو سره تعلق لري. (۱) ځان، (۲) مال (۳) مذهب. له دې پرته چه څومره حقوق دي هغوی تول د دغو دریو حقوقو لاندې راځي.

د حضرت عمر رضی الله په عادلانه دور کښې د بیت المقدس له عیسایانو سره په شوې معاهدې کښې هغوی ته چه کوم حقوق ورکړي وو هغه دا دي:

"دا هغه امان دی کوم چه د خدای غلام امیر المؤمنین عمر رضی الله عنه د ایلیا اهل ته ورکړی دی. دا امان د ځان، مال، ګرجا، صلیب، تندرست او مریض تولو لپاره دی. نه د دوی په عبادت خانو کښې مونږ اوسیدل غواړو او نه هغه ړنګوو او نه د هغوی احاطې ته نقصان رسوو او نه د دوی په صلیب او مالونو کښې به کمی کیږي او نه به په دوی کښې کوم یوه ته نقصان رسول کیږي. (طبري فتح بیت المقدس، تاریخ اسلام)

کوم ځای ته چه مسلمانان په فاتحانه انداز سره د اخلیدل نو د هغه ځای اوسیدونکو ته ئې همدا حقوق ورکول. له اهل جرجان سره چه کومه معاهده وشوه د هغې الفاظ دا دي.

"د دوی د ځان، مال، مذهب او شریعت تولو ته امان دی د دوی په دغو شیانو کښې به په هیڅ شي هم تعرض نه کیږي". (طبري، فتح بیت المقدس، بحواله تاریخ اسلام ص۲۲۲)

د آذربائیجان په معاهدې کښې هم په لاندې ډول الفاظ موجود وو.

"د هغوی ځان، مال، مذهب او شریعت ته امان دی". (طبري، فتح بیت المقدس، بحواله تاریخ اسلام ص۲۲۲)

## د صدیقي دور لوظنامې

د سیدنا حضرت ابو بکر صدیق رضی الله عنه د خلافت په زماني کښې هم د حیره عیسایانو ته د معاهدې له مخې دا حقوق ورکړ شوي وو.

"د دوی خانقاوې او ګرجې مه ړنګوی او نه د هغوی قصرونه ړنګ کړی چه په هغوی کښې د ضرورت په وخت کښې د دښمن په مقابلې کښې قلعه بند کیږي. د ناقوس د غږولو ممانعت به نه وي او نه به د مذهبي جشنونو په موقع کښې د صلیب له ایستلو څخه به منع کیږي". (طبري فتح بیت المقدس، بحواله تاریخ اسلام ص۲۲۲)

او دا خبرې یوائې د کاغذ تر لیکلو پورې محدودې نه وې بلکه خلفائ راشدینو همیشه لپاره ماتحتو والي صاحبانو ته د دې په اړه هدایتونه ورکول. د غیر مسلمو سره هغه

سلوك كيدل كوم چه له مسلمانانو سره كيدل۔

چنانچه حضرت عمر رضی الله عنه د شام په سفر كښې په يوه ځاى كښې وكتل چه په ذميانو باندې سختي كيدله۔ كله ئې چه د سبب پوښتنه وكړه او معلومه شوه چه جزيه نه ادا كوي پوښتنه ترې وشوه چه ولې جزيه نه ادا كوئ؟ په ځواب كښې ورته وويل شول چه سبب ئې غريبي ده۔ حضرت عمر رضی الله عنه وفرمايل چه هغوی پريږدی۔ ما له رسول الله ﷺ څخه اوريدلي دي چه ده وفرمايل چه خلكو ته تكليف مه وركوی۔ كوم خلك چه په دنيا كښې نورو ته عذاب وركوي الله تعالى هغوی د قيامت په ورځ په عذاب كښې مبتلا كوي۔ (كتاب الخراج للقاضي ابو يوسف)

غريب، مفلس او معذور ذمي له جزيې څخه مستثنٰی وو۔ بلكه د بيت المال څخه د هغوی كفالت كيده۔ چنانچه د حيره په معاهدې كښې د دې تصريح موجود دی۔

"كه چېرته يو زوړ ذمي د كار له كولو نه معذور شي او يا څه آفت پرې نازل شي او يا د دولت مندي نه وروسته غريب شي او د هغه اهل مذهب هغه ته خيراتونه وركول نو د هغوی جزيه به موقوفه وي او د هغوی اولاد ته به د بيت المال څخه خرڅه وركول كيږي۔ (كتاب الخراج للقاضي ابو يوسف)

## د حضرت عمرؓ يو لطيف استدلال

دا معاهده د حضرت ابو بكر صديق رضی الله عنه په دور كښې شوې وه او په د حضر عمر رضی الله عنه په دور كښې په دې باندې باقاعده عمل جاري وو بلكه حضرت عمر رضی الله عنه له قرآني استدلال څخه دا نوره هم مؤكده كړه۔ چنانچه يو ځل ئې يو زوړ ذمي وليده چه خيرات تولوي نو پوښتنه ئې وكړه چه ولې خيرات تولوې؟ هغه وويل چه په ما باندې جزيه لګول شوې ده او زه ئې نه شم ادا كولی۔ دا ئې واوريدل حضرت عمر رضی الله خپل كور ته بوت او څه نقدې روپۍ ئې وركړې او خپل خادم ته ئې وويل چه د دې ډول معذور لپاره له بيت المال څخه وظيفه مقرره كړی۔ او وئې فرمايل چه د كلام الله دا آيت چه "انما الصدقٰتُ للفُقرآءِ و المساكِين" كښې له فقراوو څخه مراد مسلمانان او له مساكينو څخه مراد اهل كتاب دي۔ او وئې فرمايل چه قسم په خداى دا انصاف نه دی چه د هغوی له ځوانۍ څخه مونږ فائده واخلو او چه زاړه شي نو هغوی ورټو۔ (كتاب الخراج للقاضي ابو يوسفؒ)

د نفس د حفاظت دا حالت وو چه چېرته به يوه مسلمان ذمي لره قتل كاوه نو حضرت عمر رضی الله عنه باقاعده له هغوی څخه د قصاص د اخيستلو حكم كاوه۔ چنانچه يو ځل د بكر بن وائل د قبيلې يوه سړي د حيره يوه عيسايي لره قتل كړ نو ده قاتل د مقتول وارثانو ته وركړ او له هغه څخه ئې قصاص واخيست۔ (الدرايه بحواله تاريخ اسلام)

د مال د حفاظت په باره كښې كه چېرته يوه مسلمان د كوم ذمي مال او جائداد ته نقصان



رساوه نو حضرت عمر رضی الله عنه به د هغه معاوضه له بيت المال څخه وركوله۔ لكه څرنګه چه يو ځل اسلامي لښكر د شام د يوه ذمي فصل تر پښو لاندې كړی او خراب كړی ئې وو۔ نو حضرت عمر رضی الله عنه دغه ذمي ته له بيت المال څخه لس زره درهمه وركړه۔ (كتا الخراج للقاضي ابو يوسفؒ)

## د ذميانو په باره كښې د حضرت عمر رضی الله عنه خصوصي لارښوونه

حضرت عمر رضی الله عنه لكه څرنګه چه پخپله د ذميانو د حقوقو ساتنه كوله او همدارنګه ئې والي صاحبانو ته هم ويلي وو چه د هغوی د حقوقو ساتنه وكړی۔ چنانچه فاتح شام حضرت ابوعبيده بن جراح رضی الله عنه ته ئې وليكل چه:

"مسلمانان په ذميانو باندې د ظلم له كولو او هغوی ته د نقصان له رسولو او بې وجهې د هغوی د مالونو له خوړلو نه منع كړی او له هغوی سره مو چه كوم شرائط لګولي دي هغه پوره كړی"۔ (كتاب الخراج للقاضي ابو يوسفؒ)

بلكه حضرت عمر رضی الله عنه له دنيا څخه د تللو په وخت كښې د راتلونكي خليفه لپاره چه كوم هدايات وليكل په هغو كښې د ذميانو حقوق او د هغوی د ساتنې خصوصي يادونه موجوده وه"۔

"زه د هغو خلكو په حق كښې كومو ته چه د خداى او د هغه د رسول ذمه وركړ شوې ده زه دا وصيت كوم چه له هغوی سره كوم وعده شوې ده هغه پوره كړی او د هغه په حمايت كښې وجنګيږی او دوی ته د هغوی له طاقت څخه زيات تكليف مه وركوی۔ (تاريخ اسلام ص۲۲۶)

دا هغه اسلامي عدل او انصاف دی چه په هغه كښې دوست او دښمن ته په يوه سترګه كتل شوي دي۔ هغه دښمن كوم چه بد ترين دښمن وو كوم چه د مذهب او عقيدې دښمن وو نو له هغوی سره چه كله دومره انصاف كيږي نو نور څوك كيدلی شي چه اسلام له هغوی سره ظلم كړی وي؟ له دې واقعاتو څخه په آسانۍ سره دا نتيجه راووځي چه خلفاء راشدينو په دغه خداوندي فرمان باندې چه "د يوه قوم دښمني دې تاسو په ظلم باندې باندې نه آماده كوي" كما حقه عمل كړی دی او د امت محمديه لپاره ئې تر قيامته پورې عملي نمونه پريښې ده۔

هغه دښمنان كوم چه پخپلو كړي افعالو او كردارونو باندې د لوي لويو سزاګانو مستحق او منتظر وو د ندامت او پښيمانۍ له وجهې د هغوی سترګې ټيټې وې او خپل ځانونه ئې په خطر كښې ليدل ليكن اسلام د هغه برعكس د هغوی د ځانونو له حفاظت پرته مال او مذهب ئې هم محفوظ وساته او په معاشره كښې هغوی ته د انسانيت په نظر سره وكتل شو۔

**مال او دولت:** دريم شی كوم چه د عدل او انصاف په مخكښې مانع دی هغه د مال او دولت يا خو فراواني ده او يا ئې فقدان يا كموالی۔ مثلا يو انسان ډير واړې د يوه غريب غربت ته ګوري او زړه ئې پرې خوريږي او د هغه لپاره د دروغو شهادت وركوي او يا ئې په غريب باندې زړه

سوځي او فیصله د هغه په حق کښې کوي چه په دې کښې د ظلم او زیاتی ارتکاب کیږي- او حال دا چه نن صبا زمونږ په معاشره کښې دا ډیر کم واقع شوي دي چه خلك د غریب له غربت څخه متاثر شوي وي- په بل صورت کښې انسان کله واري د مالدار د مالداری په وجه په ظلم باندې آماده کیږي او له مالدار څخه د څه طمعې او امید په خاطر د دروغو ګواهي ورکوي او په حاکم باندې غلطه فیصله صادروي کوم چه یقینا ظلم او بې انصافي ده- قرآن مجید دې کار ته د اسې اشاره کوي:

إِن يَكُنْ غَنِيًّا أَوْ فَقِيرًا فَاللَّهُ أَوْلَىٰ بِهِمَا فَلَا تَتَّبِعُوا الْهَوَىٰ أَن تَعْدِلُوا. (سورة النساء، آیت ۱۳۵)

"که څېرته یو څوك مالدار وي یا محتاج نو الله تعالی تر تاسو زیات د هغه خیر خواه دی خو تاسو د انصاف په کولو کښې د خپلو خواهشاتو پیروي مه کوی"-

## د شهادت اصول

شیخ الاسلام و المسلمین العلامه بشیر احمد صاحبؒ فرمایي:

"یعنې د رېښتوني ګواهي په ورکولو کښې د خپلو نفساني خواهشاتو تابعداري مه کوی چه د امیر رعایت وکړی او یا په غریب باندې زړه وسوځوی او رښتیا پریږدی کوم چه حق وي- پس ورته ووایی چه الله تعالی ستاسو څخه زیات د هغوی خیرخواه او د هغوی په مصالحو باندې واقف دی او له هغه سره د یوه شي کمی نشته"-

حکیم الامت حضرت مولانا اشرف علي تهانوي رحمه الله فرمایي:

"او د ګواهۍ په وخت کښې دا خیال مه کوی چه د چا په حق کښې چه مونږ ګواهي ورکوو هغه امیر دی هغه ته نفع ورکول په کار دي ترڅو چه له هغهٔ سره نامردي و نه شي او یا دا غریب دی ده ته به څنګه نقصان ورکوو- تاسو په ګواهۍ ورکولو کښې د چا امیري او غریبي او یا نفع او نقصان ته مه ګوری ځکه چه هغه سړی چه د چا په خلاف ګواهي ورکوی که امیر دی هم او که غریب دی هم له دواړو سره د الله تعالی دومره ډیر تعلق دی چه ستاسو دغومره تعلق نشته ځکه چه ستاسو چه څومره تعلق ورسره دی هغه هم الله تعالی درکړی دی او د الله تعالی چه کوم تعلق دی هغه ستاسو ورکړی شوی شی نه دی- بیا سره له قوي تعلقه الله تعالی مصلحت په دې کښې اینبی دی چه په ګواهي کښې حقه خبره وکړی شي- نو تاسو له ضعیف تعلق سره سره په خپلې ګواهۍ کښې د یوه عارضي مصلحت زلې دومره خیال ساتی"- (بیان القرآن)

لکه څرنګه چه په شهادت او فیصله په دواړو کښې تسلط علی الغیر موجود دی کله چه د ګواهي د ورکولو په وخت کښې ګواه دغه امور په نظر کښې ولري نو قاضي او فیصله کوونکی حاکم به په طریقۀ اولی سره د دغو امورو پابند وي- قاضي او حاکم د فیصلې د کولو په وخت کښې د جیب د ډکولو په انتظار کښې نه کښیني بلکه چه کوم حق وي هغه فیصله به کوي-

اسلامي قوانین د انصاف په لاره کښې حائل دغه مانع په سختۍ سره رد کړی دی- کله



چه د عهدې خاوند په یوې عهدې او منصب باندې ولګیږي نو له خپل دغه منصب څخه دې غلطې فائدې نه اوچتوي او له داسې دعوتونو او میلمستیاوو څخه دې ځان ساتي چه څوك ئې یوائې د ده د عهدې له وجهې ده ته ورکوي-

## د رشوت ډولونه او د هغو احکام

همدا وجه ده چه د رشوت ټول قسمونه د اخیستونکي لپاره حرام ګرځول شوي دي- په حدیث شریف کښې راغلي دي چه رشوت اخیستونکی او رشوت ورکوونکی دواړه جهنمي دي او د رشوت د مال په قبض کولو سره هم د رشوت مال د چا په قبضه کښې نه شي راتلی- د رشوت مال خپل مالك ته بیرته ورکول واجب دي- په دې ضمن کښې دا ضروري ده چه د رشوت ټول ډولونه او د هغو د احکامو په اړه څه عرض وکړی شي-

د فقهاء کرامو د فرمان مطابق رشوت په څلورو قسمونو دی-

﴿۱﴾ د رشوت اول قسم چه د هغه اخیستل او ورکول حرام دي هغه دی چه څوك په یوه منصب باندې له فائز کیدو لپاره رشوت ورکړي چه د هغه منصب دی اهل نه وي- چونکه د غیر اهل په یو منصب باندې فائز کیدل یا لګیدل دواړه ناجائز دي- لهذا د دې ناجائز کار لپاره د رشوت اخیستل او ورکول دواړه ناجائز او حرام دي-

﴿۲﴾ د رشوت دوهم قسم دا دی چه د یوه فیصله کوونکي حاکم یا قاضي ته څوك څه پیسې او یا داسې شی ورکړي د دې لپاره چه تر څو د ده په حق کښې فیصله وکړي- دا هم د دواړو خواوو لپاره حرام دی-

﴿۳﴾ د رشوت دریم قسم دا دی چه یوه چا ته څه پیسې او یا بل شی د دې لپاره څوك ورکړي چه په هغه باندې خپل جائز کار وکړي لیکن په دې کښې دا شرط هم دی چه له دې سره سره به چه هغه کار جائز وي د بل چا حق هم نه پکښې ضائع کیږي- لهذا له دې شرط څخه وروسته په داسې صورت کښې د کار یا د حق خاوند ته د رشوت د ورکولو اجازه شته لیکن د کار کوونکي ته د رشوت اخیستل په دې صورت کښې هم حرام او ناجائز دي-

﴿۴﴾ د رشوت څلوم قسم دا دی چه یوه سړي ته څه پیسې د دې لپاره څوك ورکړي چه چه د هغه د شر او فساد څخه محفوظ پاتې شي- له خپل ځان څخه د ظلم او فساد د دفع کولو په خاطر چا ته څه ورکول خو جائز دي لیکن اخیستل ئې په دې صورت کښې هم حرام او ناجائز دي- (رد المحتار علی الدر المختار ج۴، ص۳۵۳/۳۵۴)

کله چه یو حاکم او یو ګواه دا نظریه قائمه کړي چه زما له هیڅ یوه مالدار سره سروکار نشته او نه د چای مای په انتظار کښې وي او نه د بخششونو په طمع او لالچ کښې وي نو دا ممکنه هم نه ده چه د مالداری له وجهې د هغه څه رعایت وکړي- په اسلام کښې آقا، غلام، امیر او غریب ټول یو برابر دي-

## په شرعي عدالت کښې شاه او ګدا سره برابر دي

حضرت عمر رضی الله عنه به چه کله د امیر او غریب تر منځ امتیازي رویه لیدله نو منع به ئي ترې فرمایله. همدا وجه ده چه حضرت عمر رضی الله عنه دغه تول بې ځایه امتیازات ورک کړل او شاه و ګدا، جګ او ټیټ ئي تول په یوې سطحې کښې سره ودرول چه یو مثال ئي لاندینی. واقعې څخه څرګندیږي.

د شام یو مشهور بادشاه جبله غساني مسلمان شوی وو. یو ځل ئي د بیت الله د طواف په وخت کښې د ځادر یوه څنډه د یوه سړي تر پښو لاندې شو. جبله په غصه شو او هغه سړي ئي وواهه. هغه سړي هم برابر ځواب ورکړ. جبله راغی او حضرت عمر رضی الله عنه ته ئي شکایت وکړ. حضرت عمر رضی الله عنه وفرمایل چه څه دې کړي وو هغه دې حاصل کړل.

جبله په ځواب کښې ورته وویل چه مونږ هغه خلق یو چه که چېرته یوه چا له مونږ سره بې ادبي کوله نو سزا به ئي قتل وو حضرت عمر رضی الله عنه وفرمایل چه هو! په جاهلیت کښې همدارنګه وو لیکن اسلام جګ او ټیټ تول سره برابر کړل.

جبله وویل که اسلام داسې مذهب وي نو زه له اسلام څخه بېرته اوړم لیکن حضرت عمر رضی الله عنه د هغه د بیرته کافر کیدو هیڅ پروا او نه کړه. (تاریخ اسلام)

نن په دنیا کښې دا نظاره موجوده ده. معاشره د مختلفو بې قاعدګیو ښکار ده. امیر او غریب د یوه او بل مقابل جوړ شوی دی. امیر د خپل مال په وجه سره د مختلفو جرائمو په ارتکاب باندې فخر کوي. جرم عیب نه ګڼي آخر د دې وجه څه ده؟

که چېرته غور وکړو نو یقینا به دا خبره څرګندیږي چه امراوو ته یواځې د مال د زیاتوالي په وجه بې ځایه رعایتونه ورکړ شوي دي. دا د دې بې ځایه رعایتونو نتیجه او ثمرات دي چه د معاشرې د تباهۍ سبب ګرځیدلی دی.



## قاضي دې عدالتونه د کتاب او سنتو پابند جوړ کړي

۹ فروري ۱۹۸۳ء ته د قاضي عدالتونو په مسودې باندې په عام بحث کښې په تقریر کولو سره ده وفرمایل:

**مولانا سمیع الحق:** "نحمده و نصلی علی رسوله الکریم اما بعد:

**جناب چئیرمین:** تر کومه ځایه پورې چه د قاضي کورټس د قیام په سلسله کښې د حکومت او جناب صدر پاکستان د ارادو او عزائمو تعلق دی د هغه چه څومره شکریه ادا شي کمه ده. د یوه اسلامي مملکت له ټولو نه لویه فریضه د دې ملک ټولو اوسیدونکو ته د عدل او انصاف په آسانتیا سره مهیا کول وي. دا د مسلمانانو په خاصه توګه د پاکستان د ملک د اوسیدونکو له ډیر وخت څخه یوه آرزو ده چه دلته انصاف آسان او ډیر شي. په دې سلسلې کښې کوم چه اصل جوړ شوی قانون دی او کوم چه زمونږ په مخکښې ده یو څو په دې باره کښې له ځینو خلکو څخه غلط فهمي شوې ده چه بنایي له اوله د علماوو او اسلامي علومو باندې د عبور لرونکي حضراتو له نظره تیر شوی وي. حالانکه زما خیال دا دی چه دا مسوده اسلامي نظریاتي کونسل ته نه وه لیږل شوې او نه په دې باندې د اسلامي نظریاتي کونسل کوم چه د ملک د مختلفو مکاتب فکر سره تعلق لرونکي جیدو علماوو باندې مشتمله اداره ده چه وکلاء هم پکښې شامل دي. په دې باره کښې د دوی څخه استصواب رأي نه ده شوې. دوهمه مرحله کومه چه په اصل مسوده قانون باندې د بنیادي توجه مرحله وه هغه دا وو چه مونږ قاضي کورټس قائم کاوه کوم چه له شبهې پرته یو ډیر نیک او مستحسن اقدام دی. لیکن په اصل مسودې کښې دا هیڅ چېرته واضحه شوې نه ده چه دا عدالتونه د کومو قوانینو لاندې فیصله کوي؟ همدا مروجه قانون، دا فوجداري او دیواني ضابطې او د دې کار که چېرته قائمول وي نو مونږ که چېرته قاضي ته جج ووایو او جج ته قاضي ووایو په دې سره اسلامي عدالت عدل او انصاف نه شي مهیا کولی او نه به عوامو ته عدل او انصاف ملاو شي. مونږ که چېرته قاضي ته قاضي محمد احمد ووایو او یا ورته قاضي نکلسن ووایو او یا ورته قاضي هربند رائې ووایو نو له دې څخه نه انصاف نه شي پیدا کیدلی. دلته د قانون په اصل مسودې کښې دا وضاحت په کار وو چه.....

**اخوندزاده بهره ور سعید:** پوائنټ آف آرډر، جناب صاحب دا د قاضي توهین دی هغه ته ووایی چه خپل الفاظ بیرته واخلي.

**مولانا سمیع الحق:** جناب صاحب! دا د قاضي توهین نه دی.

**آخوند زاده بهره ور سعید:** جناب صاحب! دا قاضي محمد احمد، یا قاضي نکلسن یا قاضي هربند رائې دا د قاضي توهین دی. هغه ته ووایی چه خپل الفاظ بیرته واخلي دا د قاضي توهین دی.

**مولانا سمیع الحق:** کوم توهین ما کړی دی؟

**آخوند زاده بحره ور سعيد:** د اقاضي نكلس څه شي دی؟

مولانا سميع الحق: تاسو كه جستس نكلس ووايی او كه قاضي نكلسن ووايی دواړه يو دي۔ كه چېرته له هغوی سره قانون هغه وي كوم چه په موجوده دفتري يا فوجداري عدالتونو كښې دی يعنې انګريزي قانون وي او تاسو هغه ته علامه نكلسن ووايی يا مولانا نكلسن ووايی او يا جستس نكلسن ووايی نو په دې باندې هيڅ فرق نه راځي۔ دلته بنيادي خبره له ټولو نه مخكښې دا ده چه د قانون په اصل مسودې كښې د دې واضح كولو په كار وو چه دا ټول عدالتونه د قرآن مطابق فيصلې وكړي۔ دلته د متفرقاتو په ضمن كښې كوم چه د تعبير تر عنوان لاندې ويل شوي دي چه له دې څخه د آرډيننس د احكامو په تعبير كولو سره قاضي عدالتونه په قرآن پاك او سنت رسول ﷺ كښې له تاكل شويو احكامو څخه لارښوونه حاصله كړي دا په قرآن او سنتو باندې واضحې مسخرې دي۔ د لارښوونې په لفظ باندې د قاضي عدالتونو د قيام مقاصد هيڅ كله نه شي حاصليدلی۔

سيد معين الدين پوائنټ آف آرډر جناب صاحب! ( This Is a Mis Statement of Clearly) په دې كښې په سيكشن ۵۳ او ٦٤ كښې دا ويل شوي دي چه هيڅ يوه خبره به د قرآن او سنتو خلاف نه وي په دواړو سيكشنونو كښې يو نه دی دوه سيكشنه دي ۵۳ او ٦٤۔

## د قوانينو د اطلاق لپاره لارښوونه نه بلكه پابندي لازمه ده

**مولانا سميع الحق:** يوه يا دوه حوالې دركوم او د دې په اړه څه عرض كوم۔ د دې په ابتداء كښې د اسې خبره نشته۔ په ابتداء يعنې د مسودې په شروع كښې كوم قسم الفاظ چه دي په دې كښې درج دي او دلته هم همدغه ده چه عدالتونه لارښوونه حاصلوي او تاسو ته هم دا پته ده چه تاسو قانون دان يی۔ وكيلانو صاحبانو ته هم دا پته ده چه له هغه څخه هيڅ يو قانون اسلامي نه شي كيدلی۔ لكه څنګه چه مونږ د ټولو قوانينو په ابتداء كښې له بسم الله الرحمٰن الرحيم څخه وروسته قرار داد مقاصد ليكو او همدا ډول د قرار داد مقاصد غوندې دا يوه ابتدائيه ده نو دا يو لازمي او ضروري شرط دی چه د ټولو قوانينو اطلاق چه كوم دي هغه به د قرآن او سنتو مطابق وي۔ او هيڅ طريقهٔ كار كه دفتري او كه فوجداري ضوابط وي هيڅ كله دې هم د قرآن او سنتو مخالفت نه كيږي۔ اصل قانون هغه ته وايي۔ چه تر څو پورې هغه د قرآن او سنتو مطابق جوړ نه شي تر هغو پورې شرعي عدالتونه د حق او د انصاف په طريقې باندې نه شي جوړيدلی۔

د دې لپاره دوهم عرض دا دی چه د قانون اصل مسوده چه په هغې باندې زمونږ د وكيلانو صاحبانو او نورو دوستانو چه كومې انديښنې وې او زه پوهيږم چه د دوی دا انديښنې بالكل بې ځايه دي۔ دلته د اسلامي نظام عدل نوم اخيستونكو كله هم فكر نه دی كړی او نه د هغوی دا اراده ده چه دلته په عدالتونو كښې د وكيلانو په ځای، د مجستريټانو په ځای علماء



قبضه وكړي۔ نو زمونږ مقصد يوازې دا دی چه كله تاسو د اسلامي نظام او د اسلامي عدل او انصاف نعرې اوچتوی نو د هغه لپاره به تاسو اسلامي قوانين جاري كوی او په هغو باندې د پوهيدلو كوشش كوی او د هغه په مطابق به كار كوی۔ له دې نه وروسته د لاء كميشن په وړاندې د قانون مسوده راغله او د لاء كميشن نه وروسته زمونږ فاضل سليكټ كميټي د جناب منټو صاحب په مشرۍ كښې د دې راپور سره چه څه وكړل هغه هم تاسو صاحبانو ته ښه معلوم دی۔

نو په دې خبرې باندې يوه واقعه عرض كوم۔ غالباً مولانا روم ليكلي دي چه د يوه سړي په زړه كښې دا خواهش پيدا شو چه زما په جسم باندې هم د زمري نقشه يا تصوير په كار دی۔ نو تصوير جوړوونكي ته وراغی او ورته وئې ويل چه زما په جسم باندې د زمري عكس يا شكل جوړ كړه۔ نو تصوير جوړوونكي د تصوير د جوړولو په مقصد ستن ور ووهله نو هغه سړی ترې په عذاب شو او چيغې ئې كړې چه دا څه شی جوړوې؟ هغه ورته وويل چه د زمري عكس جوړوم۔ سړي ورته وويل چه اوس څه شی جوړوې؟ هغه د مثال په توګه ورته وويل چه اوس ئې ښكر جوړوم د مثال په توګه سړي ورته وويل چه هو وروره! زمری خو له ښكر نه پرته هم كيدلی شي دا ښكر پريږدی۔

**جناب زيډ اې سلهري:** پوائنټ آف آرډر جناب صاحب! د زمري خو ښكر نه وي۔ دا مثال هم غلط وركوې نو د هغه خبره څنګه صحيح و منله شي هغه به هم غلطه وي۔ وئې ګوری ويل چه د زمري ښكر ئې جوړاوه۔

**مولانا سميع الحق:** زمری يا بل ځناور ما ويلي دي چه د مثال په توګه باندې۔ په هر حال ما د خره نوم نه دی اخيستی۔ څه تكليف ور پيښ شو هغو خلكو ته چه لكه چه د مثال په توګه وايي چه "د خره له سره د ښكرونو غائبيدل" نو آيا په رښتيا هم د خره په سر باندې ښكر وي؟ په هر حال كله چه هغه د ستنې وهل ور شروع كړل نو هغه سړي وويل چه وروره اوس ئې څه شی جوړوې؟ هغه ورته وويل چه لكی ئې جوړوم۔ سړي ورته وويل چه لكۍ ئې هم پريږده زمری له لكۍ څخه پرته هم كيدلی شي۔ بيا ئې چه كله دريم وارې ستن ور وهل شروع كړل نو بيا په عذاب شو او ورته وئې ويل چه اوس ئې څه شی جوړوې؟ هغه ورته وويل چه سر ئې جوړوم۔ سړي ورته وويل چه سر ئې هم پريږده۔ هغه ستن وغورزوله او ورته وئې ويل چه د اسې زمری خو ما په دنيا كښې نه دی ليدلی چه نه ئې لكی وي او نه ئې سر وي او نه ئې پښې وي۔

نو زمونږ سليكټ كميټي هم د دې مسودې ټولې مادې د اسې مجروح كړي، فسخ كړي او وړاندې كړې دي۔

**جناب وائس چئير مين:** مولانا صاحب يوازې يوه دقيقه وخت پاتې دی۔

**مولانا سميع الحق:** او نن چه كوم په اوچت اند از سره د سليكټ كميټي تعريف او تائيد كوی دا خو

عين زمرى نه دى يوه باډى ده چه يواځې پرې د زمري تاپه لګيدلې ده او توانايي او شجاعت پکښې نشته. نو دلته په هرې مادې باندې داسې ترامیم شوي دي چه له هغو څخه د عدل او انصاف مهيا کول نور هم طويل کيږي.

**آخوند زاده بهره ور سعيد:** نو كله چه دا د زمري يواځې باډى ده نو بيا ترې ويريږي ولې؟

**مولانا سميع الحق:** جناب صاحب! مونږ ويريږو نه مونږ له دې زمري څخه انشاء الله مكمل زمرى جوړوو.

**جناب وانس چنير مين:** تشريف راوړى.

**جناب ګرداري لال بهاټيه:** پوائنټ آف آرډر، جناب صاحب! آيا د انسانانو په معاملې کښې د ځناور مثالونه ورکول کيدى شي؟

**جناب وانس چنير مين:** تاسو تشريف کښيږدى.

**مولانا سميع الحق:** جناب صاحب! چه د قانون كومه موجوده مسوده وړاندې کړى شوې ده هغه نور هم اسلامي عدل او انصاف لرې كوي. زمونږ معزز ركن عبيد الرحمٰن صاحب ويلي وو چه مونږ ډير خوښ يو چه د اعلىٰ عدالتونو لحاظ شوى دى. نو اصل چكر خو دا دى چه له يوه عدالت نه وروستهٔ د دوهم عدالت او بيا له هغه وروسته دريم عدالت ته ځي. لكه څنګه چه صدر صاحب يادونه کړې وه چه هغه كله پنځلسمې پيړى ته په تګ سره به فيصله كيږي. نو څکه د خداى لپاره د دې په لار کښې خنډونه مه اچوى او كوم خلك چه د دې منتظر دي د خداى لپاره له هغو سره تعاون وكړى تر څو چه هغوى ته عدل او انصاف حاصل شي.

**جناب وانس چنير مين:** تاسو مسوده صحيح وګورى بيا به پرې پوه شى.

**مولانا سميع الحق:** جناب صاحبه! مونږ مسوده لوستلې ده ان شاء الله د هغې د هرې مادې به كامياب علميات كوو.